# قرآن اوبهاءالله

## دقران لویه معّما



**هوشیدر مطلق**

**فَبَشِّرْ عِبَادِ الذِينَ يَسْتَمِعُونَ الْقَوْلَ فَيَتبِعُونَ احْسَنَهُ اوْلَئكَ الذِينَ هَدَاهُمُ اللهُ وَاوْلَئكَ هُمْ اوْلُوا الْالْبَابِ .**

**دزمر سورت،۱۷-۱۸،ایت**

هغو بندګانو ته زيری ورکړه. چې خبرې اوري. او د هغو څخه د نيکو خبرو پيروي کوي . پروردګار د داسې خلکو رهنما دی.

## دحضرت بهاءالله د ايتونو څو نمونې

د پروردګار لمړنې خبرې دادي : په پاک زړه خپل توانا خدای ته راشئ. او هغه څه راوړئ. چې د هغه ددې ورځې سره ښه ښکاري . نن د ديدار ورځ ده. په پاکې سره عجله وکړئ. شايد چې ورورسيږی. او هغه څه چې درسره ښائي پرې پوه شئ. خپل ځانونه د ناشايسته او ناسمو کارونو وژغورئ. تر څو ددې ورځې په راز پوه شئ... په درې شيانو ديدار تر لاسه کيږي : د زړه پاکوالی ، د سترګوپاکوالی ، او د غوږونو پاکوالی، له هغه څه چې اوريدلي دي.

ووايه ! اې دوستانو : لاربنود راغلی . په خبروکې دده خبرې معلوم داره دي .
او لاره ئې په نورو لارو کې معلومه ده ، همدا يواځينې لاره ده راشئ. اود هغه وينا واورئ. په نن ورځ کې د خدای د بخشش وربځې اوري. او د دانايي لمر روښنائي ورکوي. او خپله لار ورته وښائي . ښه ځوان هغه څوک دی. چې د ګومان لاره ئې پريښوده. او د خدای لاره ئې ونيوه.

اې دوستانو ! د پروردګار قوي لاسونو د ګومان پردې څیرې کړې دي. تر څو سترګې ئې وګوري. او غوږونه له اوریدو پاتې نشي. نن ورځ د اوریدو ورځ ده. واورئ د بې ساري دوست خبرې واورئ. او په هغه څه چې در سره ښائي رفتاراوچلند وکړئ.۱

اې بنده ګانو ! په دې روح بخښوونکي پسرلي کې لایق هغه  څوک دی. چې د پسرلي باران په وریدلو تازه او خرم شي. لوی لمر رابښتلی او د بخشش وریځو سیوری جوړکړی دی. ګټه هغه چا وکړه. چې بې ګټې پاتې نشو. او دوست ئې په دې جامو کې وپیژاند . ووایه ! اې خلکو د یزدان چراغ روښانه دی. د نافرمانی په بادونو هغه مه وژنئ . د ستاینې ورځ ده. د ځان په الایش او راحت وخت مه تیروئ. د ښمنان په کمین کې ولاړ دي. هوښیار اوسئ. او د یکتا خدای د نامه په روښنائي خپل ځانونه د تورتم نه خلاص کړئ.۲

## دین د څه د پاره دی؟

اې دنړۍ خلکو ! الهي مذهب د محبت او اتحاد لپاره دی . او هغه د دښمنې او اختلاف سبب مه ګرځوئ.۳

**وایه! اې خلکو: د نظم اسباب څخه د پریشانې سبب ،او د یووالي څخه د اختلاف لپاره بهانه مه جوړوئ.۴**
**اې دوستانو! د یوالی بیرغ پورته شو . یو بل ته د پردیو په سترګومه ګورئ. ټول د یوې څانګې پاڼې یاستی.۵**
**اې دوستانو !...دټولې نړۍخلکوسره په پوره محبت رفتاراو چلند وکړئ.۶**
**نن ټول مېنې، یووالي، محبت او دوستې ته رابولم.۷**

## ایرانیانو ته خطاب

**د وجودافاق (موجودیت د اسمان لمنې) ستاسې د خرد او پوهې په رڼا ښکلې او روښانه وې ، ایا څه وشول چې پخپل لاس مو د خپل ځان او خپلو دوستانو د هلاکت د پاره پاڅون وکړ؟...د همت ملاوتړئ . شاید چې بنده ګان د بند څخه خلاصون پیداکړي. او ازادی ته ورسیږي.٨**

**حضرت بهاءالله**

## د حضرت عبدالبهاء دویناو

**یوه نمونه**

دین باید د عقل مطابق وي،دعلم مطابق وي. ځکه چې که د عقل او علم مطابق نه وي، ګومانونه دي. خدای د عقل قوه راکړې، تر څو د شیانو حقیقت وپیژنو. او د هر شي حقیقت درک کړو .

**که دین د عقل او علم مخالف وي. په دې کې هیڅ شک نشته چې ګومان دی .**

او که دين د الفت اومحبت مانع وي. بې ديني ترې ډيره ښه ده. ځکه چې دين د محبت او الفت په خاطر دی که دين دجنګ اوجګړې سبب شي. د دين نشتوالی ترې ښه دی. ٩

**حضرت بهاءالله جل اسمه الاعلی**

فرمائي:

دانسانيت لمړي خبره دانصاف ده،نورټول کارونه دهغه پورې اړوند او مربوط دي...

**اَحَبّ الْخَلْقَ عِنْدَالْحَقَّ اَرْسَخَهُمْ وَاَسْبَقَهُمْ فی حُبَّ اللهِ جَلَّ جَلاَلُهْ**

# لړليک



## سريزه

## لمړۍ برخه

## په ټول قرآن کې د لوۍ

## معما پټوالی

**دوهمه برخه**

**خاتَم النبيين**
**د مسلمانانو په لاره کې غټ خنډ دی**

۱۹ دعنوانونو
لړليک

---

**۴ فصل :درسول اکرم ﷺ وروسته دپيغمبرانو دراتګ په باره کې دقران مجيد ايتونه.**

**اوله برخه**

**دريمه برخه**

**قران د لوی معما حل**

## څلورمه برخه

## د دوه پیغمبرانو په یو وخت کې د ظهور وعده

**شپږمه برخه**

## دخدای دظهور وعده

**اومه برخه**

**دقران مجيد او احاديثو نورې نښاني**

**اتمه برخه**

**د قیامت او ساعت معنی**

**نهمه برخه**

**د ژبې رازونه**

**لسمه برخه**

**نور خبرونه ،بشارتونه**

**يولسمه برخه**

**دولسمه برخه**

**ضميمې**

## ورپسی جلد
## پروردګاردهغه له خبرو
## پيژندلئ شئ
## د پروردګار خبرې او د هغولارو پيژندنه

- د پروردګار د پيژندنې تر ټولو لوی میزان د هغه خبرې دي
- د خدای خبرې څنګه پيژندلئ شئ؟
- زمونږ د عصر د دو موعودو غوره ايتونه:

حضرت باب او حضرت بهاءالله

- يوه ازموينه

# سریزه

داکتاب دسمې لارې دوستدارانو ته هدیه دی،هغه چاته چې قران د خدای کلام ګڼي.او د پروردګار حکمت او علم په دې ټول اسماني کتاب کې ګوري .هغه مسلمانان چې مایل دي د خپلو نیکونو د افکارواوتصوراتو دمحدودې څخه څوګامه د باندې واخلي. پخپلو سترګو ئې وګوري.پخپلوغوږوئې واوري. او په پخپل فکرسره د نوي ائین په باره کې سنجش وکړي.

**احب الاشیاء عندی الانصاف...و انت توفق بذلك ان تشاهدالاشیاء بعینك لا بعین احد من العباد ...**

**۱**

**حضرت بهاءالله**

د حقیقت په پیژندنه کې د پروردګاردا لاندې کلام باید د ټولو خلکو لاربسود وي. په ځانګړې توکه د با ایمانه مسلمانانو لپاره لاربسود وي:

**فَبَشِّرْ عِبَادِ الذِینَ یَسْتَمِعُونَ الْقَوْلَ فَیَتبِعُونَ احْسَنَهُ اوْلَئکَ الذِینَ هَدَاهُمُ اللهُ وَاوْلَئکَ هُمْ اوْلُوا الْالْبَابِ.**

**دزمر سورت،۱۸- ۱۷،ایت**

پس هغه بنده ګانو ته زیری ورکړه. چې خبرې اوري. او د نیکو خبرو پیروي کوي . پروردګار د داسې هوښیارو خلکو رهنمادی.

د دې کتاب هدف پوهاوی دی ، نه ستاسې د عقاید واودین تغیرول . ځکه چې یواځې پروردګار د زړونو په تغیرولو قادر دی:
**مَن يَهْدِ اللهُ فَهُوَ الْمُهْتَدِي...**
**داعراف سورت،۱۸۷-ایت**
هر چا ته چې پروردګار هدایت وکړي هدایت به ورته وشي....
**وَلَوْ اننَا نَزلْنَا الَيْهِمُ الْمَلآكَةَ وَكَلمَهُمُ الْمَوْتَ ...ما كَانُواْ لِيُؤْمِنُواْ الاان يَشَاء اللهُ وَلَكِن اكْثَرَهُمْ يَجْهَلُونَ.**
**دانعام سورت،۱۱۱-ایت**
حتی که ملائیکی هغوې ته ولیږم او مړي د هغوې سره خبرې وکړي ... بیا به هم ایمان رانه وړي. مګر که پروردګار وغواړي. ځکه چې ډیر له هغو جهالت او ناپوهې ته تمایل لري .
دا کتاب چې نږدې نیم قرن اویانیمه پیړۍ ئې په جوړولو تیره شوې ده. د بشر په تاریخ کې د لوی خبر تصویر تاسې ته درکوي. او تاسې حیرانوونکې او د خوښې ډک سفر لپاره بل نوي جهان ته تیاروي.د «قران اوبهاءالله کتاب » یولس (۱۱) برخې او د عارفانو په قول (۱۱) وادي دی. له هر وادي څخه چې تیریږئ. ستاسې ډاډ او اطمنان ددې سفر په اهمیت زیاتیږي. او د موعود ښار ته د رسیدو لپاره

باید هر یو ددې وادي څخه په ډیر صبر او تحمل سره تیر شئ.
د مهربان پروردګارنه غواړم. چې دا لیکنه ستاسې د نظر اوباوروړوګرځي.اوبا الاخره تاسې د پوهې او اطمنان سرچینې ته ورسوي .

**دوه شیان د ټولو نه ډیر په زړه پورې دي . لمړې د خبرې لپاره منونکی زړه او دوهم زړه راښونکې خبره.۲**

**حضرت بهاءالله**

# لمړۍ برخه

# په ټول قران کې تر ټولو

# لویه پټه

# معّما

**په دوه فصلونو کې:**

۱. د بشر په تاریخ کې تر ټولو لوی اوغټ خبر.

۲. د پروردګار پیغمبران څنګه پیژندل کیږي؟

**سفر:** بې له دې چې د لارې توشه اوذخیره ئې برابره کړې نه وي. سفر جائز نه دی. د دې برخې هدف چې دوه فصله دی،د نورو ۱۰ لسو وادیګانو لپاره ستاسې تیاری او اماده ګي ده.

**مسافر به په دې سفر کې په بې صبرۍ ځای ته ونه رسیږي. او نه به هم مقصد تر لاسه کړي.۱**

**حضرت بهاءالله**

# ۱



# د بشریت په تاریخ

# کې

# ترټولو غټ خبر

**ربِّ زِدْنِي عِلْمًا. دطه**

**سورت، ۱۱۴-ایت**

پرو ردګاره زما پو هه زیاته کړه.

دقران اوبهاءالله کتاب د هغو دوه پیغمبرانو د دعوې د اثبات په باره کې دی. چې ټولو اسماني کتابونو د هغوې د ظهوراو راتګ په هکله خبر ورکړئ دی.

دا دوه لوي پيغمبران دخدای دوعدې سره سم په ایران
کې راظاهر شول.اوداښه خبرئې دنړۍ خلکو ته راوړ:
**وواېه :اې خلکو:لارښود راغلی ،عجله وکړئ نوی امر ئې راوړی. کوم چې تاسې ته سمه لاره وښائي. او هر چا چې دا اواز واورید. د زړه نه دې ووائي : اې پرودګاره! نوي امر جهان تازه کړ. خلکو ته ئې نوي ژوند وبخښل. مخ مې ستالورته او ستا د لیدو په ارزو یم ...د نړۍ ثروتمند راغلی،لاره ئې په ټولو لارو کې روښانه ده. وینائې په ټولو ویناګانو کې اوچته ده. وائې ورئ. راشئ ددې ورځې په شان روښانه ورځ نه وه اونه به وي.دغه ده د پروردګاروینا.۲ حضرت بهاءالله**



---

**ان ا کن ا یومئذ ف□ ایام الله ظاهرون تلك ایام ما اشرقت الشّ مس علیها بمثلها من قبل و تلك ایام تنتظرهاالامم**

**من قبل يومئذٍ فكيف انتم راقدون فتلك ايام اظهر الله شمس الحقيقه فيها فكيف انتم صامتون فتلك ايام انتظر تموها من قبل و تلك ايام العدل ان اشكروا الله يا ايهاالمؤمنون .**

**۳**

**حضرت باب**

په رڼتنې سره مونږ اوس د خدای دعدل په ورځ کې ژوند کوو. دا ورځ ډيره ښکلې اودلوې شان اوشوکت ورځ ده. چې لمر هيڅکله د داسې يوې ورځې په ځيرمخکې له دې څخه په بله کومه ورځ کې نه دی ځليدلی.دا هغه ورځ ده. چې مخکينيو ددې ورځې د ليدو انتظار په ډير شوق سره ايستل. څه وشول چې کلک ويده ياستې ؟ دا هغه ورځ ده. چې په تيرو زمانو کې ددې د راتګ انتظار مو په ډيره مينه ايستل. دا د الهي عدل د ظهور ورځ ده. اې مؤمينانو ! د خدای شکر اداْ کړئ .

حضرت باب د قائيمت (مهدي اخرزمان) دعوه وکړه.خلک ئې د حضرت بهاءالله ظهور ته اماده کړل. د کوم چې په ټولو اسماني کتابونوکې ئې وعده ورکړل شوې وه .

بهائی ائین که څه هم اوله درجه د حضرت بهاءالله په
ښوونو بنأ شوی، اما دواړه پیغمبران کیدلی شي ددې
ائین بنسټ ایښودونکي وګڼو.
**انّ هذا لهو الحقّ صراط الله في السّموات والارض فمن شاء اتّخذه الی الله بالحقّ سبیلاً . ٤**

**حضرت باب**

په یقین سره دا یو حقیقت دی. دا هغه لار ده. چې
خدای د ځمکې او اسمانونو اوسیدونکو لپاره وټا کله
اوهرڅوک چې مایل دی. په هغه لار چې خدای ته
رسیږي. غوره کړي .
**هذا دین الله من قبل و من بعد من اراد فلیقبل و من لم یرد فانّ الله لغنی عن العالمین.۵**

**حضرت بهاءالله**

دا د پرورد ګا رائین دی. څه مخکې او څه وروسته
هرڅوک چې وغواړې قبول ئې کړي. او یائې قبول نه
کړي.پروردګار د جهان خلکو ته کومه اړتیا نه لري .
**داهغه موعود دی. چې په ټولواسماني الهي کتابونو کي دهغه بشارت او زیری ورکړل شوی دی. سره له دې د ځمکې خلک د هغه ځخه ځانونه غافل او بې خبره وښائي .۶**

**حضرت بهاءالله** دحضرت بهاءالله دا کتاب د قران تر ټولو لوې معما څخه پرده لرې کوي. او هغه راز چې په دې کتاب کې له زروکلونو راهیسې پټ ؤ. په سلهاو ایتونو او نښانو سره را ښکاره کوي.

ددې حیرانوونکې معّماپه باره کې یو سم قضاوت یواځې ددې تولو ایتونو او نښانو په لیدلو او رابطې سره ممکن دی. مخکې له دې چې دا کتاب ولولئ. او پای ته ئې ورسوئ. او کوم نیوکه او ایراد پرې پیداکړئ. او دهغه په وجه او سبب له تحقیق څخه مخ واړوی. هیڅکله به مقصد ته ونه رسیږئ. ځکه چې د هرې معما د حل لپاره اساسي شرط زغم او د زیات کار سرته رسول دي .

قران مجید بهائي ائین د (**نَبَاءً عَظِیْم**)یعنی د (لوی خبر)په نامه نومولئ دی. او په سلهاو ایتونه ئې ورته ځانګړي کړي دي.ایا دا سمه ده. چې ترڅو وخت او فرصت لری. دا پیغام وانه ورئ. او د دې حیرانونکې معما په راز پوه نشئ؟

# لوی خبر

**وَرِضْوَانٌ مِّنَ اللهِ اكْبَرُ ذَٰلِكَ هُوَ الْفَوْزُ الْعَظِيمُ**

**.توبه سورت، ۷۲- ایت**

تر تولو لوی فضل د خدای رضا ده.هغه لویه ژغورنه ده.ددې کتاب موضوع د (قران د لوې معّما)حل وفصل دی. چی د لمړې ځل لپاره د بهائي آئین په پیدایښت

سره ئې اسرار  راښکاره شول. دا هغه معّما ده. چې په هغه کې دټول بشریت لپاره د ( لوی خبر) زیری ورکړل شوی دی. په ټول قران کې مهربانه خدای د جهان خلکو ته وعده ورکړې ده. دا وعده دومره لویه مرتبه او مقام لري. چې د «نباءً عَظِیِمْ» یا «لوی خبر» په نامه نومول شوې ده.

د هغه اسماني کتاب دوړاندوینې په اساس د هغه «لوی خبر» د رارسیدو په وخت کې د جهان خلک په غفلت کې دومره غرق شول. چې د ظهور څخه بې خبره پاتې شو.

**قُلْ هُوَ نَبَاعَظِیمٌ انتُمْ عَنْهُ مُعْرِضُونَ .        حضرت محمد (دصاد سورة ۶۸ - ۶۷ایتونه)**

ووائي هغه «لوی خبر» دی. اما تا سې له هغه نه مخ واړول.

**قل تالله انّ هذالنباء عظیم الّذی تزي ن بذکره کتب الله العلیم الخبیر .۷        حضرت بهاءالله**

ووایه ! په خدای قسم دی. چې دا لوی خبر دی. او د هغه په ذکر د لوی او دانا خدای اثارو، ښکلا  پیدا کړه.

**قد اتی الن بأ الاعظم والامم اکثرهم من الغافلين .۸**
**حضرت بهاءالله**

.البته چې لوی خبر راغلی دی اما ډير خلک ورڅخه غافل او بې پروا دي .

بهائيان تاسې او د جهان ټولو مسلمانانو ته بلنه درکوي. چې د څوورځو لپاره يو بل ائين ته د سفر اراده وکړئ. ترڅو ددې «لوی خبر» په راز او ددې پيام په انجام او اسماني زيری باندې پوه شی.
پروردګار د کلام په اساس ستاسې او د ټول بشريت ژوند اوبرخليک ددې «خبر» او وعدې پورې تړلی دی. چې د يوې معّما په شان په ټول قران کې د يو راز په څير پټ ؤ. د نوي ائين د ظهور پورې دا« ښه خبر» اود خوښې ډکه وعده چې د خدای په اراده پټه پاتې وه. بهائي اسماني اياتونو ددې لوی راز څخه په

نا څاپه ډول پرده لرې کړه. او هغه ئې د ظهور ډګر ته راوړه.

## دپیغمبرانو د حقانیت نښې

د پیغمبرانو او د هغوې د ایتونو د حقانیت دلایل څه شی دی ؟خدای پاک همېشه په تیرو کتابونو کې د راتلونکو پیغمبرانو په باره کې نښې او خبرتیاوې همیشه ورکړي او ورکوي ئې. چې قران تورات او انجیل پخپل وار سره دا سهم اداکړئ دی. د خدای د شهادت په اساس هغه نښې او خبرتیاوې د پیغمبرانو او د هغوې د آئین د پیژندنې لپاره بسنه کوي :

**وَقَالُوا لَوْلَا يَاتِينَا بِآيَةٍ مِّن ربِّهِ**

.

**اوَلَمْ تَاتِهِم بَيِّنَةُ مَا فِي الصحُفِ الْاولَ**.

**طه سورت،۱۳۔ ایت**

| | |
|---|---|
| **د خلکو پوښتنه:** | دپروردګار له طرفه ئې ولی پر مونږ معجزه نه ده راوړې ؟ |
| **د پروردګارځواب:** | ایا روښانه دلیلونه په تیرو اسماني کتابونو کې ددې پیغمبر د حقانیت په باره کې هغوې ته نه دي راغلي؟ |

**که دا خلک ... د قران ایتونه وګوري... ددې ظهور ټولې واقعې به په« جزئې او کُلی توګه» په هغه ایتونو کې پیداکړي ...۹**
**حضرت بهاءالله**
**هغه څه چې له مخکې ویل شوي اوس ټول ښکاره دي.۱۰ ټول هغه څه چې واقع شوي ،له مخکې نه ئې خبر ورکړل شوی دی.۱۱ په مخکینیو کتابونو کې ټول هغه څه چې نن ظاهر دي. ذکر شوي دي. ۱۲**

**حضرت بهاءالله**

زمونږ د عصر ددې دوه لوی پیغمبرانو حضرت باب او حضرت بهاءﷲ په څیر په ښکاره او واضحو دلایلو مخکې له دوې هیڅ یو پیغمر نه دی راغلی . ددې ظهور او ائین ټولی نښانې په تیرو ټولو اسماني کتابونو کې پټې او ښکاره دي.
په«قران اوبهاءالله» کتاب کې ددې نښانو یوه وړه او جزئي برخه ده. قران د بهائي آئین حتی هغه تاریخي کارنامی په تفصیل سره بیان کړي دي :

**وَكُل شَيْءٍ فَصلْنَاهُ تَفْصِيلاً.**
**بني اسرائيل سورت ۱۲- ايت**
هرې خبرې ته مو پوره تفصيل ورکړی دی .
**لَا يَعْزُبُ عَنْهُ مِثْقَالُ ذَرةٍ فِي السمَاوَاتِ وَلَا فِي الْارْضِ**
**وَلَا**
**اصْغَرُ**
**مِن ذَلِكَ**
**وَلَا اكْبَرُ**
**الا فِي**

**كِتَابٍ مبِين**
**دسبا سورة-۳ايت**
د ذرې په اندازه يو شئ د هغه څخه په اسمانونو او ځمکه کې پټ نه دی. وړو کی يا غټ دهغه څخه، په غير له دې چې د قران په مبين کتاب کې راغلی وي .
زمونږ د عصر دوه پيغمبرانو د ظهور خبر په قران او يهودو او مسيحيانو په مقدسو کتابونو کې د زرر ځلی نه زيات تکرار شوی دی . ځينې داسې وړاندوينې او خبرونه د رازونو او معّما په څير او ځينې نور په داسې صراحت او روښانتيا سره ئې بيان راغلی. چې هيچا ته د شک او ترديد ځای نه پاتې کيږي . هيڅ يو أئين په دومره واضحو دلايلو سره تر اوسه ظاهر شوی نه دی. دا کتاب د داسې يوې

حیرانونکې معمّا څخه پرده لرې کوي. او دا «لوی» راز چې په ټول قران کې پټ او ښکاره دی. تاسې ته وړاندې کوي.



ټولې هغه وړاندوینې چې هره یوه د هغوې څخه، ددې ظهور او ائین په هکله تحقق پیداکړی دی،یواځې دجهان دخالق په لاس تر سره کیدلی شي . مونږ بې نوا بنده ګان حتی د راتلونکي یوې د قیقې څخه بې خبره یو. دا خو ډیره لرې خبره ده. چې مونږ دې په دې پوه شو.چې دداسې یو ائین دبقا دظهور داستان چې زر کاله وروسته د اسلام د پیدایښت څخه په نړې کې قدم ږدي. او د بې شماره خنډونو څخه تیریږي. او

د ایران د قاجار په زمانه کې د یوسلسله جبارو او ظالموپاد شا هانوپه دوران کې په ټول عالم سیوری وغوړاوه .

په یقین سره به په دې پوه شئ. چې ستاسې پوهاوی د قران د وړاندوینو څخه او د هغوې تحقق د پیړیو د تیریدونه وروسته د ایران څخه ددې نوي ظهور راپورته کیدل ستاسې د لاسه تللې ایمان جبرانوي.
شاید په سلهاو ځلې په هغه ور زیات شي ! کوم چې ددې ائین په مرسته د خدای د هغې نقشې څخه چې د انسان د تکامل لپاره جوړه کړې ده. پوهه تر لاسه کوئ . شهادت ورکوي چې وروسته ددغه بصیرت او پوهاوي تر لاسه کیدو او ددغه همیشني سوغات دبل ځل لپاره ایمان او امید روښنائي په زړونو کې وځلوي. او هغوې د انسان نوع په خدمت کې او د مذهبي تعصباتو او خرافاتو د ځنځیرونو څخه د خلاصي لپاره چې ټول عالم ئې بندیوان کړئ دی. مخکې له مخکې مصمم او پیاوړي کړي .
د ټولو بلاګانو علاج په دنیا کې د خدای د نقشې په اجرا کولو سره او د زړونو روښانول د خدای په نور سره کیږي. پر مونږ دي چې پورته شو تر څو دا نقشه دنیا ته او دا نور زړونو ته ورسو.

# د رازونو ژبه

که د اسلام علماو ددې وعدې او ددې خبر او ددې ټولو پټو رازونو څخه معلومات تر لاسه نه کړل. کوم د تعجب ځای نه دی. ځکه چې د پروردګار د شهادت په اساس خلک
نه باید مخکې له ټاکلې وعدې څخه دپروردګار په اینده نقشه پوه شي.

---

امام حسن عسکری یولسم امام په ۲۶۰ هـ ق کې له دنیا نه سترګې پټې کړې. حضرت باب زرکاله وروسته په ۱۲۶۰هـ ق کې د ۱۸۴۴ میلادي سره سمون خوري. د قایمیت ادعاوکړه. د حضرت باب د ظهور تاریخ څو وارې په قران کې وړاند وینه شوې ده.

---



---

**دالهي نقشې نه خبرتیا دمقام والا اودایمان دتظاهروالادې ته رواداره کوي. چې هغې نقشې ته**

**لاس ورووړي. اودهغې دتحقق دمخنيوي لپاره كوښښ وكړئ. همدا سبب دى. چې خداى تعالى دحضرت مسيح رجوع دې جهان ته دغل دراتګ سره تشبيه كوي.**

**يوحنامكاشفات،٣فصل،٣-ايت**

په هغه ډول چې وبه ئې ګورو ، د قران ډير ايتونه د موعود د ظهور د نقشې پټ پاتې كيدل تائيدوي. دانا پروردګار د پيغمبرانو د «ظهور معمّا»په داسې شكل سره د اسرارو په پرده كې وپوښي. چې كه ټول علما او عرفا د يو بل سره مرسته هم وكړي . بې د الله د ارادې او اجازې څخه به هيڅكله هغه لوی راز پيدا نه كړي . مونږ بهائيان تاسې د حقيقت پلټونكو ته بلنه د ركوو. چې په پوره عدالت او ازاد فكر سره دا الهي معّما د بصيرت په ستركو وګوري. او ددې لوی رازعظمت او ښكلا په هغه توګه چی په بهائي اسماني اثارو كې څرګندونه شوې ده. د فكر په قوت سره پيدا كړي. ددې خبر اړوند اياتونه چې د ټول قرآن نه په دې كتاب كې راټول شوي دي. په پوره دقت سره څو ځلې ولولئ تر څو هغه پټ راز تاسې ته معلوم شي .

**د« خاتمَ الَّنبيّين» معنی**

دا ناسم تصور د ډیرو مسلمانانو په منځ کې شهرت پیداکړی. چې اسلام داسې یو دین دی. چې ترابده پورې د نورو دینونو راتګ ته ئې خاتمه ورکړې ده . او د نورو پیغمبرانو د ظهور سلسله د رسول اکرم په رالیږلو سره په ناڅاپه ډول پای ته ورسیده. او له دې وروسته ګویا بل پیغمبر نه راځي. او خلک به د بل رسول د راتګ افتخار ونه لري . ددې عقیدې روا جوونکو وکولی شو. چې یواځې د خاتَم د کلمې په غلط تفسیر او معنی په بدلولو سره یو قصر پورته کړي. او داسی بند ورته جوړ کړي چې حتی ددې قصرڅخه د وتلو تصور او د هغه خنډ نه تیریدل هیڅا ته ممکن نه وي ! په دې ترتیب به په څو راتلونکو فصلونو کې و ګورو چې دا کتاب ستاسې د لارې څخه هغه خنډ لرې کوي .

او دا راته وښائي چې قران مجيد مونږ ته په تکرار او تا کيد سره دا اميد راکوي. چې د خدای رابطه دخپلو بنده ګانو سره هيڅکله پای ته نه رسيږي. او د پيغمبرانو سلسله هيڅکله خاتمه نه پيداکوي. او د بهائې ائين ظهور يواځينې ګام دی په دې لاره کې او هم ددې سنتو د تحقق ښه نښانه ده.

**سُنَةَ اللهِ التِي قَدْ خَلَتْ مِن قَبْلُ وَلَن تَجِدَ لِسُنَةِ اللهِ تَبْدِيلًا .**

**سورت فتح،۲۳- ايت**

پروردګارروندا او سنت دخپلوبنده ګانو اړوند له مخکې ټاکل شوي دي.هيڅکله به په دې روند اوسنتوکې تغيراوتبديل ونه ګورئ.

د مخکينيوهر يو له پيغمبرانو د پيدايش د الهي ددې تغير نه منونکو سنتو د تحقق نښانې دي. ددې نړۍ اوسيدونکي د مليادونو کلونو په تيريدو سره چې دا ځمکه په حرکت کې ده. د بی شماره پيغمبرانو د ظهور شاهدان وي . په تيرو زمانو کې خدای تعالی دهرو زرو کلونو او يا کم ددې نه خپلو بنده ګانو ته پيغمبر را استولی دی. پوهانو او دا نشمندانو د لمر عمر (۴) څلور ملیارده کلونه اټکل کړی دی. په دې اساس که له دې وروسته په هرو زرو کلونو کې يو

پیغمبر راشي. د پیغمبرانو شمیر به دلمر او ځمکې د عمر تر پایه پورې ځلور میلونو ته ورسیږي د رسولانو راتګ د پروردګار د فضل او بخشش د اظهار نښانه ده.
ښنګه کیدلی شي دا فضل او بخشش سم دلاسه پای ورسیږي. او دا مکالمه اخره شي. ایا زمونږ خالق د روزګارتر اخره پورې نوري خبرې نه لري. چې د خپلو بنداګانو سره ئې وکړي.په دوهمه برخه ددې کتاب کې په دې مطلب په تفصیل سره خبرې او بحث شوی دی.

**د بشر په تاریخ کې تر**

**ټولو سختې**

**ورځې**

مخکېنیو پیغمبرانو ددې عصر بلاګانوڅخه د خلکو د بې اعتنائي په خاطرچې خپل موعود ته ئې لري. له مخکې نه خبر ورکړی دی.

هغه ورځې به دومره سختې وي. چې د عالم د پيدايښت د شروع څخه ئې مثل او نظير نه ؤ اونه به وي.

**او که پروردګار هغه د مصيبت نه ډکې ورځې لنډې نه کړي. حتى يو انسان به هم د ځمکې په مخ ژوندى پاتې نشي . ولې د خپلو غوره شوو بندګانو په خاطر به هغه ورځې لنډي کړي. (حضرت مسيح انجيل مرقس ،۱۳فصل (۱۹- ۲۰ )ايتونه**

**عالم بلاګانو نيولى ...او هيچائي...علت او سبب پيدانکړ .۱۳ حضرت بهاءالله**

**وَمَا كُنا مُعَذِّبِينَ حَت نَبْعَثَ رَسُولاً .**

**دبنى اسرائيل سورة ۱۵- ايت**

مونږ خلک د عذاب سره نه مخامخ کوو. مګر کله چې رسول ورولیږو.

**وَمَا ارْسَلْنَا فِي قَرْيَةٍ مِّن نبِيٍّ الااخَذْنَا اهْلَهَا بِالْبَاسَاء وَالضراء لَعَلهُمْ يَضرعُونَ.**

**داعراف سورة،۹۴-ايت**

هرديار ته مې چې پيام وړونکى ليږلى دى. هغه خلک مې د بلاګانو سره مخامخ کړي دي. ترڅو هغه

بیدارشي. او د پروردګار دربار ته د عذر او زاریو لاسونه پورته کړي.
ایرانیانو ته په خطاب کې فرمایئ:

**ستاسې د پوهې او عقل په رڼا ستاسې د وجود افاق روښانه او ښکلی و، څه وشو. چې په خپل لاس د خپل ځان او دوستانو په هلاکت مولاس پورې کړ. د همت ملا وتړئ شاید چې بندګان د بند څخه وژغورئ. او ازاد ئې کړئ .۱۴ حضرت بهاءالله**

که څه هم ایران په دې زمانه کې د بلاګانو په منځ کې راګیر دی خو اینده ئې ډیره روښانه ده .

**ایران... به داسې ترقي او پرمختک وکړي چې ټول عالم به ورته حیران شې.۱۵**

**حضرت عبدالبهاء**

## د بې دینی د خپرونې عصر

د حضرت بهاءالله د وړاندوینې پر اساس زمونږ زمانه کې به د عالم ځیره د بې دینې
خواته ځي. دې روند د هغه وخت څخه تر ننه پورې په تدریج سره سرعت پیدا کړی دی. او په دې

اخري کلونو کې ئې سرعت او شدت نور هم د زیاتو څخه زیات شوی دی.

**عالم او خلک پریشانه دي ... او وجه ئې غفلت او بې پروائي ده. او دا به لا نور هم شدت پیداکړي... ۱۶**

**حضرت بهاءالله**

همدا وړاندوینه او پیش بیني د حضرت مسیح په ویناوکې هم پیداکولۍ شئ:

**په هغه وخت کې به ډېر خلک خپل ایمان له لاسه ورکړي.**

**انجیل متی۲۴سورت ۱۰- ایت**

دخوا شینې ځای دی. چې زمونږ په عصر کې له دین څخه د بدې ګټې اخیستنې په وجه د مسلمانانو د جملې څخه په میلونونو خلک ددین سره بدبینه شوي دي . له ایمانه ئې لاس اخیستی دی. او حتی د خدای او اخرت په وجود ئې شک پیدا شوی دی. د اسلام نه تیښته زیاته شوې ده. په ځانګړې توګه په ایران کې د خدای او د هغه ددین سره بدبینې د خلکو په منځ کې په دومره لږ وخت کې هیڅکله سابقه نه لرله .

دا مؤمینان نه باید زمونږ دعصرد دیندارانو له رفتاراوچلند نه په شک او شبهه کې شي . ځکه هغه

وخت کې کله چې قران نازلیده . خدای تعالی په هغه کتاب کې زمونږ د عصر د مسلمانانو د بد وضعیت وړاندوینه کړې وه. او هغوې دداسې ورځې سره د مخامخ کیدو لپاره په دې اخطار سره اماده کړل:
**يَا رَبِّ ان قَوْمِي اتخَذُوا هَذَا الْقُرْآنَ مَهْجُورًا .**
**دعرفان سورت ، ۳۰-ایت**
اې زما پروردګاره ! دې زما قوم [مسلمانانو] له دې قران څخه لريوالی غوره کړی دی :
اې زما پروردګاره ! په يقين سره زما قوم قران پرې ایښی دی:
په نهج البلاغه کی حضرت امیر د قران خبر تائید او تاکید کړی دی :
**ځمکه او زمان به د جنګ او خونریزی نه سخت په لړزه کې شي. بد خلک به ډیر شي. او نیک خلک به کم شي. د ریښتینولی پاکې چېنې به وچې شي. او د دروغو دریا بونه به په مستی کې شي . خلک به په ژبه تظاهر کوي. او په زړنو کې به د یوبل سره د ښمنې کوي ... او با الاخره به د اسلام په نامه په تن پاک او اراسته وي. او یو ناموزونه پوستین به په څټ واغوندي. ۱۷ امیر مؤمنان**

**اې خلکو ډېر ژر به داسې وخت راشي چې اسلام به له منځه ولاړ شي. اودهغه نه به هيڅ باقې پاتې نشي:۱۸**

**امير مؤمنان**

**زمونږ عصر په ټول جهان کې ددين او ايمان دسقوط(لويدلو)عصر دی. نورو اسماني کتابونو هم مونږ ته له دې بدې ورځې نه خبرتيا راکړې ده.**

**حضرت مسح د**

**انجيل متی ،۲۴ فصل ۳۷ ــ ۳۸ ايتونه**

**په هغه زمانه کې به خلک په عيش او نوش اخته وي. لکه څنګه چې دنوح عليه اسلام په زمانه کې مخکې له طوفانه ددنيا خلک په عيش نوش اخته ؤ!.**

**حضرت مسيح دانجيل متی ،۲۴فصل**

حضرت مسيح په دې پوښتنې سره ددين او ديندارانو خرابې وضع څخه مونږ ته زمونږ په عصر کې خبر راکوي:

**کله چې د انسان زوي ظهور ته ورسي. ايا په جهان کې به د ايمان نښه پيداکړی؟**

**انجیل لوقا ۱۸فصل،۱۸-ایت**
دقران اوبهاءالله کتاب مونږته راښائي. چې مهربانه خدای دجهان لپاره شفاورکوونکي دارو جوړکړي دي.اوهغه وخت چې داسلام دپیغمبر په ژبه ئې دعربستان اوسیدونکي عرفان اوایمان ته رابلل. زمونږ احتیاجات ئې هم په نظر کې و. اودقران په سلهاو ایتونو کې هغه څه چې زمونږ دموعود پیژندنې لپاره لازم وه. په تفصیل سره ئې بیان کړل. اومونږ ته ئې ډاډ راکړ. چې مهربانه خالق هیڅکله خپل بندګان له یاده نه وړي. اوبې لارښوده ئې نه پریږدي.

---

☆ نورې مراجع : اقرنتیان ،۲ فصل ،۶- ۸ ایتونه ،تیموتااوس، ۳ فصل ۱-۹ایتونه،۴ فصل ،۴- ایت

د یهودیانو او مسیحانو مقدس کتاب د زرځلې نه زیات زمونږ د عصر د دوه موعودو د ظهور خبر ورکړئ دی. دا خبرتیاوې او نښانې مې په ۳ جلده کې چې (۱۵۰۰) صفحې لري. په انګلسي ژبه لیکلي دي. دې کتابونو ته مراجعه وکړئ :

- I shall come Again
- Lord of loard

## دپیشوایانو  نقش

### د ایمان په کمزورتیا او ددین په سقوط کې

د دین د پیشوایانو او فقهاو دبد وضعیت څخه خدای تعالی مونږ ته له مخکې خبر راکړی. هغوی چې باید دخلکو د روزنې او هدایت لپاره کار وکړي . زمونږ په عصر کې په فتنه ګرې لاس پورې کړی دی. د حضرت رسول اکرم څخه دالاندې حدیث په مختلفو مراجعو کې ئې راویت شوی دی . حضرت بهاءالله هم د هغه حدیث ځینې برخې دایقان په کتاب کې را نقل کړي دي.

**سیات□ عل□ امت□ زمان لا یبق□ من القران الا رسمه ولا من الا سلام الا اسمه یسمون به وهم ابعد الناس منه، مساجدهم عامره وه□ خراب من الهدی فقهاء ذالک الزمان شر الفقها تحت ظل السماء منهم خرجت الفتنة والیهم تعود .۱۹**

زما په امت به داسې وخت راشي چې د قران به هیڅ شی پاتې نشي. مګر یواځې توري به ئې پاتې وي. اسلام به یواځې نوم پاتې شي .خلک به ئې مسلمانان یادیږي خو د اسلام بیخاک به پکې نه وي جماتونه  به

ئې اباد وي.ولې د خلکودهدايت لپاره به يواځې يوه خرابه وي .
د هغه وخت فقها به بدترين او شريرترين فقها د اسمان د چتر لاندې وي. فتنه به له هغوې پورته کيږي او بيرته به د هغوې خواته ورګرځي .
د رسول اکرم دا وړاندوينه د بهائي ائين په زادګاه ايران کې پر پوره توګه تحقق وموند ځکه چې د وخت علماو پيشوايانو په دستور او حمايت سره ددې ائين د ۲۰۰۰۰ څخه زيات پيروان ښځې ماشومان او سپين ګيري په فجيع ترين شکل سره په شهادت ورسيدل.
**شيعه فرقې علماوته وګورئ. چې خپل ځانونه ئې دنورو امتونو څخه ډير لوړ اوعالي ګڼل. ځانونه ئې دبهترينو خلکو څخه شميرل، اودحق په نزد پسترين ياد شول. ۲۰**

**حضرت بهاءالله**

---

☆ د حديث اصل او دهغه ترجمه د اسلامې سايټ څخه نقل شوې ده:
حضرتبهاءالله د همدې حديث يوه برخه په کتاب د ايقان کې په ۱۶۴مخ کې نقل کړې ده.

**د اسلام په نوم ئې کوي او هغه څه چې کوي ... پخپل گمان سره په هغو د اعلی درجه سمو فکر کوي .**
**۲۱**

**حضرت باب**

**په غیر دکبر اوغرورڅخه بل څه نه غواړي،اوپه غیردخطا څخه بله طریقه نه غواړي ، ریاست ئې خپل نیمائي مقصد ټاکلی دی. کبراوغرور ئې په زړه پورې کار شمیرلی دی. نفساني تزویرات ئې د رباني په تقدیراتو مقدم گڼلي دي. دخدای د رضا څخه ئې مخ اړولی او په تدبیر او ریائې ځان مشغول کړئ دی. په ټول قوت او قدرت ددې مراتبو ساتنه کوي. چې مبادا دده شوکت ته نقصان پیبن نشي. او یائې عزت ته کوم خلل ونه رسیږي.۲۲**

**حضرت بهاءالله**

**د هر عصر علماو د خپل قدرت لپاره پورته شول. ضعیفه نفوسو د هغوې په متابعت سره له دلیل او برهان څخه سترگې پټې کړې .۲۳**

**حضرت بهاءالله**

**که ظاهري علومو کفایت کولی.باید دمسیح ملت مشران نن دایمان والا وشمیرل شي. ۲۴**

**حضرت بهاءالله**

## د دین علماو ته خطاب:

**لا تغتروا بعلمکم و لا باجتهادکم و لا باعمالکم فان کل ذلک ینفعکم اذا تؤمنون بالله و آیاته و کنتم ف□ ذلک الدین لموقنین .**

**۲۵ حضرت باب**

پخپل علم ،اجتهاد او پخپلو عملونو مه مغروره کیږي. دا ټول هغه وخت تاسي ته ګټه رسوي. چې په خدای او د هغه په ایتونو ایمان راوړی. او د هغه ائین په حقانیت یقین او باور وکړئ .

هغه احادیث چې دعلماو او فقهاو مخالفت د قایم موعود سره ښائي. اشاره ورته کوئ ډیردي. د هغې جملې څخه دا حدیث د امام صادق:

**ان اکثر ما یرد علیه المتفقهون ...۲٦**

اکثره هغه کسان چې د [مهدي موعود سره ] مخالفت کوي. د فقهاو د ډلي څخه دي ....

کله چې پیغمبران د نړی په مخ قدم ږدي. یو ډله خلک په ځانګړې توګه د وخت علما او پشوایان په دې ګومان وي. چې کولی شي لمر د وړانګو او ځلیدلو

ثخه وساتي. او غافل له دې نه چې د هغوې دښمني لکه د پسرلي باران په شان چي د ايمان او عشق کرنې او کشت ته د مؤمينانو په زړونو کې روزنه او پرورش ورکوي. او د پرورګار د ائين د پراختياسبب کيږي :



**كلّ كلمة تكلّم بها الأعداء انّها يكون بنفسها منادية لهذا النّبأ الأعظم و هادية لهذا الصّراط المستقيم .۲۷**
**حضرت بهاءالله**

هر کله چې دښمنان ئې په ژبه راوړي . هغه پخپله دا «لوی خبر » خپروي. او خلک به دې سمې لارې ته هدايت کړي.

د دې ائين د ظهور په وخت کې نه يوازې پيشوايان په مخالفت او دښمنې کې پورته شو.بلکه د هغه وخت حاکمانو هم د هغوې ملاتړ او ياري کوله .

دا تاريخي ليک د ناصرالدين شاه په خط، خپل د ترور زوی ته په خطاب کې، کوم چې د لښکرو مشروه. ميرزا مهدي قلي ددې شاهد دی.چې د وخت

پيشوايانو د مستبد پادشاه په مرسته او د پروردګار ددې نوي نيالګي په غوڅولو کې تر کومه حده مصمم ؤ:

**اې زما قهرمانه ترور زويه ! غواړم چې دا ګمراه طايفه دارنګه له منځه يوسې. چې ټول محو او نابودشي. او يو وړوکې اثر ئې پاتې نشي. د ژوند د روزګار له صفحې څخه ورک شي. ۲۸**

په دې وخت کې بهائې ائين په ټول عالم کې له ( ۲۰۰) نه زياتو هيوادونو او منطقو کې خپور شوی دی . د بري تانيکا د دايرة المعارف د سر شماری له مخې بهائې ائين په ټوله نړۍ کې د خپريدو په حساب دوهم مقام لري. او مسيحيت په لمړي مقام کې دی .

**په هر عهد او زمان کې چې د حقيقت نور ځليدلئ دی. پيشوايانو ترې انکار کړی او د حقيقت د نورمقابله ئې غوښتې ده. د بې ګناهانو وينې توی شوې دي. خوپه اخر کې پخپله يو بل سره په جګړه اغوښتي ... مګر هغه خلک چې د حقيقت د نور پلويان ؤ د شمع په شان رڼا ئې کوله او د اميد ونو د ونې تر سيوری لاندې په امن کې پاتې شو.۲۹**

**حضرت عبدالبهاء**

په کراتو سره په قران کې د هغه کسانو په باره کې راغلی دي. چې په دوزخ کې يو بل مقصر ګڼي . تقليد

کوونکي پيروان خپله د ګمراهۍ ګناه په پيشوايانو اچوي. پيشوايان په ځواب کې وائي: تاسې مجبوره نه وئ. چې له مونږ نه پيروي وکړئ. د ګفتګو په پاى کې مقلد پيروان د خداى نه غواړي چې د پيشوايانو مجازات دوه برابره کړي !
(دي ايتونو ته مراجعه وکړي۲۹: ۴۱؛ ۳۳- ۲۷: ۳۷؛ ۳۳- ۳۱ ،۳۴: ۶۸- ۶۶ :۳۳.)



**د ظالمانو او مفسدانو حالت به ډيربدوي...که څه هم د خلکو په منځ کې به په عزت او ثروت سره ظاهرشي.هغه کسان به د ناڅاپه اوبې پايانه ذلت اوغضب سره مخامخ شي.۳۰**
**حضرت بهاءالله**

مذهبي پیشوایان او د هغوي مقلد پیروان چې د هر دین او مسلک نه وي باید ددې وړاندوینو څخه د عبرت درس واخلي. او پوه شي چې د خپل ځان نه رضایت د حقانیت دلیل کیدلی نشي. ځکه چې د خپلې خطا نه لیدل او خپل ځان د نورو نه لوړ ګڼل د انسان بارز او څرګند خصوصیت دی!

هره ډله او حزب هغه څه چې لري. له هغوې څخه خوښ وي.

**خپل نفس مه غولوئ. چې د خدای لپاره عمل کوو.۳۱ حضرت باب**

په تیره یوه نیمه پیړۍ کې د اسلام په سلهاو لوی علماو څه په ایران او یا نورو هیوادونو کې بهائي ائین منلی دی. په داسې حالت کې اکثره مسلمانان له دې حقیقت څخه خبر نه دي. او نه پوهیږي چې :

- دمسلمانانو دیوې برخې لویو علماو او مجتهدینو په داسې یو حالت کې چې دوې ته لوی خطرو. په دې ائین ئې کلک ایمان لرل. په ډیر شهامت ئې په خپل ایمان لرلو شهادت ورکړ. او باالاخره ئې په دې لاره کې خپل ځانونه قرباني کړل.

- اما دهمغه علماو یوې بلې ډلې په داسې یوې ګمراهی کې پخپلو همکارانو او یارانو یقین لرل چې د هغوی قتل ته ئې ډیرپه بې پروائي کتل.

الله په محکم حکم او هم د عقل اوپوهې د قانون په اساس د هیچا تقلید او پیروي جایزه نه ده. په دې حال کې که د تقلید د مینانو نه پوښتنه وکړو: چې د دې علماو له ډلو نه ئې کومه یوه د اعتماد وړ ده ؟

هغه ډله چې د خدای سره د مینې په لاره کې خپل ځانونه قربان کړل او که هغه ډله چې د واک په ګدې کیناستل او خدای سره د مینی د عاشقانو د قتل حکم ئې ورکړ ؟. که تقلید جایز دی. کومه ډله له دې نه د علماو د تقلید لایقه ده؟ هغه چې د ثروت او مقام غوښتونکې ده. او یا هغه ډله چې د حقیقت تږې ده. او په هغه لاره کې څه چې لري د خپل دوست نه ئې قربانوي؟

**كُل حِزْبٍ بِمَا لَدَيْهِمْ فَرِحُونَ .**

**دروم سورت، ۳۲-ایت**

ایا د قران پیژندنه د بنی اسرائیلو د علماو لخوا د هغه کتاب د اسماني منشاخخه نه ده ؟

خدای لویه هدیه او بخشش خپلو بنده ګانو ته د وجدان او عقیدې ازادي ورکړئ ده . دا الهي هدیه زمونږ په غاړه یو لوی مسولیت اچوي. د مخکینیو له ائین نه تقلید او د پیشوایانو پیروي، د وجدان د ازادې سره سمون نه خوري. لمړنې ګام د مخکینیو تهمتونو او تعصباتو له دام نه د خلاصون لپاره د خدای نه بخښنه غوښتل، د علم او د پوهې لاس ته راوړل، دعا او پخپل خدای اتکأ کول دي .

ایا مهربانه پروردګار خپل بنده ګان، چې د هغه رهنمائي ته اړدي. په ناڅاپي توګه له یاده وړي؟
ایا هغه ائین چې د مؤمینانو د امیر په وینا دوه مخې هغه ته په (څټ ناموزونه پوستین ) وراغوندي نه ګوري ؟
ایا مهربانه او دا نا خدای بې نوا خلک د ظالمانو په لاس د غم او ستم په غرقاب کې بې له کومې رهنمائي خوشې کوي ؟
ایا داسې یو رفتاراوچلند د عادل خدای سره ښایيځ؟
پس که تاسې د هغې ډلې مؤمینانو څخه یاستې. چې دیندارانو سره د ناسم چلند په وجه د خدای، ایمان ، دین او اخرت له ټولونه لاس په سر شوي یاستی او له دې دنیا سره تاسې خپل زړونه تړلي دي. یوازې د خپلې پوهې سره د مینې په خاطر، د پروردګار د موعود دعوت چې یواځې زمونږ د سعادت او خوښې لپاره دی، او په دې لاره کې ډیرې بلاګانې زغملې دي ومنئ. خپل نظر،

د هغه اسماني ويناو ته او د هغه د ظهور نښانو ته واچوئ. او وګورئ چې پروردګار څه رازونه په څومره دقت او مهارت سره په ټول قران کې کوم چې بې مثله کتاب دی،
د رمز او اشارو په قالب کې پټ ساتلي و . او په څه ډول يی هغه رازونه د خپل موعودپه ژبه په دې عصر کې ښکاره کړل . اوپه څومره ښکلا او ښايست سره ددې لوی معّما په وسيله ستاسې د لاسه تللی ايمان جبران کړي. اود بل ځل لپاره د خپل خدای سره د مينې او اميد نور ستاسې په زړونو کې روښانه کړي.
**اې بندګانو ... دهر رهنما وينا مه منئ . د رهنمايانو ډير ګمراهان دي. او سمه لاريی نه ده پيداکړې . رهنما هغه څوک دی. چې د روزګار له قيد او بند څخه ازاد دی. او هيڅ شی هغه د رښتيا ويلو څخه منع نه کړي.٣٢ حضرت بهاءالله**

زړه وړې او خوږ ژبې شاعرې طاهرې قرت العين څومره ښکلی شعرويلی دی:

| | |
|---|---|
| **هان صبح هدیٰ فرمود آغاز تنفس** | **روشن همه عالم** |
| **دیگر ننشیند شیخ بر مسند تزویر** | **دیگر نشود مسجد** |
| **ببریده شود رشتهٔ تَحت ا لحَنَک از دُ م** | **نه شیخ بجا ماند، ن** |
| **محکوم شود ظلم به بازوی مساوات** | **معدوم شود جهل ز** |

**له هغوې پوښتنه وکړئ چې**

**پوهيږي**

**نه له فاسقانوڅخه**

دجهان خلک هيڅکله په دې اندازه د حيرانتيا او سرګردانې سره مخامخ نه ؤ لکه زمونږ په دې زمانه کې چې ورسره مخامخ دي. له يوې خوا دخلکو په روح دنيائې کارونو او سر ګرميو تسلط پيداکړی،د مطالعې او تحقيق لپاره فرصت پرې ايښی نه دی. او له بله پلوه په ټول عالم کې د سمې لارې مدعيان ډير شوي دي. چغې اوسورې (د نجات لاره يوازې زما مذهب دی ) له هره طرفه پورته دي.

**د شعر اړوند لغتونه :**

صبح هدی : د حضرت باب ظهور ته صبح هدايت وائي

افاق وانفس : مادی او معنوي عالم

تحت الحنک : څادر

زرق وتدلس: حيله او تزوير؛ غولول

تفرس: زيرکې سره پيداکول.

په داسې وخت کې څنکه کولی شو، د اطمنان او یقین سرچینې ته لاره پیداکړو، دپرورګار وینا واورو او وئې پیژنو ؟
څومره ډیر دي داسې خلک، چې د حقیقت غوښتونکي دي. او د حقیقت تږي دي. اما په دې نه پوهیږي، چې له چاڅخه یې واوري.. اوځنګه دربښتینولې سرچېنې ته لاره پیداکړي. دایقان په کتاب کې فرمائي، دحقیت لمرلویدو په وخت کې:
**بنده ګان به په تنګسې کې ولویږي.اونه به پوهیږي. چې چا ته مراجعه وکړي.۳۳**

**حضرت**

**بهاءالله د(مسیح دوړاندوینې په اړه)**
دا تنګسې او سختې دهغه لمرراختلواوځلیدلولپاره د ضرورت نښانې دي.
پروردګار مونږ ته رانښائي، چې مونږ باید باانصافه اوسو. د هر بې خبره او نادان چا وینا د رښتینولې معیارونه ګڼو. ډیر ایرانیان کوم چې تر اوسه د بهائي ائین په باره کې پوهیږي. له بې خبرانو او ددې ائین

له دښمنانو څخه ئې اوريدلي دي. اوبې له دليله دهغوې وينا د رښتينولې معيار ګرځوي.دقران دالاندې ايت، دې خلكو ته د لوى خطا او جرم څخه كلك خبردارئ وركوي :

**يَا ايهَا الذِينَ آمَنُوا ان جَاءكُمْ فَاسِقٌ بِنَبَأٍ فَتَبَينُوا ان تُصِيبُوا قَوْمًا بِجَهَالَةٍ فَتُصْبِحُوا علَ□ مَا فَعَلْتُمْ نَادِمِينَ .**

**د حجرات سورت،۶- ايت**

اې مؤمنانو ! كه چيرته كوم فاسق انسان تاسې ته كوم خبر راوړ. د هغه خبر په باره كې تحقيق وكړئ. (له هغه څخه دليل وغواړئ.) مبادا په ناپوهې سره كوم قوم ته (د كوم ائين پيروانو ) ته ضرر ورسوئ . او وروسته د خپلې خطا په خاطر پښيمانه شي. وګورئ تر كومه حده پورې قران مجيد زمونږ د هغه وخت د خلكو رسم او رواج پيژندل. څومره پيړۍ مخكې مونږ ته معلومات راكړي دي. او مونږه ئې «د فاسقو او بې خبره خلكو» له ويناو څخه باخبره كړي يو، د نادانو او متعصبوخلكو څخه د پوښتنې په ځاى، پروردګار د مؤمنينو څخه غواړي، چې دا لوى خبر له اګاه اوپوهو خلكو څخه وپوښتي:

**فَاسْالْ بِهِ خَبِيرًا.**

**دفرقان سورت،۵۹- ايت**

**لمړې ترجمه:** دهغه [موعود] په باره کې له هغه چا پوښتنه وکړئ. چې له دې خبر څخه سم معلومات ولري :

**دوهمه ترجمه :** د هغه په باره کې له هغه چا نه پوښتنه وکړئ. چې هغه پيژني.

اوس تاسې ددې لپاره فرصت او وخت لرئ. چې دا ( بنه خبر ) او دا « **نَبَأٌعَظَيْمٌ** »

چې ټولو اسماني کتابونو کې د ظهور زيرى ورکړئ دى . له هغه چا پوښتنه وکړئ ، اووائي ورى، چې له هغه څخه باخبره دي. او د هغه په باره کې په سلهاو ايتونه ، دليلونه او نښاني له قران نه تاسې ته ووائي.

**د اغيار په وينا له ياره لرې مه پاتې کيږه.او د دښمن په خبره له دوسته مه تبريږه. ۳۴**

**حضرت بهاءالله**

## دروح بخښونکي

## پسرلي پيل

## وروسته له اوږده اود

## غمه ډک ژمي

**هغه څه چې په دې عصر کې ددين او دينداراﻧﻮ نه وينو، نه بايد زموږد حيرانتيا موجب شي . زموږ د عصر د پيشواياﻧﻮ او دينداراﻧﻮ د خواشينوونکې وضع په باره کې د پروردګار د وينا تحقق بايد زموږ ايمان لاقوي کړي، نه دا چې هغه ضعيفه کړي. که هغه وړاندوينې ځای ته نه وی رسيدلې . هغه وخت ئې ځای وه، چې په شک شبه کې ولويږو. او د ايمان او ائين څخه زړه او لاس په سر شو . حضرت بهاءالله د خلکو دا ازار، اذيت او انکار چې د حضرت باب په حق کې تر سره کړ. دا پخپله د هغه په حقانيت کې يو دليل حسابوي . ځکه هغه څه چې تر اوسه شوي دي او کيږي، د مخکينيو پيغمبراﻧﻮ د وړاندوينو سره سمون لري. ۳۵**

بر عکس هغه څه چې تر اوسه شوي دي. او تر سره کيږي. بايد له هغه د عبرت درس واخلو. ځکه چې د روزګار دپيدايښت د شروع نقشه په همدې ډول وه، او وي به. او وروسته له پسرلي به د خزان په انتظار يو. وروسته د خزان او ژمي بيا د پسرلي په انتظار يو . د ټولو اديانوبرخليک همداسې و، او وي به. په دې

برخليک او سنتوکې استثنا نه وه اونه به وي . زمونږ د عصر بلاګانې د هغه سخت او له غمه ډک ژمي نښانې،اود بهائي ائين ظهور د تازه او روح بخښونکي پسرلي نښانې دي.

دروزگار څرخ همیشه په حرکت اوگردش کې دی .
وروسته دژمي له یخنې د پسرلي ښکلا اوگرمي
رارسي. اوبیا جهان ته تازه ژوند بخښل کیږي.
**لَن تَجِدَ لِسُنةِاللهِ تَبْدِ یلًا.**
**داحزاب سورت، ۶۲- ایت**
دپروردگارروندااوطریقه هیڅکله په بله نه اوړي.
**قل ان ارياح الخريف لو تعرى الاشجار من طراز الرّبيع هذا لم يكن الالظهور طرازاخر كذلک قدر الامر من لدن مقتدر قدير . ۳٦**
**حضرت بهاءالله**
وواپه! که دخزان بادونه ونې لغړې کړي. اودپسرلي ښکلا یوسي. دایواځې دبل ظهور لپاره ښکلا او ښایست جوړوي. په دې ډول مقتدر پروردگار حکم کړی دی.
**ښنگه چې جهان تیارې ونیو، دبخشش دریاب په څپوشو. اوروښنائې راڅرگنده شوه.۳۷**

**حضرت بهاءالله**

**دامعلومه ده چې لمر وروسته له شپې راخیژي...که د(زردشتیانو موعود)حضرت شاه بهرام په داسې یوظلماني حالت کې راپورته نشي نوبیا به په کوم وخت کې راپورته کیږي.۳۸**

**حضرت عبدالبهاء**

**نن دعدالت فریاد پورته دی. اودانصاف چغې دي. او ټول عالم اوامت دستم تور لوګي نیولئ دی.۳۹**

**حضرت بهاءالله**

زمونږ عصر دمخکنیو ادیانو دپیروانو په زړونو کې ددین دژمي موسم دی. او دعشق اوایمان لمر ئې په ډوبیدو دی. اما دپروردګار دوعدې پراساس دا ژمي په تیریدودی. اوددې نااحوالو لپاره باالاخره یوسمون اوسروسامان شته دی .

زمونږ کار په دې موسم او فصل کې دتخم شیندل اوکرل دي.دانې دخدای اوکرل ئې پرمونږ دي. ددې کتاب هدف هم همدغه دې : دخدای سره دعشق او ایمان دتخم کرل ستاسې په زړونو کې اودټولو هغو کسانو لپاره چې تراوسه ناامیده شوي نه دي.

نوراختیار زمونږ سره دی، زمونږ برخلیک زمونږ په لاس کې دی. یا دا دانې راشنې کیږي. اود امیداوایمان د میوو روزنه اوپالنه کوي،

او یا دروزګارطوفانونه هغه له منځه وړي، اودیاده ئې وباسي.
دپروردګار دارادې په اساس اصلاً په دین کې جبر او زور نشته «**لاَ اكْرَاهَ فِي الدِّين»دا** ایت ددې پورته خبرو لپاره ښه شاهد دی. «چې دین اجباري نه دی.»
کله چې پروردګار قران نازل کړ. اومونږ ئې ددین اوایمان څخه خبرولو،مونږ ته ئې دنجات لاره هم ښودله.هغه دنوي پیغمبردظهور لاره وه. چې دبیا لپاره په خلکو کې دایمان روح پیداکړي. اوهغوې دخدای په رحمت اومهرباني امیدواره کړي. اوددې جهان دغمونو اوتشویشونو نه خلاصون پیداکړي.
په همغه ترتیب سره چې په دې کتاب کې به ئې وګورئ.د«قران په لویه معمّا»کې خدای تعالی نه یوازې دخپل موعود دظهور نیټه څو وارې

تکراروي،دخپل ائين دغلبې اوپراختيا موندنې کال په
هغه حيرانوونکې معّماکې درجوي.داهغه وخت دی.
چې دخدای دقدرت اوښکلا اثاربه داسې راښکاره شي
چې هيچا ته به بهانې پاتې نشي ،دپسرلي دموسم
درارسيدلو اودخوندورو ميوو دراټولولو درسيدلو
دوخت څخه به هيڅوک منکر نه وي!
ددې ائين ظهور دبشر په تاريخ کې لويه پيښه ده
.دپروردګار د ارادې په اساس، داهغه وخت دی. چې
دجهان خلک ديودين اوائين ترسيورى لاندې لکه
شيدې اوشکره يوبل په غيږ کې ونيسي. اونوی جهان
اونوې نړۍ جوړه کړي.مونږ په دې لنډه موده اوډير
زرتيريدونکي وخت کې هم پخپلو اوهم دنورو په
زړونو کې دايمان دانې وکرو. اودژوند ارمغان څخه
هميشنې اوجاويدانې ميوې ترلاسه کړو.څه به وشي که
داعمر ددې هميشني جهان دنعمتونو او راحتونو لپاره
مصرف کړو.داوړي موسم په ټاکلي وخت رارسيږي.
او دپروردګار باغستان دوعدې سره سم ميوه ورکوي
.هغوې چې په دې «لويه پيښه»کې خپل نقش نه
غواړي .اوپه دې«قيامت»کې «قيام»ونه کړي. اوقدم
وانخلي، يوازې به خپل ځان داسماني هميشني فيض
اوبخشش څخه محروم کړي .خدای خپلو بنده ګانو ته
هيڅکله نياز نه لرل اونه ئې لري.

په قران کي دپروردګار دوعدې په اساس دحضرت
باب په ظهور دپسرلي تازه موسم راورسيد. اوپه جهان
کې نوی عصر شروع شو. زرکاله وروسته دوحې
ددوران اوپه اسلام کې دالهام دختميدو څخه پس هغه
موعود دخلکو په دعوت پيل وکړ.اما هغو«ژمي
خوښوونکو»دپسرلي لطافت اوښکلا،ونه غوښتله.
اودالهي روښنائي څخه ئې ځانونه لرې وساتل. اوخپل
ځانونه ئې دتعصباتو ،رسوماتو اوخرافاتو دتورو
وريځو شاته پټ کړل. خپل خدای ته ئې دشکر خوښې
اودعا اودداسې بې پايانه لطف اوبخشش څخه دمننې په
ځای ،په ايره اوترس کې ولويدل. دخپل موعود د
ازار، اذيت اوپه تمسخرئې پيل وکړ. ددښمنې اوکينې
څخه ئې لاس وانه خيست. ترڅو په پای کې هغه دسل
هاو مرميو هدف وګرځول ! پس هغه څه چې وينو، نه
بايد زمونږ دحيرانتيا سبب شي.
که مريض دشفابخښوونکې دوا دخوړولو نه انکار
وکړي. اوپه بلا واوړي. ګناه دچا ده؟ داعمالو
دسزادليدلو له نظره خلک په تاوان اوګناه کې ليدل

کیږي...ددینا په انقلابونو کې فکر وکړئ.**لعمری لاتَسکن بل تَزداد فیکلِّ یومٍ .هذا ما یخبرک به الخبیر. ۴۰**

**حضرت بهاءالله**

**هغه څوک چې دمطالعې وخت نه لري!**

**هَلْ يَسْتَوِي الذِينَ يَعْلَمُونَ وَالذِينَ لَا يَعْلَمُونَ انمَا يَتَذَكرُ اوْلُوا الالْبَابِ.دزمر سورت، ۹-ایت**

آیا هغه چې پوهیږي. اوهغه چې نه پوهیږي. یوشان دي؟

یوائې دعقل او پوه خاوندان ورڅخه پند اخلي.

**ه نیست که گوید که دانا ونادان یکیست؟**
**فردوسی**

تاسې ګران ویونکی به ددې لوی کتاب په لیدلو خپل ځان ته ووائي:

«زما ژوند دجنجالونو څخه ډک دی. څرنګه دداسې یوی لیکنې دمطالعې او لوستلو وخت پیداکړم؟»

په خدای قسم دی ، چې د[دنیا انقلابونه] نه ختمیږي. بلکه ورځ په ورځ به زیاتیږي. هغه څوک چې په هرڅه پوهیږي. په دې توګه تاسې ته خبر درکوي.



---

---

که چیرته داسې پوښتنې ستاسې په ذهن کې پیداشي. خپل ځان ته په ځواب کې ووائې:

• .کولی شی. ددې کتاب دوه فصله په میاشت کې ولولی. اودیوکال په اوږدو کې خلاص کړی.

• هره میاشت «۷۲۰»ساعته ده. آیا یواځې دوه ساعته چې ددې ساعتونو نیم فیصد کیږي.

زما دهمیشني ژوند دزرهاو ملیاردو کلونو لپاره یو مشکل کار دی. چې البته نه دی. اوداخبره دعقل اوحکمت څخه څومره لرې ده؟

دې جهان ته زما دراتګ هدف اوموخه زما دمعنوي اواخلاقي تکامل اوپرمختګ څخه عبارت دی.دغه تکامل اوپرمختګ یواځې هغه وخت ممکن دی. چې

دخپل خالق سره نږدې اودمینې ډک اړیکې
ولرو.دپیغمبرانو دراتګ هدف هم همدغه دی. که دې
لوی هدف اوموخې ته ونه رسیږو،دټولواسماني
کتابونودشهادت پر اساس به خپل قیمتی عمر، هسې بې
ځایه له لاسه ورکړی وي.حضرت مسیح
زمونږدعصرخلکو ته په خطاب کې فرمائي : لمړی
د«خدای دعظمت»دپیداکولو لټه ...وکړئ .وروسته له
هغې به تاسې ته هرڅه درکړل شي. انجیل
متي۶فصل،۳۳-ایت.
بهائي ائین زمونږدعصردخلکولپاره دخدای دفرښتو
نړۍ ده. ددې «عظمت»قیمت اوبهاء ددې عالم ثروت
اوعزت نشي پوره کولی .که دې سوغات ته لاس
رسی پیداکړی، دپروردګار دوعدې په اساس نور
هرڅه ستاسې دي.
خدای مونږ ته دنیکمرغیو اوسعادت غوښتونکی دی،
اما لمړنی ګام په دې لاره کې ددې یکتااوبې
همتا،بخشش لاسته راوړلو لپاره ، دخدای دپیغمبر
پیژندنه ده. دهغه پیغمبر چې دخدای د«وحې »راوړلو
اودهغه دعظمت اولویوالی ائینه ده .
**اوّل ما کتب الله عل□ العباد عرفان مشرق وحیه .۴۱**
**حضرت بهاءالله**

لمړنې وظیفه چې خدای پخپلو بنده ګانو واجب کړې ده. دوحی طلوعګاه د«وحې دراتګ ځای»پیژندنه ده....



---

پس دی لوی هدف ته درسیدو لپاره لمړنې وظیفه چې خدای تعالی په خپلو بنده ګانو واجب کړې ده. بایدپه هغه وظیفه کې کوښښ کوونکي اوصبر کوونکي اوسئ.پروردګار دهر نیک اوخیر کار لپاره ، تاکلی اجر مقرر کړی دی. مګر دصبر اجر بې حده اوبې حسابه دی.

**انمَا یُوَفـ□ الصابِرُونَ اجْرَهُم بِغَیْرِ حِسَابٍ.**

**دزمر سورت، ۱۰-ایت**

په یقین سره خدای پاک صبر کوونکو خلکو ته بې حسابه اجر ورکوي.

**ددې لارې مسافر په بې صبرې ځای ته نه رسیږي. اونه به مقصد لاس ته راوړي. ۴۲ دطلب اندازه باید دمجنون نه زده کړئ .«وائې چې یوه ورځ مجنون خاورو کې لاسونه وهل. او اوښکې ئې تویولی. چاپوښتنه ترې وکړه. چې څه شی کړی؟مجنون وویل: لیلی لټوم. هغه ورته وویل:وای پرتا ! لیلی دپاک روح نه ده اوته ئې په خاورو کې ګوری؟مجنون ورته وویل: ټول ځایونه پسې ګورم شاید چې پیدا ئې کړم.۴۳**

**حضرت بهاءالله**

هرارمان ته درسیدو لپاره کوښښ اولټونه لازم ده.آیا د بشردتاریخ دلوی خبردپیژندنې لپاره کومه استثنائي وجود لري؟یواځې کوښښ کوونکي خلک مقصد ته رسي:

**وَالذِینَ جَاهَدُوا فِینَا لَنَهْدِیَنهُمْ سُبُلَنَا .**

**دعنکبوت سورت،۹۹- ایت**

په یقین سره هغه څوک چې زما په خاطر کوښښ کوي. زماپه لارو کې به ورته هدایت وشي.

داکتاب هغه چاته هدیه دی. چې په غیر دربنتینې اودپوهې دلارې نه په بله لارقدم وانخلي. دپوهې اودانش سره مینه ولري.دپروردګار سره دمینې اوایمان سوغات له هرشي مهم وګڼي.

**قَدْ جَاءکُم بَصَآر مِن ربِّکُمْ فَمَنْ ابْصَرَ فَلِنَفْسِهِ وَمَنْ عَمِيَ فَعَلَيْهَا... دانعام سورت،۱۰۴- ایت**

دخدای له لوریٔ تاسې ته روښانه دلیلونه راغلي دي. هرڅوک چې دلیدلو سترګې خلاصې کړي. هغه وژغورل شو. اوهرچا چې پټې کړې، تاوان ئې وکړ...



---

---

**پروردګاردهغه دکلام څخه**

---

**پیژندلئ شئ**

**قُلْ بِفَضْلِ اللهِ وَبِرَحْمَتِهِ فَبِذَلِكَ فَلْيَفْرَحُواْ هُوَ خَيْرٌ مِّما يَجْمَعُونَ. ديونس سورت، ۵۸- ايت**

ووايه!دخدای رحمت اوفضل ته اميدواره اوسئ. اوپه هغه خوښ اوسئ. هغه ارمغان چې هر څه وي برتره اوښه دی.

**قُلْ قَدْ ظَهَرَ فَضْلٌ ما سَبَقَهُ فَضْلٌ فِيْ ا لا بْداعِ انْ انْتُمْ مِنَ السامِعِيْنَ ... ٤٤ حضرت بهاءالله**

ووايه ! داسې فضل اورحمت ظاهرشوی دی. چې په عالم کې سابقه نه لري. که اوريدونکي ياست...

**اې بنده ګانو!دپوهې له درياب نه ځانونه مه بې برخې کوئ. اودځليدونکې لمر څخه ځانونه مه محروموې. روح بخښوونکي هوا وچليده، پژمرده ګانو ته ئې تازه ګي وبخښله. اوداهغه ورځ ده. چې هربيان دهغې دشرح څخه عاجز دی. نيک دی هغه بنده چې دنن ورځې په منزلت اودرجې خبرشو. اودهغې په مبارک والی ئې شاهدي اوګواهې ورکړه.۴۵**

**حضرت بهاءالله**

**بې نيازه په لوړ اواز فرمائي: دخوښې جهان راغلی ،غمجن مه اوسئ. پټ راز معلوم شوی ،خپګان مه کړئ.۴۶**

**حضرت بهاءالله**

نن دپروردګار کيش اوعقيده معلوم داره ده.جهان داررا‌غلئ اولاره ئې وښوده.
کيش اوعقيده ئې نيکوکاري اوائين ئې برده باري ده .داعقيده ژوند ته هميشه والى وربخښي. اودائين خلک بې نيازه جهان ته رسوي.۴۷
حضرت بهاءالله
اې دپروردګار دوستانو! دبې نيازه يکتا خداى اواز دزړه په غوږونو واورئ. ترڅو تاسې دتيارې ژوند څخه خلاص شئ. اوهميشني اوپاينده روښنائي ته ورسئ.۴۸

حضرت بهاءالله

# ۲



## دخدای پیغمبران څنګه پیژندلې شئ؟

## دپیغمبرانو بلنې اودعوت ته بې اعتنائي دهغوې دظهور په لمړیوکې

دخدای دپیغمبرانو بلنې ته بې اعتنائي دهغوې دظهور په لمړیو کې دجهان دخلکو همیشنی رسم اورواج ؤ.آیا زمونږ عصر مستثنا دی؟آیا زمونږ دزمانې خلک دمخکنیو سره توپیر لري ؟

**كُل مَا جَاء امةً رسُولُهَا كَذبُوهُ.**

**دمؤمنون سورت، ۴۴-ایت**

هرکله چې اُمت ته پیغمبر راغلی، هغه ئې دروغ ګڼلی.

**افَكُلمَا جَاءكُمْ رَسُولٌ بِمَا لاَ تَهْوَى انفُسُكُمُ اسْتَكْبَرْتُمْ فَفَرِيقاً كَذبْتُمْ وَفَرِ يقاً تَقْتُلُونَ.**

**دبقرى سورت، ۸۷-ايت**

آيا همداسې نه ده كله چې ستاسې دميل مخالف پيغمبر راغلى. دهغه په مقابل كې مو ځان غټ ګڼلى. څه ته مو دروغجن ويلي، اوڅه موپه قتل رسولي دي؟

**هيڅكله دخلكوپه ګومان هيڅ يوظهور په حقَّ نه دى ظاهرشوى....١ حضرت بهاءالله**

دايقان دكتاب په شروع كې ،حضرت بهاءالله مونږ ته دتاريخ مهم اوضروري درس رازده كوي.په هغه كتاب كې دمخكنيو پيغمبرانو دظهور دشرح نه پس او دخلكو بد رفتاراوچلند دهغوې دهريوه سره ،مونږ دداسې پوښتنو په باره كې فكر او سوچ ته رابولي:ولې خلكو هيڅكله خپل موعود دظهور په لمړيو كې نه دى پيژندلى؟

ولې په ټولو زمانو کې دخدای پیغمبران دخلکو له خوا رد ،اذیت اوازار شوي دي؟هغو منکرانو څه مشکل لرل؟کوم عوامل دهغو دغفلت اونقص موجب شول ؟هغو خلکو چې دخپل موعود دظهور ارزو ئې دزړه له کومي لرله. ولی وروسته له دیداره ئې ددې په ځای چې ایمان ورباندې راوړي. دهغوې په اذیت اوازارولو ئې شروع وکړه؟

هغه مؤمینانو چې په عالم دخیال اوفکر کې دخپل اسماني محبوب پرستش کول. اودهغه سره ئې مینه کوله. ولې وروسته له ظهوره ئې دخوښې اوشکرپه ځای، هغه ته سپکاوی اوپیغور ورکول ،اوهغه به ئې په دروغو اولیونتوب متهم کول؟

ددې ډول حیرانوونکي رفتار سبب څه شی و، چې دخدای دپیغمبرانو سره ئې کول؟

ددې ډول په عبرت انګیزه پوښتنو سره چې دتاریخ مهم درسونه په هغو کې پټ اوښکاره دي . حضرت بهاءالله کوښښ کوي. چې مونږ دغفلت اوبې خبرې نه دپوهاوي خواته بوزي. شاید دخلکو داډول رفتار دخدای دپیغمبرانو سره ،یعنی «ردول او دهغوې نه انکار وروسته له هغې چې په مینې سره ورته انتظار ایستل »،اود«هغوې سره ددښمنې ډک چلند، وروسته

له هغې چې دهغوې سره ئې ددوستې اظهار کړی و.
»
دعبرت درس واخلو اوپه دې حقیقت به شاهدي
ورکړو. چې شاید مونږ هم بې له پوهاوي اواګاهې نه
دهمغې ډلی خلکوڅخه اوسو.


پیژندلی شی؟

---

---

**لَقَدْ كَانَ فِ□ قَصَصِهِمْ عِبْرَةٌ لِّاوْلِ□ الالْبَابِ.**
**دیوسف سورت، ۱۱۱-ایت**
دهغوې برخلیک دعقل والاولپاره دعبرت اوپند درس
دی.
**ووایه!اې دسترګو والا:تیردراتلونکی لپاره ائینه ده.**
**وګورئ اوپوه شئ...۲**

**حضرت بهاءالله**

آیا دپیغمبرانو پیژندنه سخت اومشکل کار دی؟آیا ددې جاویدان ارمغان ترلاسه کولو لپاره تخصّص اوتحصیل پکار دی؟آیادربنتینې لارې پیژندنه یوازې دپیشوایانو کاردی؟

دارنګه تصور اوفکر دپروردګاردعدالت اوحکمت سره سمون نه لري:

**دخدای په کلام پوهاوی ...دظاهري علم پورې هیڅ اړه نه لري .دادزړه په پاکوالی، دوګړوپه پاکوونې او دروح په فارغیدو پورې اړه لري.۳**

**حضرت بهاءالله**

## دپیغمبرانو دلارې

## پیژندنه

اسمانې لیکنې دپیغمبرانو دلارې پیژندنه مونږ ته راوښودلې ده. بې له هغې لارې دپیروی نه دایمان دسوغات ترلاسه کول ممکن نه دي. په دې رهنماکې حضرت بهاءالله په لنډو جزوو هغه لارمونږ ته رازده کوي.

**هربنده دبنده ګانو څخه په دې وخت اوزمان کې باید له درې شیانو نه تیر شي، ترڅو درې شیان لاس ته راوړي.نفساني ارزوګانې اوغوښتنې،وهم او ګومان ،آزاوطمع لمړني درې شیان. اقبال اوبخت، اقرار،**

**ایقان اوباور اخري درې شیان دي. هغه څه چې ذکر شو دحضرت بې نیاز رازونه دي. چې په اسماني لیکونو کې ذکر شوي دي.۴**

**حضرت بهاءالله**

په پورتنې وینا کې حضرت بهاءالله لمړی دلارې دخنډونوپه لرې کولو خبرې کوي.ځکه چې مقصد ته درسیدلو لپاره لمړی ګام باید دخنډونو لرې کول وي.دتړلي دروازې نه ویل ممکن نه دي ،اوپه تړلو سترګو دجهان ځلوونکي لمر لیدنه ممکنه نه ده. ښکاره ده چې ددین د پیژندنې اوایمان لاسته راوړنې لپاره دخلکو په لاره کې ډیر خنډونه و،اووي به.

حضرت بهاءالله په پورتنیو خبرو کې درې غټو خنډونو ته دالهي ائین په پیژندنه کې اشاره کوي:

## آز(طمع)

دنیائې کارونو ته بې حده توجه ،مونږ خدای ته دتوجه نه وباسي ، ډیر خلک خپل دژوند مهم ساعتونه دخپل جسم دخوښې راحت اورفاه په لاره کې تیروي. چې حتی دخپل جاویداني برخلیک اومعنوي کارونو لپاره وخت نه لري .آز،هغوې دبې نیازه خدای درگاه ته دنږدې کیدو څخه لرې ساتي.

## وهم(گومان)

دوهم خنډ «وهم»دی.«وهم»هغه فکر ،اندیشه اوناسم اعتقاد دی. چې انسان هغه بې له تحقیق نه سم گڼي. په کوم دلیل عیسویانو مسلمانان گمراهان گڼلي اوگڼی ئې؟ د«وهم اوگومان»له لارې اوکه د«دلیل اوحقیقت»له مخې؟آیا ممکنه ده مسلمانان هم په همدې شان لکه عیسویان دنوي الهي ائین سره په «گومان»کې ولویږي. آیا دابه سم قضاوت وي؟ دالهي ادیانو ترمنځ

جدائي په همدې سبب ده. اوکه داسمه وي ،نوټول خلک به ديوائين اويادیو دين پيروان وي.د دې حقيقت په پوهاوي سره دهرمؤمن زړه دغفلت څخه راوزي. اودې واقعيت ته ئې رسوي. چې هيڅکله دخدای پيغمبران د خلکو دانتظار سره سم نه دي راغلي. آيا زمونږ عصر ددې سنتو څخه مستثنی دی؟

## دنفس غوښتنه

په هرانسان کې همزمان دوه قوې په رقابت کې دي: زودګذره راحت ،عزت اونعمت. پایداره راحت ،عزت اونعمت. ددنيا سره مينه او دخدای سره مينه ،ددې جهان پورې زړه تړل او که دابدي جنت پورې دزړه اميدونو تړل.

ښکاره ده چې د«نفس»لمړنې خواهش ددې دنیا راحت اونعمت دی. داوس راحت او عزت دهغه عاقُبت راحت او عزت سره تبادله کول، دهر نوي هوسناک کارنه دی ، اونفساني غوښتنې دجنت دهمیشنیوخوښیو سره بدلول اسانه کارنه دی.

دحضرت بهاءالله دوینا په اساس ،هرڅوک چې دخپلې لارې نه درې پورتني خنډونه لرې کړي.دادرې لوی بخششونه به لاس ته راوړي:

- اقبال:دپروردګار ائین به وپیژنې اودزړه له کومې به ئې
- اقرار:په پوره شهامت اوزړه ورتیا هغه څه چې په زړه کې اقرار وکړي.
- ایقان:پخپل ایمان اوباور کې به دخدای دائین په باره کې ورسي.

هرڅوک چې له درې وادیګانو(آز،وهم اودنفس خواهش)نه تیر شو. خپل مقصد ته به ورسیږي. اوپه غیر له دې نه به هغه دهمیشنې ژوند اوخوښیو نه بې برخې پاتې شي. آیا ددې «درې وادیګانو»نه تیریدل اسانه کار دی؟ آیا زمونږ له توانائي نه پورته کار دی؟ نه په هیڅ وجه نه دی!

دې لوی ارمان اوغښت مقصد ته درسیدو لپاره یواځې زمونږ غوښتنې اوارادې ته ضرورت دی.
مهربانه خدای همیشه خپل بنده ګان تحقیق ته هڅولي دي. ددې کارسرته رسول ئې عاقلانه اوسم کارګڼلې ، اونه اجراء کول ئې بې عقلي اوناسم کارګڼلې دی.
**فَبَشِّرْ عِبَادِ الذِ ينَ يسْتَمِعُونَ الْقَوْلَ فَيتبِعُونَ احْسَنَهُ اوْلَئَكَ الذِ يْنَ هَدَاهُمُ اللّٰهُ وَاوْلَئَكَ هُمْ اوْلُوا الْالْبَابِ.**
**قران مجید دزمر سورت،۱۸ـ ۱۷،ایتونه**
پس ښه خبر هغه خلکو ته ورکړه. چې وینا اوخبرې اوري. اوترټولو غوره خبرو پیروي کوي. پروردګار دداسې خلکو رهنما دی. هغه دعقل والادي.

دالهي ددې پيغام او زيرى د تحقق څخه پوهاوى
اودهغه پيغمبر پيژندنه چې ددې «ښه خبر»راوړونکى
دى .تاسې ته اودټول جهان عامو خلکو لپاره له بل هر
امرڅخه ډير ضروري اومهم کار دى.دپروردګار
دازادې اوفرمان په اساس بايد په هغه اندازه پلټنه
اوتحقيق وکړئ.ترڅودالهي ددې بخشش اوهديه څخه
پوره پوهه ترلاسه کړى.دپروردګار داخطار په اساس
ددې «لوى خبر»بې له تحقيق اوجستجو څخه به ناوړه
پيښې اونتيجې رامنځ ته شي:

**فَوَ يلٌ يوْمَذٍ لِلْمُکَذِّبِ ينَ الذِ ينَ هُمْ فِ خَوْضٍ يلْعَبُونَ.**

**دطورسورت،۱۲-۱۱ايتونه**

افسوس اوواى په هغه کسانو چې په هغه وخت کې
حقيقت دروغ وګڼل. اوپه خپلوخيالونو اوګومانونو
باندې سرګرم اومشغول و!

هرکله چې نور دخپلې ناپوهې اوتعصب له مخې بې له
کوم دليل اوثبوت څخه مونږ ته دګناه اوخطا نسبت
کوي. دخپل ځان څخه ددفاع لپاره پورته کيږو. او
اتهام کوونکي بې انصافه اوبې وجدانه ګڼو .اما کله
چې دپروردګار دنوو غوره شوو دظهور خبر اورو.
داطريقه پريږدو. بې له تحقيق اوجستجو دمتعصبينو

ناڅاپي قضاوت منو.دتحقیق پرځای تقلید ته ځو.
پروردګار هروخت مونږ ته له دې کاره خبرداری راکړی:
**وَلاَ تَقْفُ مَا ل یسَ لَكَ بِهِ عِلْمٌ ان السمْعَ وَالْبَصَرَ وَالْ فُؤَادَ كُل اولئَكَ كَانَ عَنْهُ مَسْؤُولاً.**

**دبنی اسرائیل سورت، ۳۶-ایت**

دهغه څه نه چې دهغه په باره کې معلومات نه لرئ. پیروي مه کړئ . ځکه چې سترګې، غوږونه اوزړه داټول خدای ته مسئول دي.
هرنوی ائین ،دپروردګار دعلم اوحکمت یوه سرشاره خزانه وي.ددې ټول حکمت اوعلم څخه پوهاوی پوره وخت او تحقیق ته اړتیا لري.پروردګار دسمې لارې دپیژندنې وعده یواځې هغو کسانو ته ورکړې ده. چې دزړه له کومي کوښښ کوي. اومقصد ته درسیدلو لپاره زیار اوکوښښ کوي:
**وَالذِ ینَ جَاهَدُوا فِینَا لَنَهْ دینهُمْ سُبُلَنَا.**

**دعنکبوت سورت، ۶۹-ایت**

څوک چې زما دپیداکولو کوښښ وکړي. حتمي به زما په لارو ورته هدایت وشي.

**مطلوب بې له طالبه او ښایست بې له غوښتونکي ځخه په ځلیدا نه راځي. اوله جمال ځخه پرده نشي لرې کیدلی.۵**
**طاهره،قرّة العین**
که دخدای د رضا اوبخشش غوښتونکي یاستی. که دپروردګار دبې شماره بخششونو غوښتونکي یاستې. ددې اسماني زیري اووعدې ځخه ځانونه خبرکړئ. اوداترټولو مهم اواساسي هدف اوارمان د خپل ژوند وګڼې.ځکه ددې جهان نه بل جهان ته سفر په وخت کې ستاسې لپاره یواځنې توښه دپروردګار عنایت اورضا ده. دا رضایت اوعنایت اودالوی افتخار یواځې دخدای لخوا ددې عصر اوزمان په غوره شوو باندې په اقراراوباور پورې تړلی دی.
**که یوڅوک نن ټول خیریه عملونه... سرته ورسوي. دخدای رضا به ترلاسه نه کړي. البته کومې ثمرې ته**

**به ونه رسيږي. کوښښ وکړئ. دخدای رضا ترلاسه کړئ.۶**

**حضرت بهاءالله**

**ووائې!اې بنده ګانو !خپل مقام دلاسه مه ورکوئ.ددې وخت اوخپل ځان قدر وپيژنئ.۷**

**حضرت بهاءالله**

په يقين سره پوه شئ. چې ستاسې صميما نه کوښښ اوزحمت به بې اجره نه وي.ځکه چې دالهي فرمان داجراء نه وروسته په پلټنې او کوشش، دپروردګار دوعدې دتحقق نه پوهاوی پيداکول چې په ټول قران کې رازونه او اثار ښکاره دي ، دهغې لوی معّما تصوير ستاسې دروح په ائينه کې په پوره ښکلا اوښايست کې وځليږي.هغه وخت به دخپل کوښښ حاصل په ښکاره سره وګوری.دادهغه کسانو پاداش دی. چې دنيکونو نه دتقليد او متعصبو، ناپوهو پيشوايانو ځخه دپيروې پرځای ، پخپل عقل اودرايت متکي شي.هميشني برخليک به په غير دعقل او وجدان نه بل چاته ونه سپاري.هغه مؤمنان به ئې پخپلو سترګو وګوري. نه دړندو په سترګو.

په «قران کې دپروردګار دوعدې»څخه پوهاوی، اومعلومات ترلاسه کول، یوه مهمه اوله ارزښته دکه وظیفه ده. چې پروردګار ستاسې اودنړۍ ټولو خلکو په عهده ئې ایښې ده. بایدپه دې کارکې له هیڅ کوښښ څخه دریغ ونه کړئ.ځکه چې دخدای له خوا غوره شوي څخه انکار په خدای تهمت کول دي:



---

**وَمَنْ اظْلَمُ مِمن افْتَرَی عَلَ اللهِ کَذِبًا.**

**هود سورت،۱۸-ایت**

په پروردګاردتهمت څخه بله غټه ګناه کومه کیدلی شي؟

آیاممکنه ده. چې یوڅوک په پاک نیت سره دخدای څخه د هدایت هدیه وغواړي. او ځواب ترلاسه نه کړي؟ وګورئ چې زمونږ خالق په څومره محبت او لطافت مونږ سره خبرې کوي:

**وَاذَا سَالَكَ عِبَادِي عَنِّي فَانِّ قَرِيبٌ اجِيبُ دَعْوَةَ الداعِ اذَا دَعَانِ فَلْ يسْتَجَيبُواْ لِ وَلْيؤْمِنُواْ بِ لَعَلهُمْ يرْشُدُونَ.**

**دبقره سورت،۱۶۸- ایت**

کله چې زما بنده ګان زما په باره کې پوښتنه وکړي. ورته ووايه: زه هغوې ته نږدي یم اودهغوې دعا ته ځواب وایم. پس هغوې هم زما دعوت ته ځواب ووائي. اوپه ایمان کې ماته راسخ وي. ترڅو سمه لاره پیداکړي.

**پروردګار دهغه له خبرو اوکلام څخه**

**پیژندلئ شئ**

**پروردګار...دخبرو له لارې هغه ته خپل ځان وښود.دسموئیل اول کتاب،فصل،۲۱-ایت**

**ووایه!اې قومه ...دخلکو د«حق» سره څه مشابهت دی؟۸ حضرت بهاءالله**

دقران دډیرو ایتونو په اساس دپروردګار خبرې دهغه دپیژندنې لپاره ترټولو لوړ او ډاډمن میزان دی:

**كَلِمَةُ اللهِ هِيَ الْعُلْيَا .**

**توبه سورت، ۴۰-ایت**

دپروردګار دخبرومقام ډیر لوړ دی.

**وَيُحِق اللهُ الْحَق بِكَلِمَاتِهِ....**

**یونس سورت،۸۲-ایت**

پروردګار،دخپل ائین حقیقت په خپلو خبرو سره په اثبات رسوي...

**انْظُرُوا فِيْ كَلِماتِ اللهِ لانكُمْ خُلِقْتُمْ لاصْغائَها وَانها تَسْتَضِيْءُ بَيْنَ كَلِماتِ الناسِ كَاشْراقِ الشمْسِ بَيْنَ انْجُمٍ مَبْزُوْغًا ۔۹**

**حضرت بهاءالله**

دپروردګار خبروته نظرواچوئ. څکه چې تاسې دهغو اوریدلو لپاره پیداشوي یاستئ. دهغه خبرې د خلکو دخبرو په پرتله دستوروپه منځ کې دلمر په شان ځلیدونکې دي.



څنګه پیژندلئ شئ؟

---

---

**اِ نهُ لَقُرْآنٌ كَرِيمٌ فِي كِتَابٍ مكْنُونٍ لا يَمَسهُ الا الْمُطَهرُونَ**

**دواقعه سورت، ۷۹- ۷۷ ایتونه.**

قران کریم دجهانیانو دپروردګار دلوري یوه پټه لیکنه ده. چې په غیر دپاک زړو خلکو څخه بل څوک په هغه پوه نشي.اونه به هغه ته لاس رسی پیداکړي.
باید پوه اوسو. چې دپروردګار دخبرو غټه برخه دراتلونکو پیښو،په خاصّه توګه دپیغمبرانو دظهور دوعدې په اړه دي .په دې کتاب کې ،تاسې ددې فرصت لرئ. چې په سلهاو اسماني لیکنو نمونې له نظره تیرې کړئ.هریوه له هغه نمونو ،مونږ ته دخپل خالق یوه خاصه ژبه راښائي. چې دهغې مثال دهیڅ یولیکونکي په اثارو کې نشو پیداکولی.
په هغه ټولو ایتونو اونمونوکې فکر اوتأمّل دهر لټونکي په منصف روح کې چې دزړه له کومې دپروردګار پیژندنې اودایمان غوښتونکی دی. یو بې مثله تصویر واخلئ.
هغه تصویر داسې یوممتاز بې جوړې اوبې مثاله تصویر دی.چې دهیڅ یو لپاره دشک اوشبهې ځای نه پاتې کیږي.مګر هغه کسان چې په دې لاره کې کوښښ ونه کړي. اوپه خپله غوښتنه خپل ځانونه داسماني لوی بخشش څخه بې برخې کړي.
که څه هم داایتونو په ښکاره اوظاهر کې دپیغمبر په نوم ثبت اونقل شوي دي. باید په دې پوه شو چې پیغمبرانو دخپل ځان څخه کومې خبرې نه لرلې. اونه

ئې لري.هغه څه چې وايي دهغه خالق اوليږونکي قول دی. يوائې دهغوې وظيفه داده. چې دپروردګار وحې مونږ ته ابلاغ کړي:

**انمَا انَا بَشَرٌ مِّثْلُكُمْ يُوحَ□ الَيَّ .**

**دکهف سورت ، ۱۱۰- ايت**

زه يوائې ستاسې په شان يو انسان يم چې ماته وحې کيږي.

**هغه خبرې چې زه ئې کوم ،زمانه دي. بلکه دادهغه پلار دي. چې په ماکې مُتجلي دي.**

**حضرت**

**مسيح(انجيل يوحنا،۱۴فصل- ۱۰ايت**

پروردګار ،ستاسې دپلرونو خدای...زه راليږلی يم.

حضرت موسی(خروج ۱۵: ۳)

د«قل»کلمه یعنی «ووایه!»چې دډېرو قرآني ایتونو اودبهائي ائین دایتونو په شروع کې راغلې ده. ددې حقیقت شاهدي ورکوي. چې ویونکي دخدای په حکم خبرې کوي. نه په خپله غوښتنه:

**قل !یا قوم...تلک آیات الله نزلت علیّ بالحقّ... تالله ان هی من تلقاء نفسی بل من لدن عزیز محبوب .و انّی لعبدٌ آمنت بالله و آیاته و لا املک لنفسی حرکة و لا سکوناً...و کلّما اسکن فی البیت و اصمتُ عن الذّکر روح القدس یقومنی علی الامر و ینطقنی بین السّموات و الارض و هذا لم یکن من عندی بل من عنده ان انتم تعرفون . ۱۰ حضرت بهاءالله**

ووایه! اې خلکو...داالهي ایتونو دي. چې په حقیقت کې پرما نازل شوي دي...په خدای قسم دی. چې دازمانه دي .دادلوی دانا، ګران اومحبوب خدای ایتونه دي. زه هغه بنده یم. چې په خدای اودهغه په ایتونو مې ایمان راوړی دی. نه دخپل ځان څخه کوم حرکت لرم اونه هم کوم سکون. اوکله چې په کور کې ساکت کښینم ،روح القدس ماپه حرکت راولي. دځمکې

اواسمان په منځ کې مې ګویا کړي. دازما نه دي.
دادهغه دي که ئې وپیژنې.

**قُلْ انزَلَهُ الذِي يَعْلَمُ السِّرفِي السمَاوَاتِ وَالْارْضِ انهُ كَانَ غَفُورًارحِيمًا.دفرقان سورت، ۶-ایت**

وو ایه!داهغه چا نازل کړي دي. چې دځمکې اواسمانونو درازونو څخه خبر دی.
او هغه بخښوونکی اومهربان دی.

**وو ایه! اې بنده ګانو: لاربښود راغلی. عجله وکړئ. دیکتا لیدونکی راغلی. اولاره ئې سمه کړه. لایق او سزاوارهغه څوک دی. چې دا آواز ئې واورید.دروح په ژبه ووائي: اې پروردګاره! ستا اواز جهان تازه کړ. اونوی ژوند ئې ورکړ.مخ مې ستا په لور دی، اوزړه مې ستا دلیدو په ارزو. جهاندار راغلی ،لاره ئې په لارو کې اوچته اوخبرې په خبرو کې لوړې اواوچته دي.وائی ورئ. اوراشئ، ددې ورځې په څیر کامیابه ورځ نه وه اونه به وي. دادي دپروردګار خبرې.۱۱ حضرت بهاءالله**

ددې پوښتنې په باره کې ډیر فکر وکړئ: آیا دپروردګار دخبرو اوددروغجنو او مکارو انسانانوخبروترمنځ چې خپلو فکرونو ته دخدای نسبت ورکوي. کوم جزئي شباهت اوقرابت وینئ؟

**لکه څنګه چې اسمانونه له ځمکې لوړ دي. زما لار اوفکرونه ستاسې دلارو اوفکرونو لوړدي.**
**اشعیا ،۵۵فصل،۹-ایت**
**هیڅکله اوهیچا دمسیح په شان خبرې ونه کړې.**
**انجیل یوحنا-۷فصل،۴۷-ایت**
دپروردګار دخبرودپیژندنې لپاره ،ظاهري علم اوپوه ته کوم ضرروت نه وي. هرنفس ددې توانائي لري. چې دهغه پروردګار خبرې وپیژني. اوکه داسې نه وي،خدای به دخپلو پیغمبرانو لپاره خپلې خبرې دهغو دپیژندنې میزان نه ټاکلی:
**که دهغه (پروردګار دخبرو)دادراک قوه په خلکو کې نه وی، څنګه به دادلیل په ټولو واقع کیدلی؟۱۲**
**حضرت بهاءالله**

**اودع فی کلّ نفس ما یعرف به آثار الله و من دون ذلك لم یتّم حجّته علی عباده ان انتم فی امره من المتفکّرین انّه لا یظلم نفساً و لا یأمر العباد فوق طاقتهم و انّه لهوالرّحمن الرّحیم .١٣**

**حضرت بهاءالله**

هرنفس ته اوهرچاته ئې دخدای دکلام دپیژندنې اودهغو دپرتله کولو دمیزان استعداد ورکړ.اوکه نه وی. نو الله پاک به پخپلو بنده ګانو دحجت دلیل اوبرهان نه لرلی. که د فکر خاوندان یاستی. درک کولی شی. چې پروردګار په چا ظلم نه کوي. اوبنده ګانو ته دهغوې داستعداد اوطاقت نه پورته حکم نه کوي. هغه بخښونکی اومهربانه دی.

**ان الله جعل امره واضحاً ثابتاً بحیث یدرکه کل ا لنفوس .**

**١٤ حضرت بهاءالله**

په یقین سره پروردګار خپل «امر»په روښانه توګه ثابت کړ. ترڅو ټول خلک دهغه په درک کولو قادر وي.آیا دبهائي ائین جوړول دیوبې وجدانه انسان دفکر کار دی. اوکه دجهان دخالق دپوهې اوبخشش په اساس دی. آیا ددې ښکاره توپیر او تفاوت پیژندنه اوپیداکول مشکل دي؟

**ووايه!اې قومه ... «خلق»د«حق»سره په کوم مشابهت کې دي ؟١٥ حضرت بهاءالله**

**قَد تبَ ينَ الرشْدُ مِنَ الْغَ□.**

**دبقره سورت،٢٥٦-ايت**

دګمراهې اودسمې لارې توپير ښکاره دی.



---

ددې دوو لارو تفاوت اوتوپير به هغه وخت ښکاره شي . چې دپروردګار امر اوائين ته پخپلوسترګو وګورو. اووئې سنجوو،نه د نورو په سترګو. په تحقيق پيل وکړونه په تقليد:

**ان افتحوا ابصاركم لتشهدو ها بعيونكم و لا تعلقوا ابصاركم بذی بصر لان الله ماكلّف نفساً الاوسعها .**

**١٦**

**حضرت بهاءالله**

خپلې سترګې وغړوې. ترڅو دامر حقیقت پخپلو سترګو وګورئ.خپلې سترګې دنورو په سترګوپورې مه تړئ.پروردګارهیڅوک، دخپل توان اوقدرت نه زیات مکلف کړی نه دی.

**په هرکس واجب ده. چې دحق اوباطل توپیر اوتمیز وکړي.۱۷ حضرت بهاءالله**

## دژبې نقش دانسان په اړه دخپل پروردګارسره

کله چې دقران نه خبره کیږي،ډیر ایرانیان ددې په وجه چې په عربي نه پوهیږی. خپل ځانونه بهائي ائین په باره کې دتحقق اوقضاوت څخه عاجزګڼي.په دې سبب دقضاوت مسئولیت دنورو په غاړه په خاص ډول دپیشوایانو په غاړه اچوي .داډله خلک په یوناسم تصور خپل روح ،اوهمیشني برخلیک دداسې یوچالاس ته سپاري. چې عربي ئې زده کړې ده، په دې ګومان چې دالهي بخششونودپوهې کلي اوهمیشني جنت ته دلاس رسي راز دعربي ژبې په زده کړه کې دی!

آیا فارسي ژبې دقران دموعود دپیژندنې لپاره عربي ژبې ته کومه اړتیا لري؟ که دژبې مشکل ستاپه نظر لوی درځي. له خپل ځان نه پوښتنه وکړئ:«آیاپه اسلام باندې زما ایمان دعربي په زده کړه متکي

دی؟»که تاسې بې له دې چې په عربي پوه شي اوپه اسلام باندې مشرف شوي یاستې. نشئ کولئ. چې یوبل ائین په همدې محدودیت سره وپیژنئ؟ بیا له خپل ځان نه پوښتنه وکړئ:آیا دداسې یوپیغمبر لیږل چې دهغه په مقام پوهاوی اودخبرو صحت والی ئې دژبې دتسلط پورې اړه ولري. دپروردګار دعدالت او حکمت څخه لرې نه دی؟



«آیا هغه خلک چې په حضرت مسیح عقیده من دي،دهغه په مورنۍ ژبه پوهیږي؟»له خپله ځانه پوښتنه وکړئ: دغربي جهان مسیحیان چې په عربي نه پوهیږي. آیا په قران دایمان راوړلو نه عاجزدي؟»

**قل یا ملأ الارض انصفوا بالله بایّ حجّة آمنتم بمظاهر القبل و بایّ برهان انکرتم هذا الفضل الّذی به تنوّرت الآفاق .۱۸**

**حضرت بهاءالله**

وو ایه! اې دجهان خلکو: دپروردګار رااستولي ته دانصاف په نظروګورئ.په کوم دلیل  مو په مخکنیو پیغمبرانو ایمان راوړی دی؟په کوم دلیل دا فضل اوبخشش چې جهان ئې په رڼا سره روښانه شوی دی انکارکوې؟

دالهي ایتونو په اساس دزمان دموعود پیژندنې لپاره ضروري شرط پاک اوسپیڅلې روح دی،نه دعلماو اوفقهاو اثار ،عدالت اوکوښښ دی.دحقیقت دپیداکولو مینه ،نه دنورو په ژبه تسلط ،مهربان پروردګار هیڅکله دربنتینې لارې غوښتونکي دخپل اسماني عنایت ، رضایت اوبخششونو څخه نه محروموي.همیشه داسې و. او وي به .هغه څوک به ددې پوهې څخه بې برخې پاتې شي. چې روح اوروان ئې دخودخواهې،ګمانونو اودتعصب دپردو شاته پټ وي. که د«ګومان اوتصور»پردې دناسمو فکرونو په تاروپود اود بې اساسه مخکنیو انتظارونو په اساس جوړې شوې وي،زمونږ روح وپوښي،الهي زړه وړونکي روښنائي به مونږ ته لارپیدانکړي،اود آزادې

اوپوهاوي رڼا به مونږ خپل معبود او مقصد ته ونه رسوي.

## زمونږبرخليک

## زمونږ په لاس کې دی

**اللهَ لَمْ يَكُ مُغَيِّرًا نِّعْمَةً انْعَمَهَا عَلَ قَوْمٍ حَت يُغَيِّرُواْ مَا بِانفُسِهِمْ . دانفال سورت، ۵۳-ايت**

پروردګار خپل نعمت اورحمت ته په کوم قوم کې تغير نه ورکوي.مګر کله چې هغوې خپل روح او روان ته تغير ورکړي.

ددې برخې په ختميدوسره ،ښه ده چې يوځل بيا دخلقت نقشې ته نظر واړوو.او پوښتنه وکړو: دې جهان ته دڅه لپاره راغلی يو،اومخکې له سفره ددې فاني سرای نه هغه بل سرای ته کوم ارمغان لاس ته راوړو؟هميشنې ژغورنه دانسان په څه کې ده؟
**وَرِضْوَانٌ مِّنَ اللهِ اکْبَرُ ذَلِكَ هُوَ الْفَوْزُ الْعَظِيمُ .**
**توبه سورت، ۷۲-ايت**
ترټولو لوی ارمغان دپروردګار رضايت دی.لويه ژغورنه دخدای درضا په لاسته راوړلو کې ده.
**اعلموا بانّ شرافة العبد ف قربه ال الله و من دون ذلک لن ينفعه ابداً ولو يحکم عل الخلايق اجمعين . ۱۹**
**حضرت بهاءالله**
په يقين سره پوه شئ. چې دهربنده شرافت اوعزت دخدای سره دهغه په نږديوالی کې دی. اوپه غير له دې هيڅ شی به هغه ته ګټه ونه رسوي.حتی که دټول جهان حاکم هم شي.
«آيا دداسې لوی ژغورنې اودداسې هميشنې ارمغان لاس ته راوړل دزمان په غوره شوو داقرار څخه پرته ممکن دی؟»که دې مقصد ته ونه رسيږو .زمونږژوند به څه ښيګڼه اوثمر ولري؟ دپروردګار په «وعدې» پوهاوی، اود هغه په پيغمبرايمان راوړل دخلکولپاره

دپروردګار هدیه اوبخشش دی. او هم دهغوې لپاره ددواړو جهانونو دخوښیو سرچینه ده.
اما دتاریخ دشهادت په اساس هرکله چې کومه اسماني هدیه انساني عالم ته اهدا شوې ده. خلکو دشکر پرځای مخالفت کړی دی.
**وَقَلِيلٌ مِّنْ عِبَادِی الشكُورُ .**
**دسبا سورت،۱۳-ایت**
زما شکرکوونکي بنده ګان کم دي.
**وَان يرَوْاْ كُل آيةٍ لايؤْمِنُواْ بِهَا وَان يرَوْاْ سَبِيلَ الرشْدِ لاَ يتخِذُوهُ سَبِيلاً وَان يرَوْاْ سَبِيلَ الْغَ يتخِذُوهُ سَبِيلاً ذَلِكَ بِانهُمْ كَذبُواْ بِآياتِنَا .**
**داعراف سورت،۱۴۶-ایت**
که هره نښانه یا کوم (دلیل)وګوري. ایمان به رانه وړي.که سمه لاره وګوري. مخ به واړوي. اودګمراهې لاربه ونیسي. ځکه چې زمونږ نښانې اوایتونه به دروغ وګڼي.
**وَان كَثِيرًا مِّنَ الناسِ عَنْ آياتِنَا لَغَافِلُونَ.**
**دیونس سورت،۹۲-ایت** ډیرخلک زما له ایتونو نه غافل دي.(دپروردګار ایتونه ته توجه نه کوي.)
**عالم په غفلت اوبې پروائي کې غرق دی. ۲۰**
**حضرت بهاءالله**

ښه به وي چې په یاد راوړو. چې پروردګار زمونږ ایمان ته کومه اړتیا نه لري. اوهیڅکله زمونږ اقرار اوانکار څخه کومه ګټه اویاضرر نه ورته رسي. که مونږ له تحقیق مخ واړو. دخپل ځان سره ظلم اوستم کوو . ګټه اوتاوان ئې دواړه مونږ ته دي .
داټکی په اسماني کتابونو کې په کراتو تائید شوی ، اوتکرار شوی دی:
**قُلْ يا أيها النّاسُ قَدْ جَاءكُمُ الْحَق مِن ربِّكُمْ فَمَن اهْتَدِى فَانَما يهْتَدِ لِنَفْسِهِ وَمَن ضَل فَانَمَا يضِل عَليهَا.**
**دیونس**
**سورت،۱۰۸-ایت**
ووایه! اې خلکو : حق اوربنتینولي، ستاسې دپروردګار لخوا تاسې ته راغلې ده.
هرچاچې رښتینې لار وټاکله، دهغه په ګټه ده.
اوهرڅوک چې ګمراه شو. دهغه په تاوان ده...

**تالله ان احسنتم احسنتم لانفسكم و ان تكفروا بالله و بآياته لكنّا بالله عن الخلق والملك عل□ الحق غنياً .**
**۲۱**

**حضرت باب**

په خدای قسم دی!که نیکي وکړئ. دخپل ځان سره نیکي کوی. که دپروردګارد ایتونو څخه منکر شئ. مونږ دخپل پروردګار په لرلوسره، دې جهان اوخلکو ته کوم نیاز اواړتیا نه لرو.

**وَقُلِ الْحَق مِن ربِّكُمْ فَمَن شَاء فَلْيؤْمِن وَمَن شَاء فَلْيكْفُرْ .**
**دکهف سورت، ۲۹-ایت**

ووايه!ستاسې له پروردګاره داحقيقت دی. هرڅوک چې غواړي. ایمان راوړي. اویا هرڅوک چې نه غواړي. اومنکر شي.

**تالله انه ما اراد لكم الاّ ما يقربكم اليه و يدخلكم ف□ ملكوت البقا و انه لهوالغفور الر حيم .۲۲**

**حضرت بهاءالله**

په خدای قسم دی! دهغه يواځنې غوښتنه ستاسې نږديوالی خدای ته دی. اوستاسې داخليدل تل پاتې (الهي سلطنت)ته دي.پروردګار بخښوونکی اومهربانه دی.

**قَدْ جَاءكُم بَصَآئَرُ مِن ربِّكُمْ فَمَنْ ابْصَرَ فَلِنَفْسِهِ وَمَنْ عَمِ□ فَعَليهَا .دانعام سورت،۱۰۴-ایت**

دپروردګار دلیل اوبرهان ظاهر اوښکاره شو.هرڅوک چې بینا دی. ګټه ئې یوورړه. اوهرڅوک چې نابینا دی. خپل ځان ئې پخپله محروم کړ.

**دحقایقو اواستعدادونو دځمکې هره ټوټه که په دې ډیره ستره لویه ورځ کې شنه اوتازه نشي. په دې کې هیڅ شک نشته چې همیشه به دالهي فیض نه محرومه پاتې شي. اوپه غیر داغزیو اوپښیمانې او نااميدې به بله ګیاه شنه نه کړي. ۲۳ حضرت بهاءالله**



---

**ـــــــــــــــــــــــــــــــــــــــــاې دانصاف والا خلکو! که ددې امر نه انکارو شي. کوم امربه په ځمکه کې دثبوت قابل او داقراروړ اولایق وي؟۲۴ حضرت بهاءالله**

**نن دپوهې او د خبرتیا ورځ ده ...خپل ځان مه محروموئ.۲۵ووایه!اې دوستانو: دنن ورځې مثل**

**اونظير نه و اونه به وي.۲۶**
**حضرت بهاءالله**

# دوهمه برخه

## خاتَم النّبيّن

## دمسلمانانوپه لاره كې

## ترټولو غټ خنډ

## دابرخه درې فصله

**لري:**

۱.د«خاتم»دکلمې معنی

۲.اوله برخه :دقران مجیدایتونه درسول اکرم ثخه **مخکې،**

پیغمبرانو دظهور په باره کې

۳.دوهمه برخه:دقران مجید ایتونه درسول اکرم ثخه **وروسته،**

پیغمبرانو دظهورپه باره

کې.

**داطمنان وختونه پای ته رسیدلي دي. اودپروردګار وعدې چې په مقدسو کتابونو کې ذکر راغلی دی. ټولې ظاهرې شوي دي.۱**

**حضرت بهاءالله**

**هیڅکله هم دخلکو دګومان سره سم هیڅ یوظهور ظاهرشوی نه دی.۲ حضرت بهاءالله**

**ديوخيالي خنډ څخه**

**دتېرېدو لار**

دابرخه چې كولئ شئ. ځانته ئې يوكتاب وشميرئ،دبهائي ائين دحقانيت د اثبات سره اړه نه لري. اويواځې ددې لوی سؤی تفاهم اوناسم تفسير درفع اولرې كولو لپاره په دې كتاب كې اضافه شوې ده.

ددې كتاب هدف زمونږ دعصر ددوه موعودو دظهور په باره كې دقران مجيد ايتونوتشريح اوتوضيح ده. د«خاتَم النّبّين»موضوع ددې دوو موعودو دظهور سره كومه اړيكه نه لري.

دا اعتقاد يوابدي خنډ دی. چې مسلمانو پيشوايانو اوعلماو له دوو كلمو «خاتم اونبي»نه دمؤمنانو په زړونو كې پيداكړی دی،اودراتلونكوټولو پيغمبرانودلارې په سرايښی دی.

داخنډ ډيرلوی اومحكم دی. دخلكو په زړونو كې ريښې ځغلولې دي. چې دډيرو باايمانه مسلمانا نو لپاره له هغه څخه تيريدنه اوعبور سخت اوحتی ناممكن دی. ددې مؤمنانو لپاره ددې دوه

کلمو «خاتم» او «نبي» حقيقي معنی پيداکول ډير اهميت لري:

**خاتم النّبيّن..چې ددې کشف اوپيداکول دعظيمو اوغټو کاروڅخه دی. ٣**

**حضرت بهاءالله**

دابرخه چې درې فصله لري. يواځې دهغه مسلمانانو لپاره ليکل شوې ده. چې ديو «خيالي خند» لپاره دبهائي ائين په باره کې دتحقيق څخه ځان ساتي .داموٴمنان اطمنان لري. چې وروسته له رسول اکرم نه هيڅکله دبشر درهنمائي لپاره به بل پيغمبررانشي. که تاسې په دې عقيده نه ياستې، اوباور پرې نه لری. له دې درې فصله تير شئ او٦ شپږم فصل څخه خپله مطالعه چې دبهائي ائين دظهور په باره کې دقران وړاندوينې دي. ددې کتاب اصلي موضوع ده شروع کړئ.

# ۳



# د«خاتَم»دکلمې معنی دالهي ادیانو ترمنځ جدائي

**وَان رَبكَ لَذُو فَضْلٍ عَلَ النـاسِ وَلَكِن اكْثَرَهُمْ لَا يَشْكُرُونَ . دنمل سورت،۷۳-ايت**

ستا دپروردگار فضل په ټول مخلوق اوخلکو دی .ولې دهغوې اکثره دهغه فضل په قدر پوه نشي اودخدای شکر ادأ نه کړي.

دقران مجيد هغه مطلب چې دډيرو خلکو دتائيد سبب شوی دی. دادې چې ، دمخکنيوادیانو اوپيغمبرانو برخليک ته و ګورئ. اوعبرت ترې واخلئ:

**وَكُلانقُص عَلَيْكَ مِنْ انبَاء الرسُلِ... مَوْعِظَةٌ وَذِكْرَى لِلْمُؤْمِنِينَ . دهودسورت،۱۲۰-ايت**

هغه څه چې دپيغمبرانو په سرتيرشوي دي. تاته ئې نقل کوم. ددې لپاره چې مؤمنانو ته پند اوعبرت وي.

**لَقَدْ كَانَ فِي قَصَصِهِمْ عِبْرَةٌ لِّاُوْلِي الالْبَابِ.**

**ديوسف سورت، ۱۱۱-ایت**

دهغوې قصې دعقل والاو لپاره عبرت دی.

په بهائي اسماني اثارو کې هم دغه مطلب تائید اوتاکید شوی دی:

**«ووایه!اې دسترګو والا:تیرد اینده لپاره ائینه ده. وګورئ اوپوه شئ.۴ حضرت بهاءالله**

فرض ئې کړئ. چې تاسې خپل مخکیني یادونه اوخاطرات له یاده وړي دي.

ژوند به له تاسې لپاره څومره مشکل وي.دهرملت ژوند هم باید په هغو درسونو متکي وي. چې دمخکنیو پیړیو په اوږدو کې زده کړي دي.دمؤرخینو دشهادت له مخې،هرملت چې دتیرو اشتباهاتو نه عبرت وانخلي. دهغو په تکرار به محکوم وي.شاید مهم ترین درس دتاریخ چې مونږ ته ئې رازده کوي. داوي: چې خلک دتاریخ څخه درس نه زده کوي. اودمخکنیو نسلونو له برخلیک څخه عبرت نه اخلي. دتاریخ ددرسونوله جملې نوردرسونه دادي. چې دپروردګار دادیانوڅخه همیشه ناسمه ګټه پورته شوې ده. په

خاصه توګه ددين پيشوايان داکار کوي. مذهبي جنګونه ددې ادعا ښه ثبوت دی.
ښه به وي چې وګورو. چې د اديانو پيشوايان په څه ډول ،دپروردګار پاک اوسپيڅلي دينونه چې دخلکو ترمنځ ددوستې اواتحاد لپاره راغلي دي، ددښمنې اوجدائي وسيله جوړوي .تاريخ شاهد دی.چې ددښمنيو اوجداوالي منشاء اومنبع د هميشه لپاره دالهي پيغمبرانو دخبرو غلط تفسير اوتعبير وه .غلط اوناسم تفسيرونه مختلف اوبيلابيل دي.زمونږ دتوجه وړتکی، په دې فصل کې غلط اوناسم تفسير دی. چې خلک ئې دپروردګار دنوو دينونو دمنلو منع کړي دي. دتاريخ دشهادت په اساس ،دپروردګار دهرائين دپيدايښت اوظهور لږ څه وروسته ډيرو پيشوايانو دخپل مقام اومنصب دتحکيم اوټينګښت لپاره کوښښ کړی دی.چې يوايت،

---

اوحتی یوه کلمه ئې په خپل کتاب کې پیداکړې ده.چې
یوخاص امتیاز دهغوې دین ته وبخښي. ترڅو ددوې
دعقیدې اوافکارو برتري په یو شکل سره په نورو
ادیانو وښائي.
دا د برترې احساس همیشه دتعصب منشأ رامنځ ته
کړېده، اوداتعصب دجنګ اودښمنې سبب شوی دی.
وروسته دخپل نظر ایت اویاکلمې پیداکولو دهرائین
پیشوایانو هغه ایت اویاکلمې ته خاص اهمیت ورکړی
دی.دخپلو عقایدو اساس ئې ترې جوړ کړی
دی.اودپیړیو اوزمانو په اوږدوکې ،دخپلو خیالونو په
تارونو دهغه ایت اویاکلمې په مرسته پراخه اومجلل
قصر جوړ کړی دی. اوخپلو پیروانو ته ئې ورزده
کړي دي. چې هیڅکله د هغه قصر دامن پناه ګاه څخه
دباندې قدم وانخلي .ځکه چې ګمراه کوونکي دهرې
لارې په سرددوې په انتظار کې ولاړ دي.اوپیروان هم
دهغه باور له مخې چې په پیشوایانو ئې لري،دهغوې
حکم دخدای حکم ګڼلی دی. اودنیکونو په قصر کې

ارامش اوسکون ته په
هغه«خطر»او«دربدرۍ»دنامحرمو په هیوادو کې
ترجیح ورکړې ده.دحضرت موسی د  دین
علمااوپیشوایان په نظر کې راوړئ . هغو پیشوایانو
خپلو پیروانو ته ورزده کول .چې تاسې دپروردګار
غوره امت یاستئ. .باید ددې لوی بخشش قدر وپیژني.
اودهغه په ساتنه کې کوښښ وکړئ .دبل دین منل به
دالوی اوقیمتي بخشش اوهدیه ستاسې دلاسه وتښتوي.
له دې کبله که دنیکمرغې اوسعادت غوښتونکي یاستئ
،یوازې دکلیم په دین پورې زړه وتړئ. اودنورو
دینونو دپیروانو سره مه یو ځای کیږئ.دې پیشوایانو
خپل پیروان دحضرت مسیح د منلو منع کول. چې
دټول بشریت موعودؤ. دخپل اسماني کتاب له ایتونو
ئې «لوی خندړ»جوړ کړ.اوخپلو پیروانو ته ئې وښودل
چې زمونږ پیغمبر به دجهان په ټولو پادشاهانو قدرت
اوغلبه پیداکړي .اودخپلې ادعادثبوت لپاره ددارنګه
ایتونو مثالونه راوړل:

**اې دبيت اللحم ښاره ، له تا به داسې يو موعود منځ ته راشي. چې داسرائيلو حاکم اوفرمانروا شي.**
**ميکا،۵فصل،۲-ايت**
**ستاسې له منځه به يوشهزاده دپادشاهې پرتخت کښينوم.مزاميرداود،۱۳۲فصل،۱۱-ايت**
اوس چې دحضرت مسيح دظهور نه «۲۰۰۰»دوه زره کلونه تيريږي. تراوسه هم دکليم دقوم علما اوپيشوايانو خپل پيروان دخپل موعود دراتګ په انتظار کې ساتلي دي.هغوخپل قوم دنوروادیانو دمنلو نه دهغې جملې څخه دعيسويت اواسلام څخه منع کړي دي. اوتراوسه پورې هغوې په دې اديانو ايمان نه دې راوړی .
دمسيحيت پيشوايانو هم دتاريخ درسونه ناديده وګڼل. دمخکنيو برخليک څخه ئې عبرت وانه خيست.
اوداسلام ددين دمنلو نه ئې انکار وکړ .هغه ايت چې د

حقيقت منكرانو پخپل اسماني كتاب كې پيداكړى دى. اوپه هغه ئې ځانته لوړ اوښكلى قصر جوړ كړى دى. اوعيسويان ئې داسلام اودبل هردين دمنلوڅخه منع كړي دي. دحضرت عيسى (ع)دامشهوره خبره اوايت دى:

**زه يم دربنتينولى لاره اوهميشني «ژوند» هيڅوك به په غير له مانه ،اسماني پلار ته لاره پيدانه كړي.**

دمخكيني ايت ناسم تعبير اوغلطي ګڼې ،مسيحيانو ته ورزده كړل، چې دنيكونو دقصر دباندې پښې ايښودل ،حتى دلږ وخت لپاره يو خطرناک اوله ويرې ډک كار دى.

اوس چې داسلام ددين له پيدايښت څخه (۱۴)څوارلس پيړئ تيريږي.تراوسه هم دجهان ټول مسيحيان دمخكيني ايت پراساس خپل ځانونه دنورو اديانو دمنلو خلاص او مبراګڼي اوداسماني كتاب قران دپيام له تحقق ئې مخ اړولى اومنكردي.

**ما الْمَسِيحُ... الا رَسُولٌ قَدْ خَلَتْ مِن قَبْلِهِ الرسُلُ.**

**دمائده سورت، ۷۵-ايت**

مسيح...يواځې يوپيغمبرو. دهغه پيغمبرانو په شان چې مخكې له هغه راغلي ؤ.

هغه ایتونه چې «دعهدقدیم»او«عهد جدید»څخه په دې کتاب کې راغلي دي.دهغودوه کتابونو دانګلیسي نوو نسخو څخه ژباړل شوي دي.



---

**یَا اهْلَ الْکِتَابِ لاَ تَغْلُواْ فِي دِینِکُمْ. ..**
**دنساء سورت، ۱۷۱-ایت**

اې دکتاب والاو!پخپل دین کې مبالغه مه کوئ...

داسلام ددین علما اوپیشوایانو هم دتاریخ ددرس څخه عبرت وانخیست. اودهمغو مخکنیو ادیانو دعلما او پیشوایانو دلارې اوطریقی څخه پیروي وکړه . دوې هم دمقام اومنصب خاوندانو دخپلو پیروانو نه وغوښتل چې هیڅکله هم داسلام دلوړ اوښکلي قصر نه دباندې

خپلی پښی ونه باسي اود پروردګار نوي ائین دي نادیده وګڼي.په پوره ډاډ سره ئې خپلو پیروانوته ښودلي دي. چې ددوې له دین نه وروسته بل دین نه راځي. هغه څه چې مهربان خدای غوښتي دي.
اوبشریت ته ئې ورزده کړي، په قران کې ئې نازل کړي دي.ترڅو چې جهان وي، دځمکې اواسمانونو خالق نوری خبرې نه کوي. اودقران په شان به بل کتاب راونه لیږي. قران د خدای اخرین کتاب دی.
داسلام علماو پیشوایانو هم داسې یو ایت ته ضرورت لرل. چې خپلو پیروانوته پرې ډاډ ورکړي. اوهیڅ یومسلمان ته دشک اوشبهی د ادعا ځای پاتې نشي .هغه ایت ئې په احزاب سورت کې پیداکړ:
**مُحَمدٌ ... رسُولَ اللهِ وَخَاتَمَ النبِیّینَ.**
**داحزاب سورت، ۴۰-ایت**
محمد دخدای رسول اودانبیاء خاتم دی.
داسلام پیشوایانو اوعلماو دخپل دین برترې لپاره په نورو ادیانو، دبل ائین دمنلو څخه د مسلمانانودمخنیوي لپاره د«خاتم» دکلمې په تفسیر اوتعبیر ئې شروع وکړه .اودهغې څخه ئې یوښکلې قصر جوړ کړ. دې بانفوذه اوقدرت والا پیشوایانو دخپل یوطرفه اوتأکیدشوي تفسیر کې دهیچا لپاره دشک اوتردید ځای پرې نښود.اودمخکنیو ادیانو دپیشوایانو په شان

دپروردګار کلام او خبرو په غلط تفسير ئې خلک دحقيقت څخه لرې وساتل ،دمسلمانانو پيشوايانو هم د«خاتَم»دکلمې چې د «آخر»سره هيڅ اړيکه نه لري. داصلي مقصد څخه ئې ورته انحراف ورکړ. هغې ته ئې نوې معنى ورکړه ، هغه ئې داسلام اصلي پايه جوړه کړه. اوهغه ئې،



---

په نورو اديانودامتياز وسيله وګڼله.
مخکې له دې چې «دقران دلوى معّما»په حل پيل وکړو. لازمه ده، چې هغه پرده دخلکو دسترګو لرې کړو. چې داسلام ملايانو د«خاتَم» دکلمې نه جوړه کړې ده . ځکه ترڅو پورې چې دا «معّما» د«خاتَم» دپردې لاندې پټه وي . باايمانه مسلمانان به دنيکونو

دپخواني قصر څخه قدم دباندې وانخلي . اودپروردګار دنوي ائین عظمت اوښکلابه ونه ګوري.
«دخاتَم»دکلمې په واقعي معنی پوهیدل هغې، کلي ته ورته ده. چې قلف شوې دروازه دسمې لارې پلټونکو ته بیرته اوخلاصه کړي.اودخدای دنوي قصر عظمت او ښکلا ورته وښائي . ترڅودا دروازه خلاصه نشي او پلټوونکي دنیکونو دافکارو له محدودې څخه دباندې قدم وانخلي،هیڅ دلیل به دهغوې دلچسپي پیدانه کړي.اونه به هیڅکله دخدای نوی اوښکلی قصر وګوري. اونه به د«بهائي ائین نوی ګلستان»وګوري.
ددې فصل اوددوه نورو فصلونو هدف دمسلمانانو دلارې څخه ددې«لوی خنډ»پورته کول دي .ددې فصل اصلي ټکی، دخاتَم دکلمې لغوي معنی اوتشریح ده. اوددې کلمې څخه دغلط تعبیر او غلطې استفادې طریقه ده .اودراتلونکو دوو فصلونو اصلي ټکی دقران دایتونو وړاندې کول دي. چې د«خاتّم»دکلمې واقعي معنی ښکاره کوي.دپلټونکو دسترګو ددې غټې پردې لرې کول دي. اووروسته د«قران دلوی معّما»حل اوپیژندنه شروع کیږي. په هغه ترتیب چې مخکې ئې یادونه وشوه که د«خاتم النبّین»عقیده ستاسې دلارې خنډ نه وي .خپله مطالعه د«۶فصل»څخه شروع کړئ.

## د«خاتَم»دکلمې معنی

په ټول قران کې د«**خاتَمَ النَّبِّيِنَ**»لقب د«ت په زور»سره یواځې په یو ځای کې راغلی دی. هغه یوایت چې داسلام پیغمبر ته اعطاء شوی دی :

**ما كَانَ مُحَمدٌ ابَا احَدٍ مِّن رِّجَالِكُمْ وَلَكِن رسُولَ اللهِ وَخَاتَمَ النبِيِّينَ وَكَانَ اللهُ بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيمًا.**

**داحزاب سورت، ۴۰-ایت**



---

محمد ستاسې دهیڅ یوپلار نه دی .هغه دخدای رسول اودپیغمبرانو«مُهر»دی.
پروردګار په ټولو شیانو خبر دی.

په لمړي سرکي دامهمه ده، چې پوه شو. دخاتَم کلمه په دوه شکلونو سره په عربي کې په کار وړل کيږي.
د«تَ»په زورسره اود«تِ»په زير سره . دادوه کلمې څومشترکي معناګانې لري. اوهريوه له دې دوو کلموڅخه په عربي کې خپل ځانته استعمال لري.هغه کلمه چې په قران کې ده.«خاتَم»د«تَ»په زور سره راغلې، نه د«تِ»په زير سره «خاتِم». داډيره له اهميته ډکه خبره ده . بله داچې په عربي کې ډير داسې کلمات دي. چې مختلفې معنی ګانې لري.«خاتَم»له دې ډول کلموڅخه ده. دژبې قاموسونو ددې هرې کلمې مختلفې معنی ګانې په ترتيب اوداهميت له مخې ذکر کړي دي. د«خاتَم» دکلمې معنی ګانې دتَ په زور سره دمعلوم فرهنګ له مخې:

- انګشتري ،انګشتر،(ګوته)
- مُهر ،نګين ، (ټاپه ،غمی)
- دهان معشوق (دمعشوقې خوله)
- بازپسين ، (وروستنی ،اخرنی)
- هغه اسباب چې دفيل له عاج

څخه جوړ شوي دي.
د«خاتِم»دکلمې معنی ګانې دتِ په زير سره دهمغه فرهنګ له مخې:

- ختم کننده ،ختم کوونکی

• پایان ،عاقبت ،پای ،باالاخره

---

دپدریادپلار کلمه په دې ایت کې تشبیهي معنی لري،«پدر» دزوی ،مسئول ساتونکی اودفاع کوونکی دی.پیغمبرداسې مسئولیت نه لري .دهغوې مسئولیت یواځې اګاه کول اودعوت کول دي.

**ما عَلَ□ الرسُولِ الاالْبَلاَغُ.**

**دمائده سورت،۹۹-ایت**

دخدای دپیغمبریواځېنې وظیفه اودنده دخدای دکلام او خبرو رسول دي.



---

---

ښه به وي چې یوبل فرهنګ ته هم مراجعه وکړو.د«خاتم»دکلمې معنی د«ت»په زوراوزیر سره د ریاض اللغات په فرهنګ کې .

دخاتَم دکلمې معنا د«تَ»په زورسره:

• انګشتر،ګوته

---

• انګشتري، هغه ګوته چې مُهر اوټاپه هم ولري يعنی په ګوته کې دسړي نوم او امضاء وي.
• مُهر ،هغه چې يوشی په مُهر اوتصديق کړي.
• ختام هرچيز،عاقبت او اخر دهرشی.
• فرورفتګي پشت ګردن، دښځ ژوره ساحه.

د«خاتم»دکلمې معنی د«تِ»په زير سره:

• تمام کننده ،تماموونکی.
• به اخررسانده ،اخرته رسولی.
• مُهر کننده،شخص مُهر زننده ،مُهر کوونکی.

دفارسی په ژبه کې د«خا تِمْ»کلمه په اصطلاح کې د«خدمت خاتِمې»ته وائي. اود «خا تَم»کلمې اصطلاحي معنی «خاتَم کاري»ده.

د«خاَتَم»دکلمې دمعنی دتحقيق لپاره به ښه وي. چې دقران دځومعتبرو او مشهورو ترجموته نظرواچوو. اووګورو چې دعربي ژبې استاذانو د«خاتم»کلمه څنګه ترجمه کړې ده.شايد چې مشهورترينه ترجمه دقران په انګليسي ژبه چې دجهان مسلمانانو داعتماد اوباور وړ ګرځيدلې ده. ديوسف علي ترجمه وي.دې مترجم اومحقق دقران په تفسير اومطالعې کلونه تيرکړي دي. اوددې اسماني کتاب جامع اوهراړخيزه ترجمه ئې دغرب عالم ته وړاندې کړې ده . داترجمه د عربستان دپادشاه په ملاتړ دهغه هيواد دلوی علماو

دڅو ځلې تصحیح اوتصویب وروسته د تائید وړ وګرځیده. اواوس دغربي ممالکو مسلمانان هغه په امریکا کې چاپ اونشرته سپاري.



یوسفعلي د«خاتَم»دکلمې ترجمه په «Sear»انتخاب کړې، چې دهمغه «مُهر»معنی لري. دده دترجمې نه علاوه په نورو ترجمو کې هم د«خاتَم»دمعنی لپاره د«Sear»یا«مُهر»کلمه کارول شوې ده:

**7. An Interpretation of the Qur'án**

**1. The Koran (interpreted)**

**( مترجم ) Majid FakhrY**

**(مترجم) A.J.ArberrY**

**8.The Qur  an**

**2. Al-Qur’an**

**(مترجم)Muhammad Zafar’u’llah**

**(مترجم)Ahmed Ali**

**Khan**

**3. The Koran**

**9. The Noble   Qur,an**

**مترجم ) Rodwell                                        u**

**(مترجم)Dr. Muhammad Taqiud-**

**4. The Meaning of the**

**( مترجم)     Din Al-Hilali, and Dr.**

**Glorious Koran**

**Muhammad Muhsin Khán**

**(مترجم) Mohammed Pickthall**

**5.                              10. The Holy Qur’án**

**The Message of the Qur’an**

**(مترجم)   Maulana Muhammad Ali**

**(مترجم) Muhammad Asad**

**11. The Holy Qur’án**

**6. The Koran**

**(مترجم)   Amatul Rahman ‘Omar,**

**(مترجم)   N. J. Dawood**

**and ‘Abdul Mannan ‘Omar**

---

دقران دترجمه کوونکو نه په انګليسي ژبه يو بل ژباړونکی مجيد فخري دی. چې يوه ممتازه ترجمه دقران ئې په يادګار پرې ايښې ده. داژباړونکی هم دنورو ترجمانانو په څير چې مورنې ژبه ئې عربي ده د«خاتم» دکلمې معنی ئې«مُهر»کړې ده . دالازهر پوهنتون کميټې چې داسلامي کتابونو دترجمې اوتأليف مسئوليت ئې په غاړه دی. اودهغو دجملې نه يوهم قران مجيد دی. دخپل تصديق مُهر ئې دهغو په ترجمه لږولی دی:

**ليس فيه ما يتعارض مع العقيدة الاسلاميه.**

---

**الازهر الشريف، مجمع البحوث الاسلاميه .الادارة العلميه للبحوث والتأليف والترجمه.**

داسې یوڅه چې داسلامي عقیدې سره په مخالفت کې
وي په هغه ترجمه کې نشته.هغه نتیجه  چې ددې دوو
کلمو«خاتَم»او«خاتِم»دلغوي مطالعې څخه اخلو داده.
چې د«خاتَم»دکلمې معنی«مُهر»اود«خاتِم»دکلمې
معنی پایان او ختم ده .که په قران کې انتخاب شوې
کلمه «خاتِم»وي .دې فصل ته اړتیا نشته . ځکه چې
«خاتِم»فاعل اسم دی. اودهغې معنی معلومه ده .په
هغه صورت کې به حضرت محمد دپیغمبرانو د
سلسلې ختم کوونکی اواخري وي. اما زمونږ مشکل
دادې. چې په قران کې د«خاتَم»کلمه راغلې ده نه
د«خاتِم».داکلمه دتفسیر وړ ده. ځکه
چې«مُهر»تشبیهي معنی لري. نه یوه دقیقه تحت
اللفظي معنی. فرض کوو. چې تاسې یوې ډلې ته
خبرې کوی. اوپه ابتدا کې اوریدونکو ته وائي:
«زه دیوساعت لپاره دخبرو فرصت لرم اوپه (۹)بجې
خپلې خبرې ختموم»ستاسې خبرې دتفسیر اوتعبیر وړ
نه دي. او اوریدونکوته دشک ځای نه پاتې کیږي.
اوس فرض کړی. دمخکینې مطلب پرځای اوریدونکو
ته داسې وائي: زه افتخار کوم چې تاسې ته خبرې کوم
اوپه واقعیت کې زه ستاسې لپاره «مُهر» یم .ستاسې
اوریدونکی به څه فکر کوي؟هریو دخپل فکري قوت
په اساس کولی شي د «مُهر» دکلمې نه ځانته معنی په

خپل ذهن کې راولي .د«خاتَم»کلمه داحزاب په سورت کې دغسې يوحالت لري.که وغواړو کولی شو. د هغې نه دخپلې خوښې اوميل سره سم مختلفې معنی ګانې واخلو.
اوس به وګورو چې داسلام علما اوپيشوايانو څنګه د خپل تصور اوخيال په قوت د«خاتَم»دکلمې نه د«اخرين»معنی ترلاسه کړې ده . يوسفعلي مشهورژباړونکي اودمسلمانانو داعتمادوړ اودقران دتفسير متبحرد«خاتَم»کلمه په دې ډول د«اخرين»په معنی استنباط اوراايستلې ده:

---

کله ديوې کلمې دتلفظ په کم تغير سره دهغې کلمې معنی ته مکمل تغير ورکوي مثلاً:
په فارسي کې دکِشتن اوکُشتن کلمې.

**کله چې یوشی «مُهر»شي .کامل دی.اوپه هغه کوم شی نشوورزیاتولی.داسلام د مقدس دین پیغمبر دپیغمبرانو یوه اوږده سلسله پای ته ورسوله،دخدای ښوونې به همیشه دوام پیداکړي. اما داچې د محمّد نه وروسته بل پیغمبرنه وي ،اونه به راشي .په راتلونکو پیړیو کې به مفکرینو اومصلیحینو ته اړتیاوي، نه کوم پیغمبر ته، دادزړه دخوښې امر نه دی.په دې حکم کې ډیر غټ علم اوحکمت پروت دی،«ځکه چې خدای په هرڅه پوه دی».**

ځینې ایراني ژبا ړونکي حتی دیوسفعلي دتفسیرنه هم وړاندې قدم ایښی دی ،دخپل خیال په قوت ئې ،«دخاتم» دکلمې نوې معنی رامنځ ته کړېده. چې یوه ژباړه دمحمد کاظم معّزی اوبله ژباړه دابوالقاسم پاینده ده. دې دوه ژباړونکو د«خاتَم»دکلمې د«مُهر»پرځای د«سرامد» یعنې وتلی ،سرایستلی اومخور معنی کړې ده:

**دمحمدکاظم معّزی ژباړه:**محمد نه دی پلار ستاسې بلکه دخدای پیغمبر او په پیغمبرانوکې سرآمد(وتلی) دی.

**دابوالقاسم پاينده ژباړه:**محمدستاسې ديوه پلار نه دی.دخدای پيغمبر اودپيغمبرانو سرآمد(وتلی)دی.

معلومه نه ده چې دې دوه ژباړونکو څنګه اودکومه ځايه(سرآمد)معنی د «خاتَّم»کلمې لپاره پيداکړه. په هيڅ يو فرهنګ دلغاتونو کې د«خاتَم»دکلمې لپاره د«سرآمد»معنی شوې نه ده. آيا دې دوه ښاغلودخپلې ژباړې دنتيجې څخه پوهاوی لرل؟ که د «سرآمد» کلمه د«مُهر»په ځای وليکو.

---

ديوسفعلي اصلي ليکنه:

When a document is sealed, it is complete, and there can be no further addition. The holy Prophet Muhammad closed the long line of Apostles. God's teaching is and will always be continuous, but there has been and will be no Prophet after Muhammad. The later ages will want thinkers and reformers, not Prophets. This is not an arbitrary matter. It is a decree full of knowledge and wisdom: “for God has full knowledge of all things.” Yúsuf ‘Alí, The Meaning of the Holy Qur’an , sixth edition, page 1069

---

داخرين معنى له لاسه وركوو. د«سرآمد» كلمه د«خاتم» دكلمې رابطه د«اینده » سره پرې کوي. په دې صورت كې نوره دزمان مسئله مطرح نه ده.يواځې دحضرت محمد دمقام موضوع ده د«اَخري»وه، يانه وه، مسئله بيخي له منځه ځي.
مشهور مجتهد مكارم شيرازي «**خاَتَم النّبّين**»ئې داسې ژباړلی دی:ختم كوونكی او دپيغمبرانو اخرين.
دقران ډير ژباړونكي په فارسي سره ،كارونه ځانته اسانوي .هغوي د«خاتم»دكلمې معنی نه ليكي بلكه دترجمې په ځای پخپله اصل كلمه نوشته كوي .دقران دژباړې څو نمونې:

خاتم پيغمبران: بهاءالدين خرمشاهي
خاتم پيغمبران: عبدالمحمد ايتي

خاتم پیغمبران: محمد مهدی فولادوند

خاتم انبیاء: مسعود انصاري

خاتم پیغمبران: حسینعلی کوثري

خاتم پیغمبران: طاهره صفّارزاده

ختم پیغمبران: دحوزه قم نه ۷تنه علما

د«خاتم النبین»لقب دمسلمانانو په عقیده کې مهمترینه اساسي پایه ده دهغوې برخلیک ددې لقب دمعنی په درک کولو پورې تړلی او متکي دی.ولې دقران اکثره ژباړونکي په فارسي سره د«خاتَم»دمعنی کولو نه ډډه کوي؟

---

---

دیوسفعلي تفسیرته به وګرځو، دامشهور مفسرپه خپل تفسیر کې دوه ټکو ذکر کوي:
• د«مُهر»دمعنی په کارولو چې دکامل اوپوره کیدلو مطلب افاده کوي.
• کامل اوپوره کیدل د«اخري»نښانه ده.
آیا مخکینې تفسیر معقول اوجائز دی؟ په هغه ترتیب چې په دوه راتلوونکو فصلونو کې به ئې وګورو ، چې په قران کې ډیر ایتونه درسول اکرم نه وروسته پیغمبرانو راتګ ته اشاره کوي . مخکې له دې چې هغه ایتونه مطالعه اووګورو ،ښه به وي چې په دې فصل کې د«خاتم» دکلمې په معنی خبرې وکړو.
دیوسفعلي اوداسلام دنورو علمااوپیشوایانونه داپوښتنې وکړو:
۱. که دقران منظور د«خاتم»دکلمې نه «اخرین» وي،ولی د«خاتم»کلمه دتې په زیر سره په مبارک ایت کې نازله نه شوه؟ دغه جزئې تفاوت ددې کلمې په تلفظ کې ، دامشکل ټول ختمول اودغه مبارک ایت هیچاته دشک اوشبهی ځای نه پریښودل.ځکه

چې«خاتِم»یوه مشخصه معنی لري.پس ولی د«خاتَم»په ځای چې مختلفی تشبیهي معنی ګانې لري د«خاتِم»کلمه انتخاب نه کړه؟داخبره دډیر اهمیت لرونکې ده.

۲.مُهر دامضاء په ځای لږول کیږي.دامضاء اصلي مقصد په هرکار کې دهغه مطلب تائید اوتصدیق دی. له کومه معلومه شوه. چې د«خاتم» دکلمې منظور د راتلونکو پیغمبرانو خاتمه ده. نه کوم تصدیق اونه هم دهغوی تائید ؟ آیا جائزه ده. چې د«مُهر» اصلي هدف تائید اوتصدیق دی، نادیده وګڼو. اودبل هدف لپاره ئې ولږوو؟ کله چې مونږ چاته وایو چې «دالیک امضاء کړی.» زمونږ اصلي مقصد څه دی؟ آیا زمونږ اصلي مقصد دلیک تائید دی. یادهغه ختمیدل؟ آیا زمونږ اصلي مقصد دانه دی، چې ووایوپه خپل«مُهر»سره تاسې داثابته کړه. چې دالیک ستاسې دی؟

داخرکیدل اوتمامیدل د«مُهر» تشبیهي اوثانوي معنی ګاني دي .نه اصلي او تحت اللفظي معنی ګانې.
**۳.** که فرض کړو داسلام پیغمبر «مُهر» و. دیو سند په اخر کې چې دیوسلسله پیغمبرانودنومونو سند دی. که پروردګار یوتازه سند له نوي نومونو سره وړاندې کړي. دمخکینې فرض سره به تضاد ولري؟
**۴.**آیا د«مُهر»ځای همیشه دلیک په اخرکې دی.د«مُهر» وهل دلیک په اخر کې یومروج امر دی.نه قطعی .
**۵.** د«مُهر» کارول دلیک په سرکې اویادهغه په اطرافوکې په تیرو وختونوکې معمول ؤ.
**۶.**آیا د امضاء نه وروسته دیومطلب زیاتول ممکن اومجاز نه دي؟

۷. عربي ډېره غني ژبه ده.آیا په عربي کې د«اخرکیدل» دکلمې لپاره د«خاتم»نه دتی په زوره کې سره بله کومه کلمه نه پیداکیدله؟
۸.قران مجید دهرې مهمی مسئلی تفسیر کړی دی:
**وَتَفْصِيلَ كُل شَيْءٍ وَهُدًى وَرَحْمَةً لِّقَوْمٍ يُؤْمِنُونَ .**
**دیوسف سورت، ۱۱۱-ایت**
دهرشي تفسیر په دې کتاب کې دی.اودهغه چالپاره چې په هغه ایمان راوړي. دهدایت اورحمت وسیله ده.
**ما فَرطْنَا فِي الكِتَابِ مِن شَيْءٍ .**
**دانعام سورت،۳۸-ایت**
داکتاب (قران)کمبودي نه لري.(داسې یوضروري شي به نه وي. چې دهغه نه پاتې وي)د«اخرکیدلو» مسئله داسلام په دین کې ډېره مهمه ده .آیا دامعقوله ده. چې دقران په شان یوجامع کتاب داسې یومسئله چې دعالم برخلیک ترابده ورپورې تړلی وي .شکمنه پرېږدي؟آیا دابه عادلانه وي. چې داسې یومهم مطلب په ټول قران کې په تکرار اوقاطع الفاظو روښانه نشي؟

ځکه چې هيڅ يوايت دقران ددې مطلب په منل کيدلو اوتائيدولو کې نشته .برعکس ډير داسې ايتونه شته دي چې ددې مطلب معنی نه تائيدوي.
۹. آيالازمه نه وه چې داسې يوه مهمه مسئله پخپله په ايت کې ذکر شي؟په هغه ايت کې چې د«خاتَم»کلمه ذکر شوې ده. د«اخري کيدلو يانه کيدلو»دموضوع سره هيڅ اړيکه نه لري.

**دپروردګاردپيغمبرانو**

**اودهغوې**

**اسماني کتابونوتائيد اوتصديق**

**پروردګار په هرظهور کې خپل کتابونه چې له مخکې نازل شوي دي. تصديق کړي دي.۵**
**حضرت بهاءالله**

اوس به وګورو. چې «دپیغمبرانومُهر»لقب یعنی څه؟اومُهر لېږول دڅه دپاره؟
لکه څنګه چې وویل شو. دمُهر اصلي مقصد تائید اوتصدیق دی.مهردهرمدرک اعتبارتضمینوي. اوپه پخواوختونوکې دامضأپه ځای بې کارول.که دپیغمبرانود«مُهر»لقب په دې مفهوم سره تفسیر کړو.دې نتیجې ته رسیږو. چې درسول اکرم یوله مهمو هدفونو نه دپروردګاردپیغمبرانو اودهغو د اسماني کتابونو دهغې جملې نه دقران تصدیق ؤ:
**هَذَا الْقُرْآنُ... تَصْدِيقَ الذِي بَيْنَ يَدَيْهِ وَتَفْصِيلَ الْكِتَابِ لاَ رَيْبَ فِيهِ مِن ربِّ الْعَالَمِينَ.**

**دیونس سورت،۳۷-ایت**

داقران ...هغه څه چې له ده سره دي تصدیقوي. اودکتابونو تفسیر کوي. بې له شکه چې دپروردګار لخوا دی.
**وَالذِي اوْحَيْنَا الَيْكَ مِنَ الْكِتَابِ هُوَ الْحَق مُصَدِّقًا لِّمَا بَيْنَ يَدَيْهِ. دفاطر سورت،۳۱-ایت**
هغه څه چې په دې کتاب کې مې تاته وحې کړې ده. حقیقت دی.اوهغه څه چې مخکې نازل شوي دي. هم تائید اوتصدیقوي.

**وَمِن قَبْلِهِ كِتَابُ مُوسَى امَامًا وَرَحْمَةً وَهَذَا كِتَابٌ مصَدِّقٌ .**
**داحقاف سورت، ۱۲-ایت**
مخکې له دې ،دموسى کتاب دخلکو رهنما اودپروردګار درحمت اوفضل نښانه وه. دهغوې په منځ کې داکتاب (قران)دهغوې تائید اوتصدیق کوي.
**نَزلَ عَلَيْكَ الْكِتَابَ بِالْحَقِّ مُصَدِّقاً لِّمَا بَيْنَ يَدَيْهِ .**
**دآل عمران سورت، ۳-ایت**
پروردګار د«قران» کتاب په رښتینی سره په تانازل کړ.اوهغه څه چې دهغه سره دي. هم تصدیقوي.
مخکني ایتونه داسلام دپیغمبر دتصدیق اوحقانیت په باره کې اودمخکنیو پیغمبرانو او دهغوې داسماني اثارو دمنلو لپاره دقران دایتونونمونې وې . په هغه الهي کتاب کې داډول ډیر ایتونه نازل شوي دي. چې

هغه ټول د«خاتَم النّبين»لقب معنى د«تصديق مُهر»تائيدوي.داحزاب سورت،په مبارک ايت کې درې مهم ټکي ذکر شوي دي:

- محمد ستاسې «پلار»نه دى(هغه ستاسې دپلار دنده په غاړه نه لري. دخداى پيغمبر دى دايمان اوانکار مسئول نه دى): **ما كَانَ مُحَمدٌ ابَا احَدٍ مِّن رِّجَالِكُمْ.**
- دهغه دنده دپيغام راوړل دي.خداى دهغه په حقانيت اودنده شهادت ورکوي. **وَلَكِن رسُولَ اللهِ.**
- اوهغه هم دمخکنيو پيغمبرانو په دنده اوحقانيت شهادت ورکوي. پرهغو دتصديق مُهر لګوي:**وخَاتَم الْنَّبيّن.**

د«تصديق امضاء»اصطلاح يا«دليک دتصديق شهادت»تصديق يعنى دهغه صادق ګڼل دي.

پيغمبرانو هم په يوبل پسې دځان نه مخکې پيغمبرپرحقانيت د تائيد اوتصديق مُهر لګولى دى.

دقران مجيد مطالعې اوبررسې دابنودلې ده. چې هغه اسماني کتاب دالاندې مطالب تاکيد اوتائيد کړي دي:

- دتوانا اوواحد پروردګارستاينه اوصفت.

• دمخکنیو پیغمبرانو ستاینه صفتونه اودهغوې دکرامت تصدیق.
• دحضرت محمد اودقران مجیدتصدیق.
• دحضرت محمد نه وروسته پیغمبرانو تصدیق اودهغو دپیژندنې لارې.
• نیک اوبد عملونه.
• دعبرت او نصیحتونو تشویق اوترغیب.
•دمنکرینو اوبدکارانو رفتار اودهغوې مجازات.
• دریښتینو مؤمنینو چلند اودهغوې پاداش.
• داسلام اجتماعي قوانین.
• دهمیشني جهان ، ددوزخ اوجنت صفتونه .
د«تصدیق»موضوع دمسیحیانو په اسماني اثارو کې هم پیداکولی شی:
**ګرانودوستانو:هرروح مه منې بلکه روحونه ازمایش کړی، ترڅو وګورئ. چې الهي دی اوکه نه ، ځکه چې دروغجن پیام راوړونکي هم ډیر دي . د«خدای**

**روح» په دې ډول وپيژنې:هرهغه روح چې داتصديق کړی چې عيسی مسيح جسماً راغلی دی، هغه دخدای له لوري دی.**

**ديوحنا اوله رساله ،۴فصل۱-۳،ايتونه**

همدا د«خدای دروح» لقب حضرت محمد ،حضرت مسيح ته ورکړی دی. اوهغه ئې«روح الله» نومولی دی.په قران کې دحضرت مسيح تصديق دحضرت رسول اکرم دحقانيت ښکاره نښانه ده .

قران مجيد دې نښانې ته په کامله توګه تحقق ورکړی دی.دحضرت مسيح په مقام اقرار  دداسې چالپاره چې دهغه وخت په وحشي اعرابو کې پيداشوی و. يوه ښکاره نښاني ده. ددې لپاره چې دادپروردګار وحې ويونکی دی. اوله خپله ځانه خبرې نه کوي.که مسيحيان دانصاف په سترګو وګوري .بايد په همدې دليل داسلام پيغمبر ومني.

دتاريخ دشهادت په اساس ، ډير خلک متمايل دي. چې خپل هميشنی کور دخيال اوتصور په تاروپود جوړ کړي.اودژوندترپايه پورې په هغه کې په راحت اوارامې سره واوسي.زمونږ په عصر کې په سلهاو ميليونه مسيحيان بې له ډير کم تحقيق اوڅيړنې مسلمانان ئې ګمراهان وګڼل. اوقران ئې يوه افسانه وګڼله .داغافلان بې د خپلو نېکونو دکور نه دبل هيڅ کور دليدلو لايق نه ګڼي.
زمونږ دعصر اکثره مسلمانان هم دمسيحيانو په شان دبهائي ائين په باره کې هرډول دڅيړنې اوتحقيق څخه ډډه کوي . داپه قران ايمان راوړونکي مؤمنان دخدای لويه هديه يعنی اختيار اوازادي چې دهغوې ابدي برخليک په هغه متکي دی ، نورو ته سپارلی دی.
دپيشوايانو په لاس کوموچې ديوې کلمې په غلط تفسير ئې ظاهراً يوښکلی اومجلل قصر دخپل مقام اومنصب دساتلو لپاره جوړ کړی دی. آيا دخپل نه تماميدونکي

برخلیک داسې یو بې اعتباره تفسیر ته پرېښودل دعقل او حکمت سره سمون خوري؟
دوه راتلونکي فصلونه به په تفصیل سره ددې پوښتنې ځواب دقراني ایتونو سره وړاندې کړي.

# ۴



## درسول اکرم نه مخکې پیغمبرانو دظهورپه باره کې دقران مجیدایتونه

**لمړۍ برخه:** ددې برخې هدف چې په تیر فصل سره شروع شو. دبرهان اودلیل اظهار نه دی. دهغه هدف د مسلمانانو دلارې نه دمهم خنډ پورته کول دي. هغه خنډ اومانع د«خاتَم النبیین» دلقب غیر مجاز اوغیر معقول تفسیر دی.

## په الهي ایتونو کې

# ژوره كتنه اوفكر

قران مجيد دپروردګار اخرين كتاب ګڼل اواسلام اخرين ائين شميرل دډيرو مسلمانانو په ذهنونو كې دمسلم حقيقت څخه ګڼل كيږي . دې انګيرنې دوخت په تيريدو سره دخلكو په فكرونو كې داسې نيلى اوريښې ځغلولې دي. چې دلږو كسانو په زړونو كې دهغوې په باره كې دشک ځاى پاتې كيږي،



---

اويائې داثبات دليل غواړي .ددې پنداراوانګېرنې دمخالفو نظرياتو اوريدل تاسي اودبل هرمسلمان لپاره اسان كارنه دى.ددې معّما دحل يواځېنې لاره دقران په

ایتونوکې لټه، دقت او څېړنه ده. په دې مقصد کې دتوفيق لپاره ،هغه څه چې په دې فصل کې راغلي دي. په پوره دقت سره ووائي اودعقل په تله ئې وسنجوئ. اووروسته ئې له هغه څه سره چې مو اوريدلي دي. پرتله کړئ. اووګورئ. چې کوم يو معقول اودپروردګار دحکمت سره موافق دی.

په قران کې دپروردګار دکلام په اساس هوښيارخلک هغه څوک دي. چې مختلفې خبرې اوري. او وروسته له فکره په هغو کې د ترټولو غوره خبرو ټاکنه کوي:

**فَبَشِّرْ عِبَادِالذِينَ يَسْتَمِعُونَ الْقَوْلَ فَيَتبِعُونَ احْسَنَهُ اوْلَئكَ الذِينَ هَدَاهُمُ اللهُ وَاوْلَئكَ هُمْ اوْلُوا الاَلْبَابِ .**

**دزمر سورت،۱۸- ۱۷ايتونه**

هغه بنده ګانو ته زيری ورکړه. چې مختلفې خبرې اوري. اوترټولو نيکو خبرو پيروي کوي. خدای دداسې خلکو رهنما دی. ځکه هغه عاقل اوهوښيارخلک دي.

داکتاب ټاسې اوټولو مسلمانانو لپاره دنوو مطالبو لرونکی دی. حتی داسلام دعلماو لپاره چې خپل ځانونه دتقليد مرجع اودعلم منبع ګڼي ، له هغومطالبو څخه بې خبره دي. ددې ټولو تازه مطالبو درک لپاره فکر او ژورې کتنې ته اړتيا ده. داسماني کتابونو دشهادت په اساس ، زمونږ دژوند ترټولو ښې لحظې

هغه دي. چې دهميشنې معّما دحل لپاره مصرف شي.
ځکه چې دې جهان ته ددغه مقصد لپاره راغلى يو
.داليکنه ددې«لوى معّما»دحل لپاره يوګام دى.  په دې
کار کې دتوفيق لپاره لازمه ده، چې الهي ايتونه کوم
چې په دې کتاب کې ذکر شوي دي، څو ځلې ووائي .
هرځل ئې چې لولې،  دپروردګار دکلام اوخبرو مقصد
اومعنى به تاسې ته ښه روښانه شي.
دقران اسرار دزروشمع لرونکى اودځلا ډک څراغ
په څير په نظر کې ونيسى. چې په ټول قران کې
خپرې اوپرتې وي .ددې کتاب هدف ددغو قيمتي شمعو
راټولول اوښکاره کول دي.هرفصل چې لولئ.
دپروردګار دروښنائي دوړانګو ښکلا به ډيره ګورئ.

۱۰۱    ۴فصل:درسول اکرم نه مخکې پيغمبرانو
دظهور په باره کې دقران مجيد ايتونه

که په مینه ،بې طرفې اوحقیقت سره ددې لوی معّما دحل لپاره کوښښ وکړئ .په پای کې به زرشمع ایزه چراغ روښنائي ستاسې ټول وجود ونیسي.

## دپروردګار تغیر نه منونکي سنّت

دافصل اودده پسې بل فصل به داوښائې چې قران ددوه پیغمبرانو دظهور زیری په پوره روښانتیا اوپه ډیر تاکید سره ورکړی دی .که د«خاتَم النبین» معنی اخرین وی،دانا خدای به یوبل ایت ددې معنی دتفسیر اوتائید لپاره نازل کړی وی. ترڅو د«خاتَم» دکلمې مقصد روښانه شوی وی. اوحال داچې خبره ددې برعکس ده .قران مجید دنورو پیغمبرانو دراتګ لپاره شهادت ورکوي.ښه به وي په هغو ایتونو سره چې دپروردګار طریقه اورسم راوښائې بحث شروع کړو:

**وَلَقَدْ ارْسَلْنَا رُسُلاً مِّن قَبْلِكَ... لِكُلِّ اجَلٍ كِتَابٌ يَمْحُو اللهُ مَا يَشَاء وَيُثْبِتُ وَعِندَهُ أُمُّ الْكِتَابِ.**

**درعد سورت،۳۹-۳۸ایتونه**

البته مخکې له تامې پیغمبران لیږلي ... دهرعصر اوزمان لپاره کتاب دی .پروردګار هرڅه (هرحکم

اوياقانون)چې وغواړي تغير ورکوي اويائې ثابت ساتي .دکتابونو سرچينه له هغه سره ده.

**لَقَدْ بَعَثْنَا فِي کُلِّ ا مةٍ رسُولاً .**

**دنحل سورت، ۳۶-ايت**

البته چې په هرملت کې مې پيغمبر مبعوث کړی دی.

**لِکُلِّ قَوْمٍ هَادٍ.**

**درعد سورت، ۷-ايت**

هرملت رهنما لري.

**لِکُلِّ ا مةٍ جَعَلْنَا مَنسَکًا لِيَذْکُرُوا اسْمَ اللّٰهِ .**

**دحج سورت، ۳۴-ايت**

دهرملت لپاره مې اداب اورسوم مقرر کړي چې په هغه وسيله خپل رب يادکړي.

**انا ارْسَلْنَاكَ بِالْحَقِّ بَشِيرًا وَنَذِيرًا وَان مِّنْ ا مةٍ الا خلَا فِيهَا نَذِير . دفاطر سورت،۲۴-ايت** په حقيقت سره ته مې زيري او اخطار ورکولو لپاره ليږلی ئې، پروردګار هيڅکله امت د رهنما اواخطاروركوونكي څخه نه پريږدي.

**لَن تَجِدَ لِسُنةِ اللهِ تَبْدِيلًا .**

**دفتح سورت،۲۳-ايت**

هيڅکله به دپروردګار په طريقه کې تغير پيدانکړی. مخکينې ايتونه په پوره روښانه توګه وښائي چې پروردګار هيڅ اُمّت بې له رسوله اورهنما، نه پرې ايښی اونه ئې پريږدي .اوهمدا سبب دی چې په هرعصر اوزمان کې نوی کتاب هغوې ته راليږلی دی،په دې ايت کې «لِكُلّ اَجَلٍ كتابٌ:دهرعصر لپاره کتاب دی».داوښائي چې دخدای خبرې دبنده ګانو سره هيڅکله اخر ته نه رسيږي.

دخدای طريقه دلطف مهربانې اومحبت ښودل دي .اود بنده دنده دخپل مهربان خالق سره مينه اوبنده ګي کول دي .مونږ دپروردګار دمرحمت ،محبت اواحسان

هنداره یو.    بې دهغه دجمال درڼائي نه به زمونږ روح په تورتم کې وي. آیا ممکنه ده چې ددانا خالق دمینې اوحکمت لمر په ناڅاپه له مونږ مخ واړوي اومونږ په تورتم کې پریږدی؟

ایا داممکنه ده مهربانه ،هوښیار موراوپلار په ناڅاپي توګه چپ شي اودخپلو زړه پورې اولادونو سره دخبرو لاس په سرشي؟

هغه ایتونه چې ذکر شو د«امُّت»دکلمې معنی هم روښانه وي. دهغو ایتونو په اساس «امُّت»عبارت دی دخلکو دیوې ډلې نه چې پروردګار هغوې ته پیغمبر ورلیږلی وي او یائې ورلیږي».دداسې امتونو نمونې یهودیان ،مسیحیان اومسلمانان دي.

## دامتونو مرګ

## اوژوند

همدارنګه قران مجید ددې وضاحت ورکوي چې په څه وجه پروردګار دهرامت لپاره نوې پیغمبراونوې کتاب ورلیږي.دهغه کتاب دشهادت پراساس لکه څنګه چې هر انسان ټاکلی عمر لري اووروسته دهغه له ختمیدو دهغه مرګ راځي ، پروردګار دارنګه هرامّت ته ټاکلی عمر اووخت ورکوي.

## ۱۰۳ ۴فصل:درسول اکرم نه مخکې دپیغمبرانو دظهور په باره کې دقران مجید ایتونه

---

---

دهغه وخت له ختمیدو نه وروسته دهغه امّت اجل رارسي.
**ما تَسْبِقُ مِنْ ا مةٍ اجَلَهَا وَمَا يَسْتَاخِرُونَ . دحجر سورت،۵-ایت ،دمؤمنون سورت،۴۳-ایت**
دامّت اجل مخکې اوروسته کیږی نه.
اجل یعنی مرګ یاهغه ټاکلی وخت چې پای ته ورسي.په څه سبب دیواُمّت عمر او زمان پای ته رسیږي؟ دپروردګار سره دمینې ،روح اوایمان دلاسه ورکولو په سبب دأُمّت عمر پای ته رسي .په کوم وخت کې دامّت اجل رارسي؟
کله چې خلک معبد ته نږدې وي، خو دمعبود نه لرې وي.هغه وخت چې کلیساګانې ،کنیساګانې اوجماعتونه ډېر ښکلي اومجلل جوړ وي. اما دنیا له ستم نه ډکه وي

اوزړونه دغم اوغصې نه ډک وي. هغه وخت چې پیشوایان دین اوایمان ددولت اودینار دلاسته راوړلو وسیله وګرځوي .دادایمان اووجدان دژمې موسم دی.اودهرژمي پای نوروز اونوی پسرلی وي .پیغمبران همیشه دپروردګار په یارې خلکو ته دنوي پسرلي ارمغان راوړي.اوداپیغمبران پخپل ټاکلي وخت ظاهریږي ،خلکو ته نوې ژوند وربخښي:

**ووایه! اې مړو: دپروردګاردبخشش لاس دژوند اوبه ورکوي. عجله وکړی وئې څکې. هرڅوک چې نن ژوندې شو. هیڅکله به ونه مري. اوهرڅوک چې نن مړشو. هیڅکله به ژوندی نشي.۱**

**حضرت بهاءالله**

دخدای له نظره بې دینه انسان «مړ» دی:

**وَالذِینَ یَدْعُونَ مِن دُونِ اللهِ...امْواتٌ غَیْرُ احْیَاء.**

**دنحل سورت، ۲۰- ۲۱ایتونه**

هغه خلک چې بې له خدای بل معبود مني...مړه دي. اودروح دژوند نه محروم دي.

دحضرت مسیح په زمانه کې هم ژوند دایمان پورې اړه لرله :

**زه «قیامت»یم اوزه ژوند یم .هرچا چې په ما ایمان راوړ....هیڅکله به نه مري.**

**یوحنا انجیل ،۱۱فصل،۲۶-۲۵ایتونه**



---

«دروح مړینه»دخدای نه د لریوالي په معنی ده ،اودروح ژوندخدای ته دنږدیوالي په معنی دی په اسماني کتابونو کې داپه کراتو سره راغلي دي:
**كَيْفَ تَكْفُرُونَ بِاللهِ وَكُنتُمْ امْوَاتاً فَاحْيَاكُمْ ثُم يُمِيتُكُمْ ثُم يُحْيِيكُمْ ثُم الَيْهِ تُرْجَعُونَ.**

**دبقره سورت،۲۸-ایت**

څنګه په خدای کافران کیږي؟ مړه وی تاسې ژوندي
یې کړی.اوبیا له تاسې ژوند اخلي اودبل ځل لپاره بیا
ژوند درکوي. اوتاسې به هغه ته رجوع کوې.
**نن دپوهې خاوند هغه څوک دی، چې د نړی پیدایښت**
**هغه دلیدنې، اوخبرو هغه دعمل نه پاتې نه کړ.**
**او«مړ»هغه څوک دی. چې په دې روح بخښوونکي**
**اوزړه وړونکي سهارني باد په لګیدو سره بیدار**
**نشو،اوپه داسې چاپورې تړلی چې ژغورونکی ئې**
**ونه پیژاند. اود طمع په بندیخانه کې سرګردانه پاتې**
**شو.۲ حضرت بهاءالله**
**انكَ لَا تُسْمِعُ الْمَوْتَ وَلَا تُسْمِعُ الصم الدعَاء اذَا وَلوْا**
**مُدْبِرِينَ وَمَا انتَ بِهَادِي الْعُمْيِ عَن ضَلَالَتِهِمْ ان تُسْمِعُ الا**
**مَن يُؤْمِنُ بِآيَاتِنَا فَهُم مسْلِمُو ن. دنمل**
**سورت،۸۱- ۸۰، ایتونه**
په یقین سره ته نشې کولی مړه اوکاڼه چې له تامخ
اړوي،اوریدونکی کړې. اوړانده له ګمراهې نه
وژغورې. یواځې هغه کسان به اوریدونکي کړې چې
زما په ایتونو ایمان راوړي. اوپروردګار ته تسلیم شي.
**يَا ايهَا الذِينَ آمَنُواْ اسْتَجِيبُواْ لِلّهِ وَلِلرسُولِ اذَا دَعَاكُم لِمَا**
**يُحْيِيكُمْ وَاعْلَمُواْ ان الله يَحُولُ بَيْنَ الْمَرْءِ وَقَلْبِهِ وَانهُ الَيْهِ**
**تُحْشَرُونَ . دانفال**
**سورت،۲۴-ایت**

---

اې مؤمنانو**!**کله چې پروردګار اودهغه پیغمبرتاسې هغه څه ته چې دژوند مایه ده رابولي قبول ئې کړی.په یقین سره خدای دانسان اودهغه دزړه ترمنځ قرار لري.او[باالاخره]هغه ته ورتلونکی یاستې.
راتلونکې ایتونه هم همداوښائي چې دامتونو مرګ اودنووپیغمبرانو راتګ ،هغوې ته دنوي ژوندبخښلو لپاره ،هغه امر دی چې همیشنې اوتغیر نه منونکې دی:
**وَلِكُلِّ امةٍ رسُولٌ فَاذَا جَاء رَسُولُهُمْ قُضِيَ بَيْنَهُم بِالْقِسْطِ وَهُمْ لاَ يُظْلَمُونَ . وَيَقُولُونَ مَتَ هَذَا الْوَ عْدُ ان كُنتُمْ صَادِقِينَ قُل..لِكُلِّ امةٍ اجَلٌ اذَا جَاء اجَلُهُمْ فَلاَ يَسْتَاخِرُونَ سَاعَةً وَلاَ يَسْتَقْدِمُونَ .**

**دیونس سورت،۴۹- ۴۷،ایتونه**

۱۰۵ ۴فصل:درسول اکرم نه مخکې دپیغمبرانو دظهورپه باره کې دقران مجید ایتونه

دهرامت لپاره پیغمبر دی. کله چې دهغوې پیغمبر ظاهر شي ، دهغوې په منځ کې په عدالت حکم کوي. اودهغوې سره ظلم نه کیږي .خلکو وویل :که رښتیا وائي داوعده چې مونږ سره کوې څه وخت ظاهریږي؟ووایه...دهرامت لپاره خاص وخت ټاکل شوې کله چې دهغوې داجل وعده راورسي(دهغوې عمر پای ته رسي)نشي کولی حتی یو ساعت هغه مخکې یاوروسته کړي.

په پورتنې ایت کې څو مهم مطلبه ذکر شوي دي:

- دپروردګار رسم او شیوه داده چې هرامت ته پیغمبر استوي.
- دهرامت لپاره اجل اوټاکلی وخت تعین شوې دی

واضح ده چې دوه مخکیني نکتې یو دبلې سره اړیکي لري.دهرامت دورې پای ته رسیدل دنوي امت دپیل نښه ده اودنوي پیغمبر ظهور ، دمخکینې امت اوائین دختمیدو نښه ده .

دمخکینیو ایتونو پراساس، خلکو دپروردګار د«وعدې »دوخت دختمیدو پوښتنه وکړه. په ایت کې ذکر شوي نه دي. چې دپروردګار وعده څه وه، چې خلک دهغې دظهورلپاره کنجکاوؤ.ولې دځواب څخه کیدلی شي په پوښتنه پوه شي.هغه ځواب چې په ایت کې خلکو ته ورکړشوی دی،دهرامت دورې پای ته رسیدل دي.

چې دیوساعت لپاره هغه څوک مخکې اوروسته کولی نشي. پس معقوله ده، چې فرض کړو، دخلکو پوښتنه دپروردګار له طرفه داسلام دعمر پای ته رسیدلو اودنوي امت اونوي ائین دظهور په اړه وي .

**دعالم دغوښتنو غږ(دپروردګار دپیغمبر غږ)دزړه په غوږونو واورئ، چې ژوند دربخښې اودایمي ژوند درته ډالې کوي.۳ حضرت بهاءالله**

**اې بنده ګانو!هرچاچې له دې چینې اوبه وڅکلې «همیشنی ژوند ئې»په برخه شو،اوهرچاچې ونه څکلې په«مړو»کې حساب شو.۴**
**حضرت بهاءالله**

---

په تاکلې زمانه کې دامتونو مرګ او دهغوی ژوندي کیدل دپیغمبرانودظهورپه وخت کې په دوه فصله (۱۸او۲۴فصلونو) کې په تفصیل سره پرې بحث شوی دی.

## وسطي يامنځني امّت

دالاندې ايتونه دمسلمانانو محل،موقعيت اووخت دنورو امتونو په نسبت روښانه کوي:

**وَكَذَلِكَ جَعَلْنَاكُمْ امةً وَسَطًا لِّتَكُونُواْ شُهَدَاء عَلَى النَاسِ وَيَكُونَ الرسُولُ عَلَيْكُمْ شَهِيدًا .**

**دبقره سورة ۱۴۳-ايت**

په دې شان مې «اې مسلمانانو»ستاسې امت په منځ کې پيداکړ. ترڅو تاسې دمخکينو امتونو داعمالو شاهد شی. اودخدای پيغمبر«رسول اکرم» هم ستاسې دعملونو شاهد شي.

**وَلَقَدْ اهْلَكْنَا الْقُرُونَ مِن قَبْلِكُمْ لَما ظَلَمُواْ وَجَاءتْهُمْ رُسُلُهُم بِالْبَيِّنَاتِ وَمَا كَانُواْ لِيُؤْمِنُواْ**

**كَذَلِكَ نَجْزِي الْقَوْمَ الْمُجْرِمِينَ ثُم جَعَلْنَاكُمْ خَلاَفَ فِي الارْضِ مِن بَعْدِهِم لِنَنظُر كَيْفَ تَعْمَلُونَ.**

**دیونس سورت،۱۳- ۱۴،ایت**

**دفاطر سورت، ۳۹-ایت**

قرنونه اوپیړۍ مخکې له تاسې داسې مسلمانان قومونه ؤ. چې هغه مې نابود کړل، دهغوې پیغمبران په دلیل اوبرهان سره راغلل. اما هغوې ایمان ورباندې رانه وړ.داډول ګناهکارانو ته سزا ورکوم. وروسته مې تاسې مسلمانان دهغوې په ځای ودرولی ترڅو تاسې ته دروښایم اووګورم چې تاسې څه کارکوی.
ښکاره ده چې مخکینې ایتونه مسلمانانو ته خطاب دی. دبقری په سورت کې مسلمانان د «منځنې»اُمّت په نامه نومول شوي اود «منځني توب»نه مقصد دادی چې مسلمانان کولې شي دمخکنیو امتونو شاهدان اوسی. **(لِّتَكُونُواْ شُهَدَاء عَلَ□ الناسِ)**اووګوری. چې هغو څه کړي دي؟کوم ډول رفتار ته مایل ؤ ؟ کومې اشتباه ګانې کړې دي؟ولې دخپلوپیغمبرانو دمنلو نه انکار وکړ. اودهغو برخلیک څه ؤ ؟ اووروسته فرمائي چې دخدای رسول به هم ستاسې درفتار شاهدوي.« **وَيَكُونَ الرسُولُ عَلَيْكُمْ شَهِيدًا**»ددې ایت لمړی مطلب په نور ایتونو کې په کراتو سره تکرار شوې دی.

له مسلمانانو غوښتل شوي دي. چې دمخکنيو برخليک ته نظرواچوي. اودهغوې څخه دعبرت درس واخلي.

۱۰۷ ۴فصل:درسول اکرم نه مخکې دپيغمبرانو دظهورپه باره کې دقران مجيد ايتونه

---

---

ديونس په سورت کې پروردګار بيا دمسلمانانو يادونه کوي، چې خلکو هميشه دخپلوپيغمبرانو نه انکار کړی دی.( **وَجَاءتْهُمْ رُسُلُهُم بِالْبَيِّنَاتِ وَمَا كَانُواْ لِيُؤْمِنُواْ).**وروسته ددې تاريخي مطلب له يادولو ، خدای فرمائي چې زه تاسې دهغوې پرځای ودروم **(ثُم جَعَلْنَاكُمْ خَلاَفَ فِي الارْضِ)**ترڅو وګورم چې تاسې څه کوی**(لِنَنظُرَ كَيْفَ تَعْمَلُونَ)**،او تاسې هم ازمايش کړم، اووګورم. هغه پيغمبر چې وروسته درسول اکرم څخه ظاهريږي انکار کوې؟

په پورتينودواړو مراجعو کې هم په سورت يونس اوهم

په سورت بقره کې، مسلمانانو ته اخطار ورکړی شوی دی. چې اې مسلمانانو: تاسې دخپل ځان نه راضي اومه مغروره کيږئ .دپروردګار ازمايش ختم شوې نه دی .تاسې به هم دتيرو امتونو په شان دهغو پرځای ودريږی .پس کوښښ وکړئ . ترڅو دهغو درفتار او برخليک نه عبرت واخلئ اونوی پيغمبر څخه انکار ونه کړې اوپوه شی، چې پروردګار ستاسې دچلند شاهد دی.

**انا ارْسَلْنَا الَيْكُمْ رَسُولًا شَاهِدًا عَلَيْكُمْ .**

**دمزمل سورت،١٥-ايت**

ماتاسې ته رسول درليږلی دی. چې ستاسې دعملونو شاهد دی.

داسلام تاريخي اوزماني موقعيت

منځنې امّت

مسلمانان بايد دنورو شاهدان اوسي

اودهغودبرخليک نه عبرت واخلي

رسول اکرم به هم دمسلمانانو شاهدوي

چې آيا دنورو دبرخليک نه عبرت اخلي

مخکيني امتونه

اسلام

قران اوبهاءالله

۱۰۸

**جَعَلْنَاكُمْ امةً وَسَطًا**

تاسې مې په وسط يعنى منځ کې

ودرولى(ستاسې ځاى په منځ کې دى)

**جَعَلْنَاكُمْ خَلاَّئَفَ فِي الارْضِ**
**تاسې مې دمځکنيو پرځاى کې درولي**

**ياستى** لکه څنګه

چې مود«خاتم» دکلمې دمعنى لپاره دلغتونو کتاب ته مراجعه وکړه د«وسط يامنځنى»کلمې دمعنى لپاره هم مناسبه ده چې دلغتونو کتاب ته مراجعه وکړود«وسط» دکلمې معنى دمعين فرهنګ پراساس:

۱.يوشى چې په منځ کې واقع شوى وي(که دواړه خوائي مساوي وي اوياهم غيرى مساوي وي).

۲. منځ ،منځني(مرکز).

۳. هغه شى چې نه ښه وى اونه بد .

۴.يوشى چې نه کم وي اونه زياد.

۵. يوشى چې نه اوږد اونه لنډ.

۶.هغه چې نه چاغ اونه هم لاغر(خوار).

**دفرهنګ بزرګ سخن يا د لويو خبرو دفرهنګ په اساس:**

۱.هغه ځاى چې فاصلې ئې له اطرافو تقريباً مساوي وي.

۲. هغه زمانه چې له دوه زمانو نه په تقريبي توګه مساوي وي.

۳. يوجنس چې په دوهمه درجه کې وي متوسط وي.

۴.نه ښه وي اونه هم بدوي.
داسلام ډيروعلماو دوسط دکلمې داصلي اومنځنې معنا دمنلو په ځای ، مجازي اوغيرى مستعمله معنى رااخيستې ده ، اودخپلو تمايلاتو اوتصوراتو ساختمان چې ظاهراً محکم اوپه باطن کې سست اوبې اعتباره کړی دی . دې علماو ويلي دي چې د«وسط» دکلمې معنا «منځنی والی» يعنې ميانه روي ده.

۱۰۹ ۴فصل:درسول اکرم نه مخکې پيغمبرانو دظهور په باره کې دقران مجيد ايتونه

---

دپروردګار دوينا منظور دادی چې مسلمانان «متعادل»ملت ؤاووي به .نه ښي طرف ته اونه هم چپ طرف ته تمايل لري،نه هم په افراط بوخت دي اونه هم په تفريط .ځنې نورئې په دې ګومان دي. چې د«وسط اومنځني»نه مقصد دمسلمانانوجغرافيائي

موقعيت دی. چې په پخواني نړۍ کې دنوروملتونو په وسط اومنځ کې اوسيدل . يوې بلې ډلې ويلي دي. چې وسط والی يعنی عادل والی ،څنګه چې عادل څوک نه دظالم طرف ته وي اونه دمظلوم طرف نيسي.په دې ډول تفسيرونه دمختلفو مشکلاتو سره مخامخ دي

دهغې جملې نه :

نه هم دقران دمبارکو ايتونو دبحث موضوع په باره

- کې موافق دي.
- نه داسلام دځنې احکامو سره.
- نه زمونږ دزمانې ډيرو مسلمانانو داخلاقو اوچلند سره
- نه دمخکنيومسلمانانو داخلاقو اورفتاسره
- اونه د«وسط» دکلمې داصلي معنا سره

په هغه ډول چې د«خاتَم» دکلمې دقراني ژباړې څو نمونې مقايسه کړئ ،مناسبه ده. چې په دې باره کې هم څو ژباړې مقايسه کړو.

**دې ډلې ژباړونکو**

**د«وسط»دکلمې**

**اصلي اوتحت ا للفظي معنا وې**

**غوره کړي دي.**

| رادوِل | Thus we have made you a |
|---|---|

| | |
|---|---|
| | central people |
| آربری | Thus we appointed you a midmost nation |
| محمدپیک تال | Thus We have appointed you a middle nation |

Geographically, Arabia is in an intermediate position in the Old World, as was
proved in history by the rapid expansion of Islám, north, south, west, and east.
Yúsuf ‘Alí, ‘Abdullah, The Meaning of the Holy Qur’án , p. 58.

| | |
|---|---|
| **دمنځنۍ امت فارسي ژباړه** | **محمد کاظم معزی** |

**دې ډلې ژباړونکو د«وسط»دکلمې مجازي معنا ته رجوع کړې ده.**

| | |
|---|---|
| a temperate متعادل people | **احمد** |
| a medium میانه رو nation | **شکیر** |
| a community of the میانه رو middle way | **محمد اسد** |
| متعادل اوعادل justly balanced | **یوسفعلی** |
| بې impartial طرفه | **رشاد خلیف** |
| a just عادل community | **داود** |
| (فارسي ترجمه)په نیکو اومعتدلو اخلاقوسینګارشوی. | **قمشه ئی** |

**ځنې نورو ژباړونکو،دوسط دکلمې لپاره**

# نوې معناجوړه کړې دهغوجملې ژباړونکوڅخه

| محمدظفرالله خان | بلندپایه an exalted people |
| --- | --- |

د«جَعَلْنَاكُمْ ا مَّةً وَسَطًا»ایت هغه وخت نازل شو. چې رسول اکرم قبلې ته تغیر ورکړ.دهغه حضرت دیوې ډلې پیروانو لپاره قبلې ته بدلون ډیر سخت کارو.اودا ددې سبب شو چې داسلام نه مخ واړوي . دقبلې تغیر یوازمایش ؤدهغه وخت سست ایمانه مسلمانانو لپاره ، دهغه چادپاره چې خپله اراده ئې دپروردګار په اراده لوړه ګڼله .دغه خلک دخپل پیغمبر دچلند سره په مخالفت کې په شک اوشبه کې ولویدل، اوباالاخره دایمان قیمتي جواهرئې له لاسه ورکړل.

---

---

د«منځنې امّت»کيدل هم يوازمايښ دی. زمونږ دزمان مسلمانانو لپاره ډير مسلمانان د«وسط امت کيدلو»سره مخالف دي .ددوې لپاره افتخار په«اخر کيدلو»کې دی:آيا زمونږ دعصر مسلمانان هم دمخکنيو په شان خپله اراده دخدای له ارادې لوړه ګڼي؟
آيا دامسلمانان کوښښ کوي. چې دخدای دارادې دمنلو پرځای دقران کلمات دخپل مقصد نه وباسي ترڅو ددوې دميل مطابق مطلب ترلاسه شي؟
اوس وګورو چې دازمايښ نه هدف څه شی دی؟
ازمايش ددې لپاره چې متفکر اودورانديش خلک دمقلدواو کوتاه بينو خلکو نه جداشي.په هرعصراوزمان کې دپيشوايانو تصورمختلف وي . هرپيشوا خپل حکمونه، اوهردفقې والا خپلې ادعاګانې لري.دنورو تکليف په دې ګيرو دار کې څه شی دی؟لکه څنګه چې مخکې وويل شو ، هوښيار مسلمان هغه څوک دی. چې مختلفي خبرې واوري. اودهغو څخه ښې خبرې وټاکي.داکتاب دداسې مسلمانانو لپاره

دی .دهغه هدف دپیام اظهار اواثبات دی.چې داسلام ډیرپیشوایان او علماابداً په هغه راضي نه دي اونه به وي. ددې پیشوایانو یوې ډلې مخالفت ددې پیام دخپریدو سره په داسې یوحد کې دی. چې دهغه ډیر طرفداران ئې په بندکې اچولي دي.اوحتی دهغوپه وژنه ئې ناراستي نه ده کړی.آیا ستاسې پوهاوی دمختلفو افکارو دګمراهی په سبب دی؟آیا دبهائي ائین له پیژندنې تاسې ته اویاهربل کوم مسلمان ته تاوان رسیږي؟

هغه څوک چې د«وسط» معنی عدالت اومیانه روي ګڼي ، باید دې پوښتنو ته ځواب ورکړي:

- په اخروکلنو کې یواځې دعراق په هیواد کې ،دپنځوس زره نه زیات بې ګناه مسلمانان ښځې ،ماشومان اونارینه دمسلمانانوپه لاس ووژل شول ،آیا دادمیانه روې اوعدالت نښانه ده؟

• په لس هاوزره بې ګناه مسلمانان ،په افغانستان ،پاکستان ،ليبيا،مصر ،لبنان سوريه کې دمسلمانانو په لاس ووژل شو اوژل کيږي.آيا ديومعتدل اوميانه رو امت نه داسې يوانتظار کيدلی شي؟

• آيا په ځنې اسلامي هيوادونو کې دفقر زياتوالی اوپه ځنې نورو اسلامي هيوادونو کې دثروت زياتوالی دعدالت اواعتدال نښانه ده؟

• آيا دښځو اوانجونو سره ظلم په ډيرو اسلامي هيوادونو کې په ځانګړي توګه په دې اواخرو کې دافغانستان په هيواد کې داعتدال اوعدالت نښانه ده؟

• دعراق اوايران په جنګ کې په سلهاوزره خلک مړه شول اوډيرئې زخميان اوبې کوره شو. آيا دادميانه روې اودعدالت نښانه ده؟

• آيا دسنيانو اوشيعه ګانوترمنځ جنګونه اودښمنې په تيرو پيړيو کې داعتدال اوعدالت نښه ده؟

• آياد يوآئين پيروان چې دخپل آئين ټول امامان وژنې يوعادل امت دی؟

• آيا په ډيرو اسلامي هيوادونو کې دبيان اوفکر دازادې دحق سره دښمنې داعتدال اوعدالت نښه ده؟
• آيا په ايران کې په لس هاوزره خلکواعدامول ، اوشکنجې دميانه روې نښې دي؟
• آيا دشلوزرو(۲۰۰۰۰) نه دزياتو مؤمنانو وژنه ددې آئين اړوند په ايران کې اوپه سلهاو زره نورئې په دغه هيواد کې قلع وقمع کول دميانه روامت دعدالت نښانې دي؟

• آیا په سوډان کې دمسیحیانو وژنه اودیوملیون نه دزیاتو ارمنیانو وژل دترکې دعثماني دورې دپادشاهانو په وخت کې چې دخلافت دعوه ئې لرله دعدالت نښانې دي؟

• آیا درسول اکرم پرځای دخلیف دټاکنې په سر دمسلمانانو ترمنځ مخالفتونه اودښمنې د عدالت او میانه روې نښه ده؟

## دپروردگار دخبرو اړول

دپروردگار دکلام دمعنا تحریفول یااړول چې دخلکو دمیل مخالف دي ، نویوالی اوتازه والی نه لري .

**یَا اهْلَ الْكِتَابِ لِمَ تَلْبِسُونَ الْحَق بِالْبَاطِلِ وَتَكْتُمُونَ الْحَق وَانتُمْ تَعْلَمُونَ.**

**سورت ال عمران ، ۷۱-ایت**

اې دکتاب خاوندانو**!**ولې حقیقت ته دباطل جامې اغوندی تاسې اګاهانه حقیقت پټوی.

**ان الذِينَ يَكْتُمُونَ مَا انزَلْنَا مِنَ الْبَيّنَاتِ وَالْهُدَى مِن بَعْدِ مَا بَيناهُ لِلناسِ فِي الْكِتَابِ اولَئكَ يَلعَنُهُمُ اللهُ وَيَلْعَنُهُمُ**

**اللاعِنُونَ.                    دبقری**

**سورت،۱۵۹- ۱۶۰ ،ایتونه**

کوم هدایت اودلایل مې چې نازل کړي اوخلکو ته مې په کتاب کې وړاندې کړي دي اوڅوک هغه بدل کړي دخدای دلعنت سره مخامخ کيږي.

هغه علما اوفقهاچې د«خاتَم» کلمه د«اخرين» په معنا او د«وسط» کلمه د«عادل اوميانه رو»په معنا تغير اوبدله کړي . ددې په ځای چې خپل فکر دقران سره تطبيق کړي . کوښښ کوي چې قران دخپل فکر سره تطبيق کړي .داسې مفسرينو ته خطاب دی چې مهربانه خدای فرمائي.

**يُحَرِّفُونَ الْكَلِمَ عَن موَاضِعِهِ.**

**دنساء سورت،۴۶-ايت**

۱.**ترجمه:**دپروردګار دکلام معنی ته تغير ورکوي.

۲.**ترجمه:**دپروردګار کلام دخپل ځای نه بدلوي.

ځنګه ممکنه ده ؟ دپروردګار کلام ته دخپل ځای نه تغير ورکړي؟ فرض کړی چې دکوټې په ديوال کې کړکۍ ده. چې بې له هغې په کوټه کې مطلق تورتم وي.تصوروکړئ چې يو څوک دې کړکۍ ته پرده اچوي .داتورتم محيط ده ته حق ورکوي چې هرڅه دده زړه وي ترسره کړي. په ټولو زمانو کې داديانو علماو اوپيشوايانو کوښښ کړی دی چې دخدای نور دخلکو نه پټ وساتي اودخلکو دناپوهې نه غټه ګټه پورته کړي. دمسيح ائين پيشوايان په نظر کې ونيسی . په همغه ډول ئې چې يادونه وشوه ، هغه تنګ نظرانو تر ننه پورې دهغه يو ايت په اساس چې وائي« په غير له مانه[مسيح]به بل هيڅوک پلار ته لاره پيدانه کړي»(ديوحنا انجيل ،۱۳فصل،۶-ايت)مسيحيان ئې داسلام نه لرې وساتل اوساتي ئې ،په دې ټولو پيړيو کې ددوې دموفقيت راز څه شی ؤ؟ دحضرت مسيح دخبرو يواځې د يو ايت غلط تفسير اوتحريف ؤ.
ددې کلماتو«په غير له مانه» معنا مطابقت لري«په غير دخدای دنور»سره خلک به هيڅوک په غير دهغه

دنور نه خدای ته لاره پیدانه کړي .حضرت مسیح په
خپل وخت کې ددې نورائینه وه ، وروسته له هغه
حضرت محمد ددې نورائینه شوه اوزمونږ په عصر
کې بهاء ددې نور ائینه ده .ائینه پخپله «گوینده»
اوخبرې کوونکې نه ده .دخدای نور«گوینده» دی
،چې په هر عصر کې په یوه نوې ائینه کې راښکاره
کیږي.
**راغی هغه څوک چې باقی ؤ ترڅو ژوند**
**وبخښي...اودژوندون مایه بخشش کړی.۵**

**حضرت بهاءالله**
**بهاءالله اې دځمکې خلکو! دپروردګار اواز دځمکې**
**اواسمانونو په منځ کې پورته شو. خواشیني**
**اومړاوي خلک دغفلت په قبرونو اوځړموني کې پراته**
**دي.۶ حضرت بهاءالله**
**خوښ اونیکمرغه دي هغه څوک چې دپروردګار په**
**قدرت ئې دخیالونو بوتان مات کړل اودخپل رب اواز**
**ئې واورید اودمړودمنځ نه راپورته شول.۷**
**حضرت بهاءالله**

---

**اې دپروردګار دوستانو!دبې نیازه خدای اواز دزړه په غوږونو واورئ، ترڅو تاسې دتورتم نه خلاص کړي اوتل پاتې روښنائي ته ورسېږئ.**۸ **حضرت بهاءالله**

درسول اکرم نه وروسته دپیغمبرانو دظهور وعده په ټول قران کې پټه اوښکاره ده. راتلونکی فصل، او۲۵فصل به ددې کتاب په پای کې ډیر له دې ایتونو څخه وړاندې کړي.



## درسول اکرم نه وروسته پيغمبرانو دظهور
## په باره کې دقران مجيد ايتونه

**دوهمه برخه:** درسول اکرم نه وروسته پيغمبرانو دظهور په باره کې دقران ايتونو بررسي دډير اهميت وړ ده:

- درسول اکرم په ظهور سره دوحې دعصر

دختميدلو عقيده يواځې زمونږ دزمان دموعوده پورې ئې قبلول اويا ردول اړه نه لري. داعقيده يوخيالي خنډ دی. کوم چې دمسلمانو پيشوايانو لخوا جوړ شوی دی. اودراتلونکو ټولو پيغمبرانو دلارې په سرپروت دی.

---

• دوخت په تيريدو سره دې عقيدې دمؤمنانو په روح اوزړونو کې ژورې ريښي زغلولي دي .ترهغه حده پورې چې هغه منلى حقيقت ګڼي اودداسې يوائين پيروي چې دخداى اخرين پيام دى دخپل ځان لپاره افتخار ګڼي.دداسې يوې ژورې عقيدې اوددارنګه لوى افتخار دلاسه ورکول اسانه کاردى.

• دوحې ددوران په پاى ته رسيدلو عقيده دپروردګار له طرفه ،يولوى زندان دى چې دعامو خلکوپه روح

کې تسلط پیداکړی دی. دفکرکولو اوکنجکاوې حس ئې په هغوې کې بیخي له منځه وړی دی.که یوپیغمبر دقران سل برابره ایتونه په پوره فصاحت اوبلاغت سره وړاندې کړي ، دوحې ددوران دختمیدو عقیده من په غیر دانکار اوحتی داذیت اوازارنه دهغه سره بل کارنه لري.

ددې برخې هدف دادی. چې ټول هغه اسرار اوابزار څرګند کړي. چې ماهرو طراحانو اومهندسانوپه تیروزمانو اوپیړیو کې ددې لوی زندان په جوړولو کې ورڅخه کار اخیستی دي.

## "ا ما یَاتِیَنکُمْ" یعنی څه؟

## داعراف سورت،۳۵-ایت طه سورت،۱۲۳-ایت

دابحث دقران دترټولو مهم ایت دترجمې په اړه دی .دهغه ایت ترجمه دمسلمانانو دانشمندانو اوعلماو لخوا داسې وښایی چې په څه ډول دمؤمنانو دنیکونو افکاراوعقاید ددې سبب شول چې الهي ایتونه دخپلو تصوراتو سره تطبیق کړي.داکار نوی نه دی.دقران ډیر ایتونه داسلام نه مخکې ادیانو پیروانو ته دخطاب په باره کې پیداکولی شي.

هغه ایتونه چې درسول اکرم نه وروسته دپیغمبرانو دظهور خبرورکوي.ډیر دي .ځینې دهغو ددې کتاب په څو تیرو فصلونو کې وړاندې شو . خدای په خاصه توګه دهغو ایتونو څخه په یو ایت کې هغه وعده  ددې دوه کلمو په ترکیب سره بیانوي.

- **اِمَّا:اګر،چون ،هرکله**
- **یأَتِیَنَّکُمْ**:البته(په یقین سره ،بې له شکه)تاسې لپاره راشي.

**دامَّا يأتِيَنَّكُمْ** ترکيب په قران مجيد کې دوه ځلې راغلی دی .يو ځل دحضرت ادم په ژبه ،او بل ځل دحضرت محمد په ژبه . په دواړو مرحلو کې ،خدای دخپلو بنده ګانو سره وعده کوي .چې دپيغمبرانو ظهور به دخدای له طرفه ادامه ولري.دقران ژباړونکو لخوا ددې دوو کلمو دترجمې مقايسه زده کوونکې ده. دترجمو دمقايسې نه مخکې لازمه ده. هغه ايتونه دهغو دترجمې سره وګورو.

| |
|---|
| **دپروردګاروعده<br>دحضرت ادم په ژبه** |
| **فَاما يَاتِيَنكُم مِّنِّي هُدًى فَمَن اتبَعَ هُدَايَ فَلَا يَضِل وَلَا يَشْقَ□ .         دطه سورت،۱۲۳-ايت**<br>په يقين سره به تاسې ته زما هدايت راځي اوهرڅوک چې زما له هدايت نه پيروي وکړي نه هغه ګمراه دی، اونه ئې هم بخت تياره دی. |

| |
|---|
| **دپروردګار وعده<br>دحضرت محمد په ژبه** |
| **يَا بَنِي آدَمَ اما يَاتِيَنكُمْ رُسُلٌ مِّنكُمْ يَقُصونَ عَلَيْكُمْ آيَاتِي.<br>داعراف سورت،۳۵-ايت**<br>اې دادم زامنو:په يقين سره به ستاسې له منځه پيغمبران راشي اوزما ايتونه به تاسې ته ووائي... |

دقران ژباړوونکي به وګورو ،چې د«**اِمَّا يَأتِيَنَّكُمْ**»ترکيب ددې دوه وعدو په اړه څنګه ترجمه کوي:

| |
|---|
| **دحضرت آدم په ژبه** <br> داِمَّايَأتِيَنَّكُمْ |
| دمحمد اسد ترجمه: <br> There shall most certainly come unto you... |

| |
|---|
| په یقین سره به زما هدایت تاسې ته راشي.... |
| **دامَّا یَأْ تِیَنّکُمْ ترجمه درسول اکرم په ژبه** |
| **دمحمد اسدترجمه:** **Whenever there comes unto you...** هروخت چې تاسې لپاره راشي. |

| |
|---|
| **دامَّایَاْتِیَنّکُمْ ترجمه(ژباره۹ دحضرت ادم له ژبې نه** |
| **دمولامحمد علی ژباړه** There will surely come to you... **په یقین سره به تاسې ته راشي...** |
| **دامَّایَاْتِیَنّکُمْ ترجمه درسول اکرم دژبې نه** |
| **دمولانا محمد علی ژباړه** If Messengers come to you... **که تاسې ته پیغمبران راشي...** |

## مسلمانومفسرینو

## اوژباړونکودقرآن

## آیتونومعناته

## داغیزامیدونه

مخکېنیو نمونو وښوده چې دقران ژباړونکي د«**اِمَّا یَأْتِیَنَّکُمْ**»کلمه یوشان نه ترجمه کوي.دخدای وعدې ته په اشارې سره دحضرت ادم په ژبه د«یقین»کلمه کاروي .اوهمغې وعدې ته په اشارې سره درسول اکرم په ژبه د«یقین» دکلمې په ځای د«هرکله»کلمه راوړي. ښکاره ده هغه وعده چې دحضرت ادم په ژبه بیان

شوی ، دمسلمانانو لپاره دقبول وړده. داسلام دپیغمبر ظهور پخپله دهغې وعدې دتحقق نښانه ده اما کله چې مسلمانان دخدای وعدې په اساس رسول اکرم ته رسي ،دیولوی مشکل سره مخامخ کیږي:درسول اکرم نه وروسته پیغمبرانو ظهور دهغوې دنیکونو دعقیدې سره مخالف دی.دقران ژباړوونکو دخدای دوعدې په ترجمه کې درسول اکرم نه وروسته خپله دنده ګڼي چې دخپلو نیکونو عقیدې سمې وګڼي . هغوې په څه ډول دهغې وعدې معنی دخپلو عقیدو سره برابروي؟هغوې په څه ډول دهغې وعدې معنی دخپلو عقیدو سره برابروي؟هغوې د«**یقیناً**»یا«البته»کلمې په ځای د«اګر»«چون»اویا «هرکله»کلمه استعمالوي .ددې کلمو ترمنځ تفاوت ډیر دی . وګوری دا دوه جملې«په یقین سره به پیغمبران راځي»«که پیغمبران راشي»د«اګر»یعنی «که»کلمه دویونکو توجه ځان ته نه اړوي.ډیر کم کسان د«اګر»یا«چون»یعنی د«که»کلمې ته اهمیت ورکوي.ددې ډول کلمو استعمال لکه «اګر»«چون»او«هرکله» ژباړونکي دحتمیت معنی له مبارکو ایتونو نه لرې کوي.څنګه ممکنه ده، چې حضرت محمد آخر پیغمبروي. په داسې حال کې چې خدای دجهان خلکو ته په تاکید سره

وعده ورکوي. چې وروسته دهغه دنورو پيغمبرانو راتګ حتمي دی.؟
دوه ژباړې چې ذکر شوې ،استثنا نه دي .مناسبه ده چې درې نورې نمونې ددې ژباړو څخه له نظره تېرې کړو :

قران اوبهاءالله

داسدالرحمن اوعبدالمنان

ژباړې:

دحضرت ادم له ژبې وعده:

There will surely come to you.

په يقين سره به تاسې ته راشي

دحضرت محمد له ژبې وعده:

Whenever there comes to you...

اوکله چې تاسې ته راشي...

ديوسفعلی ژباړه:

دحضرت ادم له ژبې وعده:

If, as is sure, there comes to you Guidance from Me.

که زما هدايت راشي،په يقين سره به راشي.

دحضرت محمدله ژبې وعده:

Whenever there comes to you

Messengers...

هرکله چې پیغمبران تاسې ته راشي...

دیوسفعلي ترجمه د«یقین»سره د«اګر»دکلمې یوځای کول دقیق دی.وبه ګورو چې ولې؟دحضرت ادم اورسول اکرم سره دخدای په وعده کې یوه ادبي اودقیقه نکته سنجول شوې ده. چې توضیح ته ضرورت لري .هغه «نکته»د«**اِمَّایَأَ تِیَنَّکُمْ** »ددوه کلمو دغیرمروج ترکیب پورې مربوطه ده:

- «**اِمَّا**»هرکله...

---

---

- «**يَأۡتِيَنَّـكُمۡ**»البته تاسې ته به راشي(مضارع موکد فعل).

ښکاره ده چې پورته دوه مروجې کلمې نه دي.کله چې يوه بله خنثی کوي.د«**اِمَّا**»کلمه دامرممکن والی ته اشاره ده .اود«**يَأۡتِيَنَّـكُمۡ**»کلمه حتمي والی ته اشاره ده.مروجې نه دی چې ووايو:«که حتماً ستاسې کورته راځي»«اِمَّا»هغه وخت استعمالوو چې زمونږ مقصدوعده وي:«حتماً» به ستاسې کورته

راشم»معقوله نه ده چې یوواقعه دې په عین حال کې هم «مشروط»وي او هم قطعی.
یوسفعلی دخدای وعده حضرت ادم ته سمه ترجمه کوي.په دې خاص ترکیب کې ،«په یقین سره راځي» د«اګر»دکلمې ځواب دی. په دې مبارک ایت کې د«**يَأَتِيَنَّكُمْ**»کلمه(دمضارع فعل دثقیله تاکید نون سره)په ډیر تاکید سره د«اګر»دکلمې ځواب راکوي.«په یقین سره راځي»حذفول د«اګر»کلمه بې ځوابه پریږدی.
له دې وړاندې،د«اِمَّا»دکلمې په استمعال کې تأمل معما په یواځې توګه حل کوي. مونږ پوهیږو چې دبشرپه کار کې شک اوتردیدوي. چې د«اګر»په کلمې سره ئې اظهار کیږي .آیا دخدای په کار کې هم«اګر»وي.د«اګر»دکلمې استعمال هلته معقول دي. چیرته چې دخلکو ترمنځ خبره وي .مثلاً کیدلی شي ووایو:«که»خلک دخدای پیغمبرونه مني،دهغوې برخلیک په خطر کې دی.خود«اګر»(که)استعمال په داسې ځای کې لکه خلکو ته دهدایت لپاره دپیغمبرانو استول ،چې یواځې دخدای پورې اړه لري.معقول کار نه دی.دپیغمبرانو استول یواځې دالهي حکم اوحکمت باندې متکي دي.نه ده بنده ګانو دمیل اوارادې سره ،په همدې سبب ځنې بې طرفه ترجمه کوونکو

د«اگر»«که»کلمه په ترجمه کې نه ده راوړې .له هغو جملې نه رادول(Rodwell):



---

O children of Adam! There shall come to you Apostles (Messengers)

from among yourselves...

اې دادم زامنو!تاسې ته به ستاسې له منځه پیغمبران راشي...

پروردګار په دوه خاصو کلمو دخپلو امتونو سره چې دحضرت ادم نه وروسته ئې ژوند کول دخپل پیغمبرانو په لیږلو سره لکه رسول اکرم خپله وعده ئې ترسره کړه،آیا معقوله ده. تصور وکړو. چې دهغو کلمو «معنا **اِمَّايَاْتِيَنَّكُمْ**»دهمغې وعدې ته په اشارې سره وروسته درسول اکرم دظهورنه په ناڅاپي توګه تغیر پیداکړي؟

## ددین د«تجدید»یعنې نوي والی اړتیا

په هرعصر اوزمان کې پروردګار زمونږ داستعدادونو اونیازمندیوپراساس خبرې کوي.

**ووایه!اې خلکو:خبرې په اندازه ویل کیږي(ترڅونوي رسیدلي پاتي شی او نورستګان ورسي.شیدې په هغه اندازه ورکړل شي. ترڅو دجهان کودکان لوی جهان ته داخل شي اودپروردګار په دربار کې ځای ونیسي.۱ حضرت بهاءالله**

دقران ایتونه یودبل معنی روښانه کوي په هره اندازه چې هغه اسماني کتاب ډیر وڅیړو دپروردګار ټوله نقشه زمونږ لپاره ډیره رڼا کیږي.لاندې مبارک ایت

مونږ ته راښائي چې ولې دنووپیغمبرانو ظهور ته ضرورت دی:
**وَلَقَدْ ارْسَلْنَا رُسُلاً مِّن قَبْلِكَ... لِكُلِّ اجَلٍ كِتَابٌ يمْحُو اللهُ مَا يشَاء وَ يثْبِتُ وَعِندَهُ أُمُّ الْكِتَابِ .**

**درعد سورت،۳۸- ۳۹،ایتونه**
البته مخکې له تامې پیغمبران لیږلي دي...دهرعصر اوزمان لپاره کتاب دی.خدای چې وغواړي هرحکم اویاقانون ته تغیرورکوي اویائي ثابت ساتي دکتابونو سرچینه دهغه سره ده.
مخکیني ایتونه دنورو ایتونو تائید کوي که دهرامت لپاره پیغمبر اوخاص عصر ټاکل شوی دی.لازمه ده. چې ددې عصر وخت به هم پای ته رسي.اونوې عصر به رارسیږي.

دپروردګار له طرفه به ورته نوی کتاب هم ولیږل شي دمخکې ایت دوهمه برخه دلمړې برخې توضیح ده. نوي کتاب نازلیدل یودلیل دی. دمخکنیو احکامو اوقوانینودتغیر لپاره اوکه نه نو نوي کتاب اونوي پیغمبر ته څه ضرورت دی؟اسماني معلّم له کوم سره چې دکتابونو سرچینه ده ،هرڅه چې لازم وګڼې ثابت به ئې وساتي اوهرڅه چې غیر لازم وګڼي ،تغیر به ورکړي.داامر دعقل اوحکمت سره په پوره توګه موافق دی.که هیڅ یوه بله مرجع په قران کې دبحث وړ مطلب په باره کې نه پیداکیدلی،مخکینی ایت په تنهائي سره دحقیقت دکشف لپاره کافي ؤ ،لکه په دې ایت کې:

۱

په شروع کې دمخکېنیو پیغمبرانو ذکر شوی دی. چې تیر رسم اوشیوه معلومه شي:
**"لَقَدْ ارْسَلْنَا رُسُلاً مِّن قَبْلِكَ»**البته له تامخکې مې پیغمبران لیږلي دي.

۲

وروسته په روښانه کلماتو،دپروردګار تول رسم اوشیوه بیان شوې ده.ځکه چې د«کل»«اجل»او«کتاب»دکلماتو هره یوه مشخصه معنا لري د«کُل»توله کلمه په دې دلالت کوي چې په کار کې استثنا نشته.د«اجل»کلمه په دې دلالت کوي چې زمان محدوددي،نه غیرمحدود .او«کتاب»هم اسماني کتاب دی: «**لِكُلّ اُجَلِ كِتاَبٌ**»دهرعصر اوزمان لپاره کتاب دی.

# ۳

دلته دالهي قدرت مسئله مطرح شوې ده.خداى دهراسماني کتاب احکام اوتعليمات دخپلې ارادې په اساس ورته تغيرورکوي، اويائي ثابت ساتي .ځکه چې هغه دټولواسماني کتابونومنشاء ده. او ټول دهغه نه سرچينه اخلي:«" **يمْحُو اللهُ مَا يشَاء وَ يثْبِتُ» «خداى چې هرڅه وغواړي ورته تغير ورکوي اويائي ثابت ساتي»** ايا کيدلى شي يومطلب له دې روښانه بيان شي؟

په الهي ايتونو برسيره تاريخي اوتجروبوي دلايل هم دا تائيدوي. چې دهرائين عصر پاى ته رسي. اونوي ائين ظهور کوي.داسلام پيغمبردقران داحکاموځنې برخې دخپل۲۳کلن رسالت په موده کې تغيرکړلې:
**مَا نَنسَخْ مِنْ آيةٍ... نَاتِ بِخَيرٍ مِّنْهَا اوْ مِثْلِهَا.**
**دبقره سورت،۱۰۶-ايت**
مونږ هيڅ کوم ايت ته تغير نه ورکوو بلکه هغه وخت کله چې دهغه په ځيراويا دهغه نه ښه نازل کړو.پس

ښنګه ده. چې دقران قوانین دې دنورو سلهاو،او زرهاو میلونو کلونو کې ددې جهان لپاره کفایت وکړي. اوتغیر ته دې ضرورت نه وي؟
اسلامي هیوادونه حتی زمونږ په عصر کې دټولو قراني قوانینو په اجرا کولو قادر نه دي. دپروردګار همیشنې رسم اوطریقه دجهان مختلفو امتونو ته دپیغمبرانو لیږل ؤ . ولې په ناڅاپه توګه په یوه خاصه زمانه کې اوپه یو خاص پیغمبرسره دارسم اوطریقه خاتمه پیداکوي؟
**لَن تَجِدَ لِسُنَةِ اللهِ تَبْدِ یلًا.**
**دفتح سورت،۲۳-ایت**

**همدارنګه داحزاب سورت،۶۲-ایت**
دخدای په روند اوطریقه کې به هیڅکله تغیر پیدانه کړی.
حضرت عبدالبهاء څو ځلې دامطلب توضیح کړی دی:

---

مخکېنی تغیر داسلام دپیغمبر په دوران اوژوندکې ددې ډول تغیر ښخه دی.

الهي اديان د ادم نه ترننه پورې يوپربل پسې ظاهر شوي دي.خلک ئې ژوندي کړي دي ،روزلی ئې دي .رڼائي وربخښلې ده ترڅودعالم طبعيت دتياروڅخه خلاصون پيداکړ او دالهي سلطنت نورانيت ته ورسيدل ،هردين اوهرشريعت چې ظاهرشوی ،دعالم انساني نيکمرغې اوسعادت لپاره دڅوپيړيو په تيريدو سره کافي ؤ اودميوي ډکه ونه وه. اووروسته د پيړيو پيړيو په تيريدو سره هغه ونه زړه اوپخوانې شوه بې ميوي شوه، له دې کبله ئې بيرته تجديد اونوی والی پيداکړ.الهي دين يودی ولې ئې نويووالي ته ضرورت دی...

**دعالم وجود ته فکروکړئ .نوي شوي دي،فکرونه نوي شوي دي ،عادتونو بدلون کړی دی. علومو اوفنونوتغيرکړی،مشروعاتو اواکتشافاتو تغيرکړی،ادراکاتو تغيرکړی. پس څنګه کيدلی شي. چې يودينې لوی امر چې دعالم انساني دفوق العاده**

پرمختګونو اوابدي ژوندسبب کيدلی شي. اوددواړو جهانونو نورانيت ورسره دی. اودنامتناهي فضايلو مروج کوونکي دي. بې له نويوالي اوتغيره پاتې شي؟دادپروردګار دفضل سره مخالف دی.
حضرت عبدالبهاء

اې دمودودوسته!څوپوښتنې دې کړې دی.لمړی پوښتنه داوه. چې ولې دپيغمبرانو ائين بدلون مومی ...دعالم امکان د[وجود]مثال، دانسان دهيکل په څير دی. چې په دې واحد طبعيت کې مداوم اوهميشه نه دی.بلکه ديوطبعيت څخه بل طبعيت ته اوله يو مزاج نه بل مزاج ته انتقال پيداکوي.عوارض مختلف شي اومرضونه متنوع شي .له دې کبله دانا اوحکيم خدای علاج اودرمل ته تغير اوبدلون ورکړ...اوداتغير اوبدلون يوحکمت دی ځکه اصلي مقصد صحت اوعافيت دی...ولي دپروردګار دائين اساس لپاره تغير اوبدلون نه ؤاونه به وي . مثلاً حميده خصائل ،منل شوي فضيلتونه ،دلويانو کردار،دپاکانو روش او دنيکوکارانو رفتار ،دپروردګاردائين لوازم دي،اوهيڅکله ئې نه تغير کړی اونه به ئې وکړي.۳
حضرت عبدالبهاء

---

**که لمر سل زره څلې (ولوېږي اوراوخيژي)بيا هم همغه لمر دی اووي به.۴حضرت باب**

که ووايو. چې حضرت محمد اولين دی. حقيقت مووېلی دی. اوکه ووايو چې اخرين دی. بيا هم مونږ حقيقت ويلی دی. اوکه ووايو. چې دنبيانووسط دی. بيا هم موسمه خبره کړې ده. اوکه ووايو چې«**كُلُّ النَّبيّن**»د. بيا هم مونږ حقيقت ويلی دی.

**اما النبيون فانا .٥**

**حضرت محمّد**

زه دټولو پيام راوړونکي يم.

**حضرت باب ته خطاب:**

**و جعلتك الاوّل والاخر والظاهر والباطن انا كنا عالمين .**

**٦ حضرت باب**

ته مې اول اواخر ،ظاهر اوباطن پيداکړې. زه له هرڅه نه خبريم.

**تالله هذا لهو الّذی قد ظهر مرّة باسم الرّوح ثمّ باسم الحبيب ثمّ باسم علی ثم بهذا الاسم .٧**

**حضرت بهاءالله**

په خدای قسم دی!داهغه څوک دی. چې يوځلی د(مسيح) ،روح اله په نامه ظاهرشو

بيا د«محمد»حبيب په نوم اوبيا د(علی محمد باب)په نوم اواوس د(بهاءالله)په نوم...

**والحقّ يقول فاعلم بانّ هذا لهو الّذی ظهر من قبل و يظهر من بعد و من فرق بينه و بين من ظهر او يظهر انه کفر بالله و اياته .٨**

**حضرت بهاءالله**

خدای داسې وائي:په يقين سره پوه شی. چې داپيغمبر هغه څوک دی. چې مخکې ظاهرشوی و. اوورسته بيا ظاهرشو.هرڅوک چې دهغوې ترمنځ توپير پيداکړي. دخدای څخه ئې اودهغه دايتونو څخه ئې انکار کړی دی.

حضرت باب دحضرت بهاءالله اوخپل ځان دوحدت په باره کې داسې فرمائي:
**انّه هو اياى وانن□ انا اياه ۹.**
**حضرت باب**
په يقين سره هغه زه يم اوزه هغه يم.
الهي پيغمبران که څه هم په بيلابيلو نومونو سره ظاهر شوي دي ،اما دټولو دين يوو،اومونږ ئې يوائين ته رابللي يو. په قران کې هغه ابدي دين ته د«اسلام »دين ويلی دی:

۱۲۹ ۵فصل:درسول اکرم نه وروسته دپيغمبرانو دظهورپه باره کې دقران مجيد ايتونه

---

**الذِ ينَ آتَ ينَاهُمُ الْكِتَابَ مِن قَبْلِهِ هُم بِهِ يؤْمِنُونَ وَاذَا يتْلَ□ عَل يهِمْ قَالُوا آمَنا بِهِ انهُ الْحَق مِن ربّنَا انا كُنا مِن قَبْلِهِ مُسْلِمِ ينَ. دقصص سورت،۵۲- ۵۳،ايتونه**

---

هغوکسانوته چې مخکې له دې هغوې ته کتاب ورکړی
ۀ[یهودیانو اومسیحیانوته ]په قران معتقد ۀ. اوکله چې
دقران کلمات اوري وائي: مونږ په هغه کتاب ایمان
لرو . په یقین سره هغه کتاب حق دی او هغه
دپروردګارله طرفه دی . مخکې له هغې چې قران
نازل شي ، مونږ مسلمانان ۀ.
**دامرالله(الهي ائین)مثال دلمر په شان دی. که لمر**
**هرڅومره هم راوخیژي بیا هم همغه لمر دی.١٠**
**حضرت باب**
**وَمَنْ احْسَنُ دِ ينًا مِّمنْ اسْلَمَ وَجْهَهُ لله وَهُوَ مُحْسِنٌ واتبَعَ**
**مِلةَ ابْرَاهِ يمَ حَنِ يفًا.**

**دنساء سورت،١٢٥-ایت**
څوک کیدلی شي ترهغه ښه دین ولري.کوم چې خپل
خدای ته ځان تسلیم کړي.(مسلمان وي.)نیک عملونه
ترسره کوي. اودابراهیم دپاک ائین نه پیروي وکړي؟
**دټولو الهي ادیانو اساس یو دی...دهغوې اختلاف**
**دنوم په سردی . که نوم ئې له منځه لرې کړی. ټول**
**به وګوري چې مقصد ئې یو دی، اوهرشریعت پخپل**
**وخت کې کامل اوپوره دی...١١**
**حضرت عبدالبهاء**

دپروردګار دوینا په اساس ،یواځې رسول اکرم «اخر»نه و.هم«اول»ؤاو هم«اخر»ؤ. «اول کیدل»او«اخرکیدل»لوړه مرتبه ده .نسبت«اخر»کیدلو ته .ټولو پیغمبرانو دادوه مقامه لرل اولرې ئې .شریک کیدل مقام نه کښته کوي .بهائي ائین داسلام د پیغمبر رتبه له هغو نه چې مسلمانان ئې فکر کوي لوړوي .رسول اکرم نه یواځې دپیغمبرانو اول ؤ بلکه دهغوې اخرینې هم ؤاوهرپیغمبر چې له دې وروسته ظاهریږي هغه به هم دادوه مقامه لري .اوداځکه چې دادیوپروردګار لخوا غوره شوي دي. **«زه زرراځم اوهرچاته دخپل رفتار په اندازه پاداش ورکوم.زه آلفا او اُمِګایم.ابتدا اوانتهایم،لمړی اواخریم»** حضرت مسیح: دیوحنا مکاشفات، ۲۲فصل، ۲۱ـ ۲۲ ایتونه

---

نورې مرجع ګانې:۶۷: ۳ ،۱۲۳: ۱۶، ۲۰ـ ۱۹: ۳، ۵۸: ۳

**«که ټول پیغمبران د«خاتم النبین»اواز پورته کړي،هغه اواز په حقه دی ...ځکه چې هغوې دیو ذات حکم ،یونفس ،یوروح یوجسد اویوامر اواز دی.۱۲ حضرت بهاءالله**

**کله چې داولین نوم صدق کوي.همغه وخت داخرین نوم هم صدق کوي.۱۳**

**حضرت بهاءالله**

**هغه دی، چې په ټولو کتابونو کې ګویا دی.اولی دهغه لپاره نه ؤ ،ځکه چې اول هغه ته اول دی. اواخري دهغه لپاره اخري نه دی،ځکه چې اخرهغه ته اخردی.۱۴ حضرت باب**

**هغه اخر دی چې«اغاز» له هغه ظاهر ،اوهغه اخري دی، چې اول له هغه څرګند دی. اوهغه دی... مظهر کلمهٔ هو الاوّل والآخر والظّاهر والباطن.... ۱۵**

**حضرت بهاءالله**

**هُوَ الْاولُ وَالْآخِرُ وَالظاهِرُ وَالْبَاطِنُ.**

**دحدید سورت،۳-ایت**

هغه اول او اخر دی .ظاهر اوباطن دی.
دحضرت باب دالاندې وینا هم دخدای په باره کې او هم دخدای دپیغمبرانو په باره کې صدق کوي:
**اذ هوالاوّل فی حین الذی هوالآخر و هوالباطن فی حین الذی هوالظاهر و هوالذی یذکر باسم کل اسم فی حین الذی لم یذکر باسم.١٦**
**حضرت باب**
هغه اول دی. په داسې حال کې چې اخر دی ،او هغه باطن دی. په داسې حال کې چې ظاهر دی . دا هغه څوک دی. چې په ټولونومونو یادیږي. په داسې حال کې چې په هیڅ یونوم هم نه یادیږي.
مولوي هم په دې حقیقت شاهدي ورکوي:

**انبیاست چونکه صد آمد نود هم پیش ماست**

# دتاریخ مهمترین درس

داسلام علماو دیوې مبهمی کلمې یعنی(خاتم)نه یوه لویه پایه جوړه کړې ده اوپه هغه ئې یومجلل قصر بنا کړئ دی .په ملیون هاو مؤمنینو ددې ښکلي قصر نه دپیړیو په اوږدو کې پریمانه ګټه وړئ ده اوپه«اخر

والی»ئې افتخار کړئ دی .اما ډیر روښانه ایتونه نور دي چې ددې تصور سره مغایر اوتوپیر لرونکي دي.

## ۱۳۱ ۵فصل:درسول اکرم نه وروسته پیغمبرانو دظهورپه باره کې دقران مجید ایتونه

---

هغه ئې له نظره ایستلي دي.حال داچې لازمه داده. دهغه ټولو روښانه ایتونوڅخه یومجلل اومحکم قصر جوړ کړي .مسیحي علماو هم دیوایت دمعنا په تحریف سره په سلهاو میلیونه مسیحیان دپیړیو په اوږدو کې داسلام دمنلو نه لرې وساتل اوساتي .که چیرته هغه ایت ددوې په اسماني کتاب کې نه وی نودخپلو ارزوګانو دتامین لپاره به ئې داسلام د ردولو په خاطر یوبل ایت پیداکړی وی.دټولو ادیانوپیروان خپل ائین اخرین ګڼي. اوله دې لارې نه ازمایش شوي دي:

**په دې (مطلب)سره دځمکې ټول خلک په دې ظهور کې امتحان شوي دي.۱۷**

**حضرت بهاءالله**

ښه به وي چې ددې پوښتنې په باره کې فکر وکړو:آیا سمه ده چې خپل ابدي برخلیک دیوې کلمې په تشبیهي معنا «مُهر»ولګوو. اوهغه ټول محکم ایتونه چې دنورو پیغمبرانو دظهور زیری ورکوي. نادیده ونیسو؟آیا دعلماو اوفقهاو په تفسیرونو اوتعبیرونو کیدلی شي اطمنان ترلاسه کړی؟هغوې خوپه یوه جزئي شرعي مسئله دنظر اختلاف لري. داخولاډیره لرې ده. چې داسماني لیکونو اسرارو درک دې وکړي. یواځې پروردګار دخپل کلام په اسرارو پوهیږي اوپه هرعصر کې دنیرو لیکنو مشکلات روښانوي:

**هَذَا الْقُرْآنُ... تَفْصِ يلَ الْكِتَابِ لاَ رَ يبَ فِيهِ مِن ربّ الْعَالَمِ ينَ. دیونس سورت، ۳۷-ایت**

داقران دکتابونوتفسیراوتفصیل دی، دپروردګارلخوا،په هغه کې شک نشته.

**لَقَدْ جَاءكَ الْحَق مِن ربِّكَ فَلاَ تَكُونَن مِنَ الْمُمْتَرِ ينَ.**

**دیونس سورت، ۹۴-ایت**

حقیقت دپروردګارلخوا راغلی، هیڅکله وربان‌دې شک اوشبهه مه کوئ.

---

**انْ اتبِعُ الامَا یوحَ□ ال□ .**

**دیونس سورت،۱۵-ایت**

یواځې دهغه څه پیروي کوو، چې مونږ ته ئې وحې کیږي.



---

---

**یا قوم تلك آیات الله نزلت عل□ بالحقّ... تالله ان ه□ من تلقاء نفس□ بل من لدن عزیز محبوب .**

**۱۸**

**حضرت بهاءالله**

---

اې خلکو!داالهي ايتونه دي .چې په حقيقت کې په مانازل شوي دي...په خدای قسم دی دازما نه دي دمحبوب ،عزيز اودانا خدای ايتونه دي.
هميشه خلکو دپروردګار دکلام معنی دخپل هوس په اساس تغيرکړی اوکوي ئې:

**فَبَدلَ الذِ ينَ ظَلَمُواْ مِنْهُمْ قَوْلاً غَ يرَ الذِى قِيلَ لَهُمْ فَارْسَلْنَا عَل يهِمْ رِجْزًا مِّنَ السمَاء بِمَا كَانُواْ يظْلِمُونَ.**

**داعراف سورت،۱۶۲-ايت**

پس ظالمانودپروردګار وينا معنا ته تغيرورکړ.اوددې ظلم په خاطر مې داسمان نه هغوې ته بلاګانې ورولېږلې.

**بَلْ كَذبُواْ بِمَا لَمْ يحِيطُواْ بِعِلْمِهِ وَلَما ياتِهِمْ تَاوِ يلُهُ كَذَلِكَ كَذبَ الذِ ينَ مِن قَبْلِهِمْ فَانظُرْ كَيفَ كَانَ عَاقِبَةُ الظالِمِ ينَ.**

**ديونس سورت،۳۹-ايت**

هغه څه چې دهغوې دعلم دساحې نه خارج و دروغ ئې وګڼل .مخکې له دې چې تفسير ئې په هغوې نازل شي (په قضاوت ئې پيل وکړ)مخکنيو هم حقيقت دارنګه دروغ ګڼلی ؤپس وګورئ. چې ظالمان د څه برخليک سره مخ ؤ.
مخکينې امتونه لکه مسيحيان اويهوديان دخپل ائين دکتاب په رازونو اواسرارو نه پوهيدل اوپه همدې سبب ئې داسلام دمنلو نه ډډه وکړه .آيا زمونږ دعصر

مسلمانان دهغوې سره څه توپير لري؟آيا دپروردګار دكلام په اسرارو ډير پوهيږی ؟آيا مسلمان علما او فقها دمخكنيو اديانو دعلما اوفقهاو نه پرهيزګاره دي؟
**فَهَلْ ينتَظِرُونَ الامِثْلَ ا يامِ الذِ ينَ خَلَوْاْ مِن قَبْلِهِمْ قُلْ فَانتَظِرُواْ انـ◻ مَعَكُم مِّنَ الْمُنتَظِرِ ينَ.**

**ديونس سورت،۱۰۲-ايت**

آيا په غير دروزګارد مخكنيوپيښنو نه دڅه شي انتظار لري؟آيا منتظر دي په غير دهغه څه چې مخكې پيښ شوي پيښ شي؟
**لتسلكن من قبلكم شبراً فشبراً و ذراعاً فذراعاً .**
**۱۹ حضرت محمّد**
وايه!په انتظاراوسئ. زه هم له تاسې سره منتظر يم.

البته تاسې به هم(اې مسلمانانو)دهمغو مخکنيو په لاره اوطريقه ولاړشي.

**دانسادزوي راتګ به دنوح دزمانې پيښې تکرار کړي.**

**دحضرت**

**مسيح(متی انجيل،۲۴فصل،۳۷-ايت**

**په هغه وخت کې به ددنيا خلک په عيش اونوش اخته وي ،کټ مټ په همغه ډول چې دنوح په وخت کې مخکې له طوفانه اخته ؤ. ۲۰ دمتي**

**انجيل:۲۴فصل،۳۷-۳۸،ايتونه**

**په اخره زمانه کې...به خلک په ظاهر کې مؤمنان وي امّا په باطن کې به بې ايمانه وي.**

**دپولس دوهم**

**ليک تيموتائوس،۳فصل،۱-۵،ايتونه**

په خواشينې سره زوړاوفرسوده امت چې عمرئې پای ته رسيدلی ،خلک به دالهي نوي نقشې دپيژندنې څخه په هغه وخت کې منع کيږي.په عوض ددې چې دخپل خدای اراده دزړه له کومې ومني اومخ ته ولاړشي په مقاومت به لاس پورې کوي.د«امت داجل»نه انکار اوددې حقيقت دمنلو سره به سخته مقابله وکړي. اوپه

ټولو وختونو کې دپروردګار دپیغمبرانو نه ئې انکار کړی دی .

**هیڅکله حق دخلکو په خیال په هیڅ یوظهور کې نه دی ظاهر شوی. اوبرخلاف دهغه څه چې دټولو خلکو سره وُظاهرشوی دی.۲۱**

**حضرت بهاءالله**

پروردګار قران مجید ته «مبین»یعنی «روښانه»کتاب ویلی دی. که هغه غوښتلئ مونږ ته ښوونه وکړي.
چې اسلام«اخرین»ائین اودین دی،دذې مطلب په باره کې چې دنورو ټولو مطالبو اساس جوړوي .ولی د«**خَاتِمْ**»کلمه غوځه ،اوروښانه معنی ئې(اخرین)ده په کار نه ده وړی؟ولې د خاتَم په ځای د«**خَاتِمْ**»کلمه په مبارک ایت کې نه ده راوړې؟ولې دقران اکثره ژباړوونکي په فارسي ژبه کوښښ کوي، چې د«خَاتَمْ»دکلمې معنی د ایرانیانو پټه کړي؟ولې دیوې داسې کلمې دترجمې نه چې دمسلمانانو برخلیک په هغې پورې تړلی دی ډډه کوي؟

ولې دداسې يوې کلمې معنی په فارسي سره دقران ویونکو ته نه وائي. چې داسلام بنسټ ئې په هغې ایښې دی؟ ولې یواځې دهغې په عربي اصل اکتفأ کوي؟ولې په عوض ددې چې ولیکی؟محمد دانبیأو مُهر دی»لیکی «محمد»دانبیأوخاتم دی»؟هغوې ښه پوهیږي چې دقران ویونکي په ناګاهانه ډول د«خاتَم»کلمې ته د«خاتِم»سره اړیکه اورابطه ورکوي.

د«خاتَم»او«خاتِم»دکلموپه معنی کې دځمکې اواسمان په اندازه توپیر دی.

«مُهر»چیرته؟او«اخرینې»چیرته؟

هغه څه چې دپروردګار منظور دی، نه یواځې داچې په قران کې پیداکولی شي. بلکه هغه څه چې په قران کې نه شته هم پیداکولی شي.ولې پروردګار په دې روښانه کتاب کې دقران په هیڅ ځای کې داناسم تصورنه دی تائید کړی؟څومره ډیرمسایل په هغه کتاب

مجید کې په کراتو تکرار شوي دي.ولې دیوایت په نزول سره مونږ ته پروردګار راونه ښودل چې :
اې مؤمنانو! «نوردرسول اکرم نه وروسته دبل رسول منتظر مه اوسئ»؟ولې مؤمنان داپوښتنې نه کوي؟ د«خاَتَم النبین»مسئله نه باید وړوکې ونیسو .ځکه که دقران مقصد په سمه توګه درک نه کړو،په اسانې سره بې له بحثه راتلونکې پیغمبران به یویو دروغجن وګڼو اوهغوې به رد اوتوهین کړو اوهغوې به زمونږ ازار اواذیت سره مخامخ شي .په همغه ډول لکه څنګه چې زمونږ نیکونو داکار کړی ؤ .پس اې مسلمانانو دامسئله وړه مه ګڼې. اودقران زیات ایتونه چې دنوو پیغمبرانو دراتګ خبر ورکوي له نظره مه غورځوې:
**دسلیم عقل والابه هیڅکله په دې راضي نشي. چې دځنې کلماتو دمعنی په نه درکولو سره دنوو پیغمبرانو دظهور دلارې دروازې وتړي .ددې نورانیت لپاره په انتهائي توګه دعقل نه کارواخلي .ځکه ددې څخه بل غټ رحمت نشته.۲۲**

**حضرت بهاءالله**

**تول هغه کسان چې دپروردګار دپیژندنې نه محروم پاتې شوي دي.دهغې سبب داؤ چې خپله پیژندنه ئې دحّق دپیژندنې لپاره میزان فکر کاوه ، ځکه دمعناپه لحاظ دکوثرداوبو نه محروم اوممنوع پاتې شول ،څرنګه چې هرملت نن ورځ خپلو دلایلو اوثبوتونو ته منتظر دي...اودادهغو کسانو حالت دی چې دپیژندنې اراده ئې لرله.۲۳ حضرت بهاءالله**

هغه نتیجه چې ددې فصل اوددوه مخکنیو فصلونو دبحث څخه اخلو داده چې:

۱.د«**خاتَم النّبیّن**»اصلې معنی «اخرین»نه ده.

۲.قران مجید دهر«امت» دمنځه تللو اوداسلام دپیغمبر نه وروسته دنورو پیغمبرانو راتګ دجهان خلکو ته په تاکید اوتکراروعده ورکړې ده .برسیره پردې ددین

نويوالی هم دپروردګار دحکمت سره هم اهنګ دی.
اوهم دانسان دعقل اوقضاوت سره هم اهنګ دی.
دډيرې حيرانتيا ځای دی چې د«خاتَم» کلمه په مختلفو معنی ګانو سره د«اخري کيدلو»پورې هيڅ اړه نه لري.داکثره مسلمانانو دعقايدوپايه ګرځيدلی ده.اما دانورتېول ايتونه چې په پوره روښانتيا سره داسلام عمر اوزمان دپای ته رسيدو اودنوو پيغمبرانو دظهور خبرې کوي له ياده ايستلي دي.

**افَتُؤْمِنُونَ بِبَعْضِ الْكِتَابِ وَتَكْفُرُونَ بِبَعْضٍ فَمَا جَزَاء مَن يفْعَلُ ذَلِكَ مِنكُمْ الاخِزْی فِ□ الْحَياةِ الدنْ يا وَ يوْمَ الْقِ يامَةِ يرَ دونَ الَ□ اشَدِّ الْعَذَابِ وَمَا اللهُ بِغَافِلٍ عَما تَعْمَلُونَ.دبقره سورت، ٨٥-ايت**

آيا دخدای دکتاب يوه برخه مني اوديوې برخې نه انکار کوي؟دداسې خلکو جزاء چې دارنګه کار کوي په دې دنيا دذلت نه بل څه شی دی؟ په ورځ دقيامت به داسې خلک دسخت عذاب سره مخامخ شي .پروردګار دهغوې له رفتاره غافل نه دی.

**قل ان کان اصولکم عل□ العدل فيکف تأخذون منها ما تهوی به هويکم و تدعون ما کان مخالفاً لانفسکم .**
**٢٤**

**حضرت بهاءالله**

وو ايه!كه ستاسې قضاوت پرعدل ولاړوي ،پس څرنګه دپروردګار له كتاب نه هغه څه چې ستاسې هوا اوهوس ئې غواړي انتخابوئ اوهغه څه چې ستاسې دهوا اوهوس سره مخالف دي نه ئې غواړئ؟



---

## داسلام اومسلمانانو په برخليک کې ديوې کلمې اثر اوقوت

مخکې له دې چې دافصل تمام شي لازمه ده هغه يوه كلمه يعنی «خاتَم»چې داسلام فقهاو بنسټ ګرځولی اوپه هغه ئې لوی ساختمان جوړ كړی،دټولو هغو

قراني ايتونو سره چې دنورو پيغمبرانو دظهور نښانې دي مقايسه کړو:

| داخروالي دليل | دنه اخروالي دلايل |
|---|---|
| • محمد ستاسې دهيڅ يوه پلارنه دی.دخدای رسول اودپيغمبرانو «مُهر»دی. داحزاب سورت، ۴۰-ايت | • هرامت لپاره پروردګار اخطاروركوونكى ياپيغمبراستولى دی. دفاطر سورت، ۲۴-ايت<br>• دهرعصر اوزمان لپاره كتاب دی.<br>درعدسورت، ۲۸-۲۹ ،ايتونه<br>• دهرامت لپاره رسول دی.<br>ديونس سورت، ۴۷-۴۹ ،ايتونه<br>• دهرامت لپاره خاص زمان ټاكل شوی دی. داعراف سورت، ۳۴-۳۵ ،ايتونه<br>• تاسې مسلمانان منځنې (وسط)امّت ياستې. |

| | |
|---|---|
| | **دبقره سورت،۱۴۳-ایت**<br>**• تاسې ته به پيغمبران راشي.**<br>**داعراف سورت،۳۴-۳۵،ايت**<br>**• دپروردګار طريقه اوروش نه بدليږي.**<br>**دفتح سورت،۲۲-ايت**<br>**داحزاب سورت،۶۲-ايت** |



۵فصل:درسول اکرم نه وروسته پيغمبرانو دظهورپه باره کې دقران مجيدايتونه

**دقران ايتونه کيدلی شي**

**په لاندې شکل هم بیان**

**کړي:**

| | |
|---|---|
| ۱.دخدای رسم داو چې په تیرو کې پیغمبران ولیږي.<br>۲.دخدای طریقه داوه چې هیڅکله یوامّت بې تحذیرکوونکی نه پریږدي.<br>۳.دخدای طریقه داده چې هرامت ته پیغمبرورلیږي. | ۴.دخدای رسم دادې چې دهرعصر لپاره کتاب ورلیږي.<br>۵.دخدای رسم اوسنت هیڅکله تغیرنه مومي .یعنی هیڅکله بدلون نه کوي.<br>۶.خدای په تاکید سره وعده کوي چې البته داینده لپاره به پیغمبران راواستوي. |

| |
|---|
| ولې دپیغمبرانو داستولو رسم باید ادامه پیداکړي؟<br>ددې لپاره چې دهرامّت معنوي مرګ حتمي دی. |

دامطلب چې داسلام دیانت اخري دین اورسول اکرم اخرینې پیغمبرنه دی. دقران مجید دمهمو اومعلومداره حقایقو څخه دی.لازمه ده دبحث دتمامیدو لپاره یومعمول منطقي استدلال په کارواچوو:

۱.دقران دایتونو مطابق : امّت دخلکو یوې ډلې څخه عبارت دی. چې خدای هغوې ته پیغمبر ورلیږي.
۲.دقران دایتونو مطابق :دهرامّت عمر پای ته رسي.
۳.دقران دایتونو مطابق :مسلمانان یوامّت دی.
۴.پس دقران دایتونو مطابق : داسلام دامّت عمر پای ته رسي.

**افَکُلمَا جَاءکُمْ رَسُولٌ بِمَا لاَ تَـهْوَی انفُسُکُمُ اسْتَکْبَرْتُمْ ففَرِیقاً کَذبْتُمْ وَفَرِ یقاً تَقْتُلُونَ.**

**دبقری سورت،۸۷-ایت**

آیاخبره داسې ده کله چې کوم پیغمبر ستاسې (نفسي خواهشاتو)مخالف راشي خپل ځانونه مودهغه په مقابل کې لوی ګڼلي دي اوځنې دهغو موپه قتل رسولي دي؟

**یا اهل الارض فو ربکم انکم ستفعلون ما فعل القرون فانذرو انفسکم ...۲۵ حضرت باب**

اې دجهان خلکو! په خدای قسم دی. تاسې به هم دمخکنیو په شان عمل وکړی ، پس (خبرداره)اوسئ...

**قل انتم تقولون بمثل ماقالوا امم القبل ف زمن رسول ا لله .۲٦ حضرت بهاءالله**

وایه! تاسې هم دمخکنیو امتونو په شان چې دخدای درسول دظهور په وخت کې ویل تاسې به هم همغسې ووائې.

**کُل مَا جَاء ا مةً رسُولُهَا کَذبُوهُ.**

**دمؤمنون سورت، ۴۴-ایت**

هرکله چې کوم امّت ته پیغمبر راغلی. هغه ئې دروغجن ګڼلی.

**وَالذِی انزِلَ الِیكَ مِن ربِّكَ الْحَق وَلَکِن اکْثَرَ الناسِ لاَ یؤْمِنُونَ. درعد سورت، ۱-ایت**

هغه څه چې دپروردګار لخوا په تانازل شوي دي.
حقيقت دي ،ولې ډير خلک ترې منکر دي .
**عالم په غفلت کې دی.۲۷**
**حضرت بهاءالله**
**قل تالله انّه ما اراد لنفسه من شيئ قد اختار البلاء لتقرّبکم الی الافق الاعلی يشهد بذلک کلّ الاشياء و لکنّ النّاس اکثرهم من الغافلين .۲۸**
**حضرت بهاءالله**
وايه! په خدای قسم دی ،هغه دخپل ځان لپاره کوم څه نه دي غوښتي ،سختې اوبلاګانې ئې ستاسې دنزديکت په خاطر خپل رب ته منلي دي .هرڅه چې په عالم کې دي په دې حقيقت شاهدان دي .اما ډير خلک په غفلت کې دي.
پيغمبرانو ليږل دپروردګار لوی نعمت اوبخشش دی.
دخپلو بنده ګانو لپاره ،ولې بنده ګان ددې لوی بخشش دمنلو څخه (ډډه)کوي .ددې په ځای چې په ډير شوق اوذوق سره ئې مخې ته (عجله)وکړي ،ولې دهغه نه په تيښته کې دي؟
**لَقَدْ مَن اللهُ عَلَى الْمُؤمِنِينَ اذْ بَعَثَ فِيهِمْ رَسُولاً مِّنْ انفُسِهِمْ يَتْلو عَلَيْهِمْ آيَاتِهِ وَيُزَكِّيهِمْ وَيُعَلِّمُهُمُ الْكِتَابَ وَالْحِكْمَةَ وَان كَانُواْ مِن قَبْلُ لَفِي ضَلالٍ مِبِين.          دال عمران سورت،۱۶۴-ايت**

پروردګار په یقین سره پر مؤمنانو احسان وکړ:
دهغوې له منځه ئې پیغمبر وټاکل چې دخدای ایتونه
هغوې ته بیان کړي .هغوې پاک اومبرا کړي،الهي
حکمت هغوې ته وښائي په داسې حال کې چې مخکې
له دې په ګمراهي کې ؤ.
دپروردګار ائین دمحبت اویووالي لپاره دی ، نه
ددښمنې اوجدائي لپاره:
**وواپه!اې بنده ګانو دنظم له اسبابونه دخپګان اوغم سبب مه جوړوئ،اود اتحاد علّت څخه داختلاف علّت مه جوړوئ.۲۹**
**حضرت بهاءالله**

# دقران دلوی معّما حلّ
# داسلام دعصر پای ته رسیدلو
# تاریخ
# دپروردګار دنوي ائین دظهور
# اغاز

## په دوه فصله کې:

**۱.پټه وعده چې په ناڅاپه پای ته رسي.**
**۲.داسلام دعصر دتمامیدلو تاریخ.**

## اودپروردګار دوعدې دوخت
## سرته رسیدل

**وَيَقُولُونَ مَتَ⬚ هَذَا الْوَعْدُ .**
**دانبیاء سورت،۳۸-ایت**

وائي د«وعدې»دوقوع زمانه به کله رارسي.

**ټول اسماني کتابونه زیری ورکوونکي دي، ددې لوی ظهور لپاره.۱ حضرت بهاءالله**
**دعالم دټولو ملتونو موعود ظاهراوښکاره شوې.۲ حضرت عبدالبهاء**

---

رښتينې پيغمبر وعده ورکړې، چې دوست راځي.اوس راغلی .ولې خپه ياستې؟۳

حضرت بهاءالله



# پټه وعده چې ناڅاپه پای ته رسي

**رَبنَا انكَ جَامِعُ الناسِ لِيَوْمٍ لارَيْبَ فِيهِ ان اللهَ لاَ يُخْلِفُ الْمِيعَادَ.** **دال عمران سورت،۹-ايت**

پروردګاره ، ته دخلکو راټولوونکی اوجمع کوونکی ئې ، په هغه ورځ چې په راتلو کې شک نشته. په يقين سره پروردګار وعده خلافه نه دی.

**فَلاَ تَحْسَبَنَ اللهَ مُخْلِفَ وَعْدِهِ...**

**دابراهيم سورت،۴۷-ايت**

فکرونه کړئ چې پروردګار په وعده کې وفادارنه دی...

**وَيَقُولُونَ مَتَ هَذَا الْوَعْد..اثُم اذَا مَا وَقَعَ آمَنْتُم بِهِ ...وَيَسْتَنبِونَكَ ا حَق هُوَ قُلْ ايِّ وَرَبِّي انهُ لَحَق وَمَا انتُمْ بِمُعْجِزِينَ... الاَ ان وَعْدَ اللهِ حَق وَلَكِن اكْثَرَهُمْ لاَ يَعْلَمُونَ.**

**دیونس**

**سورت،(۵۵، ۵۳، ۵۱، ۴۸)ایتونه**



---

---

هغووائي،د«وعدې»پرځای کیدنې زمانه کله
رارسي؟...آیا پس له هغې چې «وعده»سرته
ورسي.په هغې به ایمان راوړي؟...(آیا دخدای دوعدې

له انجامه وروسته خلک به مؤمنان شي؟)هغوې به پوښتنه وکړي:آيا هغه«موعود»حق دی؟ووايه:بلې ! په خدای مې قسم دی،البته هغه حق دی .اوتاسې نشئ کولئ دهغه مانع شی...آيا دخدای وعده حقيقت نه ده؟ (البته حقيقت ده)اما ډير خلک دخدای دوعدې دتحقق نه ناخبره دي.

**"فو رب السماء والارض انه لهو الحق من لدنا ".٤" هذا سبيل ا لله "...٥ حضرت باب**

قسم دځمکې اواسمانونو په پروردګار هغه څه چې زما لخوا دي هغه حق دي.

«اودادخدای لاره ده»...

ددې خبراوريدل چې يوځوان تاجرد«قائميت» ادعا کړې ده دخلکو لپاره دتصور وړ نه وه .په دې سبب هغه موعود په لمړيو کې خپل ځان «باب»ونومول:

**وګورې چې دامرپه اوّل کې ،هغه حضرت په باب سره ځان ظاهر کړ داپه دې خاطر وُچې دخلکو زړونه په هغه وخت کې دداسې مقام دپوهيدلو لپاره قادرنه وُ.٦**

**حضرت بهاءالله**

وروسته فرمائي د«بابيت»مقام اودهغې نه په مراتبو لوړ مقامونه دهغه په اشاره رامنځ ته کيږي:

**قد ناحت الاشياء بما نسب نفسه بهذا المقام...ما فوقه و فوق فوقه يخلق بکلمة من عنده و اشارة من اصبعه .**۷

**حضرت بهاءالله**

وروسته له هغه چې خلک اماده شو،د«قائم موعود»دظهور خبرئې اظهار کړ:

**القائم انّه قد ظهر باذن ربّه ذلک من فضل ا لله علیک ذلک قائم الّذی کلّ ینتظرون یومه و کلّ به یوعدون .**

۸

**حضرت باب**

قائم دخپل پروردګار په اجازه ظاهر شو .هغه دخدای فضل دی. په تاسې داهغه قائم دی.چې ټول دهغه دورځې په انتظار یاستی اودظهور وعده ئې تاسې ټولو ته درکړل شوې ده.

**قل انّه لمهدی موعود ف□ ام ا لکتاب .**

۹ **حضرت باب**

وایه!هغه مهدي موعود دی. چې دظهور وعده ئې دکتابونو په مور(قران)کې ورکړل شوې ده.

دپروردگار درسم اوطريقې له مخې ،هريو له
پيغمبرانو څخه دراتلونکي پيغمبر زيرى ورکوي:
**الرسُولَ النبِي... الذِي يَجِدُونَهُ مَكْتُوبًا عِندَهُمْ فِي التوْرَاةِ وَا لانْجِيلِ.داعراف سورت،۱۵۷-ايت**
«کلام راوړونکى»پيغمبر دکوم ذکر چې په تورات اوانجيل کې راغلى کيدلى شي پيداکړي.
**وَانهُ لَفِي زُبُرِ الْاولِينَ.**
**دشعراسورت،۱۹۶-ايت**
دهغه صفت په (قران)اوپه مخکنيو کتابونو کې راغلى دى.
**سَيُرِيكُمْ آيَاتِهِ فَتَعْرِفُونَهَا.**
**دنمل سورت،۹۳-ايت**
هغه به دخپل ظهور نښانې تاسې ته وښائي ،اوتاسې به هغه وپيژنې.
پروردګار زمونږ څخه غواړي چې دهغه دوعدو دتحقق اودهغه دموعود دپيژندنې لپاره دعا ګانې وکړو:
**ربنَا اننَا سَمِعْنَا مُنَادِيًا يُنَادِي لِلايمَانِ انْآمِنُواْ بِرَبِّكُمْ... رَبنَا وَآتِنَا مَا وَعَدتنَا عَلَ□ رُسُلِكَ... فَاسْتَجَابَ لَهُمْ رَبهُمْ.**
**دال عمران سورت،۱۹۳- ۱۹۵ ،ايتونه**

پخپل پروردګار ایمان راوړی!...(هغوې په ځواب کې وائي:) اې پروردګاره!هغه وعده دې چې دپیغمبرانو په ژبه مونږ سره کړی،مونږ ته ئې پرځای کړه...خدای دهغوې دعا قبوله کړه.
پروردګاره خپلو مخکنیو پیغمبرانو ته څه وعده ورکړې ده. چې دهغې دتحقق لپاره باید دعا وکړي؟څوک دی چې ددې وعدې دتحقق لپاره خلک ایمان ته رابولي ؟ولې«دعوت کوونکي»له خلکو غواړي چې پخپل پروردګار ایمان راوړي؟ دا ددې ښکارندوې دی چې دزمان په تیریدو سره خلک په خدای اودهغه په دین ایمان دلاسه ورکوي. اوددې ارمغان دلاسته راوړلو لپاره باید پروردګار ته ددعا لاسونه پورته کړي. ټولو اسماني کتابونو زمونږ دعصر دموعود وعده دهغوې پیروانو ته ورکړې ده:

**په هغه وروستيو وختونو کې به دزردشتيانو موعود ظهور وکړي.جهان به پاک او تازه کړي .دبديو او ازارولو بنياد به له بيخه ورک کړي. د زاميادیشت ۸۹ فقره**

**دهورامزدا «دينکرد»کتاب ،حضرت زرتشت ته په خطاب کې فرمائي:**

**ستا د زامنوله منځه به يوپيغمبرکړم.۱۰**

**زردشتيانو ته په خطاب کې:**

**هغه زيري چې حضرت وخشوروخشوران(دپيغمبرانوپيغمبر)وعدې ورکړې وې، ټولو تحقق وموند. هوشيدرمه بامی ،حضرت اعلی [حضرت باب]...دی. شاه بهرام ،حضرت بهاءالله دی. امازه عبدالبهاء ، يعنی دبهاء ناتوانه بنده.۱۱ حضرت عبدالبهاء**

**داهغه موعود دی. چې په ټولو الهي کتابونو کې دهغه بشارت ورکړی دی.۱۲**

**حضرت بهاءالله**
**نن ورځ هغه ورځ ده. چې دهغې ذکر په ټولو الهي کتابونو کې شوی دی.اوټولو نبیانو او مرسلینو ته دپروردګار لخوا دهغې ورځې وعده اوبشارت ورکړل شوې ؤ.۱۳**

**حضرت بهاءالله**
حضرت بهاءالله اوحضرت باب په سلها ځلې پخپلو ایتونو کې دخدای دوعدې دتحقق لپاره شهادت ورکړې دی:
**قد جاءالوعد و ظهرالموعود طوبی لمن سمع النداء و اجاب مولاه .۱٤ حضرت بهاءالله**
وعدې تحقق موندلی دی او موعود ظاهرشوی دی. خوشبخته هغه دی چې دا اواز ئې واورید اوخپل مولا ته ئې ځواب وویل.
**دامّتونو وخت پای ته رسیدلی اوالهي وعدې چې په مقدسه کتابونو کې ذکر شوې دي ټولې ظاهره شوي دي. ۱۵**
**حضرت بهاءالله**
ووایه!اې بنده ګانو:رهنما راغلې ،عجله وکړي،یکتا لیدونکی راغلې دی .لاره ئې سمه کړې ده .نیکمرغه

هغه دی چې دااوازئې واوريداودزړه نه ووائي:اې پروردګاره!

---

وخشور وخشوران:دپيغمبرانو پيغمبر.وخشور يعنی پيغمبر .دالقب ددې ښکارندوې دی چې حضرت عبدالبهاء دحضرت زردشت سره څومره مينه اومحبت لرل.



ناڅاپه سرته ورسيده

---

---

ستا اواز جهان تازه کړ اوژوندئې وروبخښل.مخ مې ستا په لور دی اوروح مې ستا دليدو په ارزو دی...جهان دار راغلی ،لاره ئې په لارو کې اوچته ده اووينائې به وينا ګانو کې اوچته ده .وائې وري اوراشي.ددې ورځې مثل نه ؤ اونه به راشي داده دپروردګاروينا.

---

**شهدالله انه لا اله الّا هوالمهيمن القيّوم و ان هذا هوالقائم الحقّ الّذی کنتم به توعدون .۱۷**

**حضرت باب**

خدای ته په شهادت سره ،په غیردخدای نه بل مهیمن اوقیوم خدای نشته. اودا دهغه پروردګار قائم دی. چې دظهور وعده ئې تاسې ته درکړل شوې ده.

**ان ا کن ا یومئذ فـ ایام الله ظاهرون تلك ایام ما اشرقت الشّ مس علیها بمثلها من قبل و تلك ایام تنتظرهاالامم من قبل یومئذٍ فکیف انتم راقدون فتلك ایام اظهر الله شمس الحقیقه فیها فکیف انتم صامتون فتلك ایام انتظر تموها من قبل و تلك ایا م العدل ان اشکروالله یا ایهاالمؤمنون .۱۸**

**حضرت باب**

په یقین سره نن مونږ دخدای په ورځ کې ژوند کوو. داپُر شکوه ورځ ده. چې لمر دهغې په څیر په بله داسې کومه ورځ کې هیڅکله خپلې وړانګې خپرې کړې نه دي داهغه ورځ ده. چې مخکنیو ددې دظهور لپاره په پوره شوق سره انتظار ایستل.څه وشو چې اوس په سخت خوب ویده یاستې ؟ داهغه ورځ ده. چې په تیرو زمانو کې په ډیرې مینې سره دراتګ منتظر

وي . داد الهي عدل دظهور ورځ ده دخدای شکر په ځای کړی.

**انّني انا الله لا اله الاّ انا وانّ ما دوني خلقي قل ان يا خلقي ايّاي فاعبدون قد خلقتك ورزقتك...وبعثتك وجعلتك مظهر نفسي لتتلون من عندي آياتي ولتدعونّ كلّ من خلقته الی ديني هذا صراط عزّ منيع وخلقت كلّ شيء لك وجعلتك من لدنّا سلطانًا علی العالمين...قد خلقتك بك ثمّ كلّ شيء بقولك امرًا من لدنّا انّا كنّا قادرين وجعلتك الاوّل والآخر والظّاهر والباطن انّا كنّا عالمين .**

**۱۹ حضرت باب**

زه خدای يم. په غير له مابل خدای نشته .ټول ماپيداکړي.ووايه!اې بنده ګانو!زما عبادت وکړئ.ماته پيداکړی حضرت باب ،روزي مې درکړه ...انتخاب مې کړې. اودخپل نفس مظهر مې کړې. ترڅو زما ايتونه ذکر کړې. اوزما بنده ګان زما ائين ته راوبولې .هرڅه مې ستا په خاطر پيداکړه، اوته مې پخپله اراده په ټول عالم حاکم کړې ...

ته مې له تا لپاره پيداکړې ،وروسته مې ټول شيان ستا دخلاقيت دکلمې له مخې پيداکړه. امر دارنګه شو. زه په هرڅه قادر يم. ته مې اول اواخر کړې. ته مې ظاهر او باطن کړی. زه په هرڅه پوهيږم.

**من اطاع الله و کلمته فقد فاز بالحقّ فضلاً کبيراً .و من عصی الله و بابه فقد ضلّ ضلالاً بعيداً .۲۰**

**حضرت باب**

هرڅوک چې دخدای اودهغه د«کلمې» پيروي وکړي حقيقت ته ورسيد اولوی فضل اورحمت ته ئې لاس رسی پيداکړ.اوهرڅوک چې دخدای اودهغه له باب نه سرغړونه وکړي ګمراه دی .څومره لوی ګمراه اوڅومره دسمې لارې نه لرې دی!

**قد جاءالوعد و ظهرالموعود .طوبی لمن سمع النداء و اجاب مولاه وويل لکل غافل مرتاب .۲۱**

**حضرت بهاءالله**

دوعدې زمان راورسيد اوموعود ظاهر شو.نيکمرغه هغه څوک دي چې داواز ئې واوريد اودخپل خالق دعوت ئې قبول کړ.اوبدمرغه هغه څوک دی چې په غفلت اوشک کې پاتې شو.

**انّي باب الله بالحقّ قد اسقاكم باذن الله الحقّ من العين الطّهور ماء الظّهور عل جهة الطّور .۲۲**

**حضرت باب**

په حقيقت سره زه د«پروردګارباب»يم.دپروردګار په اجازه د(ظهورله چينې) د«طورلخوا»په تاسې د«ظهور اوبه»وڅکم.

د«قران دلوی معمّا»حل په دې فصل کې شروع کيږي.لمړيو دوبرخو هدف ،«دمعّما دخنډونو»لرې کول ؤ.دپاتې نورکتاب هدف دمّعما حل دی. ددې دپاره چې ددې لوی هدف په سرته رسولو کې کامياب شئ. بايد خپل نهائي قضاوت اينده ته پريږدئ،کله چې دمعّما اجزاء يوپه يو وګورئ. اودهغو رابطه وسنجوئ. اووئي پيژنئ .دمعّما دپوره تصوير دليدلو دمخه هرقضاوت به چې يواځې ددې کتاب په اخر کې جلوه کوي .له اعتباره ساقط وي ،ددې ائين په باره کې زمونږ تحقيق هغه سفرته ډير ورته دی. لکه فرض کړی ستاسې هدف دداسې باغ پيداکول دي. چې دمزه دارو ميوونه ډک وي.دسفرپه شروع کې ددې باغ منظره په پوره ډول ستاسې له سترګو پټه ده.

اما وروسته له لږ وخته دهغه منظر شَبَحي ستاسې په
سترګو کې جلوه کوي.هدف ته ستاسې دحرکت دباغ
دوجود حقیقت قدم په قدم روښانه کيږي.کله چې باغ ته
ورسیږئ اودهغو میوو خوند وګورئ،هیڅ یوقوت به
عالم کې په دې قادر نه وي چې ستاسې په فکر اوروح
کې شک او شبهه پیداکړئ .دایمان ترلاسه کول
اودپروردګار دنوي ائین پیژندنه داډول ده .
دایمان داسې یوې مرحلې ته رسیدل اسانه کار نه
دی.دهیڅ یوې هدیه قدر اومنزلت دپروردګار دمینې
اوایمان دهدیه سره دقیاس وړ نه دی. آیا رواده چې
دارنګه اسماني بخشش اوبې همتا ارمغان دې دهرنوي
هوسناک په اسانۍ سره نصیب شي؟
په همغه شکل چې یادونه ئې وشوه ،د۱۳
پیړیودتیریدونه وروسته یعنی داسلام دشروع نه دبهائي
ائین ترظهوره پورې یواځې داسلام دوه تنو لویو علماو

شیخ احمد احسائی اوسیّد کاظم رشتي په دې راز پوه شوي دي.دقران لویه معمّا دپروردګار په حکم او حکمت دارنګه پټه ده، چې مسلمان علما اومتفکرین چې په دې اوږده موده کې ژوند کاوه حتی دهغې په وجود پوه نشو. حل خوئې بیخي پرېږده. ددې معمّا دحل لپاره ډیروخیرنواو بررسې ته ضرورت دی .
ددې لوی ارمان دکامیابې لپاره هغه قراني ایتونه چې دې کتاب کې راغلې دي. ځو ځو ځلې ووائي. اودهغو دمعنې په باره کې فکر وکړئ. ځکه چې دپروردګار اراده به داسې وي. چې یواځې هغه خلک چې دحقیقت سره مینه لري. اودزړه نه کوښښ کوي. دربنتینولې لاره پیداکړي.نور دالهي وعدې پراساس له دې پوهې اوبخشش اواسماني هدیه څخه بې برخې دي:

**وَالذِینَ جَاهَدُوا فِینَا لَنَهْدِیَنهُمْ سُبُلَنَا.**

**دعنکبوت سورت، ۶۹-ایت**

هغه څوک خپلې لارې ته هدایت کوم. چې زما په پیداکولو کې کوښښ کوي.

**یَسْئَلُونَکَ عَن السَاعَةِ ایانَ مُرْسَاهَا.**

**داعراف سورت،۱۸۷-ایت**

له تاپوښتنه کوي. هغه ساعت به کله راورسي؟

**ان الساعَةَ ءاَتِيَةٌ اكَادُ اخْفِيهَا لِتُجْزَى كُل نَفْسٍ بِمَا تَسْعَ□ .**
**دطه سورت، ۱۵-ايت**

په يقين سره هغه«ساعت»به راشي.زه هغه پټوم ترڅو هرچاته دهغه دکوښښ په اساس پاداش ورکړم.په دوهمه برخه کې روښانه شوه چې پروردګار په قران کې داسلام دعصر پای ته رسيدلو اودراتلونکو پيغمبرانو دظهور وعده خپلو بنده ګانو ته اعلان کړی ده. اوس به وګورو چې آيا نور ايتونه هم داوعده تائيدوي؟اوهم دارنګه وبه ګورو چې داسې ايتونه شته چې داسلام دعصر دتماميدو تاريخ اودنوي ائين دظهور دتحقق د وعدې کال ئې ښودلې دی؟
خلک هميشه راتلونکې اوورانديني ته علاقمند ؤ ، اودپيغمبرانو نه ئې دراتلونکې موعود دزمان په باره

کې پوښتنه کړې ده .ددې پوښتنې په هکله پیغمبرانو دوه ډوله ځواب ورکړې دی: کله ئې ویلې دي چې یواځې پروردګار له هغه زمان نه خبر دی.تاسې باید همیشه بیدار اوپه لټه کې اوسې.ځکه هغه زمان ناڅاپه بې له دې چې تاسې متوجه شي رارسیږي.اوکله ئې بیا هم دموعود دظهور دقیق تاریخ ښودلې دی امّا د راز اومعّما په شکل. دظهور دزمان پټول څوسببه لري.یوله هغې جملې نه که دظهور زمان مخکې دهغه درسیدلو نه معلوم وي ،مسخره کوونکي اودروغجن به په دروغو په هغه تاریخ دپیغمبرۍ دعوه وکړي په هغه صورت کې به دپروردګار رهنما بې اثره پاتې شي.

په دې برخه کې به دپیغمبرانو دواړه ډوله ځوابونه اونمونې بررسي شي. ښه به وي لمړې دا بررسي له دې شروع شي چې خبره یواځې د«وعدې»وه. اوداجرا نیټه نه ټاکې اوپه هغو ځوابونو چې دوعدې زمان ئې مشخص وي پای ته ورسي.

په اسماني کتابونو کې ،په کراتو
هغه«خبر»او«وعده»خپره شوې چې خلک ئې د
تاريخ دشروع نه تراوسه په انتظار کې ؤ اودي:
**رَبنَا وَآتِنَا مَا وَعَدتنَا عَلَ⃞ رُسُلِكَ.**
**دعمران سورت،۱۹۴-ايت**
پروردګاره**!** هغه څه چې دپيغمبرانو په وسيله
«وعده»راکړې، مونږ ته ئې عطا کړه. دمسيحيانو په
اسماني اثارو کې هم په کراتو دې«وعدې»او«خبر»ته
اشاره شوې ده.په همغه شکل چې تاسې ته ښوونه
وشوه. **پروردګار به «عيسى»راوليږي.اسمانونه به
هغه (عيسى)ومنې ترڅو دټولو شيانودتازه والې وخت
راورسي.(داهغه وعده ده چې پروردګار)دټولو**

**پيغمبرانو لخوا دعالم دتاسيس نه تراوسه پورې بشريت ته عطا کړې ده.**

**درسولانو اعمال،۳فصل،(۱۹- ۲۱)ايتونه.**

دحضرت باب په اثارو کې هم داحقيقت تائيد شوى دى:

**و ما ارسلنا من نبّ الاّ وقد اخذناه بالعهد للذكر ويومه.۲۳ حضرت باب**

هريودپيغمبرانو نه مې چې مخکې ليږلى دى.د«الهي ذکر»اودهغه د«ورځې په باره کې مې ورسره وعده کړې ده.

**وَاذْ اخَذْنَا مِنَ النبِيِّينَ مِيثَاقَهُمْ وَمِنكَ وَمِن نوحٍ وَابْرَاهِيمَ وَمُوسَ وَعِيسَ ابْن مَرْيَمَ وَاخَذْنَا مِنْهُم مِّيثَاقًا غَلِيظًا لِيَسْالَ الصادِقِينَ عَن صِدْقِهِمْ وَاعَد لِلْكَافِرِينَ عَذَابًا الِيمًا.**

**داحزاب سورت،۸-۷،ايتونه**

کله مې چې دانبياؤ پيمان(قول)اخيستل. په هغه «جمله»کې مې له تانه (رسول اکرم)اودنوح، ابراهيم ،موسى اوعيسى نه محکم قول اخيستې دى. ترڅو درښتياويونکو صدق دازمايش لاندې ونيول شي(ثابت شي).امّا دمنکرينو لپاره دا(پيمان)يودردناک عذاب دى.داوعده دپروردګار ترټولو اوچته وعدو څخه ده. «دابنه خبر»ډېر اهميت وړ دى. چې په قران کې

د«نبأ عظیم»یعنی د«لوی خبر»په نامه نوموړ شوی دی:

---

«ذکر»«ذکراعظم»او«ذکراکبر»دحضرت باب دالقابو څخه دی.



---

---

**عَم یَتَسَاءلُونَ النبَاالْعَظِیمِ عَن الذِي هُمْ فِیهِ مُخْتَلِفُونَ كَلا سَیَعْلَمُونَ ثُم كَلا سَیَعْلَمُون.**

**دنباء سورت، ۱-۵،ایتونه**

دخه شي په باره کې له یوبل نه پوښتنه کوي؟د«لوی خبر»په باره کې .په دې برخه کې دنظر اختلاف لري.دارنګه نه ده[چې فکر کوي]ډیر زردې چې پوه به شي.

---

**دادی «لوی امر»او«نبأ عظیم»،مقام ئې وپیژنئ.**
**اوپه هغه څه کې چې ښکاره شوي دي.انصاف پرې**
**وکړئ...کوښښ وکړئ .ترڅو وخت باقي وي.**
**اوامرښکاره ،خپل ځانونه مه محروموئ.۲۴**
**حضرت بهاءالله**
په لاندې ایت کې پروردګار په دې«لویه
ورځ»یعنې(دوعدې دظهور په ورځ)قسم یادوي:
**وَالْیَوْمِ الْمَوْعُودِ.**
**د بروج سورت،۲-ایت**
دموعود په ورځ مې قسم دی!
څرنګه چې خلک همیشه په شک کې دي،مهربانه
خدای انتظار کوونکو ته ډاډ ورکوي چې ددې وعدې
په پای کې به هیڅکله شک ونه کړي:
**فَاصْبِرْ ان وَعْدَ اللهِ حَق.**
**د روم سورت،۶۰-ایت**
صبر وکړئ دخدای وعده ربښتینې ده.
**ان وَعْدَ اللهِ حَق.**
**دلقمان سورت،۳۳-ایت**
په یقین سره دخدای وعده سمه ده.
**یَا ایهَا الناسُ ان وَعْدَ اللهِ حَق.**
**دفاطر سورت،۵-ایت**
اې خلکو!په یقین سره دخدای وعده سمه ده.

**يَوْمَئِذٍ يُوَفِّيهِمُ اللهُ دِينَهُمُ الْحَق.**

**دنور سورت، ۲۵-ایت** په هغه ورځ کې به دخدای ائین هغوی ته ورکړم.

**انمَا تُوعَدُونَ لَصَادِقٌ.**

**دذاریات سورت، ۵-ایت**

هغه وعده چې له تاسې سره شوې یقیناً سمه ده.

د«دین»وعده به ځای ته ورسي.



ناڅاپه سرته رسي.

---

---

**انمَا تُوعَدُونَ لَوَاقِعٌ.**

**دمرسلات سورت، ۷-ایت**

---

البته هغه څه چې تاسې ته وعده درکړشوې ،هغه به سرته ورسي.

**اذَا وَقَعَتِ الْوَاقِعَةُ لَيْسَ لِوَقْعَتِهَا كَاذِبَةٌ.**

**دواقعه سورت، ۱-۲ ،ایتونه**

کله چې «واقعه»تحقق پیداکړی.له هغې انکار کیدلی نشي.

**فَيَوْمَئِذٍ وَقَعَتِ الْوَاقِعَةُ.**

**دحاقّه سورت، ۱۵-ایت**

په هغه ورځ«لویه واقعه»رامنځ ته کیږي.

**ووایه!نن ورځ هغه ذکر شوې واقعه رامنځ ته شوه. ۲۵ حضرت بهاءالله**

څرنګه چې دپروردګار پیغمبران ټول دیوې منبع څخه مدد اخلي ،اودټولو کلام دخدای کلام دی،دهغوې په اصطلاحاتو اوکلماتو کې شباهت دی.د«قران دمعّما»داشنائي لپاره اوهغه اسرار چې په هغه کې پراته دي .ښه به وي چې بحث دپروردګار پیغمبرانو دویناؤ ځنې برخو له مقایسې پیل کړو، دهغوې رمزي کلمات دیوپراخه لید له مخې وګورو اوهغه وپیژنو .دحضرت مسیح اوحضرت محمد دویناشباهت ته توجه وکړئ:

| | انجیل |
|---|---|

| | قرآن |
|---|---|
| **په هغه وخت کې به خلک<br>دانسان دزوي<br>راتګ(مسیح) وګوري ...<br>دهغې ورځې او دهغه<br>ساعت نه هیڅوک خبر نه<br>دي .حتی داسمان فرښتې<br>،د(مسیح)زوی به هم<br>ناخبره وي. یواځې به<br>پلار(پروردګار)پوه وي.<br>باخبره اوسئ ، اګاه اوسئ،<br>ځکه چې تاسې نه<br>پوهیږی، چې<br>هغه«وخت»به کله<br>راورسي...اوکه هغه<br>موعود ناڅاپه راشي.باید<br>چې تاسې ویښ اوبیداره<br>اوسئ<br>مرقس انجیل<br>،۱۳فصل،۲۶-۲۷،ایتونه** | **یَسْألُونَكَ عَن الساعَةِ ایانَ<br>مُرْسَاهَا قُلْ<br>انمَا عِلْمُهَاس عِندَ<br>رَبِّي...لاَ تَاتِيكُمْ الا بَغْتَةً.<br>داعراف<br>سورت،۱۸۷-ایت**<br>د«ساعت»په باره کې له<br>تاپوښتنه کوي. چې هغه<br>تاکلې زمانه څه وخت<br>ده؟ووایه:په هغې یواځې<br>پروردګار پوهیږي<br>اوناڅاپه به راشي. |

## دانجيل اوقران ترمنځ مشترکې نبنې اوکلمات

| انجيل | قرآن |
|---|---|
| ساعت<br>يواځې پلار پرې پوهيږي.<br>ناڅاپه | ساعت<br>په هغه يواځې پروردګار پوهيږي.<br>ناڅاپه |

| په انجيل کې اضافي نښې اوکلمات |
|---|
| مسيح بې خبره دی<br>فرښتې بې خبره دي |

## تاسې بې خبره ئې
## متوجه اوسئ
## بيداراوسئ

دپروردګار ددووپيغمبرانو دويناو ترمنځ شباهت اوورته والی ښکاره دی .دوه نورو ويناو ته توجه وکړی .دواړه خلکو ته د«عذاب»او«مجازاتو» وعده ورکوي.دقران دايت له مخې د«عذاب»کلمه د«ساعت»سره اود«ناڅاپه»کلمه د«خلکو دناپوهې»سره راغلې ده . اودانجيل په ايت کې د«مجازات»کلمه له «وعدې» سره راغلې ده:

| انجيل | قرآن |
|---|---|
| **ځکه چې دازمانه د«مجازاتو»ده دهغووعدو دسرته رسيدو وخت دی، چې له مخکې ليکل شوي دي .**<br>**دمرقس انجيل ،۲۲فصل،۲۱-ايت** | **افَامِنُواْ ان تَاتِيَهُمْ غَاشِيَةَ مِّنْ عَذَابِ اللهِ اوْ تَاتِيَهُمُ الساعَةُ بَغْتَةً وَهُمْ لاَ يَشْعُرُونَ.**<br>**ديوسف سورت،۱۰۷-ايت**<br>آيا داچې دالهي «عذاب»پرده له هغوې تاوشي،اوداساعت په ناڅاپه اوبې له پوهاوي |

| | |
|---|---|
| | راورسيړي دامنيت احساس به کوي؟ |



# دانجيل اوقران ترمنځ مشترکې نښې اوکلمات

| انجيل | قرآن |
|---|---|
| مجازات<br>دوعدې دپای زمانه | عذاب<br>ساعت |

| دانجيل اضافي نښې | دقران اضافي نښې |
|---|---|
| ناڅاپه | آيادامنيت |

| دخلکو(ناآګاهي)ناپوهې | احساس |
|---|---|

دمخکنیو ایاتونو څخه کیدلی شي پیداکړئ چې داسې یوه«واقعه» یا«وعده» په کار لویدلې ده. چې خلک دهغې له هویت اوحقیقت څخه بې خبره دي. داواقعه دومره پټه ده. چې حتی پیغمبران دهغې په اسرارو نه پوهیږي.ددې واقعې شاته داسې یوه نامعلومه نقشه ده. چې یواځې پروردګار په هغې خبر دی.

**پوښتنه**:ددې «نقشې» دپټ ساتلو سبب څه شی دی؟

**لمړی**:دمؤمنانو دامتحان اوپیژندنې لپاره دی.

**ان الساعَةَ ءاَتِيَةٌ اكَادُ اخْفِيهَا لِتُجْزَى كُل نَفْسٍ بِمَا تَسْعَ .**

**دطه سورت،۱۵-ایت**

کله چې هغه «ساعت»راورسي.زما نقشه داده، چې هغه پټه وساتم. ترڅو هرکس ته دهغه دکوښښ په اندازه پاداش ورکړم.

**دوهم** :دوعدې دتحقق پورې مربوط دی .ددې «لوی واقعې»ظهوربه ، دټولنې نظم اوثبات ، رسم او رواجونه ګډوډکړي،دقدرت دصاحبانوترمنځ به دوحشت اوویري سبب شي.هغه جاه طلبان به دخپل مقام اومنصب دساتلو لپاره دخدای دوعدې دتحقق دمخنیوي په خاطر سخت کوښښ وکړي .دهغو قدرتمنو دښمنانو پوهاوی به دپروردګار نقشې اجرا

کولو ته خطر پیښ کړي .دخلکو پوهاوی له هغې پټې نقشې،له انجامه



---

---

وروسته کوم ممانعت اوبندښت نه لري
.دا«وعده»یا«واقعه»دومره داهمیت وړ ده، چې انجام به ئې یولحظه هم مخکې اووروسته نشي .په ناڅاپي توګه اوبې دخلکو دخبریدو هغه«ساعت» راورسي. اودپروردګار پټه نقشه به تحقق پیداکړي.
**پوښتنه:** ولې ددې «وعدې یاواقعې»تحقق دیوشمیر خلکود«مجازاتو»یا«عذاب»سبب کیږي؟«عذاب»دڅه لپاره؟
نوراسماني کتابونه اودقران ایتونه ټول ددې ښوونه کوي .چې د«موعود ورځ»دهغو کسانو لپاره دخوښې اوکامیابې ورځ ده ،چې دالهي لمر دراختلو اووړانګو څخه ئې خبر ترلاسه کړی وي. دغفلت له خوبه

پاخیږي. اوجشن نیسي. اودائې پیداکړې ده. چې
دخدای دوعدې دانجام وخت رارسیدلی دی.اوهغه
اسماني اثارداهم مونږ ته رازده کوي. چې هغه «لویه
ورځ» دهغو کسانو لپاره دغم اوماتم اومعنوي عذاب
ورځ ده. چې دناپوهې په خوب ویده وي ،دالهي لمر
دراختلو اووړانګو نه بې خبره وي.داڅومره غټه بلاده
چې انسان له داسې رڼا اودهغو دوړانګو نه بې نصیبه
وي ؟ اوددې نه به بل غټ مصیبت چیرته وي. چې
انسان دپروردګار دعوت ونه مني؟ددې نه غټ عذاب
به بل کوم وي. چې انسان دپروردګارله نور نه وتښتي
.دغفلت په تیاره کې ،په خوب اوخیال کې ژوند
تیرکړي. اوله دې دنیا سترګې پټې کړي؟له دې بل کوم
غټ غم کیدلی شي چې انسان پسرلی ژمي
وګڼي،اودهغه ښکلې اودخوښې ډک موسم اوزمان نه
بې ګټې اوبې نصیبه پاتې شي؟

**حضرت بهاءالله فرمائي پیغمبران دالهي فیض اوخلکو ترمنځ واسطه وي .هوښیار انسان ته نه ښائي چې دځنې کلماتو دمعنا دنه درکولو په سبب دالهي رحمت اوفضل په دروازو دتړلو فکر وکړي .په دې ګومان چې دپوهې اواګاهې دلمر رڼا پای ته رسیدلې اونور به جهان له هغه څخه بې برخې وي.۲۶**

---

داچې دموعود ظهور «ښه خبر»دی، دځینې خلکو لپاره ،اودځنې نورو لپاره «بدخبر»دی،دپروردگار په کلام کې ئې په کراتو سره تکرار شوی دی:



ناڅاپه سرته رسي.

---

**انا ارْسَلْنَاكَ بِالْحَقِّ بَشِيرًا وَنَذِيرًا.**

**دفاطر سورت،۲۴-ایت**

په حقیقت کې ته مې ددې په خاطر واستولې چې خلکو ته دښه اوبدخبر ورکړئ.

**وَمَا ارْسَلْنَاكَ الا كَافةً لِّلناسِ بَشِيرًا وَنَذِيرًا.**

**دسبا سورت،۲۸-ایت**

ماته نه ئې لیږلی مگر ددې په خاطر چې ټولو ته ښه خبرورکړئ اوهغوې ته اخطارورکړئ.

**پروردګارزه(مسیح) ددې لپاره (متبرک)کړي يم. چې دالهي رحمت اوفضل دورځې يعنی د(ښه خبر)اودغضب دورځې يعنې(بدخبر)اعلان وکړم..**

**اشعيا، ۶۱فصل، ۱-۲،ايتونه**

**دلوقا انجیل ۴فصل،۱۸- ۱۹،ايتونه**
**«نن ورځ دجزاء»اودعطا ورځ ده.۲۷**
**حضرت بهاءالله**
زه بايد دښه خبراويادخدای دسلطنت دظهوردوعدې ښوونه ورکړم...ځکه زه دهمدې لپاره راليږل شوی يم. حضرت مسيح(دلوقا انجيل،۴فصل،۳۴-ايت)
**تَنزِيلٌ مِّنَ الرحمن.بَشِيرًا وَنَذِيرًا.**
**فصّلت سورت، ۲-۴ايتونه**
(قران)دبخښوونکي اومهربان خدای د«وحې»کتاب دی...ښه خبرونه اوبدخبرونه لري.
**نن ورځ دمجازاتو اومکافاتو ورځ ده،عادل اوحکيم پرکرسی ناست دی.دخدای نه غواړم چې بنده ګان... خپل ځانونه ددې«لوی امر»څخه محروم نه کړي.۲۸**
**حضرت بهاءالله**

لازمه ده پوه شو، چې په دې جهان کې د«عذاب پردې»چې دپروردګار دموعود څخه دانکار په وسیله زمونږ دتول وجود نه راتاووي.هیڅ ډول پوهاوی نه لرو.په همغه ډول چې موولیدل،مهربانه خدای دخپلې «وعدې»دښمنان اومنکرین مخاطب کړي اوله هغو پوښتنه کوي:

---

حضرت مسیح داوعده په پوره توګه سرته رسولې .په کراتو دبهائي ائین دظهور کال داسلام دتاریخ مطابق زیری ورکړئ .په همغه ترتیب چې یادونه ئې وشوه حتی ۱۲۶۰عدد(دحضرت باب دظهور کال دهـ ق. تاریخ په اساس)په عین توګه ذکر کړی دی.ددې موضوع دتحقیق لپاره ،(زه دوباره راګرځم I S hall Come Again)کتاب ته چې ددې مؤلف یوبل اثر دی مراجعه وکړی.

**فَامِنُواْ ان تَاتِيَهُمْ غَاشِيَةٌ مِّنْ عَذَابِ الله... وَهُمْ لاَ يَشْعُرُونَ**
**.      ديوسف سورت،۱۰۷-ايت**

**۱ .ژباړه:**آيا کله چې دالهي«عذاب پردې»بې له دې چې هغوې پوه شي پخپل ځان کې رانغاړلي دي..دامنيت احساس وکړي؟

**۲ .ژباړه:**آيا فکر نه کوی چې دالهي«عذاب پرده»به ئې سراسر وجود بې له دې چې پوه شي ونيسي؟

زمونږ دپوهې نه شتون ددې«پردې» نه دخلاصون لپاره کوم دليل نشي کيدلی .ډير داسې خلک دي چې ظاهراً روغ اوجوړ دي اوخپل ځان له مرګ نه لرې ګڼې ،خوله دې غافل دی چې ټول وجود ئې خطرناکې ناروغې نيولی دی.

**هيڅ داسې څوک نشته چې دخپل ځان اودخدای ترمنځ کومه ګناه سرته ورسوي.بلکه ګومان کوي څه چې کوم دخدای لپاره دي .اوحال داچې دالله لپاره نه وي.۲۹**

**حضرت باب**

**دخپل لويوالی لپاره ئې هغه ته کوي .ولې پرهغه ئې کوي هغه څه چې کوي.۳۰**

**حضرت باب**
**په هغه ورځ ،پخپله ګومان کوي چې جنتي... دی خو... په اصل کې اور ستاځای دی اوته پخپله نه پوهيږي.۳۱**
**حضرت باب**

حضرت باب خپل پيروان تشويقوي چې وروسته دموعود له ظهور (حضرت بهاءالله)دخبريدو څخه په ډيرې عجلې سره دهغه غږ ته ځواب ووائي:

**لا تصبرن فيه فان صبرتم لم يکن الاّ علی النّار و انتم يومئذ لاتعلمون.۳۲ حضرت باب**

په دې کار کې صبرمه کوي .اوکه صبر وکړی په «اور»کې به اوسې ،بې له دې چې پوه شی.
دپروردګار په ډيرو ايتونو کې د«اور»کلمه راغلې ده.د«اور»يا«اتش»نه مقصد دبنده لريوالی دخدای څخه دی .دخدای نه دلريوالی نتيجه څه شی دی؟په هره اندازه چې خدای ته نږدی اوسو زمونږ خوښې به زياته وي ،اوهرڅومره چې دخدای څخه لرې اوسو زمونږ غمونه به زيات وي .دقران مجيد دآيتونو په اساس سخت ژوندد دوزخ سره برابردی.«مَعِيْثَةً ضنکاً»دطه سورت،۱۲۴-ايت هميشنې خوښې يواځې

دخدای سره په نږدیکت کې ده اوغم اوماتم دخدای نه په لریوالي کې دی!



---

---

دادپروردګار نقشه ده ،که وغواړو اوکه ونه غواړو .زمونږ خالق دغسې تقدیر ټاکلې دی.مونږ په غیر له دې چې تسلیم شو بله چاره نه لرو.

**خوش بود تسلیم وخوشتر زآن رضا**
**حضرت عبدالبهاء**

دپیغمبرانو دشهادت پر اساس دپروردګار د«وعدې»دښمنان د«عذاب دپردې»نه چې ددوې وجود ئې نیولی دی، اوهغه (اور) چې ددوې په روح کې لږیدلی هغه وخت خبر شي، چې په همیشنې عالم کې قدم کښیږدي.ځکه دهرانسان دروح مقام په دې جهان کې پټ دی .اما کله چې له دې دنیا نه هغې بلې دنیا ته سفروکړئ،ناڅاپه به«پرده»لرې شي اورازونه

به ښکاره شي. اودامطلب په اسماني اثارو کې تکرارشوی دی:

**فَسَوْفَ يَعْلَمُونَ.**

**دحجر سورت، ۹۶-ایت**

ژردې چې پوه به شي!

**سَيَعْلَمُونَ ثُم كَلا سَيَعْلَمُون.**

**دنباء سورت، ۵-۴،ایتونه**

پس ژردې چې پوه به شي!

**ژردې چې په خپلو عملونو پوه شي اوخپل ځان به ملامت کړي. ۳۳ حضرت بهاءالله**

**ان الذِينَ كَفَرُواْ بِآيَاتِنَا سَوْفَ نُصْلِيهِمْ نَارًا.**

**دنساء سورت، ۵۶-ایت**

هغه خلک چې زما دایتونو نه منکردي،ډیر ژر دي چې په اور کې به ولویږي.

**ډیر ژردې چې هغه پردې به لرې شي. اودخپلو عملونو نتیجې به وګوري. اوخپل ځانونه به پېره اوملامته کړي. ۳۴**

**حضرت بهاءالله**

**هُوَ سَرِيعُ الْحِسَابِ.**

**درعد سورت، ۴۱-ایت**

هغه ډیر ژردې چې دخلکو حساب ته ورسي.

باید پوه اوسو چې د«عذاب پرده»په دوه ډوله ده ،یوه هغه ده چې دمنکرینو روح نه تاووي اوبله هغه ده. چې دهغوې ټولنې نه راتاو وي.یوه نفس دروح نه تاو وي اوبله دجسم نه تاو وي .اوله ئې پټه ده اودوهمه ئې ښکاره ده.



---

---

اوله ئې دخدای نه دلریوالي په سبب ده. اودوهمه ئې په دې دنیا دجنګونو اوبلاګانو موجب ده. اوله ئې دمعنوي فقر سبب ده، اودوهمه ئې ددنیائې فقر موجب ده . اوله ئې د روحی فساد اوناروغې سبب ده، اودوهمه ئې داجتماعي فساد اوناروغې موجب ده. مهربانه خدای همیشه مونږ ته اخطار راکړی اوراکوي. چې دمخکنیو نسلونو برخلیک نه دعبرت

درس واخلو . هرکله چې خلکو دهغه دموعود څخه انکار کړی ، ددې دنیا په عذابونو اوبلاګانو هم اخته شوي دي .دهغوې انکار دپروردګار څخه دهغوې دجدائي سبب شوې دی. اوپه ګناهونو ککړ شوي دي.دادخدای څخه جدائي اوپه ګناهونو اخته کیدل ،باالاخره هغوې په دې دنیا کې تباه کړي دي:

**اوَلَمْ يَسِيرُوا فِي الْارْضِ فَيَنظُرُوا كَيْفَ كَانَ عَاقِبَةُ الذِينَ مِن قَبْلِهِمْ... وَجَاءتْهُمْ رُسُلُهُم بِالْبَيِّنَاتِ فَمَا كَانَ اللهُ لِيَظْلِمَهُمْ وَلَكِن كَانُوا انفُسَهُمْ يَظْلِمُونَ ثُم كَانَ عَاقِبَةَ الذِينَ اسَاؤُوا السُّوأَى أَن كَذبُوا بِآيَاتِ اللهِ وَكَانُوا بِهَا يَسْتَهْزِؤُون.** **دروم سورت،(۹- ۱۰)ایتونه**

آیا په ځمکه کې نه ګرځي چې وګوري مخکنې خلک په څومره بد برخلیک اخته شوي دي؟...هغوې ته پیغمبران ددلیل اوبرهان سره راغلل[ولې هغوې ورڅخه انکار وکړ] پس پروردګار دهغوې سره ظلم نه دی کړی، هغوې دخپل ځان سره ظلم وکړ.دهغوکسانو فرجام او اخیر څومره بد دی.چې بد کوي ،هغه خلک چې الهي ایتونه اوکلمات دروغ ګڼي اوپه مسخره کولو ئې شروع وکړي:

**وَكُلانقُص عَلَيْكَ مِنْ انبَاء الرسُلِ... وَمَوْعِظَةٌ وَذِكْرَى لِلْمُؤْمِنِينَ.** **دهود سورت،۲۰-ایت**

هغه څه چې تاته دپیغمبرانو داخبار څخه نقلوم
...دمؤمنانو لپاره پند اوعبرت دی.
**لَقَدْ كَانَ فِي قَصَصِهِمْ عِبْرَةٌ لِّاوْلِي الالْبَابِ.**
**ديوسف سورت، ۱۱۱-ایت**
دعقل والاو لپاره دهغوې قصې دعبرت څخه ډکې دي.
**وَمَا كُنا مُعَذِّبِينَ حَت نَبْعَثَ رَسُولاً.**
**دبنی اسرائیل سورت، ۱۵-ایت**

**اوهم دقصص سورت، ۵۹-ایت**
ترڅو مې چې پیغمبر نه وي لیږلی ،خلک به مجازات
نه کړم.

**ا ن اللهَ لاَ يَظْلِمُ الناسَ شَيْا وَلَكِن الناسَ انفُسَهُمْ يَظْلِمُونَ.**
**ديونس سورت،۴۴-ايت**
خدای په هيڅ وجه په خلكو ظلم نه كوي .خلک په ځان ظلم كوي.
**اې دپروردګار دوستانو! دبې نيازه خدای اواز دزړه په غوږونو واورئ .ترڅو تاسې له تورو تيارو نه خلاصون پيداكړئ . اوهميشنې روښنائي ته ورسئ.۳۵ حضرت بهاءالله**
**بې نيازه په لوړ اواز فرمائي:دخوښيو جهان راغلی ،غمجن مه اوسئ ،پټ راز ښكاره شوی مه خپه كيږئ .كه ددې ورځې په لوړتيا پوه شئ له دې جهان اوهغه څه چې په دې جهان كې دی تير شئ.اودپروردګار خواته به په منډه شئ.۳۶ حضرت بهاءالله**
**انا امَرْنا الْبَشَرَ بِالصلْحِ الاكبَرِ لِيَسْتَرِيْحَ بِهِ الْعالَمُ وَالناسُ نَبَذُوا امْرَ اللهِ عَنْ وَراهِمُ وَاتبَعُوا سُبُلَ الْمُفْسِدِيْنَ ... ۳۷ حضرت بهاءالله**
مونږ خلكو ته د«صلح اكبر»امر كړی دی. ترڅو عالم راحت پيداكړي. امّا هغو«دخدای امر»ونه منل. هغه ئې شاته كړ. دمفسدوخلكو پيروي ئې وكړه. داايتونه مسلمانانو ته خطاب دی:

**وَلَقَدْ اهْلَكْنَا الْقُرُونَ مِن قَبْلِكُمْ لَما ظَلَمُواْ وَجَاءتْهُمْ رُسُلُهُم بِالْبَيِّنَاتِ وَمَا كَانُواْ لِيُؤْمِنُواْ كَذَلِكَ نَجْزِي الْقَوْمَ الْمُجْرِمِينَ ثُم جَعَلْنَاكُمْ خَلائِفَ فِي الارْضِ مِن بَعْدِهِم لِنَنظُرَ كَيْفَ تَعْمَلُونَ.**

**دیونس سورت،۱۳- ۱۴،ایتونه** پیړۍ پیړۍ مخکې له تاسې د(مسلمانانو)قومونه ؤ چې هغوې مې نابود کړل.هغوې ته پیغمبران په دلیل او ثبوت سره راغلل ،امّا هغوې ورباندې ایمان رانه وړ،دارنګه ګناهکارانوته جزا ورکوم وروسته له هغوې مې تاسې(مسلمانان)دهغوې په ځای په ځمکه پیداکړئ ترڅو(تاسې وازمایم)اووګورم چې تاسې څه کوی. **فَهَلْ يَنتَظِرُونَ الامِثْلَ ايامِ الذِينَ خَلَوْاْ مِن قَبْلِهِمْ قُلْ فَانتَظِرُواْ انِّي مَعَكُم مِّنَ الْمُنتَظِرِينَ.**

**دیونس سورت،۱۰۲-ایت**
آیا اینده ته په غیر له مخکښنیو انتظار لري؟ووایه!په انتظار کې پاتې شی .زه هم له تاسې سره په انتظار کې یم!

ډېر خلک دي، ترڅو بلاګانې اوسختې ونه ګوري
.دايمان دهديه په قدر نه پوهيږي. اونه ئې پيژنې
.لازمه ده. په دې پوه شو. چې پروردګار هيڅکله په
مونږ ظلم نه کوي .هره بلا چې په مونږ راځي. «هغه
له مونږ ده چې پرمونږه ده»ددې ټولو بلاګانو سرچينه
دپروردګار دپيغمبرانوڅخه انکار کول دي:
**الَمْ يَاتِهِمْ نَبَاالذِينَ مِن قَبْلِهِمْ قَوْمِ نُوحٍ وَعَادٍ وَثَمُودَ وَقَوْمِ ابْرَاهِيمَ وِاصْحَابِ مَدْيَنَ وَالْمُؤْتَفِكَاتِ اتَتْهُمْ رُسُلُهُم بِالْبَيِّنَاتِ فَمَا كَانَ اللهُ لِيَظْلِمَهُمْ وَلَكِن كَانُواْ انفُسَهُمْ يَظْلِمُونَ.**

**دتوبه سورت، ۷۰-ايت**

آيا دمخکنيو خبرواوقصو څخه هغوې ته نه دي
رسيدلي؟دهغې له جملې نه دنوح قوم ،ثمود قوم
،دابراهيم قوم،دمدين اوسيدونکي اوهغه ښارونه چې بل
مخې شو؟هغوې ته پيغمبران ددليل او ثبوت سره

راغلل.(امّا هغوې ورڅخه انکاروکړ.)پروردګار په هغوې ظلم نه دی کړی.هغوې پخپله په ځان ظلم کړی دی.
دپروردګار دشهادت په اساس زمونږ برخلیک زمونږ په لاس کې دی:
**اللهَ لَمْ يَكُ مُغَيِّرًا نِّعْمَةً انْعَمَهَا عَلَ قَوْمٍ حَت يُغَيِّرُواْ مَا بِانفُسِهِم. دانفال سورت،۵۳-ایت**
پروردګار خپل فضل اونعمت ته دهیڅ قوم دپاره تغیر نه ورکوي. مګر کله چې هغه قوم پخپله ځان ته تغیرورکړي.دپروردګار دقران ایتونه ،اودپیغمبرانو دظهور قصې ددې شهادت ورکوي. چې سختې اوبلاګانې دخلکو دبیدارۍ وسیله ده. زمونږ عصر هم له دې قانون څخه مستثنې نه دي:
**وَمَا ارْسَلْنَا فِي قَرْيَةٍ مِّن نبِيٍّ الااخَذْنَا اهْلَهَا بِالْبَاسَاء وَالضراء لَعَلهُمْ يَضرعُونَ.**

**داعراف سورت،۹۴-ایت**
هرځای او دیار ته مې چې پیغمبر لیږلی ،دهغه ځای اوسیدونکي مې په بلاګانو اخته کړي دي. شاید چې هغوې هوښیار شي. اودخدایه مرسته وغواړي.
دپوره ډاډ اواطمنان لپاره دپروردګار په«وعده»باندې اود«قران دلوی معّما»په اسرارو دپوهاوي دپاره

لازمه ده. دقران اوانجيل دوه نمونې بررسي اومقايسه کړو:



| انجیل | قرآن |
|---|---|
| کله چې هغه[ مسيح] دزيتون دغره په سرناست ؤ ملايکې راغلې چې دهغه سره خاصې خبرې وکړي .وئې ويل مونږ. ته ووايه: چې داوعده به څه وخت رامنځ ته شي؟ ستا دراتګ علامې به څه وي، اودعصر دختميدو علامې به څه وي؟... | **وَيَقُولُونَ مَتَ□َ هَذَا الْوَعْدُ ان كُنتُمْ صَادِقِينَ... بَلْ تَاتِيهِم بَغْتَةً فَتَبْهَتُهُمْ فَلَا يَسْتَطِيعُونَ رَدهَا وَلَا هُمْ يُنظَرُونَ .**<br>**دانبیاء سورت، ۴۰-۳۸،ایتونه**<br>وبه وائي: که ربښتيا وائی، دا«وعده» څه |

حضرت مسيح په ځواب کې ورته وويل چې هيڅوک دهغه ورځې اوساعت نه خبر نه دی.حتی فرښتې داسمان ترې خبرې نه دي . حتی مسيح . يواځې پروردګار ترې خبر دی. دمسيح(دانسان دزوي)راتګ په وخت کې به وضع په داسې حالت کې وي. لکه دنوح عليه السلام په وخت کې چې وه...بيدار اوسئ .ځکه نه پوهيږی چې پروردګار به څه ورځې راولي. کله چې ستاسې انتظار ډير کم دی .دانسان زوی به راشي... دهغو بنده ګانو حال به دخوښيو ډک وي چې دخپل ارباب(موعود)دراتګ په وخت کې بيدار وي.
دمتی انجيل
۴۴،فصل،۳- ۴۶،ايتونه

وخت ده ؟ دا وعده به ناڅاپه پرهغوې راشي اوهغوې به هک پک شي.اوهغوې به دظهور ممانعت ونشي کړلی اونه به هغوې ته ددې مهلت ورکړل شي.

## دانجيل نښاني

| | |
|---|---|
| ...<br>نشي ب...<br>هغوې | **دعصر ختميدل(پايان)**<br>**ساعت**<br>**په غير دخداى نه ټول بې خبره**<br>**دنوح دزمانې سره به وضع شباهت ولري**<br>**بيداراوسئ**<br>**دوعدې انجام هغه وخت دى چې منتظره نه اوسى**<br>**دوعدې دانجام په وخت کې بيداره اوسي** |



هغه نښانې چې په قران کې ورکړل شوي دي،څو نکتې ئې تازه دي،يوه داچې بې ايمانه اوظالم خلک به نشي کولی چې دپروردګار د«وعدې»دانجامولو مانع اوخنډ شي. ددې فرصت اووخت به ونه لري.چې خپلې نقشې سرته ورسوي.مخکې له دې چې پوه شي. څه خبره ده ،وعده به سرته رسيدلې وي .دپروردګار داکلام مونږ ته وښائي. چې دپروردګار «وعده»ډير منکرين اودښمنان لري .چې دهغې وعدې دملاتړ کوونکو سره جنګ ته پورته کيږي.امّا دادښمنان خپل مقصد ته درسيدلو څخه عاجز دي.اومخکنې ايت

دخلکو د دګیج کولو اشاره هم ورکوي دانکته په نورو اسماني اثارو کې هم تائید شوې ده:

| | |
|---|---|
| دخدای ورځ به راورسي ...دهغوې دهک پک کیدلو وخت دی.دمیکا،۷فصل،۴-ایت | **تَاتِیهِم بَغْتَة فَتَبْهَتُهُمْ .انبیاء سورت، ۴۰-ایت** ناڅاپه راځي او هغوې به ګیج شي. |

دخلکو دګیج کیدلو سبب څه شی دی ؟ هره واقعه چې غیر منتظره اوناڅاپې وي ،دګیج کیدلو سبب کیږي. څرنګه چې خلک دزمان دموعود دپیژندلو استعدادنه لري اودهغې«ناڅاپې پیښې»سره مخامخ کیدلی نشي،نه پوهیږي چې څه وکړي. له یوې خوا دپروردګار دنقشې طرفدارانو بلنه اودعوت اوري اوله بلې خوا دنقشې ددوه مخو دښمنانو مخالفت ګوري.په دې ګیرودار کې نه پوهیږي. چې څه وکړي. اوڅوک په حقه دي.د«قران دلوی معمّا»دحل لپاره دمخکنیو ایاتونو دمطالعې نه علاوه کولی شو دوه نورې لارښوونې هم وګورو:

- دپروردګار کلي نقشه دانسان دتربیت اوتکامل لپاره .
- دهغو امامانو وینا ګانې اواثار چې دپروردګار الهام ئی پیداکړی وي.

دپروردګار کلي نقشه په دوه مخکنیو جلدونو کې : ولې دې جهان ته راغلې یو؟ اود پروردګار نقشه دانسان

دسعادت لپاره بررسي کړی.په دې فصل کې دامامانو
په دوه نمونو اواثارو په يادونې بسنه کوو.



---

په همغه ترتيب چې دمخه وليدل شو،په دې کتاب کې
کوښښ شوی دی. چې ټولې نښې اومراجع دقران وي
.همدغسې دامامانو دوينا بررسي دقران دتائيد له مخې
شايد چې دډيرو لپاره دډاډاو اطمنان وړ وي.په لنډه
توګه يواځې په دوه حديثه بسنه کوو .اما ددې دوه
حديثو لرې کول زمونږ په بحث باندې هيڅ اثر نه

لري.زمونږ دعصر ددوه پيغمبرانو حقانيت يواځې دقران په ايتونو داثبات وړ دي.پردې برسيره دقران ايتونه دهغه دوه حديثونو صحت تائيدوي .اوپه واقعيت كه دامامانو دوينا هغه دوه نمونې دقران دمطالبو همغه تكرار دى،ديوې نوې نكتې سره چې دهغه كتاب مقصد لاروښانه كوي.

دشيعه ګانو لپاره ،دامامانو دوينا پراخه مرجع دظهور په باره كې دولسم امام«بحارالانوار»دى. په هغه كتاب كې( ۳۹ ) ناخاپه راتلل د«قيامت»او«ساعت»په «قيام قائم»موعود سره تعبير شوى دى.د«بحارالانوار»داحاديثو پر اساس كله چې اميرالمؤ منين درسول اكرم نه پوښتنه وكړه دقايم موعود دظهورپه باره كې .دهغه حضرت ځواب كټ مټ همغسې دى چې په قران كې نازل شوى دى.يواځې دايوه نكته ئې اضافه كړې، اوهغه داچې داوقايع دقائم ظهور پورې اړه لري:

**عِلْمُهَا عِندَ رَبِّي لاَ يُجَلِّيهَا لِوَقْتِهَا الاهُوَ.**

**داعراف سورت،۱۸۷-ايت**

يواځې پروردګار دهغه زمان څخه خبر دى.هيڅوك په غير له هغه وخت نشي ښودلى.

**يا رسول الله متى يخرج القائم من ذريتك فقال لايجليها لوقتها الاّ هو .مثله مثل الساعة...لا يأتيكم الاّ بغتة.**
**بحارالانوار،۱۳جلد،۴۱صفحه**

اې دخدای پیغمبره ،قائم چې ستاسې دنسل دی ،څه وخت به ظاهر شی؟وویل:دهغه دظهور وخت به په غیر دپروردګاره بل څوک ښکاره نه کړي .دهغه راتګ په مثل دساعت دی...ظاهربه نشي مګر ناڅاپه.

---

د دانیال کتاب دایت شباهت دقران له ایت سره، توجه وکړئ:

**داکلمات او(وړاندوینې)به پټې اومهر شوې تر«اخرالزمان»پورې پاتې شي.**

**دانیال ،۱۲فصل،۹-ایت**

**هَلْ يَنظُرُونَ الا الساعَةَ ان تَاتِيَهُم بَغْتَةً وَهُمْ لَا يَشْعُرُونَ.**
**دزخرف سورت، ۶۶-ایت**

آیاپه غیر له دې انتظار لری، چې«ساعت»به ناڅاپه په هغوې راشي،او هغوې به پوه نشي؟همدارنګه د«نجم ثاقب»په کتاب کې له امام حسن څخه نقل شوې چې وائي:«قائم به دقیامت په شان ظاهرشي. په غیر دخدای بل څوک په هغه خبر نه دی، بې خبره راځي، او هغه ساعت دی.

نه یواځې داسلام په اثارو کې چې«قیامت»په ظهور دقائم اودخلکو پاڅیدل دغفلت دقبرونو سره تعبیر شوي دي.انجیل هم دامطلب تائیدوي. دهغې جملې نه حضرت مسیح وائي:

**زه «قیامت»اوژوندیم.که څوک په ماایمان لري،که څه هم مری،(امّآ)راژوندی به شي.هرڅوک چې ژوندې دی اوباایمانه دی.هیڅکله نه مري.آیا په دې باور کوي؟**

**انجیل یوحنا،۱۱فصل،۲۵- ۲۶ایتونه**

هغه ایتونه اونښانې چې مونږ په دې فصل کې بررسي کړی. ټول ددې ښکارندوې دي چې داسې یوه

«وعده»او«واقعه»راتلونکې ده. چې مونږ ئې باید په انتظار کې اوسو. برسیره پردې ایتونو، قران مجید کې نور داسې ایتونه هم دي. چې له
«وعدې»او«ساعت»څخه خبرې کوي. په دې توپیر سره چې د«ساعت»درارسیدو کال اود«وعدې
»دانجام وخت راته ښائي .داایتونه به په راتلونکو دوه فصلونو کې بررسي شي.

دقران ډیر ایتونه ددې خبرورکوي چې:

- دموعود له ظهوره وروسته ډیر خلک بې خبره پاتې کیږي.
- یوه بله ډله دهغه ائین دخپریدلو دمخنیوي کوښښ کوي.

آیا له دې روښانه کیدلی شي خبرورکړي :

**وَيَقُولُونَ مَتَ هَذَا الْوَعْدُ... اثُم اذَا مَا وَقَعَ آمَنْتُم بِهِ ... وَيَسْتَنبِونَكَ احَق هُوَ قُلْ اي وَرَبِّي انهُ لَحَق وَمَا انتُمْ بِمُعْجِزِينَ ... الاَ اِنَّ وَ عْدَ اللهِ حَق وَلَكِن اكْثَرَهُمْ لاَ يَعْلَمُونَ.**

**دیونس**

**سورت،(۵۵، ۵۳، ۵۱، ۴۸)ایتونه**

وائي به کله به د«وعدې»دپوره کيدو وخت
رارسيږي؟...آيا وروسته له هغې چې
د«وعدې»«واقعه»سرته ورسي،په هغې به ايمان
راوړي؟...آيا دخدای دوعدې له انجامه وروسته به
خلک مؤمنان شي؟
هغوې پوښتنه کوي:آيا هغه (موعود)حق
دی؟.ووايه!هو،په خدای قسم دی،البته هغه حق دی
.اوتاسې نشی کولی چې دهغه خنډ شی ...آيا دخدای
وعده حقيقت نه ده؟(البته حقيقت ده)اما ډير خلک
دخدای دوعدې څخه خبرنه دي.
**وَهَذَا صِرَاطُ رَبِّكَ مُسْتَقِيمًا..الَمْ يَاتِ كُمْ رُسُلٌ مِّنكُمْ يَقُصُونَ عَلَيْكُمْ آيَاتِي وَيُنذِرُونَكُمْ لِقَاء يَوْمِكُمْ هَذَا..ان مَا تُوعَدُونَ لآتٍ وَمَا انتُم بِمُعْجِزِينَ. دانعام سورت،۱۲۶، ۱۳۰، ۱۳۴-ايتونه**
داسمه لارستا دپروردګارده...آيا ستاسې له منځه
پيغمبران نه دي راغلي؟آيا زما ايتونه ئې تاسې ته نه
دي ويلی؟اوتاسې ته ئې دداسې ورځې دليدو اخطار نه

ؤ درکړی؟...په یقین سره دهغه څه چې تاسې سره وعده شوې تحقق پیداکړي.اوتاسې به دهغې دتحقق مخنیوی ونشی کړی.

**انّ هذا لهو الحقّ صراط الله في السّموات والارض فمن شاء اتّخذه الی الله بالحقّ سبیلاً . ٤٢**

**حضرت باب**

په یقین سره داحقیقت ده ،داهغه لاره ده. چې خدای دځمکې اواسمانونو داوسیدونکو لپاره جوړه کړی.پس هرڅوک چې مایل دی. په دې لاره ولاړشي. په کومه چې خپل رب ته رسیدلی شي.

**فیا ایها البصیر !صف نظرک و الطف بصرک ان ا لله قد اظهر هذاالامر من مقام لم یخطر بقلب احد .٤٣**

**حضرت باب**

اې لیدونکیه**!**(اې هغه څوکه چې نوم دی بینا دی**!**)نظر دې صفا کړه اولیدنې دی ښکلې او«لطیفې کړه»**!**پروردګار دا«امر»له داسې«مقام»[له داسې چاپه داسې شکل]چې دهیچازړه ته نه لویدل ښکاره کړل.

## پروردګاردهغه له کلام

## څخه

**پیژندلې شي**

حضرت حجتّ یعنې حضرت نقطه اولی ښکاره شول په ایتونو اوبیّنات سره.

**اوپوه شي چې داکتاب[بیان]دالله دلورې دی.۴۵**

**حضرت باب**

قران اوبهاءالله

۱۶۸

---

---

**داهغه موعود دی. چې ټولو اسماني کتابونو دهغه زیری او(بشارت)ورکړی،خودځمکې والادهغه څخه غافل ښکاري.۴۶**

**حضرت بهاءالله**

**قل یا قوم انّ اصابع قدرة ربکم العل□ الابه□ تحرّک هذاالقلم الاعل□ و هذا لم یکن من عندی بل من لدی الله ربکم و رب آبائکم الاولین .**

**۴۷ حضرت بهاءالله**

وایه!اې خلکو:دا«قلم اعلی»ستاسې دپروردګار په قوي ګوتو په حرکت راځي دااواز زمانه دی.دادخدای

لخوا دی.ستاسې پروردګار اوستاسې دلمړينو پلرونو پروردګار دی.

**ووايه!اې خلکو :عمر دبرق په شان تيريږي .او ډير ژر دې چې زمونږ د غوښتنو اوهيلوتغر ټول شي دغفلت له خوبه سر پورته کړئ.۴۸**

**حضرت بهاءالله**

**اې دپروردګار بنده!هغه ونه چې مادبخشش په لاس کرلې .اوس دميوې سره ښکاره شوي اوهغه وعده مې چې په کتاب کې درکړې اوس له اثراتو سره څرګنده ده.۴۹**

**حضرت بهاءالله**

**نن ورځ دژوند نهرظاهردی. اوحقيقي روح موجود دی.کوښښ وکړئ،ترڅودډې بې منتهی فضل نه خپله برخه واخلئ.دداسې مبارکې ورځې مثل اونظيرنه ؤاونه به وي. هغه څه چې له منځه لاړشي دهغوې بيرته اماده کول ناشونئ کاردی.۵۰**

**حضرت بهاءالله**

## اودخدای دوعدې دانجام اوبشپړیدلووخت

د«وعدې»دوخت مربوطو ایتونو دتحقیق اوڅیړنې لپاره ښه به وي چې بحث دهغو ایتونو څخه چې مخکې ذکر شوي دي په یوایت شروع کړو.

**وَلِكُلِّ ا مةٍ رسُولٌ فَاذَا جَاء رَسُولُهُمْ قُضِيَ بَيْنَهُم بِالْقِسْطِ وَهُمْ لاَ يُظْلَمُونَ وَيَقُولُونَ مَتَ هَذَا الْوَعْدُ ان كُنتُمْ صَادِقِينَ قُل...لِكُلِّ امةٍ اجَلٌ اذَا جَاء اجَلُهُمْ فَلاَ يَسْتَاخِرُونَ سَاعَةً وَلاَ يَسْتَقْدِمُونَ.**

**دیونس سورت،۴۷- ۴۹،ایتونه**

دهرامت لپاره پیغمبر دی. کله چې دهغوې پیغمبر ظاهر شي .دهغوې په منځ کې به په عدالت حکم کوي .ترڅو دهغوې سره ظلم ونشي .وائي به :که ته رښتیا وائې.داوعده چې مونږ ته راکوئ دابه کله سرته ورسي؟ ووایه!...دهرامت لپاره خاص وخت ټاکل شوئ، هرکله چې دهغه اجل راورسي. نشئ کولی حتی یوساعت هغه مخکې اوروسته کړئ.

دپورتني ایتونو په اساس خلک د«وعدې»دسرته رسیدلو پوښتنه کوي.هغه ځواب چې دوې ته ورکړل شوي دادي، چې دهرامت لپاره یوټاکلې عمر اووخت

دی. په دې ایت کې دامّت دعمر اوږدوالی نه دی تاکل شوی. یوائې دهرامت عصر ته اشاره شوې ده.



---

دمخکینې نمونې برخلاف،په اسماني کتابونو کې دهغې جملې نه په قران کې داسې ایتونه دي چې دکنجکاوه خلکو پوښتنو ته ئې دخدای د«وعدې»دتحقق په باره کې هم ځواب ورکړئ اما په اشارې اوراز سره:

## دسبا سورت

**وَمَا ارْسَلْنَاكَ الا كَافةً لِّلناسِ بَشِيرًا وَنَذِيرًا وَلَكِن اكْثَرَ الناسِ لَا يَعْلَمُونَ وَيَقُولُونَ مَتَ هَذَا الْوَعْدُ ان كُنتُمْ**

**صَادِقِينَ قُل لكُم مِّيعَادُ يَوْمٍ لا تَسْتَاخِرُونَ عَنْهُ سَاعَةً وَلَاتَسْتَقْدِمُونَ.**

**دسباسورت،(۲۸- ۳۰)،ایتونه**

ماته نه ئې لیږلئ مګر ددې لپاره چې خلکو ته ښه خبر ورکړئ. اواخطار ورکړئ. ولې ډیر خلک نه پوهیږي خلک وائي: که رښتیا وائي ،داوعده به کله سرته ورسي؟ووایه:

ستاسې لپاره (یوه ورځ)ټاکل شوې. نشئ کولئ چې هغه یوساعت مخکې اووروسته کړئ.

دپورتنې ایت له مخې کنجکاوه خلکو د«وعدې»دسرته رسیدلو دوخت اوزمان پوښتنه کړې. داځل ځواب په راز سره اخلي.څرنګه چې دایو حقیقت دی. یوه ورځ ډیره کمه موده ده، چې داسې یوه مهمه وعده په هغه کې سرته ورسي.اوهیڅ یو پیغمبر هم دایت دنزول څخه یوه ورځ وروسته ظاهر نشو. باید معّما دیوبل ایت په کومک حل کړو. دالاندې ایت دمعّما دحل سره مرسته کوي.

## دسجده سورت

**يُدَبِّرُ الْامْر مِنَ السمَاء الَ الْارْضِ ثُم يَعْرُجُ الَيْهِ فِي يَوْمٍ كَانَ مِقْدَارُهُ الْفَ سَنَةٍ مِّما تَعُدونَ.**

**دسجدې سورت، ۵-ایت**
د«یدَبِرُّ»دکلمې مصدر«تدبیر»دی. چې دعربي څخه فارسي ته واردشوي، تدبیر یعنی نظم اوترتیب ورکول دیوکار مدیریت کول ،سروسامان ورکول په فارسي کې دهمدې مفاهیمو لپاره پکار وړل
کیږي.د«امر»دکلمې معنی حکم ،په دې کلمه به وروسته بحث وشي.



---

**لمړې ژباړه:** پروردګار دځمکې«امر»له اسمانه اداره کوي، په یوه ورځ کې چې هغه ورځ ستاسې په حساب

دزرو کلونو سره برابره ده. اوهغه امر دهغه خواته بیرته ورګرځي.

**دوهمه ژباړه :** پروردګار دخپل هدایت اودنور په تدبیر سره اودخپل ائین په حکمت سره ځمکه روښانوي. اووروسته هغه نور په یوه زرکلنه ورځ کې هغه ته بیرته ورګرځي.

**مخکیني ایتونه دسبا اوسجدې سورت**

**دیوبل متمم اوبشپړوونکي دي:**

| **دسبا سورت د "مَا ارْسَلْنَاكَ"ایت** | **دسجدې سورت "يُدَبِّرُ الْامْرَ" ایت** |
|---|---|
| • داسلام پیغمبر نقش دخلکو په ژوند کې دښه اوبد خبرورکول دي.<br>• د«وعدې»سرته رسیدلو وخت یوه ورځ دی. | • دپروردګار نقش دخلکوپه ژوند کې دهغوې لارښوونه ده.<br>• دپروردګار دلارښوونې اثرات دخلکوپه ژوند کې |

| | |
|---|---|
| | دیوې ورځې نه وروسته له منځه ځي.<br>• ددې ورځې اوږدوالې «۱۰۰۰»زرکاله دی. |

څرنګه چې ګورودسبا په سورت کې وخت مشخص شوی نه دی:

قُل لَّكُمْ مِّيعَاُ دُيَوٍمْ:ووایه وروسته له یوې «ورځې»وعده پوره کیږي.

دسجدې سورت کې د«ورځې»موده مشخصه شوې ده :

**فِي يَوْمٍ كَانَ مِقْدَارُهُ الْفَ سَنَةٍ مِّما تَعُدونَ** : دهغې ورځې موده زرکاله ده ستاسې په حساب.

لازمه ده توجه وکړو چې د«**يُدَبَّرُالْاَمْرَ**»دځمکې دچاروادارہ کولو پورې اړوند دی. دبشر اړوندلاربنوونه دخدای له لوري ترسره کیږي.دځمکې کارونه پروردګار څنګه اداره کوي؟هغه احکام اوبنوونې چې دپیغمبرانو اویا امامانو په وسیله بنده ګانو ته لیږي. (دتدبیر عصر). وروسته له هغه چې پروردګار خپل ائین او«امر»نازل کړ، اوله هغه وروسته ئې خپل لاربنود دلاربنوونکو په مرسته ولیږل،

په تدریج سره دهغه ائین تاثیرات دخلکو په ژوند کې
کمیږي.(دعروج عصر).وروسته دټاکلي وخت په
تیریدو سره یعنی دزروکلونو څخه وروسته دپروردګار
دهدایت سره سم هغه ائین په کلي توګه د خلکو له
منځه راټول شي. اوخپلې اصلي منبع ته، دهغه
لیږونکي خواته یعنې پروردګار ته رجوع کوي.
اوس به وګورو داسلام په دوره کې دجهان مدیر
اومدبر څوکاله دځمکې چارې له اسمانه اداره کړي
دي.دپروردګار دتدبیر اوهدایت موده دپیغمبر اکرم له
ظهوره شروع شوې اودیولسم امام(امام حسن
عسګرې)په وفات سره پای ته ورسیده .امام حسن په
«٢٦٠»هـ ق کې رحلت وکړ . پس له ده دزرو کلونو
په موده کې دپروردګار د هدایت اثار دمسلمانانو په
منځ کې ښکاره ؤ وروسته دزرو کلونو دتیریدو نه دغه
اسماني هدیه خپل رالیږونکې خواته رجوع وکړه
.معلومه ده داسلام دعصر حسابولو لپاره
،باید«٢٦٠»او«١٠٠٠»دواړه سره جمع کړو:

| | | |
|---|---|---|
| دامام حسن عسکری رحلت کال<br>۲۶۰ ← | + | یوه ورځ زرکاله<br>۱۰۰۰ ← = |

پروردګار خپله «وعده»په دقیقه توګه پخپل ټاکلې وخت سرته ورسوله«۱۲۶۰»هـ ق چې د(۱۸۴۴)میلادي سره برابره ده دبهائي ائين دشروع تاريخ دی. ځکه چې په همغه کال حضرت باب د«امر»اظهار وکړ .هغه «امر» چې دخلکوڅخه پټ ؤ ښکاره شو .دواړو پورتنيو مراجعو داسلام عصر ديوې زرکلنې ورځ په برابر ئې وړاندوينه کړې وه . دهغوې مقايسه به موضوع په پوره توګه روښانه کړي.

| | | |
|---|---|---|
| دسبا سورت،۲۸- ايت | وَمَا ارْسَلْنَاكَ الا كَافَةً لِّلناسِ بَشِيرًا وَنَذِيرًا. | دپروردګار هدف ستا دليږلو نه خلکو ته دښو اوبدو وعدو ورکول |

| | | |
|---|---|---|
| | | دي. |



| | | |
|---|---|---|
| دسبا سورت،۲۸-ايت | **مَتَىٰ هَذَا الْوَعْدُ ؟** | د«وعدې وخت کله رارسيږي؟ |
| دسبا سورت،۳۰-ايت | **لكُم مِّيعَادُ يَوْمٍ.** | د«وعدې»وخت پس له يوې ورځې رارسيږي. |
| دسجدې سورت،۵-ايت | **فِي يَوْمٍ كَانَ مِقْدَارُهُ الْفَ سَنَةٍ.** | د«ورځې»موده زرکاله ده. |

په هغه ترتيب چې يادونه ئې وشوه په دې کتاب کې حتى المقدور داحاديثو دذکرڅخه ډډه شوې ده .ځکه دډيرو خلکو لپاره مشکله ده قضاوت وکړي .کوم

حديث سم دی اوکوم ناسم دی .او ترډېره حده حق په جانب دي .ځکه په زرهاو حديثه داسلام دپيغمبر او امامانو څخه پاتې دي چې دهغو احاديثو ډېر يوله بله توپير لري:

**په احاديثو کې اختلاف ډېردی، شک اوشبهې بې شماره دي.۱ حضرت بهاءالله**

په دې اساس دحقيقت پيداکولو لپاره ترټولو ښه طريقه داده. چې يواځې قران خپل رهنما وټاکو. ځکه دپروردګاردعدل څخه لرې خبره ده. چې دداسې يوې مهمې مسئلې ځواب دې، په هغه اسماني کتاب کې چې په زرهاو نور مطالب لري، دلټوونکو لپاره دې، دحقيقت لاره روښانه کړئ نه وي .دتمايل دنشتوالې په وجه دحديث نه په ګټې اخيستنې سره ديو بلې نمونې په يادولو ددې روايتونو چې عيناً دقراني ايتونوتکرار اوتائيد دی ، رسيده ګې کوي ددې حديث مقايسه دمخکيني قراني ايت سره په روښانه توګه دا راوښائي چې د دې دواړو ويونکی يو دی . دهغه حديث په اساس چې دمکې دفتوحاتو څخه په اول جلد ،۱۰۹ مخ کې روايت شوی دی. رسول اکرم فرمائي:

**ان صلحت امتی فلها يوم و ان فسدت فلها نصف يوم...کل يوم الف سنة مما تعد.**

---

که زما امت صالح اونیکوکاره و، یوه ورځ به وي
،اوکه فاسدو، نیمائي ورځ به وي...هره ورځ ستاسې
په حساب دزروکلونو سره برابره ده.
یوبل حدیث دتیر حدیث په څیر دنجم ثاقب کتاب په ۸۷
مخ کې نقل شوئ دی:



---

که زما امت صالح اونیکوکاره وي .یوه ورځ به
ژوندی وي. اوکه فاسد وي نیمائي ورځ دپروردګار
هره ورځ ستاسې دزروکلونو سره برابره ده.
په دوهمه مرجع یعنی«نجم ثاقب»کې ذکر شوي. چې
مخکینی حدیث داسلام پیغمبر ددې لاندې ایت دنزول
په وخت دقران څخه ویلی دی:

**لِكُلِّ امةٍ اجَلٌ.**
**داعراف سورت، ۳۴-ایت**

دهرامت لپاره ځانګړې وخت ټاکل شوې دی.

دمخکیني ایت داوریدلو نه وروسته حاضرینو پوښتنه وکړه، چې داسلام ختم اوپایان څه وخت دی.په ځواب کې مخکینې حدیث ورته وویل: چې دمسلمانانو دصالح کیدلو اوغیرې صالح کیدلو پورې اړه لرله . په تیر حدیث کې همدارنګه ګورو، چې پیغمبر اکرم خپل پیروانو ته یو ځل بیا د«امّت»خطاب وکړ،او دهغوې دوره اووخت ئې دصالح کیدنې په صورت کې د«یوې زرکلنې ورځ»سره برابره وړاندوینه کړې ده.

## «امر»یعني څه؟

دقران دلوی معّما داصلي اجزاو څخه یوه هم د«امر»کلمه ده .داکلمه هم د«خاتم» دکلمې په شان څو معنا ګانې لري.اما د«خاتمَ»دمعنې برخلاف دهغې معنا ګانې مشابهه دي.د«ریاض اللغات»پر اساس چې دعربي لغتونو ترجمه ده د«امر» دکلمې معنی داسې ده:

- شریعت ، دیانت
- امرالله ، الهي شریعت،الهي دین

بله مرجع: اليواقيت والجواهر، د سيّد عبدالوهاب شعرانی تأليف.(مبادی استدلال، تأليف عنايت ا لله سهراب، ۲۳۹- ۲۳۱ مخونه)

مسلمانان پخپل تاريخ کي دجګړو سره ډير زيات لاس اوګريوان ؤ. په همدغسې يو حالت کې دجهان ترټولو لوی مدنيت اساس ئې ايښئ دی .په دې خاطر دصالح صفت دهغوې لپاره صدق کوي.



---

په قران مجيد کې د«امر»کلمه د«اسماني لاربنود»د«الهي ائين»په معنا ګانو سره څوڅو ځلې راغلې ده. دې ايتونو ته توجه وکړئ:

**وَان هَذِهِ امتُکُمْ امةً وَاحِدَةً... فَتَقَطعُوا امْرَهُم بَيْنَهُمْ.**

**دمؤمنين سورت،(۵۲- ۵۳)ايتونه**

داستاسې امّت يو امّت دی...اما دې خلکو خپل ائين خپل امر پخپل منځ کې ويشلی دی.

**وَمَا امْرُنَا الا وَاحِدَةٌ.**

**دقمر سورت، ۵-ايت**

زمونږ ائين زمونږامر يو دی.

**لَقَدِ ابْتَغَوُاْ الْفِتْنَةَ مِن قَبْلُ وَقَلبُواْ لَكَ الامُورَ حَتى جَاء الْحَق وَظَهَرَ امْرُ اللهِ وَهُمْ كَارِهُونَ.**

دتوبه سورت،۴۸-ايت

هغوې مخکې له دې دفتنې باعث کيدل اوستا لپاره ئې ګډوډې جوړوله.

ترهغه وخته چې د«امر اوائين»حقيقت ظاهر شول .

که څه هم هغوې له هغه ظهور څخه کرکه لري.

**هَلْ يَنظُرُونَ الاان...يَاتِيَ امْرُ رَبِّكَ ؟**

**دنحل سورت، ۳۳-ايت**

آيا په غير له دې انتظار لرئ چې ...دپروردګار «امر» دې راشي؟

**أَتَى امْرُ اللهِ فَلاَ تَسْتَعْجِلُوهُ .**

**دنحل سورت، ۱-ايت**

دپروردګار ائين پخپل وخت سره راځي دهغه په راتګ کې عجله مه کړئ .(مه غواړئ چې امرالله دخپل وخت نه مخکې ظاهر شي.)

په مخکيني ايت کې(امرالله)د«پروردګار ائين)معنا شوې دی، اودامرالله پرځای ئې دپروردګار ائين کلمه استعمال کړې ده . د«عجلې» موضوع ئې هم رامنځ ته کړې ، په همغه ترتيب چې مونږ وليدل،خلکو دپروردګار دوعدې داجراء لپاره عجله کوله .هغوې ته به ويل کيدل:صبر کوونکې اوسئ په ټاکلې وخت سره به هغه «وعده»سرته ورسي. داسې کلمات لکه:«امر» ،«وعده»
«تعجيل»«يَأْتی»او«يعرج»دمعّما دمهمو کلمو څخه شميرل کيږي اومونږ سره دهغه کتاب دلوی معّما په حل کې مرسته کوي.
په اسماني اثارو کې کله دماضي فعل دمضارع فعل پرځای راځي،په دوه سببه ،اول دخدای ژبه زمونږ له ژبې سره توپير لري. دوهم داچې دخدای وينا اوکلام دارنګه حتمي دي چې اينده ئې دتيرپه شان وي.

---

امام صادق داايت دقايم دظهور پورې اړوند کړی دی.دمهدي موعود،۱۳جلدبحارالانوار،۱۰۷۴صفحه.

د«**يُدَبِرالْاَمْرَ**»اصطلاح په دې ايت کې په کاروړل شوې چې داهم زمونږ دعصرد«لوی رويداد اوپيبنې»پورې تړلې ده:

**يُدَبِّرُ الامْرَ يُفَصِّلُ الآيَاتِ لَعَلكُم بِلِقَاء رَبِّكُمْ تُوقِنُونَ.**

**درعد سورت، ۲-ايت**

پروردګار د«امر»اداره کوي. اودايتونو توضيح ورکوي شايد تاسې دپروردګار دديدارپه«وعده»يقين وکړئ. که د«امر»دکلمې معنی د«**يُدْبِّرُ الْاَمْرَ**»په ايت کې«حکم»ونيسو بيا هم موضوع نه بدلیږي.پروردګار خپل «حکم»څنګه رالیږی.(**يَأْتِيَ اللّهُ بأَمْرِهِ**»؟دخپلوپيغمبرانو په وسيله:

**قد قض□ الامر و كان الحكم ف□ ام الكتاب مقضياً .۲**

**حضرت باب**

امر تحقق پيداکړ، اوهغه حکم چې دکتابونو په سرچينه (قران مجيد)کې دی. اجراء شو.که«امر»د«کار»په معنی ونيسو جمله معنی کيږی:ترڅو خدای خپل ځان ته پخپله«کار»پيداکړئ.دخدای «کار»څه شی دی؟دبشر اداره اورهنمائي.

**انه جاء بالحق و اقض□ الله امره كيف شاء .**

**۳ حضرت باب**

په حقیقت کې هغه [موعود] ظاهر شو اوپروردګار
چې څنګه غوښتل خپل «امر» ئې سرته ورساوه.

**امرالله ظاهرشوی.۴**

**حضرت بهاءالله**

دحضرت بهاءالله په ایتونو کې د«امر»کلمې
اود«يُدَبَّرُ»مشتقات په کراتو سره راغلي دي:

**امرظاهردی اودلمرپه شان ښکاره اوڅرګند دی.خوقوم پخپله ځان په پردو کې کړئ دی.۵**

**حضرت بهاء الله**

**کذلک أتی الحق و قُضی الأمر من مدبّر حکیم .لا یقوم مع أمره جنودُ السّموات و الأرضین .٦**

**حضرت بهاءالله**

دارنګه حقیقت ظاهر شو.«امر» دمدبّراوحکیم
پروردګار له لوري تحقق وموند.دهغه د«امر»مقابله
دځمکې اواسمانونولښکرو ونشوه کړلی.

د«لقاء»او«دیدار»په ایتونو په(۱۳)فصل کې په
تفصیل سره بحث شوی دی.

**انّك انت الّذى في قبضتك زمام التّدبير وفي يمينك ملكوت التّقدير لا اله الاّ انت المقتدر القدير .**
۷

**حضرت بهاءالله**

اې پروردګاره ټول تدبير(امام تدبير)ستا دقبضې په قدرت کې دى. اوستا ښي طرف ته د«تقديرفرښتې»دي .په غير له تابل قدير،مقتدر خالق نشته.قران مجيد اوبهائي ائين ايتونو ترمنځ د«امر»دکلمې په اړه يوه بله اړيکه لري:
د«بهائې ائين»مصطلح (لهجوي)لقب دهماغه «بهائې امر»دتاسيس له شروع څخه ؤ. بهائيان هميشه د«بهائي ديانت»په ځاى وائي:«بهائې امر».
داامريا امرالله، د ايقان په کتاب کې فرمائي که څه هم پيغمبران په ظاهر کې دمورڅخه پيداکيږي، اماپه حقيقت کې د«امر له اسمانه»نازل شوي دي.

داڅو نموني چې دقران ايتونه دبهائي ايتونو سره يوځاى شوي دي. ورته توجه وکړئ:
**هَلْ يَنظُرُونَ الاان...يَاتِيَ امْرُ رَبّكَ ؟**
**دنحل سورت،۳۳-ايت**
آيا په غير له دې نه انتظار لري چې ....دپروردګار ائين دې راشي؟
**لقد قضى حکم ربك...جاء امر ربك ... ۹**
**حضرت باب**
په يقين سره دپروردګار حکم اجراء شو...دپروردګار امر دې راغئ...
**جَاء الْحَق وَظَهَرَ امْرُ اللهِ وَهُمْ كَارِهُونَ.**
**دتوبه سورت،۴۸-ايت**
حقيقت راغلى اود«پروردګار امر»ښکاره شو، اما خلک له دې حقيقت نه کرکه لري.
**فَتَرَبصُواْ حَتى يَاتِيَ اللهُ بِامْرِهِ.**
**دتوبه سورت،۲۴-ايت**
**۱.ژباړه:**صبر وکړئ ترڅو دپروردګار ائين راشي.
**۲.ژباړه:**صبروکړئ ترڅوپروردګار دامرسره راشي.
**قَدْ اتَى الْمِيقاتُ وَظَهَرَ الامْرُ وَنادَى الْمُنادِ وَالناسُ اکْثَرُهُمْ لا يَسْمَعُوْنَ . ۱۰ حضرت بهاءالله**

د«موعود»وخت راورسيد.«امر»ظاهرشو.نداکوونکي اواز وکړ. اما ډير خلک ئې نه اوري.



---

**ما ننطق عن الهوى وما ننزّل حرفًا من ذلك الكتاب الاّ باذن الله الحقّ اتقوا الله ولا تشكّوا في امر الله .**
**۱۱**

**حضرت باب**

زه دحقيقت له مخې خبرې کوم ، نه دميل اوهوا له مخې .دهغه کتاب يوتورى بې دالله داجازې نازل شوى نه دى .له خدايه وويريږئ. دپروردگارپه«امر»کې شک مه کړئ.

**يا ملأالارض خافوا الله ولا تنكروا الّذى به ظهر امرالله ...۱۲** **حضرت بهاءالله**

اې دنړۍ خلکو!له خدايه وويرېږئ.هغه چاچې دخداى امر ظاهر کړئ دی. له هغه انکار مه کوئ.
**اې دانصاف والاو،که له دې لوی ظهور څخه انکاروکړئ.کوم يو«امر»دذکر اوداقراروړ دی. ١٣**
**حضرت بهاء الله**
**اتَ امْرُ اللهِ فَلاَ تَسْتَعْجِلُوهُ.**
**دنحل سورت، ١-ايت**
دپروردګار ائين پخپل وخت سره راځي. په راتلو کې تلوارمه کوئ.
**انّ الله قد کتب عليك ان تسلّم الذّکر وامره ... ١٤**
**حضرت باب**
په يقين سره دهغه امر اوذکر(حضرت باب)ته تسليميدل،پروردګار په تاواجب کړئ.
**فَاعْفُواْ وَاصْفَحُواْ حَتىٰ يَاتِيَ اللهُ بِامْرِهِ . ا ن اللهَ عَلَ كُلِّ شَيْءٍ قَدِير . دبقره سورت، ١٠٩-ايت**
يواوبل ته په بخشش اوګذشت سره ژوند وکړئ ترڅو دخداى«امر»راشي (ترڅوپروردګار دامر سره راشي)پروردګار دهرکارپه سرته رسولو قادر دی.
**لمّا جعلنى الله مظهر امره ...**
**١٥**
**حضرت باب**
کله چې پروردګار زه دخپل امر مظهروګرځولم.

**پوښتنه:** «امر»ولې راشي؟ ددې لپاره چې هغه «امر»نور دخلکو په منځ کې نشته. وروسته دهغې يوې زرکلنې ورځې په ختميدو سره هغه خداى ته رجوع وکړه:

**يُدَبِّرُ الْامْرَ مِنَ السمَاء الَ الْارْضِ ثُم يَعْرُجُ الَيْهِ فِي يَوْمٍ كَانَ مِقْدَارُهُ الْفَ سَنَةٍ...**

**دسجده سورت،۵-ايت**

دځمکې «امر»له اسمانه اداره
کیږي،اوهغه«امر»بیرته دیوې زرکلنې ورځې په
تیریدو سره دخدای لورته ګرځي...
اوس چې هغه زرکلنه ورځ پای ته رسیدلی .
پروردګار مونږ ته ښه خبرراکوي.هغه«امر»چې تللی
ؤبیرته راغی:
**لقد...جاء امر ربک ...**
**حضرت باب**
په رښتینې سره ...دپروردګار«امر»راغلی دی...
**که څوک له دې«امر»نه انکار وکړي اوددې لوی ظهور څخه غافله شي دهیڅ بل کوم «امر»په اثبات به قادر نشي.۱۶**
**حضرت بهاءالله**
د«**يُدَبِّرالْاَمْرَ**»په اړوند ایت کې پروردګار مونږ ته خبر راکوي چې«امر»دهغه خواته **«ځي»ثُمَّ يَعْرُجُ اِلَيْهِ د«فَاعْفُوْا»**په اړوند ایت کې مونږ تشویقوي چې په ژوند کې بخشش اوګذشت وکړو.ترڅو
هغه«امر»راشي:**حَتَّى يَأْتِيَ اللّهُ بِأَمْرِه** .داعصردخوښې اوشکرکولو دی، نه دغم اوفریاد وخت.دانتظار ورځې پای ته رسیدلی دي. هماغه ویونکی چې
د«امرتللو»خبره کړې وه، اوس مونږ ته خبر راکوي
چې«تللی امر»بیا راغلی . محمد شاه ته خطاب:

**و ان من یوم الّذی ظهر امر ربّك لن یقبل منك شیئ و انّك انت ف ضلال مبین .۱۷**

**حضرت باب**

په یقین سره له هغې ورځې چې دپروردگار امرظاهرشوئ ، ستا هیڅ شی به الله ته منظور نه وي اوته به په ښکاره گمراهې کې اوسئ.

دکائیناتوپه ډگر کې درې مرحلی یادرې عالمه اونړی دي:

| | |
|---|---|
| **دحق نړی:** | **دالهي عالم نړی ده.** |
| **دامر نړی:** | **دپیغمبرانو عالم اونړی ده، چې دخدای او د خلکو ترمنځ واسطه ده دخدای په الهام مفتخردي.** |
| **دخلق نړی:** | **دبنده گانو عالم اونړی ده، چې دپیغمبرانو هدایت ته نیازلري.** |

**الاَ لَهُ الْخَلْقُ وَالامْر.**

**داعراف سورت،۵۴-ایت**

پوه شئ چې[عالم]«امر»په هغه پورې اړه لري:

**انّ الامر والخلق لك .۱۸**

**حضرت باب**

عالم«امر»اوعالم«خلق»په تاپورې اړه لري.

**ف عالم الامر والخلق .۱۹**

**حضرت بهاءالله**

په عالم دامراوخلق کې.

برسيره پردې په مخکنيو اديانو کې دپيغمبرانو ظهور ته داشارې لپاره ،د«بعثت»کلمه استعمال شوې ،مثلاً:«داسلام دپيغمبر د«بعثت»زمانه اما په بهائي ائين کې د«بعثت»کلمه اصلاً اصطلاحي نه ده .معموله اصطلاح د«امراظهار»دی.مثلاً:د«حضرت باب د«بعثت»په ځای د«حضرت باب دامراظهار»ويل شوی دی.د«اظهار»دکلمې استعمال له دې سببه دی. چې پروردګار «امر»او«موعود»له

خلکو پټ ساتلی ؤ. ترهغه ټاکلي وخت
او «ساعته»پورې:
**په هغه سنه کې مې پټ امر ظاهر کړ.۲۰**
**حضرت باب**
**وواية!اې دوستانو!خپل ځانونه دپروردګار دبخشش له دريابه مه لرې کوئ.هغه ډير نږدې راغلئ .«هغه څه چې پټ ؤ»راغلي اوښه راغلي .په يو لاس کې د(حيات)او**
**ژوندون اوبه، اوپه بل لاس کې دازادئ فرمان دی.ګوزارکړئ اوواخلئ:ګوزارکړئ هغه څه چې په جهان کې ليدل کيږي،اوواخلئ هغه څه چې دبخشش لاس ئې درکوي.هغه څه راغلي دي چې خلکو تراوسه دهغوې مثال نه دی ليدلی.۲۱**
**حضرت بهاءالله**

## ديوې معّما دوه برخې

د **"يُدَبِّرُ الْامْرَ مِنَ السمَاء الَ الْارْضِ** ايت داسلام دعصر دتماميدو دتاريخ په باره کې اودنوې عصر دشروع په هکله ډير مهم او دقيق ايت دقران دی .ددې مبارک ايت دتائيد ،تکميل اوتوضيح لپاره نور ايتونه هم نازل شوي دي.دمطلب دروښانولو لپاره ښه ده.

دوه ایتونه چې د«**یُدُبَّرُالْاَمْرَ**»او«**فَتَرَبَّصُوْا**»پورې
اړوند دي ، سره مقایسه کړو:

| یُدَبِّرُ الْامْرَ | فَتَرَبصُواْ |
|---|---|
| **یُدَبِّرُ " الْامْرَ " مِنَ السمَاء الَ الارْضِ ثُم یَعْرُجُ الَیْهِ فِي یَوْمٍ كَانَ مِقْدَارُهُ الْفَ سَنَةٍ مِّما تَعُدونَ.**<br>**دسجدې سورت،۵-ایت**<br>پروردګار دځمکې امر داسمانه اداره کوي. اووروسته هغه «امر»دیوې ورځې په موده کې دهغه لورته | **فَتَرَبصُواْ حَت یَاتِيَ اللهُ "بِامْرِهِ " وَاللهُ لاَ یَهْدِي الْقَوْمَ الْفَاسِقِینَ.دتوبه سورتو۲۴-ایت**<br>صبر وکړی ترڅو پروردګار خپل«امر» راوړي.پروردګار فرمان نه منونکو خلکو ته هدایت نه کوي. |

| | |
|---|---|
| ځي .دورځې اندازه ستاسې دزروکلونو سره برابره ده. | |

**په روښانه توګه ئې ګورو چې دادوه پورتني ايتونه**

**يودبل په تفسير اوتائيد کې نازل شوي دي:**

| **يُدَبِّرُ الْأمْرَ دظهور تاريخ** | **فَتَرَبصُواْ صبراوزغم** |
|---|---|
| داايت خبر ورکوي چې دزرکلونوپه موده کې «امر»دپروردګار لورته بيرته ګرځي.داايت داسلام عمروښائي. | داايت له مونږه غواړي چې صبر اوزغم ولرو ترڅو خداى«امر»راوړي اويائي زمونږ طرف ته راوګرځوي.داايت داسلام دعمر په اخر کې مونږ ته دپروردګارد«امر»دظهور زيرى راکوي. |

دالهي ايتونو په منځ کې توافق اوهم اهنګي ښکاره ده.وروسته له تشويق څخه صبرکولو ته«فَتَوَبَّصُوْ».مبارک ايت هغه خلکو ته اشاره کوي.چې دپروردګار

وعدې دموعود دظهور په باره کې اوري. اما دجستجو اوڅيړنې لپاره ئې يوګام هم نه اخلي:



---

**وَاللهُ لاَ يَهْدِي الْقَوْمَ الْفَاسِقِينَ.**پروردګار نافرمانه خلکو ته هدايت نه کوي. کومه نافرماني؟ دموعود په پيداکولو کې څنډ ددې ټولو ايتونو په تحقيق اومنلو کې کوتاهي اوغفلت کوم چې ديوبل په کومک سره په پوره روښنائي کې دموعود دظهور له وخت اوزمان اودپروردګار دوعدې په تحقق خبرې کوي.

دصبر اوانتظار «فَتَرَبَّصُوْ»ایت هم اهنګ دی. دهغو ایتونو سره چې دخاتَم النَّبیّن په باره کې موبررسي کړل . په هغه بحث کې مووليدل چې قران په مختلفو مواردو کې دجهان خلکو ته د«ښه خبر»وعده ورکوي. په راتلونکو فصلونو کې به هم وګورو چې په هغه اسماني کتاب کې مسلمانانو ته خطاب شوئ، چې دالهي وعدوپه واقع کيدلو کې دې عجله نه کوي.په اينده کې دې د«لوی خبر»په انتظار اوسي.صبر ته تشويقول «فَتَرَبَّصُوْ»ددې ټولو ايتونو سره هم اهنګ دی. اوهغه تائيدوي.

## دزرکلنې ورځې ختم اود نوي دور شروع

دمخکنيو ايتونو برسيره نور ايتونه هم دخدای دوعدې داجراء وخت يعنی داسلام دعمر تماميدل اودنوی دور راتګ وخت ټاکي:

**وَيَسْتَعْجِلُونَكَ بِالْعَذَابِ وَلَن يُخْلِفَ اللهُ وَعْدَهُ وَان يَوْمًا عِندَ رَبِّكَ كَالْفِ سَنَةٍ مِّما تَعُدونَ .**

**دحج سورت، ۴۷-ايت**

خلک غواړي چې ډير ژرئې راوليږي. پروردګار هيڅکله دخپلې وعدې په سرته رسولو کې غلطي نه

کوي.دپروردګار هره ورځ ستاسې په حساب دزرکلونو سره برابره ده.

مخکینی ایت یواځې هغه ایت دی. چې په هغه کې دوه کلمې «وعده»او«اَلْفَ»یعنی «۱۰۰۰»راغلي دي. ددې دوه کلمو یوځای کول په یوایت کې ډیر اهمیت لري اومونږ. سره دمعّما په حل کې مرسته کوي.

د«قران دمعّما دحل»سره دمرستې له نظره په ځانګړې توګه داسلام دوام، په مخکيني ايتونو کې ،(**يُدَبَّرُالْاَمْرَ**»او(**يَسْتَعْجِلُو نَکَ بِالْعَذَابِ**)لمړی اودوهم مقام لري.په پورتنې ايت کې چې دحج په سورت کې دی.داتولې مهمې کلمې اونښې په کې راغلې دي:

- **يَسْتَعْجِلُوْنَکَ**:دخلکو عجله دوعدې په سرته رسيدلو کې.
- **عَذَابِ:**دهغو خلکو سزا اوبرخليک چې دخدای دوعدې څخه انکار کوي.
- **وَعْدَهُ:**دموعود دظهور وعده.
- **يَوْماً...کَأَلْفِ سَنَةٍ:**دوعدې دسرته رسيدلو دانتظار موده ديوې زرکلنې ورځ سره برابره ده.

په هماغه ډول چې مخکې تيرشول دقران دايتونو پراساس دسبا سورت،(۲۸-۳۰)ايتونه خلکو داسلام پيغمبراومسلمانانو ته ويل: که ربښتيا وائي ،داوعده به کله پرځای کيږي؟

(**وَيَقُولُونَ مَتَ هَذَا الْوَعْدُ ان كُنتُمْ صَادِقِينَ** ؟دهغوې ځواب به داوي چې دوعدې موده به يوه ورځ وروسته راورسي.(**لَكُمْ مِّيْعَادُيُوْمٍ** ).د(**يَسْتَعْجِلُونَکَ**)دايت مطابق خلک همدا پوښتنه کوي.داځل هم دهغوپه پوښتنه کې دشک اوشبهه اثار ښکاره دي.په مخکيني موردکې ويل: (که ربښتيا وائي

ددې وعدې انجام څه وخت دی).داځل وائي:«عذاب ژر راولیږه».یعنی هرڅومره ژرچې کیږي. دخپلې وعدې رښتینولې مونږ ته ثابته کړه.
لاندې ایت ددې ښکارندوې دی. چې عجله دمنکرینو اومسخره کوونکو لخوا ده:
**يَسْتَعْجِلُ بِهَا الذِينَ لَا يُؤْمِنُونَ بِهَا.**
**دشوری سورت،۱۸-ایت**
هرڅوک چې د«وعدې»په«ساعت»ایمان نه لري.دهغې په سرته رسیدلو باندې عجله کوي.

## ديوې ډلې لپاره دخوښيوډک

## خبراودبلې ډلې

## لپاره دغمونو ډک خبر

په هماغه ترتيب چې بحث وشوه ،د«عذاب»دکلمې کارول د«وعدې»په ځای په ډيرو ايتونو کې په دې سبب ده: اسماني ليکنې،له هغې جملې څخه قران ،ښوونه ورکوي. چې دالهي وعدې تحقق دنوي ائين دمؤمنانو لپاره دخوښيو ډک خبر اودمنکرينو لپاره دغمونو ډک خبر دی.

**قل انّه لَمآءُ الوصال للّذين أخذهم ظمأ الفراق و عذاب للّذينهم أعرضوا عن الحقّ ألا أنّهم قوم مدحضون .٢٢ حضرت بهاءالله**

ووايه!هغه دهغو خلکو لپاره دوصال سرچينه ده. چې دفراق اوبيلتون په تنده اخته وي. عذاب دی دهغه چالپاره چې دحقيقت نه مخ اړوي.په يقين سره پوه شي چې هغه خواره او بې مقداره ډله ده.

هغه ايت چې دسبا دسورت نه مخکې ذکرشو.(٢٨-٣٠)داټکې په پوره ډول تائيدوي. دمطلب دروښانتيا لپاره ښه ده. چې دهغه ايت څو ټکي مطالعه کړو.

**۱ .وَمَا ارْسَلْنَاكَ ا لا كَافةً لِّلناسِ بَشِيرًا وَنَذِيرًا.** دپیغمبرانو دلیږلو هدف:ماته نه ئې لیږلی مګر ددې لپاره چې ټولو خلکو ته ښه خبر ورکړي. اویاورته اخطارورکړي،یعنې بدخبر ورورسوي.(دعذاب وعده ،بده وعده).
**۲ .وَيَقُولُونَ مَتَى هَذَالْوَعْدُ.**دخلکوپوښتنه: ددې وعدې درارسیدو وخت کله دی؟
**۳ .قُل لّكُمْ مِّيْعَادُيُوْمٍ.**ځواب:(ووایه دوعدې نیټه یوه ورځ وروسته رارسي).
په هماغه ترتیب چې مونږه ئې ګورو. دغه ایتونه په شروع کې دنیکو اوبدو وعدو یادونه کوي. اووروسته دوعدې داجراء دنیټې یادونه کوي.ښکاره ده. چې دخلکولپاره دوعدې دسرته رسیدو نتیجې اختلاف لري.

دقران نور ایتونه هم شاهدي ورکوي. چې دخدای د«وعدې» انجام دځنې خلکو دمقام دسقوط سبب کیږي. (یعنی دموعود منکرین)اودنورو دمقام او ترقی سبب کیږي. (یعنی دموعود مؤمنان)دي:

**اذَا وَقَعَتِ الْوَاقِعَةُ لَيْسَ لِوَقْعَتِهَا كَاذِبَةٌ خَافِضَةٌ رافِعَةٌ.**

**دواقعې سورت، ۱-۳،ایت**

کله هغه څه چې باید راشي. دهغې دوقوع څخه انکار نشي کیدلی.داهغه واقعه ده، چې دځنې ډلو دسقوط سبب کیږي. اودځنې نورو دمقام دلوړتیا سبب کیږي. اصلي مطلب ته راګرځو. خلک درسول اکرم څخه په مسخرې سره پوښتنه کوي چې:که دا«عذاب» یا«بده وعده»رښتیا وي. هغه ژر راولیږه. ترڅو مونږ ئې وګورو. چې څنګه ده؟ دا واردهغوې ځواب بیا همغه دی.چې دسبا په سورت کې نازل شوی دی.یعنی دا«عذاب»دمنکرینو لپاره دیوې زرکلنې ورځې په تیریدو سره به ظاهرشي.ددوه ځوابونو ترمنځ شباهت په پوره ډول داوښائي چې دادوه ایتونه له دوه سورتونو دحج اوسبا څخه دیوې پوښتنې په ځواب کې نازل شوي دي.

مناسبه ده چې لاندې ایت، کوم چې دعذاب څخه خبرې کوي. ددوو نورو مراجعو دترجمې سره چې مخکې طرح شوي دي مقایسه کړو:
**وَيَسْتَعْجِلُونَكَ بِالْعَذَابِ وَلَوْلَا اجَلٌ مسَم لَجَاءهُمُ الْعَذَابُ وَلَيَاتِيَنهُم بَغْتَةً وَهُمْ لَا يَشْعُرُونَ.**

**دعنکبوت سورت، ۵۳-ایت**

غواړي چې «عذاب»ډیر ژرراولیږي .که له دې خاطره نه وي چې د«عذاب»دوقوع لپاره ټاکلی وخت ټاکل شوئ دی،(همداوس) په هغوې عذاب راځي.البته چې ناڅاپه به راشي .اوهغوې به پرې پوه نشي.
مخکینې ایت له دې سره چې اوس طرح شو مقایسه کړئ:
**آیا کله چې دالهي عذاب پرده ، دهغوې نه تاوشي اویا ناڅاپه ساعت چې بې دهغوله خبرتیا څخه پرهغوې راځي دامنیت احساس کوي؟**
**دیوسف سورت، ۱۰۷-ایت**
**غواړئ چې عذاب زر راولیږي. پروردګار هیڅکله دخپلې وعدې په سرته رسولو کې خطائي نه کوي . دپروردګار هره ورځ دزرکلونو سره برابره ده. ستاسې په حساب .**

مخکینې ایاتونه ټول دعذاب دراتللو څخه خبرې کوي. اولاندې نښې دهغه دظهور په باره کې بیانوي:

- تاسې عجله کوونکي یاستې.
- «عذاب»به په ټاکلې وخت کې راشي.
- ناڅاپه به راشي.
- خلک به وربادنې پوه نشي اونه به ئې وپيژني.
- دوخت معّما : «زرکاله دپروردګار په نزد کې له یوې ورځې سره برابره ده»یعنې تاسې صبر نه لرى،دپروردګارلپاره زرکاله کمه موده ده. باید صبر ناک اوسئ. ترڅو دوعدې وخت راورسيږي.وروسته ددې زرکلنې ورځې په تمامیدو سره به هغه وخت راورسي.

**د«یوې ورځې»برابروالې د«زرکلونو»سره د«داود په مزامیر»کې هم تائید شوې ده:**

**ځکه،پروردګاره ستا له نظره یوه ورځ د یوې زرکلنې ورځې سره برابره ده. چې تیره شوه.**

**مزامیردواد ،۹۰فصل،۴-ایت**

په اسلامي مراجعو کې یوحدیث دی. چې دقایم موعود دظهور داخر کال دوه فقرې ځانګړې اومشخصوي.ددې حدیث ډیر اهمیت دهغه په شباهت کې دی دقران دایت سره، له همدی کبله ښه به وي. چې هغه بررسي کړو. داحدیث په مختلفو مراجعو کې دهغې جملې نه په «فضل الحظاب» په ۱۲۶ مخ کې دمهدي دظهور داحوال په باب کې دامام جعفرصادق نه روایت شوئ دی:

---

دبشر دکمزوریو څخه یوه نښه داده. چې بې صبره اوبیړندوکی دي. دهغې جملې دنمونو څخه دخلکو یوه بې صبري داده، چې دهرپیغمبر دظهور په دوره کې منتظر وي. چې په ناڅاپه توګه بې له کوم زحمت اوکوښښ څخه دې جهان په جنت بدل شي. قران کریم دغه انساني ضعف ته اشاره کوي:

**وَكَانَ ا لانسَانُ عَجُولاً.(انسان بېړندوکی دی.)**

**دبني اسرائیل سورت،۱۱-ایت**

دبشر تكامل ، دصلح او ازادۍ تأسيس ډير صبر او همت غواړي.رهنمائي اوبخشش دخداى ، اطاعت اوكوښښ زمونږ.دى.



---

**يظهر فـ□ الستين امره و يعلو ذ كره.**
په(۶۰)كال كې به ئې«امر»ظاهر اوذكر به ئې وشي. ښكاره ده. دامام جعفر صادق وينا په اينده كې دوعدې دسرته رسيدلو اړوند ده.
په هماغه ترتيب چې په قران كې داوعده«امر»نومول شوې ده.په دې ځاى كې هم په«امر»ياده شوى ده.د«ذكر»كلمه هم دقران په ايتونو كې ددې«وعدې»په هكله په كراتو سره راغلې ده. چې په راتلونكو فصلونو كې به په تفصيل سره مطرح شي.
امام صاحب جعفر صادق، په يوبل حديث كې هم صاحب الزّمان ئې صاحب دامر نومولى دى:
**صاحب هذالامر اصغرنا سنّاً.۲۳**

ددې«امر»صاحب عمر زمانه کم دی.
حضرت باب په «۲۵»کلنې کې د«امراظهار»وکړ.
همغه نښې چې زمونږ دعصر دموعود په باره کې په قران کې ذکر شوي دي،په نورو اسماني کتابونو کې هم راغلي دي.مثلاً په انجیل کې په کراتو سره اعلان شوي دي. چې دخدای موعود به ناڅاپه توګه لکه دغله په شکل په شپه کې په داسې حال کې چې خلک په خوب ویده وي راشي. اوهغوې به وربانديې پوه نشي. داسرائیلو دامت په اسماني اثارو کې هم ددې ذکر راغلی دی. چې موعود به په ناڅاپه توګه خپل معبد ته داخل شي.(ملاکې،۱۳فصل،۲-ایت).
په همغه ترتیب چې دقران ایتونو، دظهور کال «۳»دری ځلې په «۱۲۶۰»کال پورې اړوند کړئ دی. دیهودیانو اومسیحیانو اسماني کتابونو هم عیناً همدا تاریخ «۱۶»شپاړس ځلی دمختلفو لارو نه اعلان کړئ دی. حتّٰی د«۱۲۶۰»عدد ئې عیناً ذکر کړئ دی.
**زه خپل دوه شاهدان درلیږم اوهغوې ته به قدرت ورکړم .ترڅو...په ۱۲۶۰ورځو کې زما پیغام خلکو ته ورسوي.** **مکاشفات**
**یوحنا،۱۱فصل،۳-ایت**

**نورې مرجع ګاني،غایةالمرام، جوامع الکلم، العصمة والرجعة.داسماني کتابونو دبشارتونو څخه نقل؛ دنقبائي حسام تألیف،۵۴مخ ؛همدارانګه دایقان قاموس،۲جلد،داشراق خاوري تألیف، ۸۸۱- ۸۸۰مخونه؛ بحارالانوار،۱۳جلد،۳۰۳مخ،فارسي ترجمه؛جنّات نعیم ۱جلد،۱۹۹مخ.**



---

دقیقې نښې چې دبني اسرائیلو پیغمبرانو اوحضرت مسیح، دبهائي امر دظهور په باره کې ورکړې دي ډیرې دي.ددې وړاندوینوتحقق دبهائي ائین په ظهور کې، په درې جلده کې چې د«۱۵۰۰)نه زیات مخونه کیږي. ماپه انګلیسي ژبه لیکلي دي .

- I Shall Come Again
- Lord of Lords
- King of Kings

په همغه ډول چې په قران کې دموعود ورځ د«عذاب ورځ»نومول شوې ده. دمسيحيانو په اسماني اثارو کې هم د«مجازاتودورځې»په نامه ياده شوې ده :

**له دې کبله دازمان دمجازاتودی،چې داوخت د«وعدو»دسرته رسيدلو وخت دی. چې له مخکې ليکل شوې دي. حضرت مسيح(دلوقا انجيل ،۲۱فصل،۲۲-ايت**

دوه وعدې(نيک اوبد)ديهوديانو په مقدسه اثارو کې اشعيا،۶۱فصل،۱-۲،ايتونه هم اعلان شوې دي.داسماني ليکنو په منځ کې شباهت نښانې ددې ښکارندوي کوي .چې ددې ټولو ويونکی يودی.

دحضرت باب په ايتونو کې هم داموضوع چې زمونږ دعصردموعود څخه دمنکرينو، مجازات په کراتو سره تکرار شوي دي:

**يا اهل الارض فو ربّكم انّكم ستفعلون ما فعل القرون فانذروا انفسكم بانتقام الله الكبير الاكبر فانّ الله قد كان علی كلّ شيئ قديراً .۲٤**

اې دجهان خلکو،په خدای قسم دی!ستاسې رفتاربه دمخکنيونسلونو درفتارپه شان وي. دخدای له عذابه چې ډير سخت دی. خبردار اوسئ. اوپروردګار په ټولو کارونو قادر دی.دقران داايت هم دعذاب راتلو ته شاره کوي:

**اِ ن عَذَابَ رَبِّكَ لَوَاقِعٌ مَا لَهُ مِن دَافِعٍ... فَوَيْلٌ يَوْمَذٍ لِلْمُكَذِّبِينَ الذِينَ هُمْ فِي خَوْضٍ يَلْعَبُونَ.**

**دطورسورت،۷-۱۲،ايتونه**

دخدای عذاب به راشي. اوهيڅوک به ئې مخنيوی ونشي کړلی. افسوس دهغه چاپه حال چې هغه دحقيقت نه ډک ورځ ئې دروغ وګڼله. اوپه خپلو خيالاتو اوګومانونو باندې سرګرم ؤ.

**د«بحارالانوار»دحدیث په اساس داایت دقائم دظهور په باره کې دی:۲۵**

**وَلَئِنْ اخرْنَا عَنْهُمُ الْعَذَابَ الَ□ امةٍ معْدُودَةٍ لیَقُولُن مَا یَحْبِسُهُ الاَ یَوْمَ یَاتِیهِمْ لَیْسَ مَصْرُوفًا عَنْهُمْ وَحَاقَ بِهِم ما کَانُواْ بِهِ یَسْتَهْزِؤُونَ.**

**دهود سورت،۸-ایت**

که په عذاب کې لږ ځنډ راولم په یقین سره به وائي:«څه شی دی چې دهغه «عذاب»له اجراء څخه مخنیوی کوي». پوه شي کله چې هغوې ته عذاب ورسیږي. هغه بیرته نه راګرځي.(دهغه وقوع حتمي ده.)هغه څه ئې چې مسخره کول په هغه به اخته شي.

## دقران دلوی

## معّما څخه څو نکتې

ښه به وي چې دقران دایتونو څخه څو نکتې چې سره تړلې دي وګورو:

| | | |
|---|---|---|
| **یونس ۴۷، ۴۹-** | **لِکُلِّ امةٍ رسُولٌ:** | پروردګار هرامت ته پیغمبرورلیږي. |
| **یونس، ۴۷-۴۹** | **لِکُلِّ مةٍ اجَلٌ:** | هرامّت ځانته عمر لري |
| **سبا، ۲۸-۳۰** | **وَمَا ارْسَلْنَاكَ الا کَافَةً لِّلناسِ بَشِیرًا وَنَذِیرًا:** | ته مې دې ته لیږلی چې ټولو خلکو ته ښه خبر |

| | | |
|---|---|---|
| | | اوبدخبر وركړئ. |
| **سبا، ۲۸-۳۰** | **مَتَ□ هَذَا الْوَعْدُ:** | ددې وعدې وخت به کله رارسي؟ |
| **سبا، ۲۸-۳۰** | **لكُم مِّيعَادُ يَوْمٍ:** | وعده وروسته له يوې ورځې رارسي. |



| | | |
|---|---|---|
| **سجده، ۵** | **مِقْدَارُهُ الْفَ سَنَةٍ مِّما تَعُدونَ.** | دورځې اوږدوالی زرکاله دی. |

دحضرت باب په ډېرو ايتونو کې د«امر»دنزول ظهور ته دالله له طرفه اوداسماني کتابونو د وعدې تحقق ته اشاره شوې ده:

**يا ايّهاالناس قد جائكم الامر من الرحمن .٢٦**
**حضرت باب**
اې خلكو!«امر»دپروردګار لخوا تاسې ته راغلی دی.
**و انا نحن قد نزلنا الامر من بينكم لتعرفوا بارئكم الّذی خلقكم ...٢٧ حضرت باب**
په يقين سره ماخپل«امر»ستاسې له منځه
د«يوانسان»په وسيله نازل كړ. ترڅو خپل خالق
وپيژنئ....
**يا عبدالرحمن تالله لقد جائكم الامر من عندالله .٢٨**
**حضرت باب**
اې دخدای بنده!په خدای قسم دی. چې «امر»
دپروردګار له طرفه تاسې ته راغلئ دی.
**انّ هذا لهو الحقّ صراط الله في السّموات والارض فمن شاء اتّخذه الی الله بالحقّ سبيلاً انّ هذا لهو الدّ ين القيّم وكفی بالله ومن عنده علم الكتاب شهيدًا .٢٩**
**حضرت باب**
په يقين سره داحقيقت دی،داهغه لاره ده. چې
پروردګار دځمكې او اسمانونو داوسيدونكو لپاره
پيداكړې ده. پس هرڅوک چې وغواړي په هغه
لارچې خدای ته پرې ورسيږي، ونيسي.البته دادخدای
رښتينی ائين دی. دپروردګار شاهدي اودهغه چاسره
چې دكتاب علم ورسره دی بسنه كوي.

## په دوه فصله کې:

**۱.ددوه موعودو دظهور وعده «لوی ذکر»او«لوی خبر»**

**۲. دوهمیاره اویواځې پیغمبران**

**داهغه لویه ورځ ده. چې په ټولو کتابونو کې بیان لیکل شوی دی.۱ حضرت بهاءالله**

**قد جعل الله کلّ مفاتیح الرّضوان فی یمینی وکلّ مفاتیح النّیران فی شمالی .۲ حضرت باب**

پروردګار دجنت ټولې کنجي ګانې زما په ښي لاس کې کیښودې. ددوزخ کنجي ګانې ئې زما په چپ لاس کې کیښودلې.

**اننی انا القائم الّذی انتم بظهوره توعدون .۳ حضرت باب**

زه همغه «قائم»یم چې دظهور وعده ئې تاسې ته درکړل شوې ده.

# ددوه موعودو دظهور وعده
# د«لوی ذکر»او«لوی خبر»
# په نامه

**لِّكُلِّ نَبَامسْتَقَر وَسَوْفَ تَعْلَمُونَ.**
**دانعام سورت،۶۷-ایت**
دهرخبر لپاره معلوم وخت ټاکل شوی دی . ډیر ژر به پرې پوه شئ.
**یا اهل الارض من اطاع ذکرالله و کتابه هذا فقد اطاع الله و اولیائه بالحق و قد کان ف الاخرة من اهل جنّة الرضوان عندالله مکتوباً .**
**٤ حضرت باب**
اې دځمکې اوسيدونکو!هرڅوک چې د«خدای دذکر»اودهغه دکتاب څخه پیروي وکړي،له پروردګار اودهغه له پیغمبرانو څخه ئې پیروي کړې ده. اوپه همیشنې جهان کې به دخدای په حکم دجنت اوسیدونکی وي.
اسماني ایتونه ددې ښکارندوی دي. چې په دفتر د روزګار کې«خبر»ثبت شوئ دی. چې دپروردګار د ارادې په اساس باید دخلکو څخه تریوټاکلې وخته

پورې پېټ وي. دا«خبر»دبشر په تاريخ کې ترټولو لوی«رويداد»اوپيښې ته اشاره ده،داتازه خبر دی. خوشحالوونکی دی. چې دروزګارسترګو ددې مثل تراوسه ليدلی نه دی.



له دې پيښې څخه په اسماني ايتونو کې په کراتو سره د«ښه خبر»او«لوی خبر»په نامه يادونه شوې ده.

**ايّاکم ان يمنعکم ذکر النّبيّ عن هذاالنّبأ الاعظم.۵**

**حضرت بهاءالله**

مبادا چې د«نبي»ذکر تاسې ددې «لوی خبر» نه لرې ونه ساتي.يعنې(منع مو نه کړي).

په قران مجيد کې ،دحضرت باب په اړه د«ذکر»لقب په کراتو دبل هرلقب نه ډير راغلې دی.دحضرت باب په ايتونو کې هم دالقب څو څو ځلې تکرار شوې دی:

**فانّه تالله الحقّ لحقّ من عندالله...ولاتقفوا لمحة عين عل□ الامر فانّا بالحقّ سنسئلنكم عن السّمع والبصروالفؤاد وانّ امرالله من عندالذّكر قد كان ف□ اُمّ الكتاب مقضيّاً .٦ حضرت باب**

په خدای قسم دی. هغه حق دی. او دخدای له لورې دی...یوه لحظه هم ددې امر اوائین په منلو کې ځنډ مه کوئ. زه به له تاسې څخه ستاسې دزړه،غوږونو، اوسترګوڅخه پوښتنې وکړم. دخدای دامر ظهور د«ذکر»له طرفه دکتابونو په مور(قران)کې لیکل شوی دی.

**ان□ اناالله الّذی لا اله الّا هو قد اقمت الذّکر لنفس□ بالحقّ...وانّ وعد ربّكم الرّحمن لحقّ و هوالله كان عل□ كلّ شيئ شهيداً...فقل انّ حجّت□ هذاالكتاب من عندالله فمن شاء فليؤمن و من شاء فليكفر ...**
٧

**حضرت باب**

زه پروردګار یم. هغه خدای چې بې له هغه بل خدای نشته. ما«ذکر» له خپله طرفه پاځولئ دی...په یقین سره ستاسې دپروردګار وعده سمه ده . خدای په هرڅه شاهد دی.

---

پس ووایه! زما دلیل داکتاب دی، چې دخدای له طرفه دی.هرڅوک چې غواړي په دې ایمان راوړي، اوهرڅوک چې غواړي په دې کافر شي...
قران دالهي حکمت او اسرارو منبع ده . دصاد سورت دهغو دجملې نه داسرارو منبع ده. هغه سورت څو ځلی د«لوی خبر» دظهور زیری ورکړی دی. دصاد سورت همدارنګه دیوبل موعود د«ذکر»په نامه یادکړی دی .چې هدف ئې «تذکر»اویادونه ده. ترڅو خلک دهغه لوی خبر اوریدلو ته اماده شي.

---

•خاتَم النبین معمول اومروجې معنی ته دمسلمانانو په منځ کې اشاره ده.

په همغه ترتیب چې په دې فصل کې به راشي.«ذکر»او«لوی ذکر»دحضرت باب دمهمو القابو څخه دی. دصاد سورت، داسې شروع کیږي:

**ص وَالْقُرْآنِ ذِي الذِّكْرِ.**

**دصاد سورت،۱-ایت**

«صاد»په قران قسم دی. چې د«ذکر» موضوع په دې(قران)کې راغلې ده.

په همدې سورت کې زمونږ دعصر پیغمبرانو دوه لقبه څو وارې تکرار شوي دي:

**انْ هُوَ الا ذِكْرٌ لِّلْعَالَمِينَ .**

**دصاد سورت،۸۷-ایت**

۱ **.ژباړه:** هغه نه دی، مګر دجهان خلکو لپاره «ذکر»دی.

۲ **.ژباړه:** هغه نه دی لیږل شوې، مګر هغه دجهان دټولو خلکو دښوونې او«تذکر»لپاره دی.

**قُلْ هُوَ نَبَاعَظِيمٌ انتُمْ عَنْهُ مُعْرِضُونَ.**

**دصادسورت،۶۸-۶۷،ایتونه**

ووایه!چې هغه «لوی خبر» دی. امّا تاسې له هغه مخ اړوونکې یاست.

---

**وَلَتَعْلَمُن نَبَاهُ بَعْدَ حِين.**

**دصاد سورت،۸۸-ایت**

**۱.ژباړه:**په يقين سره دهغه په «خبر»به وروسته له يوڅه«موديې»پوه شي.

**۲.ژباړه:**البته دظهور خبر به ئې څه «موده»وروسته واوري.

ددې يكتا اوبې همتا پيښې دلويوالې لپاره په قرآن كې د«نباء» اويا«خبر»په نامه سورت نازل شوى دى:

**عَم يَتَسَاءلُونَ عَنَ النبَا الْعَظِيمِ الذِي هُمْ فِيهِ مُخْتَلِفُونَ كَلا سَيَعْلَمُونَ ثُم كَلاسَيَعْلَمُونَ.**

**نباء سورت،۱-۵،ايتونه**

دڅه شي په باره كې خبرې اوبحث كوي؟د«لوى خبر»په باره كې په دې برخه كې دنظر اختلاف لري .البته ډير ژر دي. چې وبه پوهيږي. البته البته چې پوه به شى.بهائيان په دې عقيده دي. چې د«ښه خبر»او«لوى خبر»دداسې يوپيغمبردراتګ زيرى دى. چې ترټولو ښه اوترټولو لوى خبر ئې دبشريت لپاره په سوغات راوړى دى. ددې خبر په اساس دهغه وعدې دوخت انتظار سرته رسيدلى، اوداميدونو اوليدلوپسرلى په غوټو شوى دى.

دذکردکلمې معنی داسلامي مفسریوسفعلي دتفسیرپه اساس: تذکر، ښوونه، نصیحت، اخطار یا دخدای پیغام اوشریعت دی.

قران اوبهاءالله



---

**اې بنده ګانو!تاسي ددې لایق یاستې چې په دې روح بخښوونکي پسرلي کې دپروردګار درحمت په بارانونو تازه اوخرم شي.لوی لمر خپلې وړانګې خپرې کړې دي اودبخشش وریځو سیورې جوړ کړی دی.له دې څخه ګټه اخیستونکې هغه څوک دی چې خپل ځان ئې بې بهره نه کړ اودوست ئې په دې جامه کې وپیژندل.۸ حضرت بهاءالله**

**بې نیازه پروردګارپه لوړاواز فرمائي:دخوښیو جهان راغلی، غمجن مه اوسئ.پټ راز ښکاره شوې ،خپګان مه کوئ. که ددې ورځې په پیروزې پوه شئ، له جهان اوهغه څه چې په دې جهان کې دي ترې تیر شئ .اودپروردګار خواته به بیړه وکړئ. ۹**

**اې بنده ګانو!ددوست خبرې خوږې دي .کوم دی هغه څوک چې راشي. چیرته دی هغه غوږ، چې وائې وري . نیکمرغه دی هغه څوک، چې خپل دوست سره یو ځای شو. اوهرڅه چې له ده سره دي په دې لاره کې ورڅخه تیر شي.اوسترګې پټې کړي. اوتازه اونوی جهان وګوري .اوابدي جنت ته لاره پیداکړي. ۱۰**

بهائې ائین دجهاني صلح اوسعادت لپاره اسماني پیغام دی.کوښښ اولټه زمونږه ،هدایت اوحمایت دپروردګار ،ټول اسماني اثار ددې ښکارندوي دي. چې هغه زمان رارسیدلی چې دجنګ اوجدائي رسم له جهان څخه لری شي. اوبشریت په پوره ارامې اوراحت کې یوله بله سره ژوند وکړي.

اودیوبل په مرسته یونوې تمدن په ټول عالم کې جوړ کړي.

**قل تالله انّ هذالنبأ عظیم الّذی تزین بذکره کتب الله العلیم الخبیر .۱۱ حضرت بهاءالله**

ووایه!په خدای قسم دی دا«لوی خبر»دی چې دهغه په «ذکر»سره دپروردګار کلام ښکلاپیداکړی ده.

**هغه څه چې دموعود په کتاب کې ؤ ښکاره شول .هغه «لوی خبر» دی چې حضرت رحمن په قران کې**

**دهغه زیری اوبشارت ورکړی دی.۱۲**
**حضرت بهاء الله**
**قد اتی النبأ الاعظم والامم اکثرهم من الغافلین .۱۳**
**حضرت بهاءالله**
ترټولو غټ خبر راغلی. اما ډیر خلک ترې غافله دي.
**انّه هو الّذی سمّی ...فی الفرقان بالنّبأ العظیم .۱٤**
**حضرت بهاءالله** داهغه څوک دی. چې په قران کې په نباء عظیم (لوی خبر)سره یادشوی دی.



---

په احادیثو کې هم دقران په څیر زمونږ دعصر ددوه موعودو ظهور د«قائم» او«روح اله»په نومونو تائید شوي دي. دهغو جملې نه داحدیث:
**که ددنیا دعمر یوه ورځ پاتې وي . خدای به هغه دومره اوږده کړي. ترڅو زما زوی مهدي په هغه کې راښکاره شي .وروسته به عیسی روح اله راښکته شي. اوهغه پسې به لمونځ اداء کړي.۱۵**

ځنې نور حديثونه دي. چې دروح الله دراتګ په ځای دحسين راتګ ته اشاره کوي. دهغوې جملې نه داحديث دحضرت صادق:

**فقيل له من اول من يخرج؟ قال الحسين يخرج عل اثر القائم.١٦**

هغه ته وويل شو:لمړې څوک چې ظهور کوي. څوک دی؟ وئې ويل:حسين چې وروسته له قايم څخه به ظاهر شي.

په همغه ډول چې حضرت يحيى دذکريا زوي خلک دحضرت مسيح دظهور لپاره اماده کړل. حضرت باب «ذکرالله»هم همدانقش په غاړه لرل .له دې کبله دبهائي ائين او مسيحيت ترمنځ ډير شباهت وجود لری.

## د«لوی خبر»په باره کې

## دنظراختلاف

دنباء سورت مونږ ته خبر راکوي. چې د«لوی خبر»په موضوع کې به خلک دنظر اختلاف ولري:

**...النبَاالْعَظِيمِ الذِي هُمْ فِيهِ مُخْتَلِفُونَ.**

**دنباء سورت،٢-٣،ايتونه**

...«لوی خبر»چې دهغه په باره کې به خلک دنظر اختلاف ولري.

په همغه ډول چې د«سورت کهف»په ایتونو کې به ئې وګورو. دخلکو ترمنځ اختلاف دبهائي ائین په باره کې له همغه شروع څخه ترننه پورې ادامه لرله اولري.



ځنې مسلمانانو بهائیان یوه بې لارې اوغولوونکې ډله بللې ده،اودهغوې په ورک کولو کې کوښښ کړی. اوکوي ئې .ځنې په دې فکر دي. چې بهائیان باید ازادپریښودل شي ترڅو پخپله خوښه دپروردګار عبادت وکړي . اوځنې نور وائي چې :دبهائیان سره باید مرسته وشي. ځکه بهائیان دعالم دترقې اوپرمختګ سبب ګرځیدلي دي . حضرت بهاءالله پخپلو

اثارو کې په کراتو سره ددې اختلاف په اړه خبرې کړي دي.
**بذالك النّداء بشّرت العباد بظهورك الاعظم و امرك الاتّم فلمّا ظهر اختلفت الامم و ظهر الانقلاب فی الارض والسّماء .۱۷**
**حضرت بهاءالله**
[اې پروردګاره:]سره له هغه «غږ»چې دلوی ظهور«امر»اودخپل پوره ائين زيری دې ورکړ. اما کله چې ښکاره شو. دامتونو داختلاف سبب شو. اوپه ځمکه اواسمان کې دانقلاب سبب وګرځيدل.
**قل قد ظهر فضل ما سبقه فضل فی الابداع ان انتم من السّامعين .قل يا قوم لا تختلفوا فيه و لا تتّبعوا هويكم و لا تكوننّ من المعرضين .۱۸**
**حضرت بهاءالله**
ووايه!چې داسې فضل اورحمت راښکاره شوې، چې په عالم کې نظيرليدل شوی نه دی.  که چيرته ئې په اوريدونکو غوږونو واورئ . ووايه! اې خلکو ددې ظهور په باره کې مجادله اومخالفت مه کوئ . دخپلو غوښتنو تير شئ. اوله دې ائين نه مخ مه اړوئ.
دنظر اختلاف دبهائې ائين په باره کې نه يواځې دمسلمانانو په منځ کې دی، بلکه دټولو اديانو دپيروانو

ترمنځ موجود دی. د«نباء سورت»په لطيف اوتازه شکل سره زمونږ دعصر دخلکو رفتار ته اشاره کوي. په قران مجيد کې «نباء عظيم» (لوی خبر) ددوه معنا و لپاره استعمال شوی دی .

- لوی خبر، لوی پيغام.
- لوی خبرراوړونکې ،لوی پيغام راوړونکې.

داايت«خبر»ته ا شاره کوي:



دلوی ذکراولوی خبر په نومونوسره

---

---

**النبَاالْعَظِيمِ الذِي هُمْ فِيهِ مُخْتَلِفُونَ .**

**دنباء سورت، ۲-۳،ايتونه**

هغه «لوی خبر»چې خلک دهغه په باره کې دنظر اختلاف لري.

---

داایت د«لوی خبر» راوړونکي، اویالوی پیغام راوړونکي ته اشاره کوي:

**قُلْ هُوَ نَبَاءٌ عَظِيمٌ.**

**دصاد سورت،۶۷-ایت**

ووایه«هغه»لوی خبردی.

**وَلَتَعْلَمُن نَبَاءَهُ.**

**دصاد سورت،۸۸-ایت**

په یقین سره به د«هغه»دظهور خبرواوري.

دامام صادق دروایت په اساس:

[موعود]نه ظاهریږي. مګر کله چې دیقین والا دهغه په باره کې شک وکړي. اوددې ایت اړوند ئې وفرمایل: **قل هو نباء عظیم انتم عنه معرضون .۱۹**(هغه لوی خبر دی، اوتاسې له هغه نه مخ واړول).

په دې ایت کې ،حضرت باب هم«لوی خبر»دخبرراوړونکي اویا پیغام راوړونکي په معنا استعمال کړی دی:

**یا قرّة العین قل انّي انا النّبأ العظیم الّذي قد کان في امّ الکتاب مذکورًا قل اختلفوا الکلّ فيّ... وکفی بالله الحقّ شهیدًا .**

**۲۰**

**حضرت باب**

اي«**قرّة العين**»(**بهاءالله**)ووايه:البته چې زه هغه لوی خبر یم. چې دکتابونو په سرچینه (قران)کې ذکر راغلی دی. ووايه: ټول خلک زما په باره کې دنظر اختلاف لري...دخدای شاهدي بس ده.

دبهائي ائين دشروع نه ترننه پورې دجهان خلک ددې ائين په باره کې په بحث او دښمنې بوخت ؤ اودي.دبهائي ائين په باره کې دنظر اختلاف توپير ترهغه حده دی.چې دمسلمانانو يوه ډله دبهائيانو مرګ واجب ګڼي .اوبله ډله ئې په دې ائين خپل ځانونه قربانوي.يواځې دبهائي ائين په اول قرن کې داسلام د لوی علماو څخه «۴۰۰»څلورسوه تنو په حضرت باب ايمان راوړ.هغو فداکارو مؤمنانو دموعود دمقام په اثبات کې کتابونه وليکل ،

دخطر باوجودئي ،په پوره شهامت دخپل ائين په خپرولو ئې شروع وکړه.دارنګه ددنيا عزت اوراحت اودارنګه فداکاري اوګذشت دعلماو لخوا دبشر په تاريخ کې هيڅکله سابقه اونظير نه لرل.حضرت بهاءالله دجهان خلک په ځانګړې ډول علما دعوت کړل. چې هره مسئله دی دخدای سره د«ميزان»له مخې وسنجوي. داختلاف اوجدائي څخه دې لاس واخلي:

**قل هذا لقسطاس الهدی لمن فی السّموات والارض والبرهان الاعظم لو انتم تعرفون .قل...اياکم ان تختلفوا فيه .٢١**

**حضرت بهاءالله**

ووايه! دا د پروردګار دهدايت دميزان ، لوی دليل او برهان دی. دځمکې اواسمانونو والاو لپاره ، که ئې وپيژنی. ووايه!..نه بايد په هغه کې اختلاف وکړئ. دخدای دوعدې په اساس ،دهغه څه په باره کې چې مسلمانان دنظر اختلاف لري،خدای به ئې په ورځ دقيامت اويا کله چې موعود ئې ظهور وکړي. روښانه کړي:

**وَلَيُبَيِّنَن لَكُمْ يَوْمَ الْقِيَامَةِ مَا كُنتُمْ فِيهِ تَخْتَلِفُونَ.**
**دنحل سورت، ۹۲-ایت**
په ورځ دقیامت[دپروردګارقیام رالیږونکې]هغه څه چه په هغه کې دنظر اختلاف لرئ. البته چې روښانه به ئې کړم.
**لِيُبَيِّنَ لَهُمُ الذِي يَخْتَلِفُونَ فِيهِ وَلِيَعْلَمَ الذِينَ كَفَرُواْ انهُمْ كَانُواْ كَاذِبِينَ. دنحل سورت، ۳۹-ایت**
البته[پروردګار دهغه چاحقانیت] چې دهغه په باره کې دنظر اختلاف دی. روښانوي او دامر منکرین به[باالاخره]پخپلودروغجنو خبرو باندې پوه شي.
**اللهُ يَحْكُمُ بَيْنَكُمْ يَوْمَ الْقِيَامَةِ فِيمَا كُنتُمْ فِيهِ تَخْتَلِفُونَ.**
**دحج سورت، ۶۹-ایت**
پروردګار به په هغه څه کې چې دنظر اختلاف لرئ. په ورځ دقیامت قضاوت وکړي.
په تیرو وختونو کې دهر«امّت»لپاره دهغه امّت خاص پیغمبر راتلل، (فاطرسورت،۲۴-ایت)اما دالهي نقشې په اساس په دې عصر کې یعنی د«لوی خبر» دتحقق په وخت کې ټول امتونه باید دجدائي رسم پریږدي. اولکه دیو وجود په شان دیوبل سره متحد شي.

«لوی خبر»دهغه پیغمبر ظهور ته اشاره ده ، چې ائین ئې عالم ګیر(دټول عالم لپاره)اودټول جهان لپاره دی، اوهدف ئې دبشریت په منځ کې دیووالی اودصلح اکبر راوستل دي. آیا له دې څخه بل«لوی خبر»کیدلی شي، تصور ئې وکړئ؟

**ووایه!اې دوستانو خپل ځانونه دپروردګار دبخشش له دریابه مه لرې کوې . اوهغه ډیر نږدې راغلې. هغه چې پټ ؤ راغلی. اوښه راغلی .په یولاس کې دژوند اوبه، اوپه بل لاس کې دازادۍ فرمان دی.وغورځوی اوواخلې:وغورځوی هغه څه چې په جهان کې لیدل کیږي. اوواخلی. هغه څه چې دبخشش لاس ئې درکوي. اوهغه څه راغلي. چې تراوسه ئې مثال اونظیر نه دی لیدل شوی.۲۲**

**حضرت بهاءالله**

# دپروردګاراسم اعظم

زمونږ په عصر کې نه يواځې د«خدای لويه ورځ»اوزمونږ دعصر پيغام د«خدای لوی خبر»دی.زمونږ دپيغمبر نوم هم د«خدای لوی نوم»دی.په اسماني کتابونو کې پروردګار ته ډير صفتونه ورکړل شوي دي. يوله هغه صفتونو څخه پروردګار دخپل ځان لپاره خوښ کړی. اوهغه صفت ئې د«اسم اعظم»په نامه يادکړی دی. اوزمونږ دعصر موعود ته ئې بخشش کړې دی. هغه ديکتا صفت اوهغه دخدای لوی اسم «بهاء» دی .چې د«سهاردعا»په شروع کې راغلی دی.

**دخدای لوی نوم چې په لويوالې سره راغلې وپيژنئ.اوهغه دی پوهيدونکی ،لرونکی اوساتونکې.۲۳**

**حضرت بهاءالله**

**انه لبهاءالله لمن فی ملکوت الامر والخلق و مصباح الهدی لمن فی السموات والارض.۲٤**

**مُهرِحضرت بهاءالله**

په يقين سره هغه (بهاءالله) د امراوخلق دعالميانواوسيدونکولپاره د خدای نوردخدای شکوه اوعظمت دی. اودهدايت چراغ دی، دهغه چالپاره چې په اسمانونو او ځمکه کې دي. دسهار دعا هغه دعا ده، چې په ډير فصاحت اوابهت سره دپروردگار په صفت کې ويل شوې ده. دادعا دامام رضا څخه نقل شوې ده. اودهغه دوينا له مخې دادعا امام محمد باقردسهارلخوا،



دروژې په مياشت کې لوستله،په دې دعا کې د خدای ډير صفتونه اودهغه نومونه ذکر شوي دي. اواول ئې«بهاء»دی:

**اَللّهُم اِنّ اَسئلُكَ مِنْ بَهائك بِاَبْهاهُ وَكُل بَهائكَ بَهِیٌّ.**

خدایه له تا څخه غواړم ترټولو ځلیدونکو مرتبو له ځلیدلو څخه چې دهغې ټولې مرتبې ځلیدونکې دي.

**اَللّٰهُم اِنّ□ اَسْئلُكَ بِبَهائَكَ كُلِّهِ.**

خدایاله تاڅخه غواړم دروښانتیا ټولې مرتبې.

**اَللّٰهُم اِنّ□ اَسْئُلُكَ مِنْ جَمالِكَ بِاَجْمَ لِهِ وَكُل جَمالِكَ جَميلٌ.**

خدایا له تانه غواړم ستا دجمال ښکلې مرتبې ،سره له دې چې ستا دجمال ټولې مرتبې
ښکلې دي

**اَللّٰهُم اِنّ□ اَسْئُلُكَ بِجَمالِكَ كُلِّهِ.**

خدایا له تاغواړم ستا دجمال ټولې مرتبې.

**ا للّٰهُم اِنّ□ اَسْئُلُكَ مِنْ جَلالِكَ بِاَجَلِّهِ وَكُل جَلالِكَ جَليلٌ.**

خدایا له تاڅخه غواړم ستادجلال تر ټولولوړې مرتبې .سره له دې چې ستا ټولې مرتبې دجلال باشکوه دي.

**اَللّٰهُم اِنّ□ اَسْئُلُكَ بِجَلالِكَ كُلِّهِ.**

خدایه له تا غواړم دجلال ټولې مرتبې.

**اَللّٰهُم اِنّ□ اَسْئُلُكَ مِنْ عَظَمَتِكَ بِاَعْظَمِها وَكُل عَظَمَتِكَ عَظَيمَةٌ.**

خدایا له تاغواړم ستا دعظمت لویه مرتبه ،سره له دې چې ستا دعظمت مرتبې ټولې لوی دي.

**اَللّٰهُم اِنّ□ اَسْئُلُكَ بِعَظَمَتِكَ كُلِّها.**

خدایا ستا څخه غواړم دعظمت ټولې مرتبې:

ددې دعا اصل اوترجمه ئې له دې اسلامي سایت څخه ده:
http://www.irnets.net/f176/t1087-a.html

۲۰۳ ۸فصل: ددوه موعودو دظهور وعده دلوى ذكر او لوى خبر په نامه سره

---

---

**اَللّهُمَّ اِنّي اَسئَلُكَ مِنْ نُورِكَ بِاَنْوَرِهِ وَكُل نُورِكَ نَيِّر.**
خدايا له تا غواړم روښنائي ترينې مرتبې دروښنائي ستا ، سره له دې چې ستا ټولې مرتبې دروښنائي ،روښنائي ترينې دي.
**اَللّهُم اِني اَسْئَلُكَ بِنُورِكَ كُلِّهِ...**
خدايا له تا څخه غواړم ستا دنورټولې مرتبې...
پنځه صفتونه چې ددې دعا په شروع کې راغلي دي. حيرانوونکې شان ښکلا اوشوکت ،لويوالى ،جلال ،عظمت اوروښنائي داټول د«بهاء»دکلمې معنى ګاڼې دي.

شيخ نجفي ،داصفهان قدرتمند اودبهائي ائين دسرسخته دښمنانو دجملې څخه ؤ خلک به ئې دسهار ددعادلوستلو څخه د«بهاء»دنوم په خاطر منع کول:

**دځمکې مخ جاهل[شيخ نجفي]دخدای بنده ګان دتلاوت څخه منع کول.۲۵حضرت بهاءالله**

**دظالمانو ظلم داسې مقام ته رسيدلی، چې خلک دسهر دعاکولوڅخه منع کوي.۲۶**

**حضرت بهاءالله**

**دسهر ددعا په باره کې دحضرت بهاءالله مناجات:**

**بسم الله الابهی .سبحانک اللّهم يا الهی ادعوک بدعاءالّذی دعيت به من لسان رسلک و صفوتک . واسئلک باسمک الّذی سئلت به من قبل من السن المقرّبين...و اقول" اللّهم انّی اسئلک من بهائک بابهاه و کلّ بهائک بهی "فيالهی و محبوبی هذا اسم الّذی...جعلته طراز نفسک يا مالک ممالک الاسماءوامرت الکلّ بان يقرؤه فی الاسحار لئلّا يحتجب عنه احد من اولی الابصار .فيالهی اسئلک بهذاالاسم الاعظم بان تثبتنی علی حبّه و رضاه علی شأن لا اتوجّه الّا اليه و لا اتمسک الّا به و لا اقبل الّا ايّاه .۲۷**

دهغه خدای په نامه چې دهرې روښنائي څخه روښانه دی. اې زما پروردګاره ته پاک اومقدس ئې ستا په درګاه کې دعا کوم . هغه دعا چې ستا پیغمبرانو اوغوره شوو به لوستله...اووایم: اې پروردګاره ! ستا روښنائي غواړم په روښنائي ترین شکل سره ، که څه هم هره روښنائي چې ستا له جماله وځلیږي روښنائي ترینه ده .اې زما پروردګاره اوزما محبوبه،دا [بهاء]هغه نوم دی...



---

...چې هرژوندی

ته دې په هغه سره ښکلا ورکړه. اې هغه څوکه ، چې صاحب دټولو نومونو ئې ،تاحکم وکړ ، چې مؤمنین دې دادعا په هرسهار کې ووائي. ترڅو هیڅ یو دپوهې والا له هغه (موعود)څخه محروم پاتې نشي. پس اې زما پروردګاره !ددې لوی نوم له برکته له تاغواړم. چې ما دهغه په دوستې اودهغه په رضا ثابت

او محکم ولره.ترهغه حده پورې چې په غير له هغه بل څه شې ته توجه ونه کړم. په غير له هغه بل چا پورې ځان ونه تړم. اوپه غير له هغه بل چاته مخ وانه ړوم...

**قل يا ملأ العالم قد ظهر الاسم الاعظم ان افرحوا و توجهوا اليه بالافئدة والقلوب .۲۸**

**حضرت بهاءالله**

ووايه!اې خلکو: لوی نوم (اسم اعظم) ظاهر شوی دی. خوښی وکړئ. اودزړه له کومي هغه ته توجه وکړئ.

شيخ بهائي لمړنې شخص ؤ چې په دې راز وپوهيدل اودانوم ئې خپل ځان لپاره خوښ کړاودهغه په صفت کې داسې وويل:

| | |
|---|---|
| **اسدش** | **سروری بر کلّ اسماء بايدش** |

د«بهاء»معنی دهغې يکتاوبې همتا کلمې په عظمت او وقار شهادت ورکوي:

- روښنائي
- بنه والی
- ښکلا اوښايست
- کمال

- ارائش
- حیرانوونکې شان اوشوکت
- لویوالی

دمحمّد موحّد په وینا چې په عربي ژبه کې «ډیره پوهه»لرله. د«بهاء»دعظمت په اندازه ئې په عربي کې بله کلمه پیدانه کړه . ځکه چې ددې معنی ډیره اوچته ده. ته به وائي چې د لمړې ورځې نه په تقدیر کې د«بهاء» یعنی«اسم اعظم»نوم الله پاک زمونږ. دعصر دموعود لپاره ایښې ؤ. دفردوسي دامشهور شعر هم دې«لوی نوم»ته اشاره کوي:



امدار زدشت سواران نیزه گذار
خوی کزو دین یزدان رود چارسوی
از بدی بتابد از او"فره ایزدی"

«**فّرهُ ایزدی**»یا«شکوه پروردگار»په معنی کې د«بهاءالله» سره پوره سمون لري.

دکافي اصولو درواېتونو په اساس:

ابن سنان وائي: دامام صادق څخه مې **دبسم الله الّرحمن الّرحیم** دتفسیر پوښتنه وکړه . وویل:

(ب)باء،بهاءدخدای (روښنائي)،(س)سین ،سناء دخدای رفعت او(م)میم مجد(دخدای لویوالی)دی...

داسلام ځنې نورو علما او پوهانو هم په خپلو اثارو کې د«بهاء»نوم ته اشاره کړې ده. له هغه جملې څخه میرزا جواد ملکي دبسم الله الرحمن الرحیم دلمړیو دوه نورو په تفسیرکې له امام صادق څخه نقل کړې چې ویلي دي :باء د«خدای دبهاء» په معنی یا بهاءالله اوسین د«خدای دسنا»په معنی دی .وروسته توضیح ورکوي چې دځنې روایتونو په اساس ،(الف)اشاره ده خدای ته او«باء» اشاره ده اول مخلوق ته اواول نور ته ،چې بهاءالله ترې تعبیر شوې دی.

په احادیثو کې د«بهاء الله»په دې القابو صفت شوئ دی:

- **العقل الاول**
- **القلم الاعلی الالهیه**
- **جنّة الماوی**
- **النفس الکلیة**

حضرت باب دحضرت بهاءالله دارنګه صفت کوي.
چې په بیان کې راتللی نشي:

**وانّ بهاء من یظهره الله فوق کلّ بهاء وانّ جلاله فوق کلّ جلال وانّ جماله فوق کلّ جمال...وانّ نوره فوق کلّ نور...وانّ اسمائه فوق کلّ اسماء .۳۲**

**حضرت باب**



---

په یقین سره «بهاء»«هغه څوک دی. چې پروردګارهغه ظاهروي»دهرې روښنائي نه برتر دی ، دهغه جلال تربل هرجلال څخه لوړ دی ، دهغه

«نور تربل هرنور لوړ دی»،اودهغه نومونه په ټولو نومونو کې اوچته دي.

## ددوه لویو موعودو

## دظهور خبر

دصادسورت هغه سورت دی. چې ددوه موعودو دظهور خبر ورکوي. مونږ دحضرت بهاءالله دظهور دکال څخه او هم مونږ له هغې فاصلې څخه خبروي، چې دحضرت باب او حضرت بهاءالله دظهورترمنځ وه:

**وَلَتَعْلَمُن نَبَاهُ بَعْدَ حِين.**

**دصاد سورت،۸۸-ایت**

په یقین سره به په هغه خبر وروسته له څه مودې پوه شئ.

مخکینې ایت مونږته راوښائي چې دیو
څه«مودې»دتیریدو نه وروسته به دهغه دظهور (خبر) واورو، اما دیوې حیرانوونکې معجزې په شکل ، د«لوی خبر»دظهور دکال اخر دوه رقمه په همغه کلمه «موده »کې مونږ ته یوراز راکوي. په عربي ژبه کې دالفبا تورو څخه هریو توری یوه شماره لري . د اعدادو اظهار دهغه ژبې دتورو په وسیله

«دابجدودژبې»په نوم ياديږي . وبه ګورو چې
د«حين» دکلمې عددونه دابجدو په حساب څو دي:

| |
|---|
| ح=٨ |
| ى=١٠ |
| ن=٥٠ |
| حين=٦٨ |

قران مجيد مونږ ته خبر راکوي. چې دهغه«
دظهور»«خبر» وروسته له«حين» څخه واورو.
دحضرت بهاءالله دظهور سره دا وعده په دقت سره په
حقيقت بدله شوه. ځکه چې هغه حضرت ، وروسته
د«حين» دکلونو له تيريدو څخه (٦٨)کاله وروسته
لوى خبر دلمړي ځل لپاره ٩کاله وروسته دحضرت
باب دظهور څخه دتهران په ترسناک زندان کې چې
په «سياچال» مشهور ؤ خپل دپيغمبرى اظهاروکړ.

---

| |
|---|
| دلومړي موعود دظهور کال (په ۶۰کال کي) ۱۲۶۰<br>ددوهم موعود دظهور کال (وروست له حين نه)۱۲۶۹ |

وګورئ په څومره مهارت سره زمونږ دعصر ددوه موعودو دظهور داخرو کلونو دوه رقمه په يوه لنډه جمله کي د راز اواشارې په چوکاټ کي پټ شوي دي! آيا ددي دوه کلمو استعمال (بَعْدُحِيْنَ»په دې ايت کي تصادفي دی؟

**دذکر په «بَعْدُ حِيْنَ»کي فکر وکړئ ، شايد ... چې ګمراهان دسمې لارې اودلوی خبر داوريدو قصد او نيت وکړي.۳۳**

**حضرت بهاءالله**

دالاندي حديث دقران مجيد ايت دقائم دظهور سره رابطه جوړوي:

**لتعلمن نباه بعد حين قال عند خروج القائم.۳٤**

په يقين سره به دهغه په خبر وروسته له «حين»څخه پوه شئ.

دقائم

دظهور په وخت کې وويل. سيد کاظم رشتي دشيخ احمداحسائی څخه دموعود دظهور په باره کې پوښتنه وکړه . هغه په ځواب کې ورته وويل:

**لا يجوز الجواب بالتعيين .٣٥**

دځواب مشخص کول جائز نه دي.

وروسته دقران ددې ايت «ذکر» کوي:

**انْ هُوَ ا لا ذِكْرٌ لِّلْعَالَمِينَ وَلَتَعْلَمُن نَبَاهُ بَعْدَ حِين.**

**دصاد سورت،٨٧- ٨٨،ايتونه**

ښکاره ده چې د«لوی خبر» (نباء عظيم)او«ذکر»ايت مونږ د«لوی خبر»له انجامه خبروي . څومره «لوی خبر»اوڅومره لوی زيری، دخوښيو ډک جهان لپاره دموعود داظهار څخه بل څه شی کيدلی شي؟اوکه نه:

---

❖ دمسلمانانو دوه لوی دانشمندان چې خپل پيروان ئې دحضرت باب دپيژندنې لپاره اماده کړل.

- **هغه څوک دی، چې دجهان خلکو ته د«تذکر»اویادونې لپاره راځي؟ دصادسورت،۸۷-ایت**
- **هغه څوک دی، چې څه «موده» وروسته به دهغه خبر واورو؟ دصاد سورت،۸۸-ایت**
- **هغه څوک دی، چې د«لوی خبر»په نامه یاد شوی؟ دصاد سورت،۶۸-ایت**
- **هغه څوک دی، چې خلک له هغه څخه مخ اړوي؟(انتُمْ عَنْهُ مُعْرِضُونَ ) دصاد سورت،۶۸-ایت**
- **خلک دکوم چاپه باره کې خبرې اوبحث کوي؟دنباء سورت، ۱-۵،ایتونه**
- **«کوم خبر دی»چې حتماً به دخلکو غوږو ته ورسیږي؟ دنباء سورت، ۱-۵،ایتونه کوم خبر دی چې خلک دهغه په اړه داختلاف نظر لري؟ دنباء سورت، ۱-۵،ایتونه**

- **کوم خبر دی چې دخلکو غوږونو ته به حتماً ورسیږي؟دنباء سورت، ۱-۵،ایتونه**
- **کوم خبر دی چې په یو ټاکلي وخت سره به سرته ورسي .تحقق به پیداکړئ ؟**

**دانعام سورت، ۶۷-ایت**

- **کوم خبر دی چې ډیر ژر به خلک له هغه څخه خبر شي؟ دانعام سورت، ۶۷-ایت**

دصاد دمبارک سورت مطالب په ظاهر کې متفاوت او غیرمرتبط دي. اما په باطن کې دیو داستان په شکل ،دبشر دروحاني برخلیک او زمونږ ورځنیو حوادثو ته اشاره کوي.

هغه موضوع چې ددې سورت، مطالبو ته ربط ورکوي ، دابلیس داستان دی. چې په یوه ځانګړې ژبه ویل شوی دی . ددې داستان په اساس ، ټولو فرښتو خپل پروردګار ته دبنده ګې اوتسلیمې سرټیټ کړ، په غیر د ابلیس نه چې دکفر اوتکبر لاره ئې ونیوله.

---

❖ «ابلیس» یا«شیطان»دمغرورو،مکارو اوقدرتمنو پیشوایانو نماینده اویا هم ویاندوی دی.چې دخدای دین غصب کړی.خپل ځان دهغه صاحب ګڼي، ددې پیشوایانو کار دمقلدو پیروانو

ګمراه کول اودخدای څخه د هغوې لرې کول دي.

۲۰۹ ۸فصل:ددوه موعودو دظهور وعده دلوی ذکراولوی خبر په نامه

---

---

په دې سبب پروردګار ابلیس له خپله ځان نه لرې کړ. اوورته ئې وویل: د«یوم الدین»پورې به لعنتي ئې ،ابلیس دخدای نه غوښتنه کوله چې دبعثت ورځې پورئ یا دهغې ورځې پورې چې بل پیغمبر راځي یعنی تر «**یُوْمِ یُبْعَثُوْنَ**»پورې مهلت واخلي خدای ورته وویل: تریوې ټاکلې اومعلومې ورځې او یو معلوم وخته پورې (**یُوْمُ اِلْوَقْتِ الْمَعْلَومِ**»تاته مهلت درکوم.ابلیس وویل: ستا ټول بنده ګان به ګمراه کړم .مګر په غیر له هغه چا چې پاک نیت لري.

**قَالَ فَبِعِزتِكَ لَاغْوِيَنهُمْ اجْمَعِينَ الا عِبَادَكَ مِنْهُمُ الْمُخْلَصِينَ. دصاد سورت،۸۲- ۸۳،ایتونه**

پروردګار ځواب ورکړ:«داعادلانه ده. پس زه به هم جهنم په تا او ستا په پیروانو ډک کړم.

**قَالَ فَالْحَق وَالْحَق اقُولُ لَامْلَان جَهَنمَ مِنكَ وَمِمن تَبِعَكَ مِنْهُمْ اجْمَعِينَ.**

**دصاد سورت،۸۴- ۸۵،ایتونه**

په دې داستان کې درسونه اوحکمتونه پراته دي .له هغې جملې څخه داچې مهربان خدای د پیغمبرانو دظهور په وخت کې یو نوې فرصت کبرجنو اوځان غوښتونکو اومغروروپیشوایانوته ورکوي. دا«ورځ» زمونږ دعصر ددوه پیغمبرانود بعثت ورځ ده. (**يوْمَ يُبْعَثُوْنَ**).داهغه وخت دی. چې پروردګار خلکو ته نوې ائین وروبخښي. (**يَوْمِ الّدِيْنَ**)داایتونه همدارنګه مونږ ته یادونه کوي. چې دخدای پیغمبرانو پیژندنه خپل شرطونه لري . له هرڅه نه مهم تراولازم تر دپاک نیت اودمینې ډک زړه لرل دي. نیکان به هیڅکله ګمراه نشي. اوتکبروالا به هغوې ته بازي ورنه کړي. دابلیس له داستان نه وروسته ،دصاد سورت په دې ایت پای ته رسیږي:

**۸۶-ايت،قُلْ مَا اسْالُكُمْ عَلَيْهِ مِنْ اجْرٍ وَمَا انَا مِنَ الْمُتَكَلِّفِينَ:**

---

- حضرت مسيح هم الهي اسرار خپلو پيروانو ته په لنډوقصو اوداستانونو کې ورزده کړي دي. په همغه ډول چې وبه ئې ګورو. داصحاب کهف سورت هم له دې ډول داستانونو څخه دی.
- تکلف: زحمت ايستل، ديوکارسرته رسول په ډير مشقت سره. دمبارک ايت مقصد دادی: لارښوونه دالله کار دی، دحقيقت منل او دتحقق مسئوليت زمونږ کار دی.



---

---

ددغې راهنمائي پاداش زه له تاسې څخه نه غواړم اوستاسې مسئوليت په غاړه نه اخلم .

**۸۷-ایت: انْ هُوَ الا ذِكْرٌ لِّلْعَالَمِينَ:**

هغه موعود نه راځي مګر ددې لپاره چې دعالم خلکو ته د«لوی خبر» «تذکر»وکړي.

**۸۸-ایت: وَلَتَعْلَمُن نَبَاهُ بَعْدَ حِين:**

دهغه «موعود» «لوی» پیام به وروسته له یوې«مودې» (۶۹کال)کې واوري.

دیوسف په سورة کې هم د۸۶- ۸۷ ایتونو په شان ایتونه نازل شوي وي.

**وَمَا تَسْالُهُمْ عَلَيْهِ مِنْ اجْرٍ انْ هُوَ الاذِكْرٌ لِّلْعَالَمِينَ.**

**دیوسف سورت،۱۰۴-ایت**

ددې رهنمائي لپاره له هغوې څخه پاداش نه غواړي. هغه یواځې دجهان خلکو دښوونې اوتذکر (یادونې)لپاره راځي.

په ځآی به وي. که توجه وکړو،چې دصاد دسورت په ایتونو کې داول شخص څخه شروع شوې ده. (مَأاَ سْئَا لُكُمْ)اوپه دریم شخص ئې خاتمه پیداکړی.(اِنْ هُوَ)دیوسف په سورت کې موضوع له دوهم شخص څخه شروع شوې ده. (مَأَتَسئَأَلُهُمْ)،اوبیا په دریم شخص ختمه شوې ده.(اِنْ هُوَ)،په دې برسیره په درې واړو واردو کې «ذکر»ته په اشارې سره اود«لوی خبر»په راتلو سره د«هُوَ»ضمیر یعنی «هغه»کلمه راغلې ده.

- **هُوَ...ذِكْرٌالَّلعْاَلَمِيْنَ**(دیوسف سورت،۱۰۴-ایت)د«هغه »هدف «تذکر» دی.
- **هُوَ...ذِكْرٌالَّلعْاَلَمْيْنَ**(دصاد سورت،۸۷-ایت)د«هغه»مقصدیاداوري ده.
- **هُوَ...نَبَاءٌ عَظِيْمٌ**(دصاد سورت،۶۷-ایت)«هغه»لوی خبر دی.
- **وَلَتَعْلَمُنّ نَبَاءَهُ(**دصادسورت،۸۸-ایت)دهغه دراتلوخبر به په(تاکلي موقع)کې واورئ.

---

- ذکر: یادول ،یادیوې موضوع په ژبه راوړل،ثناء.

واضح ده. داایتونه ددوه پیغمبرانو دراتګ
د«ذکر»او«نباء عظیم» په نومونو زیری ورکوي.
چې لمړی دتذکر اویاداوری په خاطر ، دخلکو اماده
کول د«لوی خبر» داوریدلو لپاره، اودوهم
دهغه«خبر» داعلان اواظهار لپاره راځي.
دصاد سورت داایت وښائي، چې دخلکو یوه ډله ترڅو
چې دهمیشني عالم عذابونه ونه ګوري. دپروردګار
د«ذکر» څخه انکا رکوي:
**بَلْ هُمْ فِي شَكٍّ مِّن ذِكْرِي بَلْ لَما يَذُوقُوا عَذَابِ.**
**دصاد سورت،۸-ایت**
هغوې زما د«ذکر» په باره کې (دخدای په ذکر) کې
شک لري. تراوسه ئې زما عذاب نه دی لیدلی.
دالاندې ایت دهمغه سورت څخه دهغو خلکو دبرخلیک
څخه ګویا دی. چې موعودئې منلې دی:
**هَذَا ذِكْرٌ وَان لِلْمُتقِينَ لَحُسْنَ مَآبٍ.**
**دصادسورت،۴۹-ایت**
دا «ذکر»دی. اوپه یقین سره دخوښیو ډک برخلیک
دپرهیز ګارانو په انتظار دی. بیا ګورو، چې
دپروردګار دشهادت په اساس دموعود دپیژندنې شرط
نیکو کاري او پرهیزګاري ده، نه ددنیا لرلو لپاره

دپوهې اوعلم نه ډک اومغشوش ذهن. داحقیقت په ټول قران کې په بهائي اسماني اثارو کې په کراتو سره تکرار شوی دی.
درسول اکرم څخه وروسته دپیغمبر دظهور خبر، دډیرو مسلمانانو لپاره حیرانوونکی دی. دې مسلمانانو بې له فکره اوسوچه د(خاتَم انبیاء) معنی درسولانو د(خاتِم رسولان)مطابق ګڼلې . دالاندې ایت دمسلمانانو د انتظار نه لرلو ته اشاره کوي:
**اوَعَجِبْتُمْ ان جَاءکُمْ ذِکْرٌ مِّن ربِّکُمْ ؟**
**داعراف سورت، ۶۹-ایت**
آیا تعجب کوئ، چې د پروردګار له طرفه تاسې ته «ذکر»راغلی دی؟
قران مجید دحضرت باب پیروانو ته هم اشاره کوي.هغوې ئې د«**أَهْلَ الّذِکْرِ**»یعنی د «ذکر پیروان» ګڼلي . هغه کتاب مؤمینومسلمانانو ته توصیه کوي. که دالهي کلماتو په فهم او پوهاوي کې کوم مشکل لري. ښه به وي چې د«اهلِ ذکر» څخه پوښتنه وکړي.

دحضرت بهاءالله دظهور راتګ نه وروسته د«ذکر» والاؤ نوم په بهائیانو بدل شو. اما له دې کبله چې بهائیان په حضرت باب هم عقیده مند دي. د«ذکر»لقب دهغوې لپاره هم صدق کوي.

**فَاسْئَلُوٓاْ اهْلَ الذِّكْرِ أَن كُنتُمْ لاَ تَعْلَمُونَ. دانبیأ سورت، ۷-ایت، دنحل سورت، ۴۳-ایت**

**۱.ژباړه:**که په موضوع اویا کوم مطلب نه پوهیږئ. د«ذکر»دپیروانو څخه پوښتنه وکړئ.

**۲.ژباړه:**که د«ذکر»په مقصد نه پوهیږئ. د«ذکر»له پیروانو څخه پوښتنه وکړئ.

راتلونکې ایت د«ذکر»په نامه دیوشخص په هکله خبرې کوي. چې خلک دخدای لوري ته رابولي. اما هغوې په مسخره کولو سره هغه ته ځواب ورکوي. داایت هم دمخکنیو ایتونو په شان ، په روښانه توګه ددې ښکارندوی دی. چې«ذکر» دیوشخص نوم دی، نه یوه کتاب ته اشاره :

**لَما سَمِعُوا الذِّكْرَ وَيَقُولُونَ انهُ لَمَجْنُونٌ وَمَا هُوَ الا ذِكْرٌ لِّلْعَالَمِينَ.دقلم سورت، ۵۱-۵۲،ایتونه**

کله چې د«ذکر»خبره اوري وائي چې هغه لیونی دی، اوحال دا چې هغه دجهان خلکو لپاره ذکر ورکوونکی اوخبرورکوونکی دی.

دحضرت بهاءالله په ایتونو کې د«نباء عظیم» او(نباء اعظم) لقبونو ته دخپل ظهور په باره کې په کراتو سره اشاره شوې ده. مناسبه ده. چې ددې ایتونو دځو نورو نمونو یادونه وشي:

**تالله قد خلقتم لذکر هذا النّبأ الاعظم و هذا الصّراط الاقوم الّذی کان مکنونا فی افئدة الانبیاء...و مسطوراً من القلم الاعلی فی الواح ربّکم مالك الاسماء .۳۶**

**حضرت بهاءالله**

په خدای قسم دی! ددې لپاره پیدا شوی دی. چې دا«نباء اعظم»په یاد راوړي. اوداسمه اومحکمه لار ده. چې دپیغمبرانو په زړونو کې پټه وه ...اوستاسې دلوی پروردګار په قلم چې دټولو نومونو مالک دی، درج شوې ده.

**اسمعوا نصح من ینصحکم لوجه الله انّه خلقکم و اظهرلکم ما یرفعکم و ینفعکم و علّمکم صراط المستقیم و نبأه العظیم .۳۷**

**حضرت بهاءالله**

۲۱۳ ۸فصل:ددوه پیغمبرانو دراتګ وعده د«لوی ذکر»او«لوی خبر» په نومونو سره

---

---

دهغه چا نصیحتونه چې دپروردګار په خاطر ئې تاسې ته کوي ومنئ . هغه پروردګار تاسې پیداکړي یاستې.
او هغه څه چې ستاسې دلوړتیا اواوچته مقام سبب کیږي. ستاسې په وړاندې ظاهرکړل . تاسې ته ئې سمه لار وښوده. اوتاسې ئې ددې لوی خبر د«نباء عظیم»سره اشنا کړئ.
**قل خافوا الله ثمّ انصفوا فی هذا النّباء الّذی اذا ظهر خضع له کلّ نباء عظیم .۳۸**

**حضرت بهاءالله**

ووایه**!** له خدای وویریږئ . اوددې «لوی خبر»(نباء عظیم**)** په باره کې دانصاف اوقضاوت له مخې هغه

خبر دکوم په ظهور سره چې ټولو خبرونو خپل دتعظیم سرونه ټیټ کړل دعدالت سره یوځای شی.

**ان اشکر ربّك بما ایدك علی امره و عرفك مظهر نفسه و اقامك علی ثناء ذکره الاعظم فی هذاالنّباء العظیم .**

٣٩

**حضرت بهاءالله**

دپروردګار شکر پرځای کړه ځکه چې ته ئې دخپل امر دمنلو اوستا دمظهر کیدلو دپیژندنې لپاره ئې مرسته وکړه. اودهغه لوی ذکر په ستایلو سره ئې ددې لوی خبر لپاره په پښو ودرولې.

**تالله انّ هذا لنقطة الاولی قد ظهر فی قمیصه الاخری باسمه الابهی ...و انّه علی کلّ شیئی محیط و انّه لهو المذکور فی الملأ الاعلی بالنّبأ العظیم و فی ممالك البقاء بجمال القدیم و لدی العرش بهذا الاسم . ٤٠**

**حضرت بهاءالله**

په خدای قسم دی! داهمغه «نقطه اولی»دی. چې په نوې جامه اوپه حیرانوونکي نوم اوجلال سره ظاهر شوې ...هغه پرهرڅه قدرتمند دی. اود«ملائکو»په منځ کې په لوی خبر«نباء عظیم»مشهور دی. اوپه همیشنې میدان کې په «جهان قِدمَ» او په عرش کې په «اسم»[اعظم] یادشوی دی.

# دپروردګار لوي ذکر

زمونږ دعصر دوه پیغمبرانو هدف اومقصد یو دی. اوداسماني کتابونو زیری ددواړو په برخه کې صدق کوي. امّا د«نباء» یا«نباء عظیم»لقب په اوله درجه کې حضرت بهاء الله ته اشاره ده.
لکه څنګه چې موولیدل هغه حضرت په کراتو سره خپل ځان د«نباء» ،(نباء عظیم)او(نباء اعظم)سره یاد کړی دی.

---

☆ «نقطه اولی»(نقطه اوّل)دحضرت باب دلقبونو څخه دی.
❖ «عرش»په دې عالم کې دالهي حکومت تخت دی. ثمّ استوی علی العرش ،اسم اعظم یعنی بهاءیا بهاءالله.

د«ذکر»اویا«ذکر اعظم»لقب په اوله درجه کې حضرت باب ته اشاره شوې ده.
هغه په کراتو سره خپل ځان د«ذکر»«ذکر اعظم»«ذکرالله»«ذکرالله الاعظم»«ذکراکبر»او«ذکرالله الکبیر»یاد کړی دی.بنه به وي چې دهغه حضرت داثارو څواسماني نمونې چې د«ذکر»دکلمې لرونکې دي. وګورو. څو نمونې د(قیّوم الاسماء)له کتاب نه وروسته چې حضرت باب دسورت یوسف په تفسیر کې لیکلی انتخاب کړی . قیّوم الاسماء په عربي ژبه دی. اودقران برابر کتاب دی.

**یا اهل الارض من اطاع ذکرالله و کتابه هذا فقد اطاع الله و اولیائه بالحق و قد کان فی الاخرة من اهل جنّة الرضوان عندالله مکتوباً .٤١**

**حضرت باب**

اې دځمکې اوسيدونکو!هرڅوک چې د«خدای دذکر»اودهغه دکتاب پيروي وکړي. دخپل پروردګار او دهغه پيغمبرانو پيروي ئې کړې ده.
اوپه هميشني عالم کې به دخدای به حکم دجنت اوسيدونکي وي.

**يا معشرالعلماء اتّقوا الله...فانّ الذّکر فيکم من عندنا قد کان بالحقّ حاکماً و شهيداً .٤٢**

**حضرت باب**

اې پيشوايانو!له خدای وويرېږی ...هغه «ذکر»چې ستاسې په منځ کې دی.
دخدای له طرفه راغلی دی.اوهغه په حقيقت کې شاهداوانصاف والا دی.

**و قالواالمسلمون بالحقّ ربّنا سمعنا نداء ذکر الله و اطعناه فاغفر لنا فانّك الحقّ .٤٣**

**حضرت باب**

دحقيقت والامسلمانان داسې وائي:اې پروردګاره ، مونږ دخدای د«ذکر»دعوت اوبلنه واوريده، اوله هغه څخه پيروي کوو. زمونږ ګناهونه عفوه کړه. البته چې ته حقيقت ئې

---

❖ «قیّوم »دخدای له نومونو څخه یو نوم دی، پاینده، قیّوم الاسماء یعنی داهغه نوم دی چې په ټولونومونو کې قائم اوپاینده اوهمیشنی دی. داعنوان په اوله درجه اشاره ده «اسم اعظم»ته خدای یعنی«بهاء».

۲۱۵ ۸فصل:ددوه پیغمبرانو دراتګ وعده د«لوي ذکر»او«لوی خبر»په نومونو سره

---

**و ما ارسلنا من نبی الاّ و قد اخذناه بالعهد للذکر و یومه.٤٤ حضرت باب**

هریو له پیغمبرانو مې چې دراستولی دی . دهغه د«ذکر» او«ورځې»په باره کې مې خپله ذمه واري ترسره کړې ده.

**یا اهل الارض و لقد جائکم الذّکر من عندالله...لیزکیکم و لیطّهرکم من الارجاس لایام الله الحقّ فابتغوا الفضل**

**من عنده .٤٥**

**حضرت باب**

اې دجهان خلکو**!**«ذکر»دخدای له طرفه راغلی دی...ترڅو تاسې ، دخدای دورځې دراتګ لپاره تیار کړي . دخدای دفضل اوکرم غوښتونکي اوسئ.

حضرت بهاءالله هم دحضرت باب په باره کې د«ذکر» او«ذکری» لقب یادونه کړې ده.

**لا تکونوا کالّذین غفلوا اذ جائتهم الذّکری من لدن عزیز حمید .٤٦ حضرت بهاءالله**

دهغو کسانو په څیر مه اوسئ. چې «زما له ذکر»څخه، کوم چې دګران اومهربان خدای له طرفه راغلي دي. غافل اوبې پرواشول.

**لوی باب اوکاملتر«ذکر».۴۷**

**حضرت بهاءالله**

حضرت باب هم له خپله ځانه وروسته پیغمبر یعنی حضرت بهاءالله ئې «ذکرالله»نومولی دی :

**په هغه ظهور کې هغه دی«ذکرالله» .۴۸**

**حضرت باب**

**هذا الذّکر الاعظم به ظهرالفرح الاکبر فی العالم .٤٩**

**حضرت بهاءالله**

دالوی ذکر دی. چې په هغه سره په جهان کې لویه خوښي ظاهره شوه.

په قران کې د«ذکر»کلمه په زیاتو ایتونو کې په مختلفو معنا ګانو سره راغلې ده. کله داایتونه قران ته اشاره کوي. اوکله ئې دخدای ذکر ته اوکله هم زمونږ دعصر موعود ته اشاره کوي . مسلمانان مفسرین ددې ایتونو دیوې برخې له حقیقت څخه بې خبره ؤ او دي. مثلاً لاندې ایت ته دقران سره اړیکه ورکوي .اوحال داچې په اوله درجه کې دحضرت باب ظهور ته اشاره ده:



---

**الَمْ يَانِ لِلذِينَ آمَنُوا ان تَخْشَعَ قُلُوبُهُمْ لِذِكْرِ اللهِ وَمَا نَزَلَ مِنَ الْحَقِّ ...اعْلَمُوا ان اللهَ يُحْيِي الْارْضَ بَعْدَ مَوْتِهَا قَدْ**

**بَينا لَكُمُ الْآيَاتِ لَعَلَكُمْ تَعْقِلُونَ.          دحديد سورت،۱۶-۱۷،ایتونه**

آیا هغه وخت نه دی رارسیدلی، چې دمسلمانانو زړونه د«خدای دذکر» په وړاندې، او هغه څه چې دپروردګار له طرفه نازل شوي دي. متواضع اوعاجز شي؟...

پوه شئ. چې الله پاک ځمکې ته وروسته له مرګه ژوند وربخښي .مونږ الهي ایتونه تاسې ته تشریح کوو .

شاید چې په هغو کې فکر اوسوچ وکړئ.

مخکینی ایت مسلمانانو ته بلنه ورکوي. چې «دخدای دذکر» په وړاندې متواضع اومطیع اوسي. ښکاره ده. چې مسلمانان دقران په وړاندې مطیع او عاجز دي. یواځې دلیکنو په نسبت کبر کوي. او هغه بې ارزښه او وړې ګڼي. اوله دې وړاندې په دې کلام کې پروردګار د«ځمکې» مرګ ته اشاره کوي . کومه «ځمکه» مري؟ دخلکو دزړونو «ځمکه»همداسی یوه «ځمکه» ده. چې په «اخره زمانه »کې دژوند روح له لاسه ورکوي ، اما دنوي ائین په راتګ سره به هغه اوبه وڅکي. ژوندې به شي. داسې یوه ځمکه ده. چې عاجزې، او بندګې ته اړتیا لري . مخکینې ایت په لطافت سره داوښایې چې ډیر مسلمانان په اسانې سره د«پروردګار ذکر»نه مني .اودبنده ګې اوعاجزې په

ځای دپروردګار په وړاندې دکبر او غرور سره هغه ته راځي.
دفصلت دسورت په (۳۹)ايت کې هم د«ځمکې»کلمه دزړه په معنا دهمدې مقصد لپاره راغلې ده . دهغه سورت ځينې ايتونه به هم بررسي اووګورو:
**۳۸-ايت: فَانِ اسْتَكْبَرُوا فَالذِينَ عِندَ رَبِّكَ يُسَبِّحُونَ...**

---

❖ دالاندې حديثونه، د«"**يُحْيِي ا لارْضَ بَعْدَ مَوْتِهَا»**جمله دقائم دظهور(مهدي اخرزمان)سره اړيکه ورکوي:

**۱ . يحي□ الارض بعد موتها يعن□ يصلح الارض لقائم آل محمد من بعد موتها يعن□ من بعد جوراهل مملكتها... آسماني كتابونو بشارتونه،** ۱۱۶ مخ

**۲ . ان الله يحي□ الارض بعد موتها قال يحي□ الله عز و جل بالقائم بعد موتها يعن□ بموتها كفر اهلهاوالكافر ميت. آسماني كتابونوبشارتونه، ۱۱۶ مخ**

---

که دخلکو يوه ډله تکبر وکړي . دهغوپه عوض کې به يوه بله ډله چې ستا درب سره ده. دخپل رب عبادت اوبنده ګي کوي.
توضيح : څوک دخپل رب سره دي؟ هغه مؤمنان چې موعود ئې پيژندلی دی . اودهغه سره خبرې کوي .
دقران دايتونو په اساس زمونږ دعصر موعود د«ربّ» په نوم راځي . دحضرت باب دالقابو څخه يو لقب«ربّ اعلی» دی. مخکينې ايت دا راوښائي چې خلک به دوه ډلې وي . يوډله به موعود«ربّ»ومني اوبله ډله به په هغه کبر وکړي.
**۳۹-ايت: وَمِنْ آيَاتِهِ انكَ تَرَى الْارْضَ خَاشِعَةً فَاذَا انزَلْنَا عَلَيْهَا الْمَاء اهْتَزَتْ وَرَبَتْ...**
دخلقت اوپيدايښت له نښانو څخه يوه نښانه داده . چې ځمکه څومره مطيع اوفرمانبرداره ده . ددې عاجزې اوفرمانبردارې يوه نښه داده، چې هروخت هغې ته باران وراستوم .په حرکت راځي. اوروزنه اخلي...
توضيح : کومه«ځمکه»عاجزي وښائي ؟ دانسان دزړه «ځمکه»يواځې هغه ځمکه دداسې صفت لرونکې ده .

کوم باران په دې ځمکه وريږي؟ دپروردګار دفضل او رحمت باران.

**د ۳۹-ايت پاتې: ان الذِي احْيَاهَا لَمُحْيِي الْمَوْتَ انهُ عَلَ كُلِّ شَيْءٍ قَدِير.**

په يقين سره څوک چې «ځمکې» ته ژوند وروبخښي . مړي ته ئې ژوند وربخښلی دی . هغه په هرکار کې توانا او قدرتمند دی.

توضيح: داايت زمونږ توجه معنوي مړواو ژونديو ته اړوي. اوداوښائي چې په دې ايت کې اصلي مطلب روح دی. چې يواځې په عاجزې اواطاعت سره کيدلی شي. هغه ژوندی شي . په همغه ډول چې لوړې ځمکې ته اوبه نه خيژي، متکبر روح هم د«ژوندون له اوبو»څخه په ګټه اخيستلو قادر نه دی.

---

- په دې موضوع په ۱۳فصل کې په تفصيل سره بحث شوی دی.

**(۴۰-۴۱)ایتونه: أَنّ الذِينَ يُلْحِدُونَ فِي آيَاتِنَا لَا يَخْفَوْنَ عَلَيْنَا ...ان الذِينَ كَفَرُوا بِالذِّكْرِ لَما جَاءهُمْ وَانهُ لَكِتَابٌ عَزِيز.**

هغه څوک چې زما نښانې له اصلي مقصد څخه اړوي ، له ما څخه پټې نه دي ...هغوې هغه خلک دي کله چې«ذکر»ظاهر شي ، له هغه څخه به انکار وکړي . هغه قدرتمندکتاب دی.

توضيح: مخکينې ايت په لطيف شکل سره هغه چاته اشاره کوي چې د«ذکر» اړوند خبرونه چې زمونږ دعصر دموعود پيژندنې نښې دي . دهغه اصلي مقصد څخه اړوي . امّا «ذکر» چې دخدای له طرفه رالیږل شوی دی . يو قدرتمند «کتاب» دی. اوهيڅکله ماتې نه مني. اودهغوې له عهدې څخه وتلی شي . ځکه چې دالهي قدرت اسرار ئې دروح په پاڼه ليکل شوي دي.

«امّ الکتاب»(دکتابونو مور)الهي«لوی روح» دی:
**قد ظهر امّ الکتاب و یدع الکلّ اِلی الله ربّ العالمین .**
**۵۰ حضرت بهاءالله**
دکتابونو مور ظاهره شوې ده اوټول دپروردګار لورې ته رابولي.
**امّ الکتاب ینطق و القوم هم لا یسمعون .**
**۵۱ حضرت بهاءالله**
دکتابونو مور خبرې کوي . اما خلک ئې نه اوري.
**قل تالله انّ کتاب المکنون قد ظهر فی هذا الهیکل القدیم .۵۲ حضرت بهاءالله**
وایه!په خدای قسم دی: چې پټ کتاب په دې«پخواني هیکل»کې ظاهرشو.
**۴۲-ایت: لَا یَاتِیهِ الْبَاطِلُ مِن بَیْن... تَنزِیلٌ مِّنْ حَکِیمٍ حَمِیدٍ.**
په خبرو کې بیهوده او ناسمه کلمه نه پیداکیږي .
هرڅه چې وائي دحکیم اوحمید پروردګار له خوا دي .
توضیح: داایت هم دراتلونکي پورې تړلی دی .(**لاَ یَأْتِیْهِ**)دداسې یوشخص دظهور خبرورکوي. چې دخپل ځان نه خبرې نه کوي.
راتلونکی ایت هم ددې ښکارندوی دی. چې خلک دخپل موعود«ذکر» څخه انکار کوي.

---

**وَلَوِ اتبَعَ الْحَق اهْوَاءهُمْ لَفَسَدَتِ السمَاوَاتُ وَالْارْضُ وَمَن فِيهِن بَلْ اتَيْنَاهُم بِذِكْرِهِمْ فَهُمْ عَن ذِكْرِهِم معْرِضُونَ.**
**دمؤمنون سورتو۷۱-ایت**

که پروردګار دخلکو دځان غوښتنې ډکو غوښتنو څخه پیروي کولی ، داسمانونو اوځمکې والا اوسیدونکي به ټول فاسد شوي وی.[ دهغوې دغوښتنو په ځای] ئې د«هغوې ذکر» اود«هغوې موعود» دهغوې لپاره راولیږل . امّا هغوې د«هغه ذکر» څخه مخ اړولی دی. دخلکو پرله پسې غوښتنه داوه. چې خپل موعود په خپلو سترګو وګوري اووئې پیژني نه په روح سره

، له هغه څخه دطبیعت په قوانینو تسلط غواړي ، نه تسلط په زړونو.
مسیحیان منتظر دي. چې موعود به ئې له اسمان نه راښکته شي . شیعه ګان منتظر دي. چې موعودبه ئې له څاه څخه راپورته شي! که خدای پاک دخلکو دغوښتنو څخه پیروي وکړي. دپروردګار اصلې نقشه به « فاسده» شي ، اودجهان نظم به ویجاړاو ګډوډ شي. دمعجزې پرځای چې دهغوې په سترګو جادو وکړي .پروردګار «ذکر»رالیږلی چې دهغوې په روح جادو وکړي . امّا څه فایده ، داکثرو خلکو سترګې ، معجزې ته دي . دپیغمبرانو پیژندنه دمعجزې له لارې دپروردګار د ارادې سره سمون نه لرل اونه به ئې ولري. حضرت بهاءالله له بهائیانو څخه غواړي . چې دمعجزو په روایتونو هیڅکله له ده نه دپروردګار ددې پاک ائین لوړ مقام راټیټ نه کړي.
په الهي ایتونو کې فکر اودقت مونږ ته رازده کوي. چې دوخت دموعود پیژندنه زمونږ «دزړه په جنسه» پورې اړه لري . نه زمونږ دعلم دزیاتوالي اولوړمقامه پورې . هغه صفت چې په دې ایت کې دنورو صفتونو څخه ډیر تاکید شوی دی، خضوع او خشوع ده. که دزړه ځمکه ددې اسماني خصلت څخه برخمنه نه وي.

دهمیشني ژوند لاسته راوړلو اودایمان د زړي په روزنې به قادر نشي.
ددې سورت اخرین ایت دپروردګار «دیدار»اولیدلو ته اشاره کوي:
**الَا أَنّ هُمْ فِي مِرْيَةٍ مِّن لِّقَاء رَبِّهِمْ.**
**دفصلت سورت،۵۴-ایت**
پوه شئ. چې هغوې دخپل پروردګار ددیدار په نسبت شک لري.



---

دقران دسورتونو څخه یوسورت
د«انبیاؤ»یعنی«خبرراوړونکو»په نامه دی. ددې سورت نوم هغه خبرته اشاره ده، چې په هغه کې پټ

شوی دی . ددې سورت په یو ایت کې د«خبر» مطلب منځ ته راغلی دی . په هغه ایت کې ، د«خبر» موضوع د«ذکر»دظهور سره تړل شوې ده:

**وَلَقَدْ كَتَبْنَا فِي الزب ورِ مِن بَعْدِ الذِّكْرِ ان الْارْضَ يَرِثُهَا عِبَادِيَ الصالِحُونَ ان فِي هَذَالَبَلَاغًا لِّقَوْمٍ عَابِدِينَ.**

**دانبیاء سورت،۱۰۵-۱۰۶،ایتونه**

دمزامیر په کتاب کې مې لیکلي دي چې وروسته د«ذکر» [دظهور]نه زماصالح بنده ګان به ځمکه په میراث سره یوسي . په دې«ایت» کې دخدای پرستو خلکو لپاره «خبر»دی.

په«میراث سره وړل»یعنی دپروردګار دلطف اوفضل لاندې راتلل اودهغه دبخششونو اوعنایت څخه برخمن کیدل دي . دا اصطلاح همدارنګه ، دپروردګار نقشې تحقق ته په ټول عالم کې اوددې ائین جهاني نوي نظم اساس ته په عالم کې اشاره ده.

دقران دری وروستي ایتونه ، د«وعدې» اود«وعدې نه انکار» خبرې رامنځ ته کوي:

**فَان تَوَلوْا فَقُلْ آذَنتُكُمْ عَلَ□ سَوَاء وَانْ ادْرِي اقَرِيبٌ ام بَعِيدٌ ما تُوعَدُونَ.**

**دانبیاء سورت،۱۰۹-ایت**

که هغوي«له دې خبر»څخه مخ واړوي ، هغوي ته
ووايه: ماتاسې ټولو ته په يوشان اخطار درکړئ دی .
امّا زه نه پوهيږم. هغه وعده چې تاسې ته درکړل
شوی ده. نږدې ده. يالرې.
دمزامير ايتونه په روښانه توګه وښائي چې «وعده»
او«خبر»دانبياء په سورت کې دهدايت پورې اړه لري
. اودهدايت شرط دخدای څخه ويره اوهغه ته زاري
ده:

**[ای خدايه]خپلې لارې راته وښايه. ماخپلې لارې ته هدايت کړه...هغه عاجزوخلکو ته هدايت کوي اوهغوې ته خپله لار وښائي ... څوک دی هغه انسان چې دخدای څخه وويريږي ؟ خدای به هغه ته هدايت وکړي...اودهغه نسلونو ته به دځمکې ميراث ورسيږي.**

**مزامير:۲۵فصل،(۵-۱۳)،ايتونه**

**عاجز خلک به دځمکې وارثان شي ...هغه خلک چې خدای مبارک کړئ . دځمکې ميراث به ورته ورسيږي.**

**مزامير :۳۷سورت(۱۱-۲۲)،ايتونه**

دحضرت بهاءالله له مهمو اثارو څخه یو دایقان کتاب دی. چې دمخکېنیو اسماني نازل شوو کتابونو د رازونو تفسیر دی . دقران په دې دوه مبارکو ایتونو پای ته رسیدلی دی:

**وَمَن يَعْشُ عَن ذِكْرِ الرحْمَن نُقَيّضْ لَهُ شَيْطَانًا فَهُوَ لَهُ قَرِينٌ. دزخرف سورت،۳۶-ایت**

هرڅوک چې دمهربان اوبخښوونکي«خدای دذکر» څخه مخ واړوي . شیطان به دهغه نږدي یارکړم.

**وَمَنْ اعْرَضَ عَن ذِكْرِي فَان لَهُ مَعِيشَةً ضَنكًا.**
**دطه سورت،۱۲۴-ایت**

هرڅوک چې (زما له ذکر)یعنی د«خدای دذکر»څخه مخ واړوي . دمشکل ژوندون سره به مخ وي.

وروسته له دوه مخکنیو ایتونو له ذکره فرمائي:

**كذلك نزل من قبل لو انتم تعقلون .۵۳**

دارنګه له مخکې نازل شوي دي. که له عقل نه کار واخلئ اوپوه شئ.
دزيات عقل اوفکر لپاره ، به ښه وي چې قران ته رجوع وکړو. او وګور چې ددوه مخکنيو ايتونو سره نور کوم ايتونه ملګري دي:
**وَمَن يَعْشُ عَن ذِكْرِ الرحْمَن نُقَيِّضْ لَهُ شَيْطَانًا فَهُوَ لَهُ قَرِينٌ وَانـهُمْ لَيَصُدونَـهُمْ عَنِ السبِيلِ وَيَحْسَبُونَ انـهُم مهْتَدُونَ حَتى اذَا جَاءنَا قَالَ يَا لَيْتَ بَيْنِي وَبَيْنَكَ بُعْدَ الْمَشْرِقَيْن فَبِسَ الْقَرِينُ وَلَن يَنفَعَكُمُ الْيَوْمَ اذظلَمْتُمْ انكُمْ فِي الْعَذَابِ مُشْتَرِكُونَ افَانتَ تُسْمِعُ الصم اوْ تَـهْدِي الْعُمْيَ وَمَن كَانَ فِي ضَلَالٍ مبِين...وَانـهُ لَذِكْرٌ لكَ وَلِقَوْمِكَ وَسَوْفَ تُسْألُونَ.**

## دزخرف سورت، ۳۶-۴۴ ،ايتونه

هرڅوک چې دمهربان اوبخښوونکي پروردګارد«ذکر»څخه مخ واړوي ، شيطان به دهغو نږدې يار اوملګرى شي . داشيطانان خلک دخداى دلارې څخه اړوي ، اما ګمراهان ګومان کوي، چې دوې دلارې پيداکوونکې ډلې څخه دي. کله چې د«خداى دذکر» منکر ماته راځي.

وائي چې :اې کاشکې زما اودشيطان په منځ کې(مغروره اوخودخوا پيشوايان)په منځ کې دشرق اوغرب په اندازه فاصله وی. دخومره بدو کسانو سره زمونږ ناسته اوپاڅه ده.هغه منکرانو ته به ووايو: نن به هيڅوک ستاسې فرياد وانه وري.که ظلم اوستم موکړی وي. البته چې په عذاب کې شريک ياستې .
آيا کولی شئ. کاڼه په اوريدلو او ړانده په ليدلو قادرکړئ . اويا ګمراهې غوښتونکو ته لاروښائې؟



---

هغه «ذکر»دی. ستا لپاره اوستا دقوم لپاره (مسلمانانو لپاره) اوډير ژر دی، چې له پوښتنې سره به مخامخ شي.

**وَمَنْ اعْرَضَ عَن ذِكْرِي فَا ن لَهُ مَعِيشَةً ضَنكًا وَنَحْشُرُهُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ اعْمَ قَالَ رَبِّ لِمَ حَشَرْتَنِي اعْمَ وَقَدْ كُنتُ بَصِيرًا قَالَ كَذَلِكَ اتَتْكَ آيَاتُنَا فَنَسِيتَهَا وَكَذَلِكَ الْيَوْمَ تُنسَ .**

**دطه سورت، ۱۲۴-۱۲۶ ،ايتونه**

هرڅوک چې زما له «ذکر» دخدای له ذکر مخ واړوي ، ژوندون به ئې سخت اومشکل وي . په ورځ (دحساب اوکتاب)کې یعنی(په همیشني عالم کې)به هغه ړوند راپورته شي . په «هغه ورځ»کې به ووائي:«زما لاربنوونې دې ونه منلې اوهغه دې هیرې کړې . په همغه ډول مې نن ته هم هېر شوې ئې.»

**وَقَدْ آتَيْنَاكَ مِن لدُنا ذِكْرًا مَنْ اعْرَضَ عَنْهُ فَانهُ يَحْمِلُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ وِزْرًا خَالِدِينَ فِيهِ وَسَاء لَهُمْ يَوْمَ الْقِيَامَةِ حِمْلًا.**

**طه سورت،۹۹- ۱۰۱،ایتونه**

په یقین سره مې له خپله طرفه تاته «ذکر»درکړ . اوهرڅوک چې له هغو څخه مخ واړوي ، په ورځ دقیامت به ئې په اوږو درونډ بار پروت وي . اودهغه ځای به دایمي دوزخ وي . اود هغه بارورل، په ورځ دقیامت کې څومره سخت وي.

همدغه اخطار دحضرت باب په اثارو کې ذکر شوی دی:

**انّ الّذین یکفرون بایات الله بعد ما قد جائهم الذّکر بالایات...فبشّرهم بحکم ربّک من عذاب الیم . ٥٤**

**حضرت باب**

هغه خلک چې دالهي ایتونو نه انکار کوي ،وروسته له هغې چې «ذکر»دایتونو سره ظاهر شي ...هغوې ته دپروردګار له طرفه ددردناک عذاب خبرورکړه.

**قل و من اعرض من ذکری نحکم له فی الکتاب لشیطان یدخله فی ظلمات بعضها فوق بعض ...**
**٥٥**

**حضرت باب**

ووایه! هرڅوک چې زما د«ذکر» نه مخ واړوي .
دخدای په کتاب کې به هغه ته شیطان وویل شي.اوپه
تورونتیاو کې به دهغه ځای وي.



---

---

**و لکن المشرکین فی ذلک الیوم من لقاء ذکر اسم ربک لمحجوبون .٥٦ حضرت باب**

امّا مشركان به يعنی (دموعود څخه منكرين) به په
هغه ورځ د«ذكرله ليدلو» څخه محروم شي. كوم چې
ستا دربّ نوم دی.
د زخرف سورة پاتې ايتونو مطالعې ته ادامه وركوو:
۵-ايت: **افَنَضْرِبُ عَنكُمُ الذِّكْرَ صَفْحًا ان كُنتُمْ قَوْمًا مسْرِفِينَ.**
آيا په دې سبب چې تاسې له خپله حده زياتې تجاوز كوی. زه به «ذكر» له تاسې څخه بيرته واخلم اوتاسې به څنډې ته كړم؟
توضيح:مخكينی ايت داپوښتنه له مونږه پوښتي : آيا په دې سبب چې ډير خلک دموعود د پيژندنې لياقت نه لري ، پروردګار بايد هغوې بې له لارښوده پريږدي؟مخكينی ايت يو ځل بيا دحضرت باب لقب يعنی«ذكر»مونږ ته راكوي اوپه عين حال كې مونږ ته دارازده كوي. چې مسلمانان به د«ذكر» مقام اوقدر ونه پيژني . ولی دامنكرين ، تجاوزكوونكي بلل شوي دي ؟ ځكه چې دخپل علم اوپوهې له حدودو څخه ئې تجاوز كړی دی. ددې په ځای چې دقران دايتونو معنی له «موعود»څخه پوښتنه وكړي،خپل ځانونه ئې عالمان وګڼل.
**۶-ايت: وَكَمْ ارْسَلْنَا مِن نبي فِي الْاولِينَ وَمَا يَاتِيهِم مِّن نبِيٍّ الا كَانُوا بِهِ يَسْتَهْزِؤُون.**

په مخکنیووختونو کې مې څومره ډیر پیغمبران خلکو ته ولیږل . امّا کله چې هرپیغمبر ورغلی، هغه به ئې مسخره کول. دهغه پورې به ئې خنده اوسپکاوی کول.

توضیح: داایت دمخکیني ایت مطلب تائید او تکراروي . اومونږ ته رازده کوي، چې دخدای دپیغمبرانو توهین اوسپکاوی دخلکو رسم اوطریقه ده . څنګه چې دانسان طبعیت تغیر نه کوي ، دا تګ لاره به په اینده کې هم باقي اوپاتې وي.راتلونکې ایت داسې یوچاته اشاره کوي، د«ذکر»په نامه سره چې خلک ئې نه دلیدلو سترګې لري. اونه ئې هم دخبرو داوریدلو تحمل اوزغم لري. ددې لپاره چې دهغه څخه انکار وکړي. اوهغه وږو کی وګڼي. هغه ته لیونی وائي.

دتاريخي مداركواو اسنادو له مخې ،دحضرت باب دتجارتخانې ددروازې سرپه دې ايت ښکلی شوی ؤ.

**وَان يَكَادُ الذِينَ كَفَرُوا لَيُزْلِقُونَكَ بِابْصَارِهِمْ لَما سَمِعُوا الذِّكْرَ وَيَقُولُونَ انهُ لَمَجْنُونٌ وَمَا هُوَ الا ذِكْرٌ لِّلْعَالَمِينَ.**

**دقلم سورت، ۵۱-۵۲،ايتونه**

**۱.ژباړه:** نږدې دی. چې دحقيقت منکرين په سترګو سره تاته تاوان ورسوي . کله چې دذکر وينا واوري وائي: هغه ليونی دی . هغه يواځې «ذکر» دی(ياداوري ده دخدای له طرفه)دجهان دخلکو لپاره .

**۲.ژباړه:**دحقيقت منکرين غواړي(دحسادت دشدته) پخپلو سترګو سره تا(موعود)ووهي. کله چې دذکر خبرو ته غوږ ونيسي. وائي:هغه ليونی دی. دهغه دراتګ هدف دعالم ټولو خلکو ته ياداوري اوتذکر دی.

دقران ايتونه داخرالزّمان د«ذکر»دظهور په باره کې ډير دي . ددې ايتونو دشمير زياتوالی اودهغوې صراحت دحقيقت لټوونکو ته کار اسانه کړی دی. په سورت دقمر کې دا ايت پنځه وارې تکرار شوی دی:

**وَلَقَدْ يسرْنَا الْقُرْآنَ لِلذِّكْرِ فَهَلْ مِن مدكِرٍ. دقمر سورت، ۴۰، ۳۲، ۲۵، ۲۲، ۱۷،ايتونه**

**۱.ژباړه:**په قران سره مې د«ذکر»پيژندل اسان کړي دي. آيا څوک شته چې له هغه څخه پند واخلي ؟اوڅوک شته دی. چې[ذکر]ومني؟
**۲.ژباړه:** «ذکر»مې دقران له لارې اسانه کړ. ايا ستاسې په منځ کې پند اخيستونکی شته.
**افَمَن شَرَحَ اللَّهُ صَدْرَهُ لِلاسْلَامِ فَهُوَ عَلَ□ نُورٍ مِّن ربِّهِ فَوَيْلٌ لِّلْقَاسِيَةِ قُلُوبُهُم مِّن ذِكْرِ اللَّهِ اوْلَئكَ فِي ضَلَالٍ مُبِين.**
**دزمر سورت، ۲۲-ايت**
آيا داسې څوک چې خدای دهغه سينه داسلام لپاره (دحق ارادې ته د تسليمې په خاطر) پرانيستې وي. او دپروردگار دروښنائي په رڼا کې وي(دسخت زړو په څير دي؟)پس وای پرهغه چاچې د الله د«ذکر» په مقابل کې سخت زړي دي . هغوې په ښکاره گمراهې کې دي.

## پروردګار دهغه دکلام

## څخه

### پیژندلئ شئ

زمونږ خالق دخپل پیغمبر ،حضرت بهاءالله ، په ژبه په سل هاو بلکه په زرهاو ځلې،
مونږ ته یادونه کوي.اومونږ سمې اوابدي سعادت لارې ته رابولي:

**ای اهل دیار پروردگار !دوست یکتا بی حجاب ظاهر...تا وقت باقی است به ذکر باقی مشغول شوید و به وجه ایزدی توجّ ه نمائید .۵۷**

**حضرت بهاءالله**

اې دپروردګار ددیار خلکو!بې مثاله دوست بې پردې ظاهره دی...ترڅو وخت پاتي وي په دې باقي ذکر مشغول شئ اودخپل رب خواته مخ واړوی.

**داهمغه (موعود)دی. چې ټولو کتابونو اوصحیفو دهغه بشارت ورکړئ دی.۵۸**

**حضرت بهاءالله**

**اې دوستانو!کوښښ وکړئ. چې دخدای درحمت له دریاب څخه برخه من شئ. اودهغه دفضل له بې شماره درمندونو څخه نصیب پورته کړئ. دکار اوروزګار ورځې دي. خپل ځانونه مه محروموئ . دازادۍ وخت دی. دخپل نفس اوهوا له ځنځیرونو ځانونه خلاص کړئ .۵۹**

**حضرت بهاءالله**

**امید داسې دی. چې په دې سبائي کې چې جهان دعلم اوپوهې دلمرپه رڼا روښانه دی.**

**دخپل دوست په غوښتنه پوه شو. اودپیژندنې له دریابه چښل وکړو. ۶۰ حضرت بهاءالله**

**یا اهل الارض من اطاع ذکرالله و کتابه هذا فقد اطاع الله و اولیائه بالحق و قد کان فی الاخرة من اهل جنّة الرضوان عندالله مکتوباً .**

**٦١ حضرت باب**

اې دځمکې اوسیدونکو!هرڅوک چې دخدای دذکر اودهغه له کتاب څخه پیروي وکړي،دپروردګار اودهغه پیغمبرانو څخه ئې پیروي کړې ده . اوپه همیشني عالم کې به دخدای په حکم دجنت اوسیدونکی وي.

**قل يا قوم انّ اصبع قدرة ربّكم العل□ الابه□ تحرّك هذاالقلم الاعل□ و هذا لميكن من عندى بل من لدى الله ربكم و رب آبائكم الاولين .٦٢**

**حضرت بهاءالله**

ووايه!اې خلكو:دا«قلم اعلى»دپروردګار په قدرتمندوګوتو په حركت راځي. داوينا زما نه ده، دادخدای دلورې ده،كوم چې ستاسې پروردګار اوستاسې دنيكونو پروردګار دی.





## دوه متحد اوهمياره پيغمبران

پروردګار زمونږ عصر ددوه پيغمبرانو په راتګ سره د«ربّ»په نامه له خوښيو ډک کړ.

داسې لطف، رحم اولوی بخشش چې هيڅکله ئې اوپه هيڅ زمان کې سابقه نه لرله. دحيرانتيا ځای دادی. چې ډير خلک دخدای ددې لوی بخشش اوعنايت څخه يابيخي بې خبره دي، اويا داچې په کوم څه چې پوهيږي . دبې خبرانو اومتعصباتو په تصوراتو او تعصباتو متکي اوولاړدي . پروردګار مونږ له دې کاره منع کوي:

**اې دپروردګاربنده!له بيګانه ګانو څخه بيګانه شه، ترڅو يګانه وپيژنئ.بيګانه ګان هغه خلک دي. چې تاسې له يګانه ګې څخه لرې کوي...ددښمن په وينا له ياره مه لرې کيږه اوددښمن په خبرو له ياره مه تيريږه.١ حضرت بهاءالله**

دااخطار دناپوهو پيشوايانو په باره کې دی:

**اې بنده ګانو!...دهررهنما خبرې مه منئ. ډير رهنمايان ګمراهان دي. اوسمه لاره ئې نه ده پيداکړی. رهنما هغه څوک دی. چې د روزګار له بندنه ازاد دی. اوهيڅ شئ به هغه دسمې لارې څخه ونه ګرځوي.۲**
**حضرت بهالله**

## دبل پيغمبر دظهور خبر

حضرت باب ، دبيان په کتاب کې ، دخپل ځان نه وروسته موعود يعنی حضرت بهاءالله ، ته «من

یُظهرالله»(هغه ځوک چې خدای هغه ظاهروي)لقب ورکړی دی. اوکله کله ئې هم د«بهاءالله»لقب په عین شکل ذکر کړی دی:

**طوبی لمن ینظر الی نظم بهاءاللّه و یشکر ربه فانه یظهر ولا مرد له .۳    حضرت باب**

ځومره نیکمرغه دی هغه ځوک ،چاچې دحضرت بهاءالله «نظم»ته نظر واچول، اودپروردګارشکرئې اداء کړ. هغه په یقین سره ظاهرېږي. اودهغه په ظهور کې شک نشته دی.

**ځومره نیکمرغه دی هغه ځوک، چې له دې فاني نړۍ ځخه دتللو په وخت کې، په «من یُظهرالله»مؤمن وي.۴**

**حضرت باب**

دراتلونکي موعود دپیژندنې لپاره دحضرت باب په ایتونو کې دخپلو پیروانو تیارول (اماده کول)لمړی مقام لري.حضرت باب خپلو پیروانو ته په کراتو سره اخطار ورکړی دی. چې له مخکنیو ځخه دعبرت په اخیستلو ،له تعصباتو لاس واخلي. اود«من یُظهرالله»په منلو کې دې ځنډ نه کوي:

**لا تصبرن فیه فان صبرتم لم یکن الاّ علی النّار و انتم یومئذ لا تعلمون .۵    حضرت باب**

په دې کار کې (دموعود په پيژندنې اومنلو کې)صبر مه کوی . که صبر وکړئ، په هغه ورځ به په اور کې ياستی بې له دې چې وپوهيږی.

اور(اتش)يعنی دخدای نه لريوالی دی. په ټولو اسماني کتابونو کې په همدې معنی راغلئ دی مونږ ټول داورسره سروکار لرو. اودهغه په خطرونو ښه پوهيږو. دخدای اراده داسې ده،

---

❖دبهاءالله نظم: دالهي جهاني نقشې ته اشاره ده ديوې يوموټې اومتحدې نړۍ دجوړيدو لپاره.

طوبی: ځومره نيکمرغه دی هغه څوک چې.



---

چې دهغه نه دلريوالي خطر داور نه هم زيات وګڼو. ځکه چې زمونږ ژوند په دې فاني نړۍ کې ډير لنډ دی. باالاخره زمونږ جسم خاورې کيږي ، امّا زمونږ ژوند په هميشنی نړۍ کې ختميدونکی نه دئ.که د«هميشني ژوند»ارمغان په دې نړۍ کې ترلاسه نه

کړو، په ریښتني سره خپل روح بې له دې چې پوه شو. داورلمبو ته سپارلی دی . دپروردګار دشهادت په اساس ددې تاوان جبرانول هیڅکله امکان نه لري.
باید پخپل ذهن اوفکر کې ، دخدای نه لریوالی خپل ځان په «اور» کې وګڼو . داسې «اور»چې زمونږ ټول روح ئې نیولی ، اما د وجود څخه بیخي بې خبره یو . دخطر نه بې خبري پخپله لوی خطر دی. ډیر داسې خلک شته چې په ظاهر کې سلامت ښکاري . اما ناڅاپه بل جهان ته ولاړ شي. حضرت باب مونږ ته په کراتو سره اخطار راکوي، اومونږ ته یاداوري کوي. چې بې اندازې زمونږ روح په اور کې دخدای نه دلریوالي په وجه په تکلیف کې وي.بې له دې چې مونږ له دې اور څخه معلومات ولرو :
**په هغه ورځ ،پخپله ګومان کوئ چې دجنتیانو ...دډلې څخه ئې ، ولې ...په اصل کې ستاځای په اور کې وي،اوته پخپله نه پوهیږي.۶**
**حضرت باب**

## دوه«ناآشنا»اوهمرازه

## یاران

حضرت باب اوحضرت بهاءالله یودبل سره اشنانه ؤ. اوهیڅکله ئې یوبل نه ؤ لیدلي،امّا دارنګه مینه او

محبت ئې یوبل سره لرل. چې  په بیان کې نه راځي. اودانسان عقل دهغه له تصوره عاجز وي.که څه هم دادواړه لوی  پیغمبران، دپروردګار له طرفه د«ربّ»په نامه ویاړل شوي دي. اما په پخپلوایتونو کې په بې حده عاجزې اوبنده ګې کې دیوبل سره خبرې کړي دي.
حضرت باب دحضرت بهاءالله په لار کې په غیر دفداکارې بله ارزو نه لرله. اوباالاخره خپلې ارزو ته ورسیده. کله دې اوریدلی دي. چې داسې یوڅوک چې یواځینې ارزو ئې دبل چا په لاره کې دخپل ځان نه تیریدنه وي. چې هیڅکله ئې هغه لیدلی نه وي؟

دارنګه مينه اوفداکاري ددوه«ناآشنا»کسانو ترمنځ دروزګار دبې مثاله عجايبو څخه ده.
شايد چې هيڅکله ئې سابقه وجود ونه لري. اوداپخپله دهغوې دحقانيت نښانه اودليل دی.
**يا بقيّة الله قد فديت بکلّ لک و رضيت السّبّ ف سبيلک و ما تمن يت الّا القتل فی محبتّک.٧**
**حضرت باب**
اې بقيّة الله!خپل ځان مې په تمامه معنی له تافداکړی. سپکې او سپورې مې ستا په خاطر ومنلې.اوستا په لاره کې په غير دخپل ځان دفداکولو بله ارزونه لرم.
**وانّا اردنا ان نفدی نفسنا ف سبيله کما فدی نفسه ف سبيل .٨ حضرت بهاءالله**
زما ارزوداده چې خپل روح دهغه په لاره کې فداکړم په همغه ډول چې هغه زما په لار کې خپل ځان فداکړ.
حضرت بهاءالله په کتاب دايقان کې فرمائي :دابنده په پوره رضا سره خپل سرپه لاس کې حاضريم ،چې دپروردګار دعنايت له مخې دهغه موعود په لارکې فداشم.
دې دوه پيغمبرانو ديوبل په صفت کې دخبروسخاوت کړی دی:
**دپروردګارپه عزّجلّ اومقدس ذات مې قسم دی.چې د«من يُظهرالله»دظهور په ورځ که يوڅوک دحضرت**

**بهاءالله يوايت تلاوت کړي. اويائې واوري. بهتر دی، له هغه چې زرځلې«بيان»تلاوت کړی وي. ۱۰**
**حضرت باب**
**دپروردگاردعزّوحدانيت په لمرمې قسم دی. چې دهغه مظهر يعنی [حضرت باب]دنومونو اوصفتونو، دکلماتو يوتوری دجمال ابهی [حضرت بهاءالله]په نزد، دټولو هغو شيانو څخه چې په ځمکه اواسمانونو کې دي، گران اودزړه پورې دی. دالاپرېږدی. چې خبره پخپله هغه بنده ته ورسي. دکوم چې يعنی(حضرت باب)يوتوری ته معدوم( نشت) اوعاجزيم، هغه څه ته چې له هغه ظاهرشول د(حقيقت ونه ، دبخششونو لمر اودمحبت سپوږمې). ۱۱**
**حضرت بهاءالله**

---

❖ «**بقيّة الله**»ددوه موعودو ترمنځ مشترک لقب دی. په همغه ترتيب چې وبه ئې گورو ،په قران کې دالقب زمونږ دعصر موعود ته داشارې لپاره راغلی دی.
❖ **دبيان** کتاب دحضرت باب له اثارو څخه دی.

**ـــــــــــــــــــــــــــــــــــــــدپروردګار په پاک ذات مې قسم دی. چې دهغه دکلام یوه جمله بهتره ده.زموږ دځمکې په مخ دټولو کلامونو نه، بلکه توبه ګاریو له دغو ذکرونو څخه ...هغه څه چې هغه شهادت ورکوي دخدای شهادت دی.۱۲**

**حضرت باب**

مخکینې وینا حضرت بهاءالله په عین شکل دحضرت باب په باره کې تکرار کړې ده.

(دبدیع کتاب ،۵۵ مخ).

**حضرت باب په کتاب دبیان کې څو څو ځلې خپله مینه اومحبت دخپل محبوب به نسبت اودخپل همزمان موعود په نسبت ښودلې ده. اوفرمائي «ټول هغه څه چې په جهان کې دي دهغه دجلال اوعزت په مقابل کې هیڅ شی نه دی. اونه به وي».۱۳**

**ما فی البیان تحفة من الله لمن یظهره ا لله . ١٤**

**حضرت باب**

هغه څه چې په بیان کې دي دمهربان اولوی پروردګار لخوا، د«من یُظهرالله» لپاره یوه تحفه ده.

**هرزړه چې شاهد شي دهغه موعود په کلماتوبه، ایمان راوړي. اوپه هغه موعودبه، ایمان راوړي. دهمیش لپاره به په جنت کې وي.١٥**

**هغه دټولو شیانو مبداء دی.١۶ .**

**همداعزت اوفخربس دی. دټولو لپاره ، دهغه چالپاره چې هغه ئې قبول کړی دی، دخپل ذکر لپاره . ١٧ اوکه ډیر لږ دخلکو څخه په هغه ایمان راوړي. هغه به دنړدې ترینو خلکونه وګڼل شي.١٨ .**

**حضرت باب**

ددې دوه موعودو دمینې اومحبت اندازه دیوبل سره هیڅا لګولی نشوه. دداسې مینې، محبت اولطف درجه اوطریقه دبشر دفهم اوپوهې له دایرې څخه دباندې ده:

**هو محبوبی و انا محبوبه و هو نفسی و انا نفسه و مایخرج من لسانی هو بیانهالابدع الاملح الاقدس المنیع...قل انّی اکون حیّا بحیٰوته و اتحرک بحبّه کما انّهکان حیّا بحیٰوتی و ما تنفّس الاّ بذکری و ثنائی بین العالمین .١٩** **حضرت بهاءالله**

هغه زما محبوب دی اوزه دهغه محبوب یم . هغه زما نفس دی اوزه دهغه نفس یم . او هغه څه چې په ژبه راوړم . دهغه نوې ،لوړه، خوږه اوپاکه وینا ده... ووایه!زه دهغه په خاطر ژوندی یم. اودهغه په مینه حرکت کوم . په همغه ترتیب لکه څنګه چې دې زماپه خاطر ژوندی ؤ . اوهیڅ داسې نفس ئې نه اخیست، مګر هغه نفس چې زما ذکر ، صفت اوثنا به ئې دجهان خلکو ته په ژبه راوړله.



---

**فوالله لو یصفه ال□ آخر الّذی لا آخر له لن یسکن فؤادی من عطش حبّ ذکر اسمائه و صفاته فکیف نفسه المقدّس العزیر الجمیل .**

**۲۰ حضرت بهاءالله**

په خدای قسم دی! که دزمان ترپایه پورې چې پای نه لري، دهغه په صفت شروع وکړم دزړه دمینې تنده به مې دهغه دنومونو اوصفتونوپه یادولو ماته نشي . دهغه مبارک،عزیز،ښکلې اوپاک روح ته رسیدل خوبیخي پریږده.

**حرکت مې نه دی کړی، مګر دهغه په رضا.همدارنګه هغه حرکت نه دی کړی مګر ددې غلام په رضا .۲۱**

**حضرت بهاءالله**

**فوالله الّذی لا اله الّا هو انّه ما اصبح الّا بذکره و ما امس□ الّا بثنائه و ما اتحرک الّا بحبّه و ما اتنفس الّا ف□ امره .۲۲**

**حضرت بهاءالله**

قسم په هغه خدای چې په غیر له هغه بل خدای نشته !هیڅ یوسبائي به نه وي چې هغه مې په یادنه وي راوړی، اوهیڅ داسې شپه به نه وي چې دهغه صفت اوثنامې نه وي کړي. بې دهغه له مینې حرکت نه کوم. هیڅ یونفس مې نه دی اخیستې، مګر دهغه دامر په لاره کې.

**تالله الحقّ لن یفارق منّ□ و یستأنس بنفس□ و استأنستُ بنفسه المقدّس المهیمن العزیز القدیر .۲۳**

**حضرت بهاءالله**

په خدای قسم دی!چې له مانه هیڅکله نه جداکیږي. هغه زما سره مینه او عادت پیداکړی اوزه دهغه پاک ،صادق اوګران نفس سره مأنوس اوعادت یم.

**دخدای شکردی. چې مونږ ئې دقیامت دورځې په راز پوه کړو. اوپه دې چې دخپل ژوند بنیګڼو ته دې**

**ورسولو. اودخدای له دیداره پاتې نشو، چې دهغه لپاره پیداشوي يو.۲۴**

**حضرت باب**

**دحضرت بهاءالله مینه، دحضرت باب سره، په داسې اندازه وه. چې همیشه به ئې دجدائي له رنځ څخه ژړا اوفریاد کول:«" بَکیت فِيْ کُلِّ ا لاحْيانِ لِفِراقِهِ ." ۲۵**

آیا دژوند له شروع نه تراوسه پورې سابقه لري، اوحتی دتصور وړ ده، چې دوه تنو دې په دې جهان کې یوله بله سره هیڅ لیدلي نه وي. اوپه داډول مینه اوفداکاري ، اودارنګه دیووالي احساس اویوبل ته اطاعت وړاندې کړي؟

دې دواړو پیغمبرانو ترمنځ یووالی اووحدت په داسې حد او اندازه ؤ چې دیونفس حکم ئې لرل اولرې به ئي.

**دبیان نقطه (حضرت باب)،هغه ورځ ،همغه من یُظهرالله(حضرت بهاءالله) دی، نه په غیر له هغه بل څوک.۲۶**

**حضرت باب هغه (حضرت بهاءالله)ؤ. دبیان رااستونکی مخکې دخپل ظهور څخه.۲۷ حضرت باب**

حضرت بهاءالله په دې بیان کې فرمائي چې دې هغه څوک دی. چې په هوا کې وځړول شو اودمرمیو نښه شو. اوحال دا چې ددې واقعې سره حضرت باب مخامخ شو:

**په لمړې ظهور کې مې ... زه په هوا کې راځوړند کړم. اودبغض اوکینې په مرمیو ئې زخمي کړم...اوهیڅا دافکرونه کړ. چې په څه سبب مې دخپلو خلکو داضرر قبول کړ...۲۸**

ددې وینا ویونکی څوک دی؟ ویوونکی «الهي لوی روح»دی . هغه یکتا اوبې همتا «روح» چې په هرعصر کې په یونوم سره ظهور کوي . په دې عصر کې په اول ظهور کې«باب» یا«ربّ اعلی»اوپه دوهم ظهور کې بهاءالله نومونه پیداشو.

کله حضرت بهاءالله دحضرت باب ظهور دځان لپاره لمړی ګڼي: **وګورئ په لمړی ظهور کې چې د«علیّ علیهم»په نوم دځمکې اواسمان په منځ کې ظاهر شو. اوپَردو کشف ئې وکړ . لمړی**

**دعصر علما دهغه په مخالفت کې پورته شو.۲۹**
**حضرت بهاءالله**
په دې ایت کې حضرت باب ته (علی اعلی) او(علی) ویلی دی: **جمال (علیّ اعلی) دبل ځل لپاره دبغضونو په هوا کې مه ځروئ.۳۰**

**حضرت بهاءالله**
**قل انّ هذالعل□ّ بالحق قد ظهر مرّة اخری ف□ جمال الاطهر الاظهر الابه□ .۳۱**

**حضرت بهاءالله**
وایه **!** داهمغه«علیّ»حق دی چې دبل ځل لپاره په پاک ، ښکلي نوراني جمال کې ظاهر شوی دی.
دحضرت بهاءالله مناجات دحضرت باب په ثنأ اوصفت کې:

---

---

علیک یا بهاءالله و محبوب البهاء ذکرالله و بهائه ثم بهاء اهل ملأ الأعل□ ثم بهاءاهل مداین البقا ثم بهاء کلّ الاشیا ثم بهاء نفسک لنفسک بنفسک و بهاءهذاالبهاء الّذی ظهر لنصرک بین العالمین فیا محبوب البهاء فو عزّتک و جلالک انّک ما قصّرت ف□ تبلیغک عبادک و تدبیرک بریتک و ما اردت ف□ کلّ ذلک الّا خضوعهم بین یدی سلطان احدیّتک والخشوع عند ظهورات انوار وجهتک فو عزّتک یا محبوب□ انّ□ اجد نفس□ خجلا عما بلغته لظهوری بحیث ما تنفست الابذکری و ما تکلّمت الّا لاثبات امری و ماجری من قلمک الّا ما کان فیه مقصود نفسک ذکری و ثنائ□ و ف□ کلّ شأن ظهر منک ما یکون مدلاً لنفس□ و صریحا ف□ ظهوری و حاکیا عن جمال□ و مع ذلک کیف اذکرک یا محبوب□ بعد الّذی فو عزّتک لترادف القضایا و تتابع البلایا لن اجد فرصة لا بک□ عل□ نفس□ و کیف ثناء نفسک العل□ّ العظیم ...

۳۲

حضرت بهاءالله دایقان کتاب دحضرت باب دحقانیت په اثبات کې لیکلی دی .دهغه کتاب په اخرکې زمونږ نظرڅو ټکو ته رااړوي ، دهغې جملې نه له مونږه پوښتنه کوي. چې «که دټولې دنیا قدرت په یوزړه کې واچول شي»آیا په دې به قادر وي. چې داسې وینا به رامنځ ته کړي. چې دټولو ملتونو رئیسان دې، په هغه وینا اعتراض وکړئ ؟ داقدرت هغه (۲۵)کلن ځوان له کومه لاس ته راوړ. چې دزرهاو دښمنانو په وړاندې په پوره شهامت سره ودریږي، له خپله ځانه لاسونه ومینځي اودسرورکولو څخه ونه ډاریږي؟
دپیغمبرانو دحقانیت له نښو نه یوه نښه داده. چې هغوې دبلاګانو اوظلم په مقابل کې مقاومت کوي.
حضرت بهاءالله دایقان په کتاب کې مونږ تفکر ته رابولي. چې په څه ډول هغه موعود دځوانې په لمړنیو کې دپروردګار دائین دخپرولو لپاره پاڅون وکړ. او دسرسخته دښمنانو اومخالفانو په مقابل کې په پوره متانت سره ودریدل.فرمائي ،هرڅومره چې دښمنانو په هغه ظلم کول. دهغه شوق اومینه لاډیریدله ،ترڅو چې باالاخره، خپل ځان جانان ته تسلیم کړ. او همیشني جهان ته ولاړ.

یوځل بیا مونږ دې ته دعوتوي. چې فکر وکړو. او له خپله ځانه پوښتنه وکړو. چې په دې اندازه قدرت اوغلبه له کومه راغله؟ دپروردګار د امر، داظهار څخه لږ موده وروسته «په کمه موده کې ئې دسلطنت داقتدار، قدرت اوغلبې اثار»دهغه موعود په ټولو ښارونو کې راپیداشو. دعامو خلکو مقاومت ، په خاصه توګه دپیشوایانو ، اوقدرتمنو اربابانو مقاومت کومه نتیجه ورنکړه.

څومره ډیر ممتازاوپاک سیرته خلک، ددې ظالمانو لخوا په بدوعذابونو سره هلاک شول. حضرت باب ددې فداکارانو داسې ستاینه وکړه. اووئې فرمایل: **په غیر دده له ارادې ئې بل مراد نه لرل،اوپه غیر دده له امره ئې بل امر ونه ټاکل.۳۴** دمرګ تروخته پورې

دخدای په ذکر مشغول ؤ.درضا اوتسلیمی په هوا کې
په حرکت او الوتنه کې ؤ.
**وروسته بیا فرمائي، اوس لږ څه فکر وکړئ: آیا
دارنګه تصرف اواحاطه په جهان کې چاترسره کړې؟
دافداکاران دظالمانو څخه ونه ویریدل. اوپه پوره
رضائي تیر باران ومنل اودبلاګانو نه دشکایت په
ځای ئې دپروردګار په شکر اوثناپیل وکړ.اودشهادت
جام ئې دشاتو اوشکرو په څیر وڅښل.۳۵**
اوفرمائي ،ګویا صبر ئې دصبر نه اووفائي دوفا نه
ژوند وموندل .اوبیا وروسته مونږ په دې وینا سره
مخاطبوي:
**یوځل په دې ټولو وقایعو ...فکر وکړئ. ترڅو دامر
په عظمت اولویوالي پوه شئ. اودپروردګار په
بخشش سره مویوډاډمن روح په وجود کې پیداشي.
دیقین اوباور دپادشاهې پرتخت استراحت اوارام
وکړئ.۳۶
اوهرکله چې دټولو خلکو له هغې جملې څخه
دعلماو،فضلاو اوجاهلانو په اعتراضونو فکر وکړئ.
په دې امرکې به محکم تراوراسخ تراوثابت شئ.ځکه
ټول هغه څه چې واقع شوي، له مخکې شوي دي.
مخکینیو پیغمبرانو دازلي حکمونو اولدني، پوهې له
مخې څخه خبر ورکړئ دی.۳۷**

## نورې نښاني

## اوخبرونه

ډير خلک ددې جهان په کارونو سخت مشغول دي. دخدای څخه ناخبرتيا اودنيائي کارونو ته توجه هميشه دخلکو دروزګارطريقه وه اوي به:

**وَان كَثِيرًا مِّنَ الناسِ عَنْ آيَاتِنَا لَغَافِلُونَ.**

**ديونس سورت،۹۲-ايت**

ډير خلک زما د ايتونو اونښانو څخه ناخبره دي.

**قُلْ انِّي عَلَ بَيِّنَةٍ مِّن ربِّي وَكَذبْتُم بِهِ.**
**دانعام سورت،۵۷-ایت**
ووایه! زه دپروردګار له طرفه په یو دلیل سره راغلی یم ، امّا تاسې زما دلیل دروغ ګڼئ.
**افسوس دې وي، ستاسې په حال اې ددین علماؤ،اوديهودي قشرریاکارانو! تاسې دهغه پيغمبرانو لپاره چې ستاسې پلرونو ووژل،پخپل لاس دیادبود بنا جوړوئ.اودمقدسينو قبر چې دهغوې په لاس ووژل شو. ښکلي کوی اووائی به چې: که مونږ دنیکونو پرځای وی،پيغمبران به مونه وی وژلي.**
**حضرت مسيح(انجيل متي ،۲۳فصل،۲۹-۳،ایتونه**
دادیانو هر یو پیرو به ادعا کوي چې:
**لَوْ انا انزِلَ عَلَيْنَا الْكِتَابُ لَكُنا اهْدَى مِنْهُمْ... فَمَنْ اظْلَمُ مِمن كَذبَ بِآيَاتِ اللهِ...؟**

**دانعام سورت،۱۵۶-ایت**
که دخدای کتاب پرمونږ نازل شوئ وی، مونږ به دمخکنیو منکرینو نه دهغوهدایتونه په ښه توګه منلي وی... څوک له هغه نه ظالم کیدلی شي، چې دخدای ایتونه دروغ وګڼي؟
آیا معقوله ده تصور وکړو. چې ناځاپه انکار ،ظلم ، دنیا پرستي ، پوهې اودعدل رسم اوطریقې به تغیر

کړی وي؟ دانعام سورت په تفصيل سره زمونږدعصر ددوه پيغمبرانو دظهور(راتګ)خبر ورکوي ،اوپه روښانه توګه وښائي چې دهغوې برخليک هم دمخکنيو پيغمبرانو په شان دی.
دذکر په باره کې دوحې ژبه په هغه سورت کې داډول خبر ورکوي:
**۶۶: ۶ وَكَذ بَ بِهِ قَوْمُكَ وَهُوَ الْحَق قُل لسْتُ عَلَيْكُم بِوَكِيلٍ.**



---

ستا قوم(مسلمانان)به له هغه څخه انکار کوي اوحال دا چې هغه حقّ دی.ووايه!زه ستاسې د«انکار»مسئول نه يم.

وروسته هغه سورت مونږ ته رازده کوي. چې دنظر ورخبرپه اینده پورې اړه لري:
**۶۷: ۶ لِّكُلِّ نَبَامسْتَقَروَسَوْفَ تَعْلَمُونَ.**
دهرخبرد«تحقق»لپاره یوځانګړې وخت تعین شوی دی. ژردې چې په پوه شئ.
دهمدې سورت یوبل ایت ، دمنکرینو مقاومت د□ضرت بهاءالله په مقابل کې پیش بیني کوي. هغه موعود کوم چې خلک ددارالسّلام څخه(۱۲۷- ۱۲۶: ۶)دخدای لورې ته رابولي:

**ان مَا تُوعَدُونَ لآتٍ وَمَا انتُم بِمُعْجِزِينَ.**

**دانعام سورت،۱۳۴-ایت**
دخدای وعده به ځای ته ورسیږي. اوتاسې به دهغې مخنیوی ونه کړئ.
دوحې ژبه دنوي ائین مؤمنینو ته ورزده کوي. چې دخدای دوعدې منکرینو سره مجادله ، اړول اوبحث مه کوئ. خپل قیمتي وخت دهغوې سره په بې ځایه بحثونو تیر نه کړئ. اوحتی ددغسې تنګ نظره خلکو سره دکبنیناستلو څخه ډډه وکړئ:
**۶۸: ۶ وَاذَا رَايْتَ الذِينَ يَخُوضُونَ فِي آيَاتِنَا فَاعْرِضْ عَنْهُمْ حَت□ يَخُوضُواْ فِي حَدِيثٍ غَيْرِهِ.**

اوکه داسې کسان دي وليدل چې زما دايتونو په باره کې بيهوده خبرې کوي، له هغوې څخه مخ واړوه.
اويا لږ ترلږه دهغوې خبرې ته تغير ورکړه.
**۶۸: ۶ وَاما يُنسِيَنكَ الشيْطَانُ فَلاَ تَقْعُدْ بَعْدَ الذِّكْرَى مَعَ الْقَوْمِ الظالِمِينَ.**
اوکه چيرته شيطان(مکارو اوبې ايمانه خلکووسوسې)ددې باعث شي. چې دخدای سره پيمان اوعهد له ياده وباسي. وروسته د«ذکر»دظهور نه دظالمو خلکو (دذکر منکرينو سره)له کښيناستلو ډډه وکړه.
ډير خلک پخپل ځان اعتماد نه لري. چې وکولی شي حقيقت وپيژني.دهغوې روش تقليد دی،نه تحقيق. په مخکينې ايت کې پروردګاردا‌ډول خلکو ته درس ورکوي،چې دهغوې دنجات لاره دموعود دمنکرينو اودظالمانو دوسوسو نه لريوالی دی.

ولې دغومنكرينو ته ظالمان ويل شوي دي؟ ددې نه غټ ظلم چيرته دی. چې دموعود نه انكار وكړي؟ ددې نه بل غټ ظلم كوم كيدلی شي، چې ساده خلك دخدای له بخشش څخه منع كوي؟اوله دې به بل غټ ظلم چيرته وي. چې له شيطان نه پيروي، دفرښتې په نقش كې وښودل شي؟

وروسته له هغو پروردګار دنوي ائين دمؤمنينو دمسئوليتونو حدود ټاكي:

**۶۹: ۶ وَمَا عَلَ الَّذِينَ يَتقُّونَ مِنْ حِسَابِهِم مِّن شَيْءٍ وَلَكِن ذِكْرَى لَعَلَّهُمْ يَتقُّونَ.**

تقوالرو ونكي مؤمنين دمنكرينو په هكله كوم مسئوليت نه لري. دهغوې يواځينې وظيفه يادونه «تذكر»دی.(دظهور ديادونې ذكر دی).شايد چې منكرين هم تقوا ته مخ واړوي او حقيقت پيداكړي.

**۷۰: ۶ وَذَرِ الَّذِينَ اتخَذُواْ دِينَهُمْ لَعِبًا وَلَهْوًا وَغَرتْهُمُ الْحَيَاةُ الدنْيَا وَذَكِّرْ بِهِ.**

يوه ډله خلك په دې دنيا غوليدلي دي. ددين نه ئې بازيچه جوړه كړی، اودسرګرمې وسيله ئې ګڼلې،

داخلک په خپل حال پرېږده . اودهغه (موعود)په یاد یاداوري وکړه. او
دهغه په یاد خوښ اوسه.

وروسته له هغه دوحې په ژبه د١٧
رسولانواونبیانو نومونه اخلي:
دانعام سورت،٨۴-
٨۶آیتونه

| | | |
|---|---|---|
| ١.اسحق | ٢.ایوب | ٣.ذکریا |
| ۴.اسماعیل | | |
| ۵.یعقوب | ۶.یوسف | ٧.یحیی |
| ٨.ایلیا | | |
| ٩.نوح | ١٠.موسی | ١١.عیسی |
| ١٢.یونس | | |
| ١٣.داود | ١۴.هارون | ١۵.الیاس |
| ١۶.لوط | | |
| ١٧.سلیمان | | |

داپیغمبران زمونږ دعصر ددوه موعودو په شمول (١٩)تنه کیږي.د(١٩)عددپه قران کې دپروردګار لخوا ټاکلې عدد دی. په دې مطلب په( ١٢) فصل کې په تفصیل سره بحث شوی دی.

وروسته له (۱۷)مخکنیو پیغمبرانو له «ذکر»قران د«أُولَئِکَ»کلمې په کارولو سره یعنی«هغوې» دراتلونکو پیغمبرانو دظهور یعنی زمونږ دعصر ددوه موعودو دراتګ خبرورکوي. اودحضرت باب لقب (ذکر)هم ذکروي:

**اوْلَئَكَ الذِينَ آتَيْنَاهُمُ الْكِتَابَ وَالْحُكْمَ وَالنبُوةَ فَان يَكْفُرْ بِهَا هَؤُلاء فَقَدْ وَكلْنَا بِهَ ا قَوْمًا ليْسُواْ بِهَا بِكَافِرِينَ اوْلَئَكَ الذِينَ هَدَى اللهُ فَبِهُدَاهُمُ اقْتَدِهْ قُل لااسْالُكُمْ عَلَيْهِ اجْرًا انْ هُوَ الاذِكْرَى لِلْعَالَمِينَ.**

**دنحل سورت،۴۳- ۴۴،ایتونه**

هغوې ته مې کتاب ،حکم اونبوت بخشش کړل.که چیرته دخلکو کومه ډله دهغوې څخه انکاروکړي.یوبل قوم به دهغه ائین لپاره په کارواچوم. چې انکار څنې ونه کړي. هغوې ته خدای هدایت کړی دی. اوله

هغوې څخه پیروي وکړئ. زه له تاسې څخه پاداش نه غواړم دجهان خلکو لپاره هغه«زما ذکر»دی.
دوحې په ژبه یوځل بیا شهادت ورکوي. چې دخدای «ذکر»دنوي کتاب سره راځي. او پیروان(اهل ذکر)به ئې دکتابونو سره دکومک لپاره دقران په ډیرو اسرارو پوه شي:
**فَاسْاَلُواْ اهْلَ الذِّكْرِ ان كُنتُمْ لاَ تَعْلَمُونَ بِالْبَيِّنَاتِ وَالزبُرِ وَانزَلْنَا اَلَيْكَ الذِّكْرَ لِتُبَيِّنَ للناسِ مَا نُزِّلَ اَلَيْهِمْ وَلَعَلهُمْ يَتَفَكرُونَ .          دنحل**
**سورت،۴۴- ۴۳،ایتونه**
که په کوم مطلب نه پوهیږئ.داهل ذکر څخه پوښتنه وکړئ.ځکه دهغوې ویناوې دروښانه دلیلونواواسماني کتابونو په اساس دي.اوما«ذکر» درولیږل. ترڅو خلکو ته هغه څه چه دهغوې لپاره نازل شوي دي، توضیح ورکړي. شاید چې په فکرکولو بوخت شي.
«ذکر»دحضرت باب دخاصو القابو څخه دی، اما دحضرت بهاءالله لپاره هم کله کله «ذکر»راغلی دی. په دې بیان کې حضرت بهاءالله ته «ذکر»ویل شوی دی.
**قل تالله یا قوم اذکرکم لوجه الله و ما ارید منکم جزاء ان اجری الّا علی الّذی فطرنی و بعثنی بالحق و جعلنی**

**ذکراً للخلایق اجمعین .۳۸ حضرت بهاءالله**

ووایه،په خدای قسم دی! اې خلکو: دخدای لپاره تاسې ته یادونه کوم. اوله تاسې څخه پاداش نه غواړم.زما اجر په هغه چادی. چې زه ئې پیداکړی یم. په حقیقت سره ئې په حرکت راوستم اوزه ئې دټول عالم دخلکو لپاره«ذکر»وګرځولم.



---

دقران داایت هم دنحل دسورت ایتونه تائیدوي:

**یَوْمئَذٍ یُوَفِّیهِمُ اللهُ دِینَهُمُ الْحَق.**

**دنور سورت،۲۵-ایت**

په هغه ورځ پروردګاردهغوې حق دین هغوې ته عطا اوبخششوي.

**دفرقان څومره ډېر ایتونه ، اومحقق روایتونه دي. چې ټول دنوي امراوحکم په شرع باندې دلالت ورکوي.۳۹**

**حضرت بهاءالله**

دقران وړاندوینه داماماتو په وینا کې هم تائید شوې ده. ډیرې احادیث خبرورکوي. چې قائم موعود به دنوې ائین اونوې کتاب صاحب وي:

**یقوم القائم بامر جدید و کتاب جدید و قضاء جدید علی العرب شدید .۴۰**

قائم به دنوي دین سره ، دنوي کتاب سره او دنوي حکم سره قیام وکړي.(دهغه ظهور)داعرابو لپاره مشکل دی.

**اذا قام القائم علیه السّلام استانف دعا جدید کما دعا رسول الله .۴۱**

کله چې قائم علیه السلام قیام وکړي. نوی دعوت به له سره شروع کړي. په همغه ډول چې رسول الله دعوت کول.

**یظهر من بنی هاشم صبی ذو احکام جدید فیدعوالناس...واکثر اعدائه العلماء .۴۲**

دبني هاشم دکورنې یوزوي به راظاهر شي، خلک به دنوي حکمونو قبلولو ته دعوت کړي...ډیر دښمنان به ئې دعلماو اوپیشوایانو دډلې څخه وي.

**٤٣. اذا قام القائم جاء بامر جديد كما دعا رسول الله**

قائم عليه السلام دنوي دين سره راځي،په همغه ترتيب چې دخدای رسول خلک(نوي دين) ته رابلل.

حضرت باب مستقل پيغمبر دی. اوخپل کتاب لري. په همدې حال کې د ائمه اطهار (دپاکو امامانو)څخه هم ګڼل کيږي. اوځرنګه داسلام دائين حلقه دبهائي ائين دحلقې سره نښلوي اوپيوند ورکوي. اګر چې زمونږ دعصر دوه موعوده، هريو مستقل پيغمبر دی، اما هدف اومقصد ددواړو يو دی. دواړه دايمان دبنيان د تاسيس اودپروردګار سره دمينې اودجهان دخلکو ترمنځ ديووالي دراوستلو لپاره راغلي دي.

په همغه ترتیب چې ئې ګورو ، دقران ایتونه او احادیث په روښانه توګه شهادت ورکوي. چې زمونږ موعود دنوي کتاب اواحکامو سره دجهان په صحنه کې قدم ږدي.همدغه ایت په یواځیتوب سره د«**خاتَم النبّین**» مسئلې ته خاتمه ورکوي. اوهیڅ یو ته دشک اوشبهې ځای نه پرېږدي. چې دپروردګار سنت دپیغمبرانو په رالیږلو کې تغیر نه منونکي دی. کوم خلک کولی شي. دخدای ذکر وپیژني. اود«ذکر» والاشي. یعنی مؤمنان وګڼل شي؟ هغه دحقیقت لټونکي څنګه کولی شي. ایماني هدیه ترلاسه کړي؟

**اوْلَئكَ الذِينَ هَدَی اللهُ فَبِهُدَاهُمُ اقْتَدِهْ قُل لااسْالُكُمْ عَلَيْهِ اجْرًا انْ هُوَ الاذِكْرَی لِلْعَالَمِينَ.**

**دانعام سورتو ۹۰-ایت**

پروردګار دهغوې رهنما دی. پس دهغو مؤمنینو(یعنی دذکر والا)پسې اقتداوکړه .

ووایه!زه له تاسې نه کوم اجر نه غواړم. هغه دجهان خلکو لپاره تنها یو«ذکر»دی.

زمونږ دعصر ددوه موعودو دانکار خبر په ټول قران کې پټ او ښکاره دی:

**تِلْكَ آيَاتُ الْكِتَابِ وَالذِيَ انزِلَ الَيْكَ مِن ربِّكَ الْحَق وَلَكِن اكْثَرَ الناسِ لايُؤْمِنُونَ... يُدَبِّرُ الامْرَ يُفَصِّلُ الآيَاتِ لَعَلكُم**

**بِلِقَاء رَبِّكُمْ تُوقِنُونَ.** **رعد**
**سورت، ۱-۲ ،ایتونه**
هغه الهي ایتونه دي. او هغه څوک چې دپروردګار له طرفه تاسې ته راغلی دی،(زمونږ دعصر موعود)حق دی. ډیر خلک په هغه ایمان نه راوړي...پروردګار خپل امر اوائین د یوتدبیر اوحکمت په اساس اداره کوي، اونښانې ئې تشریح کوي. شاید چې تاسې په دې حقیقت چې یوه ورځ دپروردګار په دیدار بریالی شئ ، یقین اوباور وکړئ.
**جَاء الْحَق وَظَهَر امْرُ اللهِ وَهُمْ كَارِهُونَ.**
**دتوبه سورت،۴۸-ایت**
حقیقت راغلی، او دپروردګار ائین ظاهر شوی دی. اما خلک دهغه دقبلولو او منلو څخه ډډه کوي.
**کل انتظروا بما وعدوا فی ایام الله فلمّا قضی الوعد انکروه . ٤٤ حضرت بهاءالله**
ټول خلک دخدای دوعدې دتحقق، اودخدای دورځې دراتګ منتظرؤ. اوکله چې وعدې تحقق پیداکړ. دهغې څخه ئې انکار وکړ.
**کیف تسمعون آیات الله من لسان ذکرالله ثمّ اذا انتم تعرضون .٤٥ حضرت باب**
په څه ډول دخدای دذکر دژبې نه ایتونه اورئ. اوله هغه مخ اړوئ.

---

که دپیغمبرانو نه انکار کول دخلکو دروزګار یو رسم اولار ده.په کوم دلیل دغه لار اورسم زمونږ په عصر کې چپه اوله منځه ولاړ شي؟
ښه به وي چې دافصل دقران په ښکلي کلام سره او دحضرت بهاءالله اوحضرت باب داثارو په څو نمونو سره پای ته ورسوو:

**عَم يَتَسَاءلُونَ عَن النبَاالْعَظِيمِ... كَلا سَيَعْلَمُونَ ثُم كَلا سَيَعْلَمُونَ. دنبأ سورت، ۱-۵، ایتونه**

دڅه شي په باره کې بحث کوي؟د«لوی پیغام په باره کې»البته البته چې ډیر ژردی په پوه شي.
البته البته چې ورباندې پوه به شي.

**لِّكُلِّ نَبَاءٍ مسْتَقَرٍوَسَوْفَ تَعْلَمُونَ.**

**دانعام سورت،۶۷-ایت**

دهرپیام لپاره ټاکلې موده ده.ژردې چې په پوه شي.
**لَتَعْلَمُن نَبَاءَ هُ بَعْدَ حِين.**
**دصادسورت،۸۸-ایت**
البته په یقین سره به دهغه په پیغام وروسته له څه مودې پوه شي.
ددې ټولو نښانو او ایاتونو سره ددوه موعودو دظهورپه باره کې د«لوی ذکر»او«لوی خبر»په نومونو سره ډیر مسلمانان دقران له دې معّما اودهغې دمعنی سره اشنائي نه لري. پروردګار له مونږه غواړي چې دا«لوی خبر»دعالم خلکو ته ورسوو:
**قم علی الامر و حدّث الن اس بهذا النباء العظیم .٤٦**
**حضرت بهاءالله**
دپروردګار د امر اوائین دخذمت لپاره پورته شه! اوخلک په دې«لوی خبر»پوه کړه.
کوم ایتونه چې ذکر شول ددې شاهدي ورکوي. چې دانتظار ورځې پای ته رسیدلې، اودپروردګار وعده سرته رسیدلې ده.ښه داده چې ددې ښه خبر په اوریدو سره خوښي وکړو. اودپروردګار په درګاه کې شکر اداء کړو.چې دې ارمغان اوسوغات ته مونږ لاس رسی پیداکړ. اوددې لوی او بې پایانه فضل او رحمت څخه برخه من شو.

**فو ربکم الحق رب السموات والارض ان وعدالله لحق ف□ حق الذکر و قد کان الوعد ف□ ام الکتاب مفعولاً .**

**٤٧**

**حضرت باب**

په هغه خدای قسم دی. چې دځمکې اواسمانونو خالق دی، دپروردګار وعده د«ذکر»په باره کې حقیقت ده.اودهغه کتاب وعده چې دکتابونو سرچینه ده. یعنی دقران وعده سرته رسیدلې ده .



---

**انن□ انا القائم الّذی انتم بظهوره توعدون .٤٨**

**حضرت باب**

زه همغه قائم یم. چې دراتګ وعده ئې درکړل شوې ده.

**دهغه مؤمن دخبروپه اساس چې دکعبي دزيارت په وخت کې دحضرت باب سره يوځاى ؤ ، هغه موعود دکعبې د پنجيرې دروازه په لاس نيولې وه. درې ځلې ئې په لوړ اواز پورتنى، عبارت تکرار کړ.۴۹**

**پروردګار دهغه دکلامه پيژندلى شئ**

په همغه ترتيب چې خپل پلار اومور دهغوې له غږه پيژنو ، دجهان خالق اوپيداکوونکې هم هغه څه چه وائي اوپه هغه ترتيب ئې چې وائي، کولی شو. په اسانې وپيژنو. اودنورو له خبرو ئې توپير وکړو.

**قل اى و ربّ لا اعلم حرفاً الّا ما عل من الله بجوده ۵۰.                    حضرت بهاءالله**

ووايه! بلې! په پروردګار مې قسم دى. په غير له هغه څه چې پروردګار راته دفضل له مخې ښودلي دي ،په يوتوري هم نه پوهيږم.

**انّا امرناكم...بما يرفعكم و ينفعكم ف كلّ عالم من عوالم ربّكم...ما خلقتم لانفسكم بل لخدمة امر الله ربّ العالمين .۵۱**

**حضرت بهاءالله**

مونږ تاسې ته امر کوو...هغه څه چې ستاسې دترقې او لوړتيا سبب کيږي. ترڅوپه ټولو الهي عوالمو کې

دخپل کوښښ څخه ګټه پورته کړئ...تاسې دخپل خدمت لپاره نه یاستې پیداشوي . بلکه دپروردګار دائین دخذمت لپاره پیداشوي یاستې.
**وواٸي!اې خلکو!نن هغه ورځ ده. چې ټولې پردې لرې کړئ. اوټول ګومانونه ختم کړئ.۵۲**
**حضرت بهاءالله**

---

❖دیهودیانو اومسیحیانو په مقدسه کتابونو کې زمونږ دعصر ددوه پیغمبرانو دظهور په باره کې ګڼ شمیر ایتونه نازل شوي دي. داایتونه د ( Lord of Lords)په کتاب کې په دوه فصلونو کې په (۱۴او۱۵)فصل کې لیکل شوي دي.



---

---

**بې جوړې دوست فرمائي:دازادې لاره خلاصه شوې ده.عجله وکړئ. دپوهاوي چینه په مستې کې ده. له**

**هغې نه ئې وچښې.۵۳**
**حضرت بهاءالله**
**اې بنده ګانو!هرچاچې له دې چینې وچښلې. ابدي ژوند ته ورسيد. اوهرڅوک چې پاتې شو(هرچاچې ونه چښلې)له مړو څخه وګڼل شو.۵۴**
**حضرت بهاءالله**
**قل و من اعرض لن يقبل من عمله شيئ و كان الله ربک لغن عن العالمين .۵۵حضرت باب**
ووايه!هرڅوک چې مخ واړوي. دهغه هيڅ عمل قبول نه دی. خدای چې ستا ربّ دی، دعالميانو څخه بې نيازه دی.
**قَدْ جَاءكُم بَصَآرُ مِن ربِّكُمْ فَمَنْ ابْصَرَ فَلِنَفْسِهِ وَمَنْ عَمِيَ فَعَلَيْهَا. دانعام سورت،۱۰۴،ايتونه**
دخدای له لورې روښانه دلائل تاسې ته راغلي دي. هرڅوک چه دليدلو سترګې لري. رښتينی دی. او هرڅوک چې ړوند دی. دليدو سترګې نه لري. په تاوان کې دی.
**اې دانصاف والا! که له دې «امر»څخه انکار وشي. بل کوم«امر»دی. په ځمکه کې چې داثبات وړ دی. اوداقرارلايق دی.۵۶**
**حضرت بهاءالله**

**دادي«لوی خبر»او«لوی امر»،په مقام ئې ځانونه پوه کړئ. اوهغه څه چې ظاهره شوي دي انصاف وکړئ...کوښښ وکړئ ترڅو امر ظاهر اووخت باقي دی. خپل ځانونه مه محروموی. ۵۷**

**حضرت بهاءالله**

**نن ورځ دپوهې بحر په موجونو کې دی. اودپوهاوي لمر په مشرق کې دی، واورئ او پیدائي کړئ ترڅو پاینده اوسئ. ۵۸**

**حضرت بهاءالله**

**فرصت له لاسه مه ورکوئ. وخت غنیمت وګڼې ...وختونه دبرق په شان په تیریدو دي. کوښښ وکړئ. شاید دتوحید حقیقي رڼا ته ورسیږی. ۵۹**

**حضرت بهاءالله**

**یا عبادالرحمن تالله لقد جائکم الامر من عندالله . ٦٠**

**حضرت باب**

اې دپروردګار بنده ګانو!په خدای قسم دی. چې دا«امر»دپروردګار له لوري تاسې ته راغلی دی.

# پنځمه برخه

## په بهائي ائين کې

## دتاريخي

## پيښنو وړاند وينې

درې فصله لري:

۱.دکهف سورت لومړې

برخه

## ۲.دکهف سورت دوهمه برخه

## ۳.دپروردګار دنقشې دښمنان

که چیرته دابنده ګان خاص دالله لپاره اودهغه درضا لپاره ،دقران دکتاب په ایتونو کې فکر وکړي .ټول هغه څه چې طلب ئې لري. البته چې درک کولی شي. په هغه ډول چې ددې ظهور دواقعې ټول کارونه که جزئي اویاکلي وي دقران په ایتونو کې پیداکولی شي...۱
حضرت بهاءالله

# ۱۰



## دکهف سورت

## اوله برخه

**وګورئ. چې له مخکې نه ئې په څه ډول دتېرلو کارونو خبرتيا ورکړې ده.۲**

**حضرت بهاءالله**

زمونږ دعصر ددوه پیغمبرانودراتګ نښانې په ټول قران کې پټې اوښکاره دي. دکهف سورت ددې نښانو له مهمو منابعو څخه ګڼل کیږي. په هغه سورت کې د حضرت باب اوحضرت بهاءالله اودبهائي ائین تاریخي ډیرې پیښې،دغار د اوسیدونکو(اصحب کهف) دقصې اوداستان په شکل بیان شوي دي. حضرت بهاءالله دایقان په کتاب کې چې ددې ائین داثبات لپاره نازل شوی دی فرمائي:

**که دابنده ګان خاص دخدای درضا لپاره ،دقران دکتابونو ایتونه وګوري،ټول هغه څه چې طلب ئې لري، درک کولی شي. په داسې ترتیب چې ددې ظهور دټولو واقعاتو دکړو وړو که هغه جزئي وي اویاکلي وي، دقران په ایتونو کې ښکاره اودرک کولی شي ...ولکن لایعرف ذلک الاّ اولوا الالباب.۳ حضرت بهاءالله**

دایقان کتاب کې دپورتنې مطلب داثبات لپاره دقران دامعروف ایت شاهد نیسي:

**وَلاَ رَطْبٍ وَلاَ يَابِسٍ الافِي كِتَابٍ مُبِين.**

**دانعام سورت، ۵۹-ایت**

هیخ داسې لوند اووچ نه پیداکیږي. چې دقران په کتاب کې روښانه اوښکاره نه وي. دالاندې ایت هم کوم چې دظهور ساعت ته اشاره ده، دحضرت بهاءالله بیان تائیدوي:

**وَقَالَ الذِينَ كَفَرُوا لَا تَاتِينَا الساعَةُ قُلْ بَلَ وَرَبِّي لَتَاتِيَنكُمْ عَالِمِ الْغَيْبِ لَا يَعْزُبُ عَنْهُ مِثْقَالُ ذَ رةٍ فِي**

**السمَاوَاتِ وَلَا فِي الْارْضِ وَلَا اصْغَرُ مِن ذَلِكَ وَلَا اكْبَرُ الا فِي كِتَابٍ مبِين.**

**دسبا سورت،۳-ايت**

**منكرين به وائي:** هغه ساعت به پرمونږ. رانشي!ووايه!بلې ، پخپل ربّ مې قسم دي چې په غيبو اګاه دی.اودذرې په اندازه په ځمکه اواسمانونو کې له هغه نه هيڅ شئ پټ نه دی، چې دهغه نه وړو کې ياغټ بل څه شی نشته. چې(دساعت په باره کې)په هغه کتاب کې روښانه نه وي.

دځلورواديي په کتاب کې ، حضرت بهاءالله دسورت کهف ديوايت په باره کې(۱۷-ايت)دارنګه فرمائي:
**که څوک ددې يو ايت په اشارو پوه شي،هغه لپاره کافي ده.همدا ده. چې دداسې خلکو په صفت کې وائې : رِجَالٌ لا تُلْهِيهِمْ تِجَارَةٌ وَلَا بَيْعٌ عَن ذِكْرِ الله. دنور سورت،۳۷-ايت**

---

❖ **خالصاً لله و طلباً لرضائه :** په پاک نيت خاص دالله درضا لپاره

**ساعت:** دموعود دظهور وخت ته اشاره ده.

مخکېني وينا ددې شاهدي ورکوي ،چې دسورت کهف په (۱۷-ايت)کې اودهغه دنورو اړوندو يعنې داصحاب کهف په داستان کې ، ډېر اسرار پټ اوښکاره دي.
په دې اسرار آميزه سورت کې پراته ګنجونه پيداکول اوکشفول مخکې له دې مودې امکان نه لرل. يواځې ددې ائين ظهور اودقران دوعدوتحقق اوپه هغوې کې هغه پراته رمزونه دعالم نه پټ ميدان ته راښکاره شول.
دقران مجيد ايتونه ، هغه د رازونو ډک کتاب زمونږ دعصر ددوه موعودو په باره کې حضرت باب او حضرت بهاءالله ديوې معما سره ډېر شباهت لري.
دامعمّا عبارت ده له يوې ښکلې، بې شماره ټوټو څخه دجوړې شوې طرح نه، چې يوه له بلې سره يوځای

شوې او يوه له بلې څخه بيله شوي وي. د«قران اوبهاءالله»دکتاب هدف ددې ټولو ښودنه اوهم ئې دځای ښودنه ده. دقران هرايت چې په دې کتاب کې ګوری ، ددې لوی معّما يوه ټوټه ده.
پرځای به وي. چې پوښتنه وکړو : ددې داستان د رازونو دکشفولو سمه نښانه څه ده؟ آيا په غير له دې چې دهغو وړاندوينو څخه چې دبهائي ائين دتاريخي پيښو سره توافق کې وي، بله کومه نښانه لازم ده؟ که يوه طرحه په سلهاو ټوټوويشو اوپه ميزئې کښيږدوآيا ممکنه ده. چې هرټوټه ئې دتصادف له مخې ځای ونيسي. که په داډول يو امر ممکن وي ،ددې سورت دوړاندوينو له مخې توافق دبهائي ائين دتاريخي پيښو سره دتصادف پرحساب امکان پذير دی.
څرنګه چه ددې سورت ډيرې پشبينې دبهائي ائين دتاريخ اړوند دي ،ستاسې استفاده له دې فصل نه تريو حده پورې ستاسې په هغه پوهاوي پورې اړه لري.
چې تاسې دبهائي ائين لمړي قرن پيښو په باره کې لری . اميد دادې چې ټول خيرونکې دپروردګار په فضل او رحمت سره په دې ميدان کې قدمونه واخلي. اوددې ښکلي اوله معنی ډک داستان څخه نور رازونه پيداکړي ، ځکه چې دپروردګار دکلام معناګانې ډيرې

دي .هغه چې په دې کتاب کې راغلي يواځې
ديواويا«٧١»معنی ګانو څخه يوه معنی ده.



## دپروردګار دکلام

## تفسير

مخکې له دې چې ددې سورت تفسير بررسي کړو لازمه ده . چې د«تفسير»په مسئله لنډه کتنه وکړو . آيا مونږ بې نوا بنده ګان دپروردګار دکلام دتفسيرتوانائي اودهغه دمعنوي معنی ددرکولو اجازه لرو ، په خاصه

توګه د «متشابه ایتونو»؟ قران کریم دې پوښتنې ته ځواب وائي:

**مَا يَعْلَمُ تَاوِيلَهُ الااللهُ وَالراسِخُونَ فِي الْعِلْمِ.**

**دعمران سورت، ۷-ایت**

یواځې پروردګار او(په علم کې راسخ خلک)دقران په رازونو پوهیږي. یعنې ( کولی شي چې باطني معنا ئې وکړي).

په مخکیني ایت کې خدای ته اشاره شوې ده، اوبیا دهغه بنده ګانو ته اشاره شوې ده. چې په علم کې راسخ وي . هغه څه چې پیغمبران وائي. دخدای له لوري دي.په دې اساس په «علم کې راسخ»په اوله درجه کې دنورو ویناؤ ته اشاره ده ، نه دخدای وینا او کلام ته . دبني اسرائیلو انبیاء ،اوسپیڅلي امامان ددې ډلې خلکو څخه دي.

آیا ممکنه ده. نور مؤمنین هم دالهي له دې فضل اوبخشش څخه برخه من شي؟

دقران دایت ددې راز څخه پرده لرې کوي:

**لَّكَنَ الراسِخُونَ فِي الْعِلْمِ مِنْهُمْ وَالْمُؤْمِنُونَ يُؤْمِنُونَ بِمَا انزِلَ الَيكَ وَمَا انزِلَ مِن قَبْلِكَ...**

**دنساء سورت، ۱۶۲-ایت**

دعلم راسخان په هغوې کې هغه څوک دي. چې په مخکینې ائین ئې ایمان درلود. یعنی په اسلام مؤمنان ؤ اوپه تاایمان اوباور لري. (په هغه څه چې له تامخکې نازل شوي ؤ. اوپه هغه څه چې په تانازل شوي دي باور اوایمان لري).

دمخکینې ایت په اساس (په علم کې راسخان)یا(ثابت)هغه مؤمنین دي، چې دخدای سره په مینه ،ایمان اومحبت کې ثابت اواستواره وي . یعنی د هغوې په ذهن کې هیڅکله شک اوشبهه اوتزلزل نه پیداکیږي. دغسې مؤمنان خپل پروردګار دزړه په سترګو لکه دځلیدونکي لمر په شان روښانه اوښکاره ګوري.

---

❖ متشابهه ایتونه: هغه ایتونه دي چې باطني معنی لري.

حضرت بهاءالله دايقان په کتاب کې فرمائي چې دپيغمبرانو خبرې په دوه ډوله دي:
يو ډول بې رازه اوظاهري خبرې اوبل ډول پټې دپردې اود راز خبرې دي .
داسراراميزه خبرو مقصد دبنده ګانو ازمايښت دی.
وروسته له دې توضيح څخه د متشابهه ايتونو دمعنی درک کول دمؤمينانو دزړونو دپاکوالي اودايمان ددرجې پورې اړه لري نه دهغو دتحصيلاتو اومعلوماتو پورې:
**ددې متشابهه بيانونو په معنی به هيڅ يوپوه نشي ، مګر مطمئنو زړونو والا، راضي انسانان اودهغوزړونو والا چې له دې دنيا نه لاس په سر دي . په دې ډول بيانونو کې دمثالونو مقصد، ظاهري معنی چې خلک هغه درک کړي، نه وه، اونه ده...۵**
دبهائي ائين له ظهوره مخکې ، دقران ډير اسرار پټ ؤ . په دې عصر کې دپروردګار په حکم ، داسرارو پرده له دې اثارو پورته شوه . دحضرت بهاءالله دشهادت په اساس دجواهرالاسرار په کتاب کې ، هغه مؤمنان چې ددې ائين ترسيورى لاندې د پروردګار

فضل اوبخشش ته رسيدلي دي . هغوې په دې قادر دي، چې متشابهه اسرارو ته هم لاس رسى پيداکړي: هغه کلمات چې متشابهه دي ، دهغوې معنى يواځې دهغه چالپاره مشکله ده. چې دپروردګار فضل ته نه وي رسيدلى . اوهم هغه کسان چې دالهي ائين ذخيرې ئې نه وي پيژندلې ... ټول الهي ايتونه له محکماتو څخه دي. اوټول روښانه او ښکاره نښانې دي. دامؤمينان په کلماتو کې پټ شوي اسرار لکه دلمر ګرمي اوداوبودرطوبت په شان بلکه له هغې هم په اسانه توګه پيژني...

---

- افئده مجرده : ددې دنيا له تعلقاتو پاک زړونه.

حضرت بهاءالله فرمائي چې دالهي کلماتو صورت دحقيقت خزانه ده ، اود هغو معنا دپروردګار دعلم «دُردانې»دي .پروردګار خلک دهغو دمعنا ګانو دکشفولو څخه منع کوي. ترهغو پورې چې دالهي اراده دهغو پورې تعلق پيداکړي. چې مهر دهغو کلماتو دصورت څخه لرې شي. له هغې وروسته خلک هغو دردانو ته لاس رسی پيداکوي .
اودپروردګار دکلام په اسرارو به پوه شي.۷ په يو بل بيان کې فرمائي چې ترڅو دالهي قدرت لاسونه دالهي معارف مهرخلاص نه کړي ، هيڅوک به دالهي کلام په اسرارو نه پوه شوی وي، اونه به هم پوه شي:
**ترڅو چې مخکيني ظهور دقدرت لاسونو (حضرت باب ظهور)دفرقان علومو دخزانو مهر خلاص نه کړ. هيچا درک نشو کړلی.۸**
**حضرت بهاءالله**
**انّه ظهر و اظهر ما کان مکنونا ف□ کنزالعلم و مخزونا تحت خاتم الحفظ.۹**

**حضرت بهاءالله**

پروردګار واضح اوښکاره وويل: هغه څه چې دعلم په خزانه کې پټ وي. هغه د ساتنې په مهر مهر شوي وي.

په الهي اثارو کې په کراتو سره تکرار شوي دي. چې خدايا داسماني کتابونو اسرار راته وښايه . که ددې اسرارودرک کول جايز اوحتی لازم نه وي ،په څه ډول زمونږ خالق مونږ ته رازده کول، چې دداسې لوی فضل او بخشش ته درسيدلو لپاره له هغه څخه ياري وغواړو؟

**اغتمسوا فی بحر بيانی لعلّ تطّلعون بما فيه من لئالی الحکمة والاسرار . ١٠**

**حضرت بهاءالله**

زمادکلام اووينا په درياب کې لامبووهي ترڅو دحکمت له دُردانو څخه اوپه هغوې کې له پرتو اسرارو خبرتيا اوپوهاوی پيداکړي.

دالهيّه کلمه دټولو معنا ګانو جمع کوونکې ده، يعنی ټولې معنا ګانې اوټول اسرار په هغې کې پټ دي.

**الهي کلمه ټولې معناګانې په خپل ځان کې راټولوي.**
**یعنی ټولې معناګانې او رازونه په هغې کې پټ دي.**
**طوبی لِمن بَلَغها و اَخرَج اللّئالئ المکنونة فیها .١١**
**حضرت بهاءالله**
**الهي کلمات رمز دی، راز دی...اودجواهرو معدن دی.اومعدن همیشه پټ**
**وي.١٢**
**حضرت عبدالبهاء**

٢٥٣ ١٠فصل:دکهف سورة
لمړې برخه

---

---

**که سل قلمونه لیکل وکړي دپوښتنو دځوابونو له عهدې به ونه وځي...له دې کبله الهي یاران اواحبا باید ملکوت ابهی ته توجه وکړي. اودبې حده فیض غوښتنه وکړی، ترڅودرازونو کشف وکړي، حقیقت اومعنی وځلیږي.١٣ حضرت عبدالبهاء**

**په قران کريم اوپه انجيل کې ډيرتحقيق وکړئ.داپه ټولو فرض دی.۱۴حضرت عبدالبهاء**

ښه به وي. چې په نظر کې راوړو دپروردګار کلام اوخبرې ډيرې معنا ګانې لري. ددې درياب دڅو دُردانوکشفول ، دنورو دُردانو دکشفولو خنډ او مانع نه دي.

الهي کلمه دټولو جامع معنی ده ، يعنی ټولې معنا ګانې اوالهي اسرار په هغه کې پټ دي.

**طوبیٰ لمن بلغها و اخرج اللّئالی المکنونه فيها .۱۵ حضرت بهاءالله**

نيکمرغه دی. هغه څوک چې دخدای خبرې درک کړي. اوپه هغه کې دُردانې رابيرون کړي.حضرت بهاءالله په کتاب دايقان کې دادوه حديثه نقل کړي دي:

دهرعلم «۷۰»اويا معناګانې دي . يواځې په يوه معنی ئې خلک پوهيږي...

مونږ. يوه کلمه وايو اوزمونږ مقصد دهغې کلمې نه «يو اويا» معناګانې دي.

حضرت عبدالبهاء دروم سورة د( ۱ ـ ۵) ايتونو په تفسير کې فرمائي. چې هغه ايتونه بې شماره معناګانې لري. اووروسته ديوې«محکمې»معنی په توضيح کولو او په نهه(۹)«متشابهه»معناګانو چې په هغو«۵»پنځو ايتونو کې پټې دي پيلوي.

همدارنګه باید اقرار وکړو. چې مونږ ناتوانه عاجز بنده ګان حتی دپروردګار دځنې «محکمو»خبرو له درکه عاجزیو. درازونو دذخیرې متشابهه کلمات خوبیخي په ځای پریږده.

---

❖ دعربي ایت مضمون : نیکمرغه دی، هغه څوک چې دخدای خبرې درک کړي. اوپه هغه کې پرتې دُردانې رابیرون کړي.



---

---

یواځې پیغمبران ،نبیان اوامامان په دې قادر دي. چې د«متشابه ایتونو»کونجي مونږ ته راکړي. اومونږ

يواځې دهغوې په مرسته دهغې کونجي په کارولو سره کولی شو. دځنې هغو اسرارو چې په هغو کې پټ دي. لاس رسی پيداکړو.عقل پالنه (خردګرائی)چې دبنده ګې اوعاجزې سره وي. په پروردګار باندې دايمان اوميني لويه نښه ده . پروردګارپه خپلو اثارو کې مونږ ته رازده کړي دي. چې په هرکار کې دادوه معياره په نظر کې ونيسو . هره خبره دالهي ايت دهدايت اوحمايت ترسيوري لاندې دعقل اوخرد په تله وسنجوو، که سمه وه وئې منو، اوکه نه له ياده ئې وباسو.

**حضرت بهاءالله فرمائي: بايد عقل چې خپلوبنده ګانوته الهي بخشش اوهديه ده. دچراغ په څير ئې په لاس کې ونيسو. اوپه هغه سره دپروردګار دخبرو تيارې ته ورداخل شو ، شايد چې دپروردګار په فضل سره دژوند چينې ته ورسيږو.۱۶**

**فَبَشِّرْ عِبَادِ الذِينَ يَسْتَمِعُونَ الْقَوْلَ فَيَتبِعُونَ احْسَنَهُ اوْلَئَكَ الذِينَ هَدَاهُمُ اللّهُ وَاوْلئَكَ هُمْ اوْلُوا الْالْبَابِ.**

**دزمر سورت(۱۷- ۱۸)،ايتونه**

پس هغو بنده ګانو ته زيری ورکړئ. چې خبرې اوري. اودښو خبرو پيروي کوي. پروردګار دداسې کسانو لاربښود دی. اوهغوې دعقل خاوندان دي.

دنمونې لپاره به دامناسبه وي. چې يوه «متشابهه»کلمه بررسي کړو. د «اور»کلمه په نظر کې ونيسی . دا کلمه هم دپيغمبرانو په وجود کې دالهي قدرت د ظهور په باره کې به کار وړل شوې ده. او هم دالهي غضب په باره کې دگناه کارانو اومنکرانو لپاره په دواړو جهانونو کې په کار وړل شوې ده.

دپيغمبرانو يو مهم هدف دخرافاتوله منځه وړل دي . وبه گورو چې حضرت مسيح داهدف ځرنگه بيان کړ:

**زه راغلی یم چې عالم په اور کې واچوم.**

**دلوقا انجيل :١٢فصل،۴٩-ايت**

---

I have come to set fire to the earth… (Luke 12:49 NEB)

په غير له دې چې خلک دخرافاتو اوتعصباتو څخه پاک شي. چې پيړې پيړې ئې په زړونو کې روزنه پيداکړې ده . دخودخواهې ، جهالت اوجدائي دپردو دسوځيدلو څخه بل څه شی دسوځيدلو لايق دی؟

په دې بيان کې د«اور کلمه» ددوه معنا ګانو لپاره په کار وړل شوې ده:

**اې زما بنده ګانو ... دغفلت له سيوری څخه درحمت سيوری ته عجله وکړئ، اودځمکې په شان تسليم شی. ترڅو دعرفان مقدس اوله عطرو ډکه هوا دوجود له ځمکې څخه راپورته شي . اوداور په څير ولړيږئ او هغه کلکی پردې وسوزوئ. او هغه حياناک خلک به دخدای سره دګرمې مينې په خاطر باقي اوژوندي پاتې شي. اولکه دهوا په څير به لطيف شي.۱۷**

**حضرت بهاءالله**

د«اور دلمبې څخه»دحضرت بهاءالله په دې بيان کې منظور څه شی دی؟

**وَكُنْ كَشُعْلَةِ النَّارِلِأَعْدَائي.۱۸**

زما ددښمنانو په مقابل کې ، داور دلمبې په شان اوسه.
کوم قوت او نیرو داور په لمبه کې پیداکولی شئ؟
داورلمبه:

- ګرمي پیداکوي(مینه اومحبت)
- سوزول کوي(نابودول)
- پاکول کوي(پاکول دتعصباتو او ګومانونوڅخه)
- قدرت او غلبه وښائي(دناملایماتو په مقابل کې مقاومت او ودریدل)

دحضرت بهاءالله په وینا کې ، کومه یوه معنی معقول تره ده ؟ البته باید له دښمنانو سره مهربانه اوسئ. اود هغو دزړونو په پاکوالی اوصفائي کې کوښښ وکړئ.
زما ددښمن په مقابل کې ترهرڅه مخکې لازمه ده.
چې دقدرت اظهار ، مقاومت او ودریدل دي.
دخطر په وخت کې ،دفداکارمؤمین لخوا دعاجزې اوزارې په ځای دشهامت او قدرت اظهار لکه دتندباد په شان دخدای دائین ددښمنانو په زړونو کې دغضب اوقهر اورلازیاتوي.

دتاریخ په کتابونو کې ددې ائین دمؤمنانو لخوا په سلهاو داستانونه دشهامت اودقدرت داظهار دظالمانو اوشکنجه کوونکو په مقابل کې درج او لیکل شوي دي.

**په دې لوی ظهور کې فکر وکړه. چې هریو په پوره شوق اورضایت سره دخپل مقر څخه دتیریدنې عزم وکړ، او دیواځینې دوست څخه ئې خپل ځانونه قربان کړل... دې لوی اعمالو ددښمن زړونه نور هم سخت کړل.۱۹ حضرت بهاءالله**

**نیکمرغه دي، هغه دقوي زړونو والا چې ددښمنانو دحملې په سبب ئې زړونه ضعیفه نه شول.۲۰ حضرت بهاءالله**

دشل زره نه زیات پیروان ددې ائین زمونږ.په وخت کې او په مخکې وختونو کې ، لکه لمبه و هونکي اورپه څیر دظالمانو په مقابل کې ودریدل. او هیڅاته ئې عذر اوزاری ونه کړئ.

هرڅومره ئی چې په هغو بلاګانې راوستې.

اوددښمنانو قهر اوغضب هرڅومره شدت اوزور پیداکړ، دهغو په زړونو کې دمینې شعلې لازیاتې شوی، په هغه اندازه چې جلادان ئې حیران کړل.

اودکرکې حسد اوافسوس اورونه ئې ددښمنانو اوظالمانو په زړونو کې په لمبو کړل.
ددوزخ اوردخدای څخه دلریوالي په معنا په کراتو سره په اسماني ایتونو کې راغلی دی . آیا دمهربان پروردګار څخه دلریوالي اوجدای څخه بل څه شی، سوځوونکې تصور کیدلی شي؟ له داسې ژوند څخه په کراتو سره نه ژوند بهتره دی. اما همیشه دجدائې له غمه سوځیدل دي.
**هغه څه چې په الهي کتابونو کې وعده درکړل شوې ده ظاهر شول . دلوی خوښې ورځ ده. اوټول باید په پوره خوښې پروردګار ته دنږدیوالي اوخوښې سرمایه ترلاسه کړي. اوخپل ځانونه دلریوالي داور څخه وساتي.۲۱** **حضرت بهاءالله**

---

❖ دحضرت بهاءالله په اثارو کې د«اور کلمه»دډیرومعناو لپاره کارول شوې ده . له هغې جملې څخه:دنفرت اور ، ددښمنې اور، دمذهبي تعصب اور ، دجهنم اور،دجدائي اور، دمینې اور،دابدي اور شعله (پیغمبرانو ته اشاره ده)،هغه اور چې دغفلت پردې سوزوي،دامتحان اور،دنفس هوا اور،دانتقام اور، دظلم اور،

دزړونو اور ، دغضب اور، دامید اور، دخدای
سره دمینې اور.



---

په الهي ایتونو کې د«اور»کلمه په کراتو سره دمینې اومحبت په معنی راغلې ده:

**دعالم زړه دالهي کلمې څخه شعله ور دی. افسوس دی. چې په دې اور سره شعله ورنشي.۲۲**
**حضرت بهاءالله**

**دمینې اومحبت اور لړیدنه ، نن ورځ په جهان کې ظاهره اوښکاره ده.۲۳**

**حضرت بهاءالله**
**باید دنور په څیر روښانه شئ. اودچراغ دونې داور په څیرشعله ورشئ.دادمحبت اوربه ، مختلف حزبونه په یو ځای کې سره جمع کړي. اودبغضونو اور دبې اتفاقۍ او «جنګ سبب کیږي»۲۴**
**حضرت بهاءالله**

دحضرت زردشت په ائین کې اور یو خاص ځای
لرل. په دې سبب شیعه ګانو به زردشتیان اتش پرست
ګڼل. په دې بیان کې حضرت بهاءالله دا اتهام ردوي.
اودهغه لوي پیام په حقانیت شهادت ورکوي:

**دحضرت زردشت په باره کې دې پوښتنه وکړه. هغه دخدای له لورې راغلی دی. او دخلکو په هدایت او لارښوونه مامور شوې ؤ . دمحبت اور دهغه په لاس بل شوی دی . دالهي محبت داور سره اودپروردګار دکتاب ، اوامرو او احکامو سره راغلی دی، ولې غافل حزب او ډلې دهغه مقام او دهغه ظهور ئې ونه پیژندل. دشیعه ډلې او حزب دخپلې نادانې په وجه هغه ظهور ردکړ.۲۵**

**حضرت بهاءالله**

متشابهه کلمات په اسماني اثارو کې دافکارو دتنوع اوښکلا سبب دي. دا تنوع که د اختلاف اومجادلې سبب نشي . دالوي امتیاز دی. ځکه چې ددې سره زمونږ دپوهاوي اوفکري قوت اوتصور دایره پراخوالی پیداکوي. بې له دې رنګا رنګ اوښکلو جامو، دجهان ادبي اثار اواشعار ، دبې ګله اوبې پاڼو ونو په څیر خپله ښکلا اوښایست له لاسه ورکوي. کله چې دژبې سره موسروکاروي، کولی شو. دیوې کلمې مختلفې معنا ګانې وکړو .

مثلاًد«تفسیر»او«تأویل»ترمنځ تفاوت په باره کې کیدلی شي یوکتاب ولیکل شي. اومختلف نظریات حتی متضادنظریات وړاندې شي. په دې بحث کې کوم ټکی چې خاص اهمیت لري. د ویونکي نیت اودهغه دوینا نتیجه ده. ځکه چې تأویل اوتفسیر په دوه ډوله دی: مثبت اومنفي که دپروردګاروینا دخپلې خودخواهې په وجه دخلکو ترمنځ دجدائي لپاره اودحقیقت څخه دانکار لپاره وکاروو . دخدای په درګاه کې مسئول اودمجازاتو مستحق یو.



---

له دې کبله په تأویل ، تفسیر اوتشریح کې توپیر نشته . هرنوم چې خپلې وینا ته کښېږدو، نتیجه ئې یوشان ده. مثلاً حضرت مسیح وفرمایل: چې له اسمانه راځي. که «اسمان»تأویل نه کړو. یعنی باطني معنی ئې ونه کړو. مونږ غلطي کوو. پس په داسې حالت کې تأویل او تعبیر لازم دی . نه تفسیر.

**په الهي کلماتو کې دقت په روښانه توګه وښائي. چې تفسیر او تأویل دواړه د الهي ائین دثبوت لپاره لازم**

**او ضرور دي. امّا تأويل اوتفسير دواړه د مؤمنانو دجدائي په نيت اودپروردګار دکلام څخه دانکار لپاره دواړه منع دي. له دې کبله دتفسير ،تشريح اويا تأويل دکلماتو ترمنځ توپير نشته . اما که وينا مو دپاک نيت له مخې دحقيقت داثبات لپاره وي. که هغې ته تفسير ووايو، اويا تأويل، دواړه دزړه پورې دي. ځکه چې که پخپله لار کې غلطې وکړو . باالاخره زمونږ غلطي راښکاره کيږي. او مونږ سمې لارې ته ځو . په دې لاندې بيان کې حضرت بهاءالله مونږ ته رازده کوي. چې تأويل يوشان نه دی.دتأويل لپاره ډيرې مرتبې دي . يوتأويل دحق درضا لپاره دی، اوبل تأويل دحق په ضد دی...۲۶**

دعلم هدف «معلوم» ته رسيدل يعنی دحقيقت پيژندنه ده:

**دټولو تأويلاتو ، تفسيرونو اودټولو کلماتو اوايتونو دمعنی ګانو مقصد دادی. چې دحق معرفت حاصل شي.۲۷**

**حضرت بهاءالله**

## دکهف سورة لپاره مقدمه

## (سريزه)

په اسماني اياتونو کې ، دتشبيه اوتشابه له نظره دکهف سورة اوديوحنا مکاشفات لمړی درجه مقام لري.

متشابه ويناوې په دې اسرارامیزه دوه اثرونو کې دکمال لوړې درجې ته رسي.

❖ دامطلب په ۲۲فصل کې«محکم»او«متشابه»ایتونه یوځل بیا دبحث لاندې راغلي دي.



شاید په دې سبب چې ،په تیرو پیړیو او زمانو کې ، دې دوه لیکنو دبلې هرې لیکنې دخلکو دکنجکاوي حس زیات پارولی وي.ډیرو متفکرینو اوپوهانو په دې لاره کې قدم ایښی دی، کوښښ ئې کړی دی. دفکر او تصور په قوت ددې دوه غرونو لوړې څوکې ته چې په زړونو کې ډیر رازونه پراته دي ورسي. شاید

هغوې خزانې پيداکړي. اودعلم او ادب مينه والو ته ئې ورانديې کړي.
په بهائي اسماني اثارو کې ، دکهف سورة جزئيات تفسيرشوي نه دي . هغه اثار يواځې ددې سورة د ځنيو ايتونو په باره کې مونږ ته کونجي راکوي:
**قل هذا لکهف الّذی فيه آووا فتية البقاء اذ قالوا ربّنا آتنا من لدنک رشدا و انّک انت الغفور الرحيم و سمعنا ندائهم و آويناهم فيه و جعلناهم تذکرة للعالمين .قل هذا لَغار الّذی به حفظ محمّد رسول الله عن ايدی المبغضين ...٢٨ حضرت بهاءالله**
ووايه! داهغه غار دی. چې په هغه کې د(بقاء ځوانانو)پناه واخيسته اووئي ويل:
اې پروردګاره!مونږته سمه لار وښايه. ته بخښوونکې اومهربان ئې. مادهغو غږ واوريدل اوهغو ته مې په هغه غار کې پناه ورکړه. ترڅو دجهان خلک دهغوې دبرخليک څخه پند واخلي.ورته ووايه! داهمغه غاردی. چې دخدای رسول په همغه غار کې له دښمنانو څخه امان پيداکړ...
**انّ اصحابَ الکهف والرّقيم عباد فازوا بالفوز العظيم و آووا الی کهف رحمة ربّک الکريم رقدوا عن الدّنياء و استيقظوا بنفحات ا لله و التجأوا الی ذلک الغار ملاذ**

**الأبرار و ملجأ الأخيار شريعة ربّک المختار و شمس الحقيقة تقرضهم ذات اليمين و ذات الشّمال ...۲۹**

**حضرت عبدالبهاء**

اصحاب کهف اورقيم هغه بنده ګان ؤ. چې لوی فضل اوعنايت ته ورسيدل . هغوې دکهف په غار کې دمهربان خدای په حکم سره پناه واخيسته. له دنيا څخه په خوب ويده شول (خوب ته لاړل)اوپه الهي نفحاتو سره بيدارشول. په هغه غار کې چې دپروردګار دائين دنيکانو پټن ځای دی پناه واخيسته . د«حقيقت لمر»هغوې په ښي اوچپ طرف باندې جداکړل.

سورة کهف دالهي اِسراراميزترينو اثارو څخه دی. اوډيرې معناګانې په هغه کې پټې شوي دي. حضرت باب په هغو ايتونو کې چې پخپله تفسير ته ضرورت لري. ددې سورة ځنې ايتونه دخپل ظهور دښودلو دصورت سره مرتبط اواړوند ګڼلي دي.

دکهف سورة داستان کیدلی شي مختلفو ادیانو پورې
ورته اړیکه ورکړل شي.
ددې کتاب بحث په لمړۍ درجه کې داسلام
د«کهف»پورې اړوند دی. اودهغه
«کهف»داوسیدونکو مسلمانانو پورې مربوط دی.
**دکهف اصحاب ستا درسول اصحاب دي، دمحمد چې دانبیاو خاتم دی. ۳۰حضرت باب**

## دکهف داصحابو

## داستان

داصحاب کهف (دغار اوسیدونکو)داستان د۱۸سورة
د۹-ایت څخه شروع شوی دی:
**أَنْ حَسِبْتَ أَنَّ اصْحَابَ الْكَهْفِ وَالرقِيمِ كَانُوا مِنْ آيَاتِنَا عَجَبًا ؟ دکهف سورت،۹-ایت**
آیا فکر دې کړی دی. چې داصحاب کهف په داستان
کې عجایب اونښې زما لخوا ایښودل شوي دي؟
توضیح: دغار داوسیدونکو اصلي داستان داسلام
دظهور نه مخکې وجود لرل.
قران مجید هغه داستان ته معنوي معنا ورکړه . اوپه
دې ایت کې مونږ ته خبرراکوي. چې په هغه کې ډیر
اسرار او نښانې پرتې دي. ښه به وي چې دهغو
اسرارو د معنوي معنا په کشفولو کې کوښښ وکړو.

**۱۰- ایت: اِ ذْ أَوَى الْفِتْيَةُ اِلَ□ الْكَهْفِ فَقَالُوا رَبنَا آتِنَا مِن لدُنكَ رَحْمَةً وَهَيِئَ لَنَا مِنْ امْرِنَا رَشَدًا.**

(یوه ډله ځوانان غارته داخل شو)کله چې ئې په غار کې پناه واخیسته وئي ویل:

اې پروردګاره!په مونږ لطف اورحمت وکړه ،

اوځرنګه چې تاته ښه ښکاري په همغه ترتیب مونږ ته هدایت وکړه.

توضیح:«ځوانان»هغه مؤمنانو ته اشاره ده، چې ایماني قوت ئې ډیر زیات وي. دې ځوانانو اسلام دخپل زړه څخه منلی دی. اوپه ډیر شوق اوذوق ئې دهغه ائین دحکمونو او امرونو په اجراکولو ئې شروع کړي وي. هغو مؤمنانو دپروردګار فرمان ته پخپلو غوښتنو ترجیح ورکړې ده. اوله خدایه غواړي چې ددوې ټول ژوند دالهي امر او ائین سره برابر وي.

---

«غار»په دې ایت کې دپروردګار امر اوائین ته اشاره ده. په همغه ترتیب چې «غار»زمونږ جسم اووجود له طوفان ، سیلاب اوله ځناورو نه ساتي، دپروردګار ائین ته پناه وړل ، زمونږ روح، زمونږ ژوند او روزګار دټولو بدو حوادثو څخه او دبدکرداره خلکو دازار اواذیت څخه په امن او امان کې ساتي.
حضرت بهاءالله ته د«ځوان» په کلمه اشاره اوخطاب کیږي:

**قل اتظنّون فی انفسکم بانّ هذا الفتی ینطق عن الهوی .**

**۳۱ حضرت بهاءالله**

ووایه!آیا ګومان کوې چې داځوان به دبلوا څخه خبرې کوي؟

**۱۱- ایت: فَضَرَبْنَا عَلَى آذَانِهِمْ فِي الْكَهْفِ سِنِينَ عَدَدًا.**

په هغه غار کې مې دمعلوموکلنو لپاره هغوې دتازه خبرونو داوریدلو څخه لرې وساتل.
توضیح: دا«معلوم کلونه»داسلام زرکلن عصر اوزمان ته اشاره ده.په همغه ترتیب چې مطرح شول. په اسلام کې دوحې او الهام دوره دامام حسن عسکری

«یولسم امام»په رحلت سره ،په ۲۶۰هجري قمري کې پای ته ورسیده مخکې له هغه تاریخ نه مسلمانانو ترزروکلونو پورې نوې خبردپروردګار لخوا وانه وریدل.

**۱۲- ایت: مبَعَثْنَاهُمْ لِنَعْلَمَ أَيَّ احْصَ لِمَا لَبِثُوا امَدًاالْحِزْبَيْن.**

وروسته مې هغوې راپورته کړل ترڅو وګورم چې کوم یو ئې له دې دوه ډلو څخه کولی شي دخپل اقامت موده په دې غار کې حساب کړي.

توضیح: «دوه ډلې»دوه نوع مسلمانانو ته اشاره ده: وفادار اوبې وفا. داایت ددې ښکارندوې کوي چې د«ځوانانو»مه واره کومه بله ډله په دې غار کې اوسیدل. داټکی به په ۱۵-ایت کې روښانه شي. په دې ایت کې مهمه مسئله په غارکې د خلکو دتوقف موده ده. ددې معّما حل به هم په بل ایت ددې داستان کې پیداکړو:

**۱۳-ایت: نَحْنُ نَقُصَّ عَلَيْكَ نَبَاهُم بِالْحَقِّ انهُمْ فِتْيَةٌ آمَنُوا بِرَبِّهِمْ وَزِدْنَاهُمْ هُدًى.**

داداستان چې درته وایم سم دی. هغوې ځوان ؤ چې په پروردګار ئې ایمان راوړ اوپروردګار هغو ته په ایمان درجه ورکړه.

توضيح: داايت د«ځوان» دکلمې معنی روښانوي.
اومونږ ته وښائي چې ځوان هغه څوک دی. چې دايمان قوت څخه برخمن وي. داډول مؤمينان هميشه دپروردګار دفضل اوبخشش لاندې وي.

**۱۴-ايت: وَرَبَطْنَا عَلَ قُلُوبِهِمْ اذْ قَامُوا فَقَالُوا رَبنَا رَبَّ السَّمَاوَاتِ وَالْارْضِ لَن ندْعُوَ مِن دُونِهِ الَهًا لَقَدْ قُلْنَا اذًا شَطَطًا.**

دهغو زړونه مې محکم اوکلک کړي دي. دخپل ځای نه پورته شو اووئې ويل :
زمونږ خدای ، ځمکه او اسمانونه پيداکړي دي. په غير د خدای څخه بل څه شی په ياد رانه وړو اوکه په غير له هغه بل څه شی په ياد راوړو،په غلطې کې تللي يو.

توضیح: داایت هم دځوانانو یعنی دپرهیزګاره مؤمنو مسلمانانو په صفت کې دي. چې دزړه له کومې دخدای په وحدانیت عقیده من دي. اوله دوه مخي توب اودروغجنو اوریاکارۍ څخه خلاص وي.

**۱۵- آیت: هَؤُلَاء قَوْمُنَا اتخَذُوا مِن دُونِهِ آلِهَةً لوْلَا یَاتُونَ عَلَیْهِم بِسُلْطَانٍ بَیِّن فَمَنْ اظْلَمُ افْتَرَی عَلَ□ اللّٰهِ کَذِبًا مِمن.**

اما ددې قوم یوه ډله خلکو بل خدای ځآن ته ټاکلی دی. داسې یو خدای چې دهغوې په روح کوم تسلط نه لري. ددې نه لوی ظلم بل څه شی کیدلی شي. چې په خپل خدای پورې دروغ وتړي؟

**توضیح:** په ۱۲-ایت کې په دوه ډلو خبره شوې وه. ۱۳ او۱۴-ایتونو اوله ډله معرفي کړې وه. داایت ددوهمې ډلې خبره کوي.

ښکاره ده. چې په هرامت کې دروغجن اودوه مخې خلک ؤ اووي به. داهغه خلک دي. چې دخدای نوم په ژبه اخلي، اما زړونه ئې په مکر او ریاککړدي .دادوه مخي بل خدای په خپل زړه کې پټ ساتي. اوپه همیشني ډول دهغه عبادت کوي. هغه خدای ددوې نفس دي. او دهغوې میل ددنیا پرستش اوبنده ګي ده.

دادوه مخي ، خپل ځانونه دغار اوسیدونکي ګڼي، اما
په رښتیا سره دغار څخه یعنې په پروردګار باندې له
ایمان څخه ډیر لرې دي.
**۱۶- ایت: وَاذِ اعْتَزَلْتُمُوهُمْ وَمَا يَعْبُدُونَ الا اللهَ فَاوُوا الَ□ الْكَهْفِ يَنشُرْ لَكُمْ رَبكُم مِّن رَّحمته ويُهَيِّئ لَكُم مِّنْ امْرِكُم مِّرْفَقًا.**
هرکله چې ددې ډلې له مصاحبت او خبروڅخه خلاص
شوئ. غار ته پناه یوسئ. په هغه ځای کې به
پروردګار ،تاسې په خپلو رحمتونو اوبخششونو کې
غرق کړي. او«امر»به ستاسې لپاره اسان اوپه ډیر
راحت کې کړي.

توضیح: دفرار اوتیښتې یواځنې لار دمکاروخلکو څخه، غار ته پناه وړل دي، یعنې خپل خدای په یاد راوړل اودهغه په ساتنې اوحمایت توکل اواتکاء کول دي.

**۱۷- ایت: وَتَرَی الشَّمْسَ اذَا طَلَعَت تزَاوَرُ عَن كَهْفِهِمْ ذَاتَ الْيَمِين وَاذَا غَرَبَت تقْرِضُهُمْ**
**ذَاتَ الشِّمَالِ وَهُمْ فِي فَجْوَةٍ مِّنْهُ ذَلِكَ مِنْ آيَاتِ اللهِ مَن يَهْدِ اللهُ فَهُوَالْمُهْتَدِي وَمَن يُضْلِلْ فَلَن تَجِدَ لَهُ وَلِيا مرْشِدًا.**

په سهار کې لمر ګوری. چې دغار ښي خواڅخه راخیژي. او دلویدو په وخت کې هغوې سره جداکوي. اوچپ خواته پاتې کیږي، په داسې حال کې چې هغوې هم په همغه پراخه محیط کې دي. دادپروردګار دنښو او ایتونو څخه دي. دهرچا چې خدای رهنما وي. سمه لاره به پیداکړي. اوهرچاته چې دګمراهی اجازه ورکړي. هیڅوک هغوې سمې لارې ته نشي راوستلای. اونه به دهغوې لپاره کوم یاراو مددګار وي.

## په«وَتَرَی الشَّمسَ»کې پراته رازونه اواسرار

په مخکني ایت کې ډیر رازونه پټ دي. یو ځل بیا دحضرت بهاءالله بیان چې په څلورواډي کتاب کې ددې ایت په باره کې دی. له نظره تیرکړو:
که څوک ددې یو ایت داشارو نه خبرتیا ترلاسه کړي ، دهغه لپاره کافي دی . همدادی چې دداسې اشخاصو په صفت کې فرمائي:

**"رِجَالٌ لا تُلْهِيهِمْ تِجَارَةٌ وَلَا بَيْعٌ عَن ذِكْرِ الله"**

**[دنور سورة ۳۷-ایت[۳۲]**



---

لمړنې پوښتنه داده: په دې بیان کې د خورشید منظور:«وَتَرَى الشَّمْسْ»(لمروینی)څه شی دی؟
خورشید(لمر) یوه متشابهه کلمه ده چې په الهي اثارو کې مختلفې معناګانې لري . یوه له هغو معناګانو څخه

چې په ډير ايتونو کې راغلې ده. دهغو له جملې څخه
په دې ايت کې ، دخدای «پيغمبر»دی. چې دالهي
ارادې اودامر داسمان څخه ځليږي. چې پخپله رڼا کې
خلکو ته پوهاوې وروبخښي اودربښتينې نور لټوونکو
ته دهغو دسترګو نه دجدائي توری پردې لرې کړي.
په دې بيان کې حضرت باب خپل ځان
دحقيقت«لمر»ګڼي:

**په دې«عصر»اوکور کې دحقيقت «لمر»دبابيت په نوم راختلی...۳۳ حضرت باب**

**حضرت مسيح فرمائي:**

**له اسمانه به لمر پرمونږ راوخيژي. ترڅو په هغو خلکو چې په تياره اودمرګ دسيوري لاندې اوسيږي وځليږي. هغوې به دصفا اوارامتيا خواته بوځي.**

**انجيل لوقا،اول فصل،(۷۸- ۹۹)ايتونه**

**دحقيقت «لمر»مثال دلمر په شان دی... مثلاً يووخت د«حقيقت لمر»دابراهيم خليل الله په نوم وځليد، اوله هغه وروسته دموسی کليم په نوم وځليد. او بيا همغه د«حقيقت لمر»دعيسی په نوم وځليد . هغه څوک چې دحقيقت طلب کوونکي ؤ. هغه حقيقت ئې په هرځای کې وليد. اوخپل رب ته سجده کوونکي شو. اما هغه چې دابراهيم پورې مربوط ؤ کله چې دحقيقت لمر په**

**«طور»راوخوت اودموسی حقیقت ئې روښانه کړ.محتجب اوحیران شول.۳۴**

**حضرت عبدالبهاء**

په ځنې ایتونو کې دحضرت بهاءالله ظهور د«لمر دراختلو»سره تشبه شوی دی:

۲۶۵ ۱۰فصل: دکهف سورة،

لمړی برخه

---

---

**ووایه!چې دپوهې او(دانائي)لمر راختلی، دلیدنې لمر معلومداردی.نیکمرغه هغه څوک دي. چې ورغلل،**

**وئي ليدل، او وئي پيژندل.۳۵**
**حضرت بهاءالله**
**اشرقت شمس القدم من افق العالم .**
**۳٦ حضرت بهاءالله**
پخوانی لمر دعالم دافق څخه وځليد.
**عرّف يا الهِي عبادک الشّ مس الّتي اشرقت عن افقِ قضاك وتقديرِ ک .۳۷**

**حضرت بهاءالله**
اې پروردګاره!هغه لمر چې ستا دتقدير اوقضا له افق څخه راختلی دی. خپلو بنده ګانو ته وروپيژنه.
**«اې بنده ګانو!خپل ځانونه ددې ښکاره لمر څخه مه بې برخې کوي.۳۸ حضرت بهاءالله**
حضرت باب دحضرت بهاءالله په اړه داسې وويل:
**مَثَلهُ جلّ ذکره کَمَثَل الشّمس ...۳۹**
**حضرت باب**
دهغه مثال دې لوی وي دهغه ذکردلمرپه مثال دی...
«لمرلويدل«زمونږ دعصر ددوه پيغمبرانو دعمر دختميدو په معنی راغلی دی:
کله چې زما دجمال لمر په پريوتلو شي...۴۰
حضرت بهاءالله

وروسته ددې لمر دپريوتلو...۴۱
حضرت باب
حضرت بهاءالله ته داشارې له مخې:
**من اول ما يطلع شمس البهاء الى□ ان يغرب .۴۲**
**حضرت باب**
(دبهاء دلمر)دراختلو دشروع نه دهغه ترپريوتلو پورې.

---

❖ دهغه مؤمن په ځواب کې چې د«لمر»دمعنا په اړه پوښتنه کوي، حضرت بهاءالله مفصل ايتونه په عربي کې نازل کړي دي، له هغې جملې نه دالاندې ايت:

**ثم اعلم بِاِن للشمس الّتي نزِّلت فى□ السورة المباركة اطلاقاتٍ شتى□ و انها فى□ الرتبة الأوّلية..نفس المشيةالأوّليّة و اشراق الأحديّة تجلت بنفسها على□ الآفاق و استضاء منه مَنْ أقبل اليها كما ان الشمس إذا طلعت يحيط اشراقها على□ العالم ا لا الأراضى□ التى□ احْتَجَبتْ بمانعٍ..ثم فى□ مقام تُطلَقُ على□ أنبياء الله و صفوته لأنّهمشموس أسمائه و صفاته بين خلقه لو لا هم ما استضاء أحدٌ بأنوار العرفان.** **دمباركه الواحو مجموعه،(۶ او۷) مخونه**

دنظراړوند ایت په هکله (**وَتَرَ الشَّمْسَ**)ایت کې دوه ټکي کارول شوي دي. چې دپیغمبرانو او لمر ترمنځ ورته والی اوشباهت ښائي. لمړی دا چې دهرپیغمبر ظهور دلمر په شان راختل اوځلیدل، دخدای دلويو نښانو څخه دی. ( **ذَالِکَ مِنْ آياتَ اللّهِ**) . دوهم داچې دپیغمبرانو دظهور په وخت کې ، خلک دبل هروخت نه دپروردګار هدایت ته ډیره اړتیا لري، ځکه چې په تقلید اوګومان کې ککړوي.(**مَن يَهْدِ اللّهُ فَهُوَ المُهَتَدِئ**). په دې بیان کې ، حضرت بهاءالله د(هدايت اولمر) کليمي دقران دايت سره په ورته والي اوشباهت کې کارولي دي:

**ټولوخلکوپه هرظهورکې اعتراض کړئ دی.**
**اود(هدايت په لمر) هدایت نه شول.۴۳**

**حضرت بهاءالله**
**وَتَرَى الشَّمْسَ اذَا طَلَعَت...مَن يَهْدِ اللّهُ فَهُوَ الْمُهْتَدِي.**
**دکهف سورت،۱۷-ایت**

په دي حديث کې ، رسول اکرم خپل ځان دلمر سره اوحضرت امير دسپوږمې سره تشبه کړی دی :

**انا کالشمس و عل□ کالقمر . ٤٤**

زه دلمر په شان یم اوعلي دسپوږمې په څیر دی.

حضرت باب چې هم ئې دپیغمبر رسالت اوهم ئې دامام مقام لرل په دې ايت کې دلمر اوسپوږمې دواړو سره تشبه شوی دی:

**وانا نحن قد جعلناک عل□ العالمين شمساً مضيئاً و قمراً منيراً ...٤٥ حضرت باب**

ته مې دجهان خلکو لپاره ځلیدونکی لمر او رڼا ورکوونکی سپوږمې وګرځولې ...

په دې حديث کې حضرت امير ، حضرت باب دهغه لمر سره تشبه شوی دی.

چې د«خپل مغرب»نه راخیژي:

**ان الذی یصل□ خلفه عیس□ ، هوالشمس الطالعه مغربها.**

هغه څوک چې په هغه پسې حضرت عیسی لمونځ کوي. هغه «لمر» دی. چې دخپل مغرب څخه راخیژي.

(دلمر راختل دخپل مغرب)نه، دي مطلب ته اشاره ده: د«امامت لمر» دامام حسن عسکری په رحلت سره غروب وکړ، (لمر ولویدل) اووروسته دزروکلونو ، همغه لمر په نوي نوم سره (سیّد باب)د(خپل مغرب)څخه یعنې له همغه نسل اوله همغه ائین څخه راوځلید.(هغه څوک چې حضرت عیسی ورپسې لمونځ کوي)دحضرت باب څخه د حضرت بهاءالله پیروۍ ته اشاره ده.حضرت بهاءالله دحضرت باب له پیروانو څخه ؤ اودهغه څخه اودهغه دائین څخه ئې په دفاع اوملاتړ کې کوښښ کړی دی. دحضرت بهاءالله ظهور دحضرت مسیح دبیرته راتګ وعده پرځای کړه.

دحضرت بهاءالله دوينا په اساس په «څلوروادي»کې د«**وَتَرَی الشَّمْسَ**»په ايت کې يوه بله معنا هم پټه ده. اګر چې هغه معنا ئې په صراحت سره ويلی نه ده، ولې په نظر داسې راځي چې داډول به وي:

دپيغمبرانو دظهور په وخت کې ، ډير خلک دحقيقت دلمر دوړانګو څخه ناخبره وي. او دتصوراتو اوتعصباتو په تيارو کې غرق وي. اما ددوې په منځ کې داسې کسان شته دی. چې هميشه بيدار وي. اودحقيقت اوربنتينولی دګوهرو په لټه کې کوښښ کوي.

دحضرت باب دظهور په وخت کې دغار اوسيدونکي داډول هوښيار ؤ بې له دې چې دموعود دظهور خبر واوري، الهي رڼا ئې په هغه ځوان کې وليده. اوهغه ئې وپيژاند. او باالاخره هغه ټولو دپټنګانو په څير دهغه جمال په وړانګو کې ځانونه له لاسه ورکړل. هغوې لمړي کسان ؤ چې په قائم موعود ئې دايمان راوړلو په خاطر نوې ژوند پيداکړ. اودوې په «حروف حيّ»ونومول شو.قدّوس ، باب الباب اوطاهره دهغه مؤمنانو دسرکسان ؤ.

---

❖دمؤمنينو داډله (۱۸)نفره ؤ دحروف (حيّ)شماره دابجدو په حساب ۱۸تنه ؤ.

---

ويښ اوبيداره مؤمنين بحث اوحديث ته اړتيا نه لري.
په هرځای کې چې وي دپروردګار موعود دلمر په
څير ر وښانه اوښکاره ويني . آيا روښانه لمر دځپل
ثبوت لپاره دليل اوبرهان ته اړ دی؟
**لا تسئل الدليل عن الشّمس و اشراقها لان دليلها هو ضيائها و انوارها .٤٦حضرت بهاءالله**

دځلیدونکي لمر دوجود داثبات لپاره دلیل نه غوښتل کیږي. دهغه دوجود دلیل پخپله)دهغه وړانګي اوروښنائي ده.

د«**وَتَرَالشَّمْسَ**»ایت اړوند ځیني نور اشارات اونښي:

- دغار ښي خواته دلمر راختل دحضرت باب ظهور ته دالهي امر دمشرق څخه اشاره ده.
- په یوپراخه محیط کې دغار داوسیدونکو یوځای کیدل، دمؤمنینو پناه وړل هغه موعود ته دیوائین دسیورې لاندې ژوند کولو ته اشاره ده.
- دغاردځینو اوسیدونکو جداوالی اودهغوې راوړل دغار چپې خواته دلمر لویدو په وخت کې هغو مؤمنانو ته اشاره ده. چې دحضرت باب درسالت دختمیدو وروسته یعنی دهغه لمر دغروب یا«لمر لویدلو» وروسته دیوبل روښانه لمر دراختلو دپروردګار دلوړ اوروښانه افق څخه، (حضرت بهاءالله )ئې ونه پیژندل. اوچپ خواته ئې تمایل پیداکړ.او واغوښتل.

دحضرت عبدالبهاء دوینا په اساس دې ایت ته داشارې له مخې ، دوخت موعود وروسته یعنی دپروردګار دارادې له اسمانه (دلمر راختلو)دغار اصحاب په ښي اوچپ طرفونوسره جداکړل:

**شمس الحقیقة تقرضهم ذات الیمین و ذات الشمال .٤**

دحقيقت لمر هغوې په ښي طرف اوچپ طرف يوله بله جداکوي.

---

❖ دقران په ټول کتاب کې ډير ايتونه دخلکو جداکولو ته دموعود دظهور په وخت کې اشاره کوي دهغې جملې ايتونو څخه ۴۰: ۴۴، ۷: ۴۲، ۲۱: ۳۷په دې موضوع په تفصيل سره په (۱۹ او۲۰) فصلونو کې بحث شوی دی.





---

---

دواقعې ټول سورة زمونږ دعصر دلوی پيښې په اړوند يعنې ددوه پيغمبرانو ظهور دخدای په نامه سره دی. دې مسيح (په قافيه برابر)سورة په ډيرو ښکلو اوپه زړه پورې جملو کې دې لوی واقعې ته اشاره کړې ده. د(ښي اوچپ اصحابو) برخليک ته يعنې ددې ائين منکرينو اومؤمنينو ته ئې دجنت اودوزخ تشريح ورکړې ده.

- **ذَالِکَ مِنْ آیاَت الله**(هغوې دپروردګاردایتونواونښانو څخه دي).(دکهف سورة ۱۷-ایت).مقصد له دې بیان څخه څه شی دی؟په هرزمان اوعصر کې دپیغمبرانو برتري په نورو باندې لکه دځلیدونکي لمر برتري دشمع په لړزانه وړانګو باندې وي. په داسې حال کې ، څومره ډېر عالمان اوزاهدان دي. چې ددې لمر دلیدلو اوپیژندلو څخه عاجز دي. دڅومره حیرانتیا خبره ده. چې یولیدونکی دې، دجهان رڼا کوونکی لمر روښنائي ونه ګوري. او هغه دې ونه پیژني . دحضرت بهاءالله دوینا په اساس پروردګار دهر ښکاره څخه ، ښکاره تر دی. اودهرپټ څخه پټ دی. دغه حیرانوونکې حقیقت دهغه په پیغمبرانو کې هم صدق کوي.

دمجتهدینو یوې ډلې ، دحضرت باب لپاره دزجر او زندان حکم دهغه بې ګناه اومظلوم ځوان په حق کې صواب (سم اورښتیا) وګڼل. او باالاخره دهغه دوژلو او دقتل دستورئي په پوره اطمنان اوډاډ سره ورکړ. بلې ډلې مجتهدینو تحمل ، دربدری فقر ، شکنجه او عذاب ئې دهغه موعود په خاطر دشاتو اوشکرو په شان پخپل ځان ومنل. اوپه پوره مینې سره ئې په هغه

لار کې ځانونه قربان کړل. آیا په غیر له خدای نه بل
څوک په دې لوی راز پوه دي؟ آیا له دې بل څه شی
حیرانوونکې تصورکیدلی شي؟ که ددنیا ټولې معجزې
راټولې کړو ، ددې لوی معجزې په نسبت په دریاب
کې دیوڅاڅکي په څیر دي:

**ذَلِكَ مِنْ آيَاتِ اللهِ.**

**دکهف سورة،۱۷-ایت**

هغه دپروردګار دایتونو اونښانو څخه دي.

- دکهف دسورة(۱۷- ایت)چې دحضرت بهاءالله دوینا په اساس دډیرو رازونو لرونکی دی. په دې بیان سره پای ته رسیږي:

«دهرچاچې خدای رهنما وي، سمه لاره به پیداکړي. اوهرچاته چې دګمراهې اجازه ورکړي،هغه به مرستندوي اویارونه لري. چې سمې لارې ته ئې راولي».

دابیان یوځل بیا مونږ ته رازده کوي چې مونږ ته هدایت کول دخدای په لاس دي. که دزړه دسترګو نه پردې لرې نه کړو، هیڅکله به نوی راختلی لمر ونه ګورو . ځکه چې مهربان اوعادل خدای دخپل جمال ښکلا دنامحرمو اوتیارې خوښوونکوڅخه د زرو پردو شاته پټ کړي. د«لمر درنا»رابطه دبهائي ائین او(بهاءالله)دظهور سره چې د(خدای دنور)په معنی ده. دنور په سورة کې دڅو ایتونو له مخې وړاندوینه شوې ده. داایتونه به په بل فصل کې وڅیړل شي.

## دداستان پاتې برخه

**۱۸- ایت:وَتَحْسَبُهُمْ ایْقَاظًا وَهُمْ رُقُودٌ وَنُقَلِّبُهُمْ ذَاتَ الْیَمِین وَذَاتَ الشِّمَالِ.**

تصورکوې چې (دغار اوسیدونکي)بیداردي، اما په حقیقت کې په خوب بیده دي. مونږ هغه ښي خواته اوچپې خواته واړول.

توضیح:دغاراوسیدونکي، یعنی دمخکنیو ادیانو پیروان ، دنوې پیغمبر دپیداکیدلو په وخت کې ، په ظاهر کې بیداردي، اما په باطن کې په خوب ویده دي. دالله پیغمبران هغه وخت راځي. چې دخدای نه خلک غافله شي. او هغه دسمې لارې رهنمایان اوپیغام راوړونکي دازادې شپیلې وهي. ترڅو وده اوغافلان(لوی خبر)دزړه په غوږونو واوري. اودتیاره غارنه خلاصون پیداکړي.

**قد اتی یوم القیام والغافلون فی نومٍ عجیب، قد ظهر السرّالمکنون والمعرضون فی وهمٍ عظیم، قد ارتفع صوت العندلیب والنّاس اکثرهم من الغافلین، ینادی لسان العظمة ولکن القوم اکثرهم من الهائمین .٤٨**

**حضرت بهاءالله**

دپورته کیدلو ورځ رارسیدلی ده. اما غافلان په عجیبه خوب کې پراته دي .پټ راز ښکاره شوی ، امّا مُعرضان په خیالونو او ګومانو کې غرق دي.

دالهي بلبل غږ پورته دی، اما ټول خلک غافل دي.

ډېر خلک غافل دي. پروردګار په ډېر عظمت سره غږ کوي، اما ډېر خلک په سرګردانې اوحیرانتیا کې دي.
**په هغه ورځ به دغله په شان راشم . نیکمرغه هغه څوک دي. چې بیدار دي.**
**حضرت**
**مسیح(مکاشفات یوحنا،۱۶فصل،۱۵-ایت**
**مواظب اوسئ!اګاه اوسئ!...توجه وکړئ...مه پرېږدئ. چې موعود تاسې وده پیداکړي . زه هغه څه چې تاسې ته وایم، ټولو ته وایم: توجه وکړئ!**
**حضرت مسیح مکاشفات**
**یوحنا،۳فصل،(۳۷- ۳۳)،ایتونه**
**د۱۸-ایت پاتې برخه: وَكَلْبُهُم بَاسِطٌ ذِرَاعَيْهِ بِالْوَصِيدِ لَوِ اطَّلَعْتَ عَلَيْهِمْ لَوَلَّيْتَ مِنْهُمْ فِرَارًا وَلَمُلِئْتَ مِنْهُمْ رُعْبًا.**
د«هغوې»سپي چې غار ته دننوتو په لار کې پروت اومخکې پښې ئې مخې ته ایستلي دي. که دامنظره وګورئ. بیرته به راوګرځئ. په ویري او وحشت سره

به راو تېښتئ.         دغار داوسیدونکو په داستان کې سپی ډېر مهم نقش لري، ترهغه حده چې د«کهف داصحابو»سپي دفارسي اصطلاح جوړه شوه. مهم سوال دادی : چې د«سپي»څخه منظور څه شی دی؟ اوهغه کوم کسان دي؟

ددې معّما دحل نه مخکې ښه به وي، چې دایوټکی په نظر کې راوګرځوو. چې زمونږ وظیفه دخدای ټولو بنده ګانو ته احترام دی ، حتی که هغوې ډېر ګناهکاره هم وي .

**حضرت بهاءالله فرمائي چې دسمې لارې لټوونکي هیڅکله ګناهکارانو ته په سپکه سترګه نه ګوري، ځکه چې هیڅ یو دخپل برخلیک څخه خبرنه دی. څومره ډېر ګناهکاران به وي. چې دمرګ په وخت کې به په ایمان مشرف شي . اوڅومره ډېر مؤمنان به وي. چې په وخت دمرګ کې به دایمان نه بې برخې شي.۴۹**

دالهي حکم په اساس،هیڅوک دهیچا دسپکولو حق نه لري.یواځې پروردګاردډې قانون څخه مستثنی دی.هغه حق لري هرڅه چه غواړي ووائي اوهرڅه چې غواړي وئي کړي.ځکه چې هغه خپل ځان **"یفعل ما یشاء و یحکم ما یرید"** ګڼي.

دبحث په شروع کې ښه ده. چې پوښتنه وکړو. چې
دلته دسپي دلرلو څخه مقصد څه شی دی؟
یومهم هدف دخطر نه ساتنه اودامنیت احساس دی.
ښه سپي دښمن پیژني. اوپه وخت سره دخپل صاحب
کومک ته ځان رسوي . فرض کړئ چې سپي
دصاحب دساتنې په ځای دکور په دروازه کې ودریږي
اوخپل صاحب دکور نه دوتلو څځه اونور کورته
دداخلیدلو څخه منع کړي ددې نتیجه به څه شی وي؟
داصحاب کهف سپی چې دغار په مخ کې ولاړ دی، په
اوله درجه کې لوی پیشوا ته اشاره ده. چې خپل ځان
دټولو څخه مخکې ګڼي اوځان دجهان دمسلمانانو
ساتونکی حسابوي. همداسې یوپیشوا دحضرت باب په
زمانه کې دارنګه یومقام لرل ؟په ډیر احتمال سره ،

داپیشوا، شریف سلیمان چې دمکې شریف ؤ.
دحضرت باب لخوا ئې چې دټولو مسلمانانو درئیس په عنوان ئې ، څه شیعه اوڅه سني وي. ځانګړی لیک ترلاسه کړ. په هغه لیک کې له ده څخه اودمکې ټولو اوسیدونکو څخه غوښتنه شوې وه. چې دپروردګار رالیږونکي ته اطاعت وکړي. اودپروردګار نوی موعود ومني. اما هغه لوی پیشوا ، دقدرت اومقام خاوند ، دنورو اکثروپیشوایانو په څیر، د پروردګار دعوت نادیده وګڼل.
ښه به وي. چې دهغه ځانګړې لیک ځنې برخې دنمونې په ډول چې حضرت باب دمکې شریف ته لیږلی ؤ. وګورو دادعوت نامه مکې ته په عربي ژبه دیوځوان ایرانې ۲۵کلن تاجر لخوا چې عربي ئې نه ده ویلې ، دعالم اسلام رئیس ته په خطاب کې لیکلې وه . څو لحظې له ځان سره فکر وکړئ. او وګورئ. چې داسې یو لیک تاسې کله لیدلی دی؟ آیا دداسې یو قدرت او عظمت اظهار بې دپروردګار داجازې دیو چالخوا ممکن دی؟ که څه هم دالیک دمکې اوسیدونکو اودمکې شریف ته خطاب دی، اما په واقعیت کې دجهان ټولو مسلمانانو ته خطاب دی. هرمسلمان چې دالیک وګوري.

---

❖ «داصحاب کهف سپی»مختلفې معنی ګانې لري. په دې فصل کې دنظر وړمعنی یوائې داسلام دکهف اوسیدونکو اوساتونکو پورې اړه لري.



---

دپروردګار په مقابل کې مسئول دی. چې په پلټنه شروع وکړي. تر څو ددې ځوان تاجر د ادعا حقیقت معلوم شي.

**ان هذا کتاب قد نزلت باذن ربّک من لدن عل□ حکیم...قل من آمن بالله و آیاته فقد اهتدی و من ضل فانما یضل لنفسه و کان الله بما تعملون خبیرا و من کفربآیات هذاالکتاب لن یقبل الله من عمله شیئ و قد کان ف□ ضلال مبین و لن یجد لنفسه ف□ یوم الفصل من ول□ و لا نصیر .قل یا اهل مکة آمنوا بالله و آیاته و اتبعواحکم الکتاب ان انتم ایّاه تعبدون هوالّذی لا اله الاّ**

**هو قد خلق كل شيئ بامره و كل اليه يحشرون .قل لو اجتمع الناس علی ان يأتوا بمثل هذاالكتاب لن يستطيعن...و كفی بالله شاهداً و نصيراً .قل للذين يكفرون بآيات الله هاتوابرهانكم ان كنتم فی دين الله صادقين و ان لم تقدروا و لن تقدروا فآمنوا بحجة ربّكم و آياته .٥٠**

داهغه كتاب دی. چې دپروردګار په اجازه دعلیّ حكيم لخوا نازل شوی دی ...ووايه!هر چا چې په خدای اودهغه په ايتونو اونښانو ايمان راوړ،هدايت ئې موندلی دی،اوهر هغه چې ګمراه شو. دهغه ګمراهي بيرته دهغه خواته ورګرځي.پروردګار په ټولو هغه كارونو اګاه دی .چې تاسې ئې كوئ .هرڅوک چې ددې كتاب دايتونو اونښانو څخه منكرشي.دهغه هيڅ يوعمل قبول نه دی. اوهغه په ګمراهې كې دی. اوپه ورځ دحساب به دده هيڅ ياراومددګارنه وي.ووايه! اې دمكې خلكو په خدای اودهغه په ايتونو ايمان راوړئ. اودكتاب په حكم عمل وكړئ. كه دخدای عبادت كوونكي ياستې .هغه يواځنی خدای دی.هر شی دهغه په حكم ژوندی دی. اوټول به هغه ته رجوع كوي. كه ټول خلک كوښښ وكړي. چې ديوبل په كومک ددې كتاب په څير يو بل كتاب راوړي. هيڅكله به ونشي

کولای...دخدای یاري اوشهادت زما لپاره کافي اوبس دی.

هغه کسانو ته چې دخدای دایتونو څخه منکر دي.
ووایه:که تاسې ربښتیا وائې اودپروردګار په ائین باندې په ایمان کې صادقه یاستې ،خپل دلیل بیان کړئ.اوکه مونشو کولای .اوهیڅ کله به هم ونشی کړلائ .دخپل پروردګار په دلیل اودهغه په ایتونو ایمان راوړئ.
دبحث وړایت په قران کې اودمکې شریف ته دحضرت باب خطاب ترمنځ څلور ټکي یانښانې مشترکې دي:

**ذَلِكَ مِنْ آيَاتِ اللّهِ مَن يَهْدِ اللّهُ فَهُوَ الْمُهْتَدِي وَمَن يُضْلِلْ فَلَن تَجِدَ لَهُ وَلِيا مرْشِدًا.**

**دکهف سورت،۱۷- ایت**



---

دادپروردګاردایتونواونښانو څخه دی.دهر چا چې

خدای رهنما وي،سمه لار به پيداکړي.اوهر چاته چې دګمراهۍ اجازه ورکړي،ياراو کومک کوونکي به ونه لري. چې هغه سمې لارته راولي.

**قل من آمن بالله و آياته فقد اهتدی و من ضل فانما يضل لنفسه...و من کفر بآيات هذاالکتاب...لن يجد لنفسه فی يوم الفصل من ولی و لا نصير .٥١**

**نامه حضرت باب**

وايه !هر چاچې په خدای اودهغه په ايتونو اونښانو ايمان راوړ،هدايت ئې پيداکړ،اوهرهغه څوک چې ګمرا شو، دهغه ګمراهۍ هغه ته بيرته ورګرځي ...هرهغه څوک چې ددې کتاب دايتونو اونښانو څخه منکر شي. په ورځ دحساب به ياراو مددګار ونه لري.

**دقران دايتونو اودحضرت باب**

**دليک ترمنځ مشترک ټکي**

| |
|---|
| **الهي ايتونه:** |
| **آيات الله ـــ آياته** |
| **الهي هدايتونه:** |
| **مهتدی ـــ اهتدی** |
| **دمنکرينو ګمراهي:** |
| **يضلل ـــ يضل** |

| |
|---|
| **دمنكرينوبه يار اومددګار نه وي:** |
| **فلن تجد له وليّاً مرشداً لن يجد لنفسه ف يوم الفصل من ول و لا نصير** |

بيرته اصلي مطلب ته راګرځو.دهغه څه په اساس چې وويل شو،د«سپی» کلمه په مبارک ايت کې په اوله درجه دهغه چا اړوند ده. چې دمسلمانانو په مخ کې ودريږي. اوخپل ځان دهغو مسلمانانو ساتونکي ګڼي.ځکه فرمائي: دهغوې سپی دغار په مخکې ولاړؤ.اما دسپي کلمه په عمومي توګه ټولو پيشوايانو ته اشاره ده. چې ځانونه ددين ساتونکي ګڼي.



---

_______________ که داپيشوايان دتقوا نمونه وي. دپروردګار سره دمينې، اود ايمان په

خپرولو کې کوښښ وکړي،دصفت لایق دي. اوداﷲ په درګاه کې ګران اومقبول دي.اما دتاریخي شواهدو په اساس ددې دین ډیرساتونکي ددې امت دشپانه مقام یعنی دخدای دپیغمبری مقام ئې  غصب کړئ دی،مؤمنان خپله ګلّه اورمه ګڼي .داناپوه پیشوایان اودپوهې اوازادی دارمغان غاصبان ،دهغه مقام اوقدرت په خاطر چې لري. دغار اوسیدونکي بهرته دتګ څخه اوناآشنایان غارته دننه د  تللو څخه منع کوي.هر څوک چې ددوې مقام په خطر  کې واچوي. دهغوې په نظر هغه د«ناآشنایانو اونو اورانو »له ډلې څخه دي.

دادیانو تاریخ راوښائي چې دپیشوایانو لپاره لوئ خطر دنوو پیغمبرانو دراتګ خبردی. ځکه چې دا الهي پیغمبران ،دبشر دپوهاوي اوازادی بیرغ لرونکي دخپل اسماني غږ په پورته کولو سره په خوب ویده راویښوي. اوهغوې ته ورزده کوي. چې دغارنه راوتل اودپروردګار دعظمت اودقدرت دلمر لیدل،دهغوې الهي حق دی .دهغو برګزیده ګانودشور انګیزه غږ په اوریدلو سره دغار باشهامته اوسیدونکي چې دبیدار یدومیل اوشوق لري. خپلی سترګې خلاصوي. اودارنګه دهغوی دجمال ښکلا اولویوالي ته حیران شي. چې خپل سرپه لاس کې نیسي.

اودپخواني غارنه بيرون راوځي.اودهغوې په طرف په منډه ورځي ،اودپروردګار دنوي دين دساتنې غارته پناه وړي.

**قل طوب□ لراقد انتبه من نسمات□...طوب□ لعين قرت بجمال□ .۵۲ حضرت بهاءالله**

ووايه!نيکمرغه دی، هغه ويده چې دپروردګارپه ښکلی نسيم راويښ شو...اونيکمرغه دي هغه سترګې چې دپروردګار دجمال په ليدو روښانه شي.

غاصبان غار اوسيدونکي دهغه ټول نفوذ اوقدرت په ليدلو چې دپروردګار دنوو ټاکلو له خوا ورته ښکاري،دارنګه يوسخت غضب اونفرت ورته پيداکيږي. اوداسې يوه لړزه ئې نيسي چې هر ليدونکې په ايره او ترس کې اچوي .اوکه څوک دهغوې قدرت اومنصب په خطر کې واچوي،په يو دردناک برخليک سره به مبتلااومخامخ وي.

ـــــــــــــــــــــــــــــــــــــــــــــــــــــــــوګورئ دقران بيان
ترکومې اندازې دظالمو اوبى وجدانه پيشوايانو دحال صفت دى.فرمائي :«غارته دننوتو په ځاى کې دهغوې سپى چې خپل لاسونه ئې مخې ته ايستلي وه. که دامنظره دې ليدلې وى. فوراً به راګرځيدلى وى. اوددېرې ويرې اووحشت دلاسه به تښتيدلى وى».

**اما تشهدون کيف اجتمعوا على کلاب .۵۳**

**حضرت بهاءالله**

ايانه ګورئ. چې زما شاوخوا سپو ځنګه نيولې ده. زما په ضد جمع شوي دي؟
بايد پوه شو. چې په ټولو زمانو کې،د ډيرو پيشوايانو نقش دپيغمبرانو دظهور په وخت کې،داوي. چې خلک دهغوې دمنلو څخه منع کوي.دحضرت محمد (رسول اکرم ).دظهور په وخت کې دهغه وخت پيشوايان ؤ.چې خلک ئې په اسلام دايمان راوړلو څخه منع کول. هغو دخپلو پيروانو دبرخليک قبضه کولو قدرت په خپل لاس کې ؤ.په هغه ترتيب چې وروسته به ئې

وګورود اصحب کهف داستان،د«سپي»کلمه دعیسویت دیو لوئ پیشواپه باره کې هم راغلې ده.دحضرت بهاءالله په اثارو کې دناپوهو اوخودنما پیشوایانو رول اونقش دخلکو په ګمراه کولو کې،په کراتو سره راغلې دی. اومؤمینانو ته ئې اخطار ورکړی دی. چې نه باید خپل همیشنی، اسماني برخلیک هغوې ته وسپاري:

**اې بنده ګانو...دهررهنما خبرې مه منې .دراهنما یانو ډیری ګمراهان دي ،او سمه لاره ئې نه ده پیداګړې.رهنما هغه څوک دی. چې دروزګارله بنده ازاد وي. اوهیڅ شی هغه دربنتیا خبرو څخه منع نه کړي.۵۴ حضرت بهاءالله**

باید اګاه اوپوه اوسو. چې داصحاب کهف دداستان مطابق په غار کې دوه ډلې اوسیږي. یوه هغه ډله چې متقي مسلمانان دي. اوپه غیر دخپل پروردګار دبل هیچا پرستش اوعبادت نه کوي،اوبله هغه ډله ده. چې متقي نه دی. اودهغوې خدای دهغوې نفس دی.پیشوایان هم په ایمان اوتقوا کې یوشان نه دي .ځینې دهغوې څخه صالح اونیکو کاره دي،په علم اوپوه کې لوړدي،دخدای سره په مینه کې او خلکو ته په خدمت کې صادق اوفداکاره دي.دداسی پیشوایانو دخپل رب سره لوړ اوارجمندمقام دی. باید دداسی لوی

قهرمانانو دایمان اووجدان خاوندانو قدر وپيژنو،ځکه
چې دپروردګار په نزد ډیر ګران دي.



---

---

په همغه اندازه چې دخپلو سترګو قدراوساتنه
کوو،دپرروردګار دحکم په اساس ددارنګه علماو قدر
وکړو:
**هغه علما چې په علم او اخلاقو ښکلي دي،هغوې
دامت لپاره د...سترګو مثال لري ـ۵۵**

**حضرت بهاءالله**
دهغه مقام اومسئولیت په خاطر چې مذهبي پیشوایان
ئې لري،دهغوې دصعود اوسقوط دپورته تګ
اولویدلوامکانات دبلې هرې ډلې نه زیات دی.که دتقوا
خواته ولاړ. اودوخت موعود ئې ومنل.لکه دروښانه
ستورو په څیر ترابده پوری به دعزت په لوړتیا کې
وځلیږي. اوکه نه نو دهجران په اورکې به

دپروردګارنه دلریوالي په تیارو کې وکړیږي. اودهغه جهان له خو ښیونه به بی برخې پاتې شي.په مخکني ایت کې موولیدل چې داصحاب کهف سپی دغارپه مخکې ولاړ دی.اوخپل لاسونه ئې مخکې ایستلي ؤ. وګورو چې وروسته څه وشول:

**۱۹- ایت: وَكَذَٰلِكَ بَعَثْنَاهُمْ لِيَتَسَاءلُوا بَيْنَهُمْ قَالَ قَالٌ مِّنْهُمْ كَمْ لَبِثْتُمْ قَالُوا لَبِثْنَا يَوْمًا اوْبَعْضَ يَوْمٍ قَالُوا رَبكُمْ اعْلَمُ بِمَا لَبِثْتُمْ.**

په داسی حال کې مونږ دغاراوسیدونکي رابیدار کړل ترڅو پخپلو کې خبرې وکړي.دغار یواوسیدونکي پوښتنه وکړه:څومره وخت وشو. چې په دې غارکې یاستی ؟په ځواب کې ورته وویل:«یوه ورځ یا دورځې یوه برخه» بلې ډلې وویل:«ستاسې پروردګار ښه پوهیږي. چې څومره وخت په غار کې وی.»

توضیح:«په غارکې دخلکو داوسیدلو موده»دډیراهمیت وړده.ځکه چې دداستان په شروع کې هم داخبره مطرح شوه .په هغه ځای کې به (۱۲- ایت) کې مونږ وویل. چې پروردګار دغار اوسیدونکي رابیدار کړل،ترڅو وګوري. چې کومه یوه له دوه څخه کولی شي. دخپل اقامت موده په غار کې حساب کړي.

«په غار کې داقامت موده» داسلام عمر ته د دوام اشاره ده.لکه څنګه چې په ۷ فصل کې مونږ ولیدل

،داسلام عمر په قران کې دیوې زرکلنې ورځې په اندازه ئې وړاندوینه شوې ده.(۱۹- ایت)هم دې یوې ورځې ته اشاره کوي.



---

ـــــــــــــــــــــــــــــــاما په دې ایت کی د ورځې دیوې برخی خبره هم منځ کې راغلې ده. سبب څه شی دی؟ په همغه ترتیب چې مخکې ولیدل شو، د هغه حدیث په اسا س چې دقران دایت سره ډیر شباهت لري ، رسول اکرم وفرمائیل «چې که چیرته زما امت صالح وي یوه ورځ به وي،اوکه نه نو نیمه ورځ.»«یوه ورځ اویانیمه ورځ»- هغه حدیث- دپروردګار دکلام سره په دې داستان دقران کې په پوره توګه موافق اومطابق دی یعنی «یوه ورځ یا دورځې یو برخه»،په همغه ترتیب چې مخکې ایت

خبرورکوي.                                    (رَبُّکُمْ اَعْلَمُ بِمَا لَبِثْتُمْ )ستاسې پروردګار ډېر ښه پوهېږي. چې څومره موده په غار کې وئ. یعنی یواځې خدای په دې رمز پوهېږی. (ایا داسلام دوام یوه ورځ دی اویا دورځې یوه برخه؟ایا داسلام عمر زرکاله دی. اوکه کمتر له هغه ؟)دطه سورت هم همدغه بحث تکراروي.دکهف دسورت اودطه سورت مطالب ډېرشباهت لري.په دواړو سورتونو کې:

- ډلې یوله بله سره بحث کوي.

دهغوی بحث په هغه محل کې داقامت اوپاتي کیدو دوخت پورې مربوط دی.

بحث کوونکي داقامت دوخت څخه ناخبره دي.یواځې پروردګار اوځنی بیدارخلک په هغه رمز پوهېږي.

**يَوْمَ يُنفَخُ فِي الصورِ وَنَحْشُرُ الْمُجْرِمِينَ يَوْمَذٍ زُرْقًا.**

**دطه سورت،۱۰۲ -ایت**

په هغه ورځ چې شپیلی وهل کیږي. ګناهکاران چې خړې اوکلکې سترګې لري.ټول راجمع کړو.

**يَتَخَافَتُونَ بَيْنَهُمْ ان لبِثْتُمْ الا عَشْرًا.**

**دطه سورت،۱۰۳-ایت**

دیوبل سره به زمزمه کوي. اویوبل ته به وائي.دلسونه زیات نه یاستې پاتي شوي.

توضیح: په مخکینی ایت کې ذکر شوی نه دي. چې

د«لسو» عدد کوم واحددوخت اوزمان ته اشاره ده. کیدلی شي چې دزمان واحد قرن وي. یا بل عدد که دزمان واحد قرن حساب کړو.       ۱۰ ×
۱۰۰=۱۰۰۰



---

دهغه

حاصل«درجوع عصر»داسلام دیوې زرکلنې ورځ سره برابر دی.

**نَحْنُ اعْلَمُ بِمَا یَقُولُونَ اذْ یَقُولُ امْثَلُهُمْ طَرِیقَةً ان لبِثْتُمْ الا یَوْمًا .دطه سورت،۱۰۴ ــ ایت**

(پروردګاروائي )زه ښه پوهیږم. چې هغوې به څه وائي.دهغوې په منځ کې به عادل ترین اوښه انسان دهغوې ووائي:تاسې له یوې ورځې زیات نه یاستې

پاتې شوي.
توضیح: دطه سورت په مخکیني ایت کې دوخت موده دقیقاً راکړل شوې ده. نورنو دوخت دواحد خبر پاتې نه دی. یواځې «یوه ورځ»معلومه شوه.دقران دایت په اساس د«خدای ورځ»زرکاله ده،داایت همدارنګه دحضرت باب دظهور کال مونږ ته راکوي.یو ځل بیا لازمه ده. په یادراوړو. چې دمعما سره سروکارلرو. اودهر ایت د درک لپاره لازمه ده. چې ټولو اړوندو ایتونو ته نظر واچوو.

## داصحاب کهف پاتې

### داستان

**۱۹- ایت پاتې : فَابْعَثُوا احَدَکُم بِوَرِقِکُمْ هَذِهِ الَ الْمَدِینَةِ فَلْیَنظُرْ ایهَا ازْکَ طَعَامًا فَلْیَاتِکُم بِرِزْقٍ مِّنْهُ وَلْیَتَلَطفْ وَلَا یُشْعِرَن بِکُمْ احَدًا.**

تاسې له خپله منځه یو نفر (دبیدار شوونه)په دغه پیسو ښارته ولیږئ ،چې وګوري دخوړلو لپاره دبازار نه پاک طعام اوخواړه راوړي.کوښښ وکړئ په احتیاط سره ښارته لاړشی،چې له تاسې څخه څوک خبر نشي.
توضیح: دبهائې ائین دپیدایښت په شروع کې،ډیر مؤمنان د«موعود»ښارته چې په سلهاو فرسنګ لرې پروت و ورتلل. ترڅو معنوي پاک ترین طعام چې

دالهي دبخشش د اسمان څخه رابښکته کيدل ترلاسه کړي.
داطعام دحضرت بهاءالله اسماني اثارؤ.

---

په همغه ترتيب چې په اوم (۷) فصل کې موولیدل ،«دتدبيرعصر»(يُدَبّرُالأمْرَ)په اسلام کې دامام حسن عسکری درحلت سره په ۱۲۶۰ هـ ق کې پای ته ورسيد او وروسته له هغه د«رجوع عصر»(ثم يعرج اليه فی يوم) شروع شو. هغه عصر دحضرت باب سره په ۱۲۶۰ هـ ق کې پای ته ورسيد.



---

هغو فداکاره

مؤمنانو به ،په پټه په ډير کوښښ اوسختې سره دعکادښارڅخه خپلو وطنوالو لپاره په ارمغان کې

وړل. حضرت بهاءالله ،اسماني طعام ته په اشارې سره فرمائي:

**دا ابدي طعام دابدي ژوند لپاره سبب اوعلت دی.اوداطعام په اوله رتبه او اول مقام کې «ذکر»دی.چې دقلم اعلی لخوا په خاصه توګه دغلامانو ښځینه بنده ګانو لپاره نازل شوی دی.۵۶**

**دا همغه طعام دی. چې فرمائي :رَبنا اَنْزِلْ عَلَینَا مَادةً مِنَ السماء. ۵۷**

**پروردګارا ! داسمان نه مونږ ته طعام اوخواړه نازل کړه. دمائده سورت،۱۱۴- ایت**

**الحمد لله الّذی انزل النعمة و انها مائدة نزلت من سماء فضل...من فاز بها لم یاخذالجوع و لا یمسّه الاضطراب . ۵۸**

**حضرت بهاءالله**

دخدای نه ډیرشکر چې نعمت ئې نازل کړ.داهغه طعام دی. چې دفضیلت داسمانه راښکته شو...هرهغه چې له هغه نعمت څخه ګټه واخلي،ولږه اوپریشاني به ئې ختمه شي.

**په دې خوراکونو اوطعامونو کې خوراکونه دتقدیرله مخې دي. اوپاتې نعمتونه مقرر دي.**

**روحاني غذا ورته بخشش کیږی. اودپخوانیو نعمتونو څخه لذت اوخوند اخلي.۵۹**

**دانسان ژوندون دپروردګار په خبرو اوکلام ولاړدی.**
**نه یواځی په ډوډی اوخوراکونو .**
**حضرت**
**مسیح،انجیل متی ،۴ فصل،۴۔ ایت**
عّکا وړوکې اولرې پروت ښارؤ.په هغه وخت کې
دعثماني امیراطوری پورې اړه لرله. اواوس زمونږ
په عصر کې دابنار داسرائیلو دهیواد مربوط
دی.حضرت بهاءالله دې ښارته هغه وخت چې
دمسلمانانو حکومت دلاس لاندې وه. تبعیدشوی ؤ.
**طوبی لک یا عکا بما جعلک الله مطلع ندائه الاعلی و**
**مشرق آیاته ... ٦٠حضرت بهاءالله**
اې عکا ته څومره نیکمرغه ئې ،ځکه چې ته
دپروردګار دندایش،غږاو اواز دوړانګې کولو ځای ئې
او دهغه دایتونو مشرق ئې .

---

❖قلم اعلی حضرت بهاءالله ته اشاره دی.

**انّها اقبح مدن الدّنیا و اخربها .٦١**
**حضرت بهاءالله**
هغه ددنیا بدترین اوخراب ترین ښار دی.
باالاخره داخراب او بدښار دعالم قبله وګرځیده.الهي فضل هغه بی نومه خطه(یوه وړه تړته ځمکه)دالطاف اوبخشش منبع وګرځوله.«سیمرغ دایرونه پورته شو».
په اسلامي احادیثو کې،دالرې اوګمنامه ښارپه کراتو سره ذکرشوی دی. اوددېرو دتوجه اوتمجید سبب شوی دی.له هغې جملی نه په دې حدیث کې چې حضرت بهاءالله نقل کړی دی:
**طوبی لمن زار عکّا و طوبی لمن زار زائر عکّا.**
نیکمرغه هغه څوک دی. چې دعکا زیارت ئې وکړ.اونیکمرغه هغه څوک دی. چې دعکادزیارت کوونکي زیارت ئې وکړ.
په همغه ترتیب چې ومولیدل،ابن عربي دمکیه په فتوحاتو کې دعکا ښار دخدای میلمستون ګڼلی:
**مرج عکا فی المأدبة الالهیه .٦٣**

دعّکا په مزرعه کې دخدای ضیافت (دخدای میلمستیا)جوړه ده.

**طوبی لجائع هرع عن الهوی لهوائی و حضر علی المائدة الّتی نزّلتها من سماء فضلی لاصفیائی .**

**٦٤**

**حضرت بهاءالله**

نیکمرغه دی. هغه وږي چې زما دپاره دخپل میل څخه تیرشي. اوله هغه طعام څخه چې مادفضل اورحمت له اسمانه ورته رالیږلی دی ګټه واخلي. کوښښ وکړئ. په ډیری ارامی سره دې سفرته لاړشی ،په داسې ډول چې تاسې اوستاسې له کار څخه هیڅوک پوه نشي.

_____________________حضرت بهاءالله

دژوند په وخت کې دعکا په ښار کې مؤمنان په ډيرې سختې سره په مياشتو لاره وهله. ترڅو خپل مقصداو موعود ته ورسيږي.ددښمنانو پوهيدل ددې فداکاره مؤمينانو دسفر دنقشي نه چې داسماني طعام دلاس ته راوړلو په خاطر ،اوخپل موعود ليدلو ته تلل دزيارت کوونکو ژوند سخت به خطر کې اچول . داخطر کله کله دومره زيارت ؤچې زيارت کوونکو د خپل سفر مقصد دخپلو خپلوانو اودوستانو نه پټول .ځنې مسافرينو به دپيژندنې دويرى اوترس نه اسماني ليکنى اواثار دخپلو جامو په ځنډواوپيڅکو کې پټول او کله کله به ئې دځان دساتلو لپاره هغه خوړل!داسې واقعې دحضرت باب په شيږ کلن رسالت کې هم پيښدلې. ديومسلمان محقق دايمان راوړلو قصه اوداستان په اصفهان کې ،مونږ ته دهغه وخت خطر ناکه وضع راوښايى .دامحقق ديو بهائې سره اشناکيږي، هغه په لمړيو کې له دې اشنائې نه ډيره ايره اوواهمه لرله، اودوخت په تيريدو سره پخپل ايمان اقرار کوي.وروسته له اطمنان اوډاډمن کيدلو نه په يوبل باند

ی ،ددې دوه دوستانو مشکل داوه. چې دملاقات
اوخبرو لپاره یوپټ ځای پیداکړي. ښه ده چې داقصه
پخپله ددې مسلمان محقق څخه واورو.
وروسته له اشناکیدلو پرماباندی ترس اوایره کښیناستله
.دشپی لخوا به دخپل بهائې دوست کورته تللم. اوخپل
ځان مې په دهلیزکې پټول. ترڅو دمحلې ټول خلک
ویده شي.هغه وخت به دهلیز نه راوتلم او په یوپټ
ځای کې توملاقات کول. اوپه ډیر شوق اوخوښې به
مونږ خبرې کولی.کله به مودالهی ایتونو دمطالعی
لپاره رڼا ته ضرورت لرل.چراغ به مو په تنورکې
کیښود. دهغه په رڼا به مو ایتونه ویل. زماپه کورکې
وضع هم په همدی ډول او حتی تردې بدتره وه .ډیر
وخت وروسته به کله کله سره دری څلور تنه بهائیان
یو ځای کیدلو. درې څلور ساعته به دشپې نه تیریدل.
یعنی په نیمائې شپه کې به دیو بل کورته تللو. او
سهاروختي به بیرته خپل کورته ګرځیدلو.

،لمړی برخه

---

---

**زما کوټه په دوهم پوړ کې وه. چې مخه ئې دباغچې خواته وه. هلته به مې پړی بسته کول. اودکوټې نه به راښکته کیدلم. اویارانو ته ورتلم. په بیرته راتګ کې به په همغه پړي سره پورته کیدلم. اوویده کیدلم به، اوسبائې به پورته کیدلم. ترڅو دکوروالاپوه نشي چې زه دباندی تللی یم...۶۵**

**دامرعظمت اولویوالی ،دومره زیات دی.چې پلار د زوی نه، او زوی د پلارنه، تیښته کوي.۶۶**

دارنګه وه. دلمړنـي مؤمین دژوند قصـه ددې ائین سره.

**۲۰- ایت: انـهُمْ ان يَظْهَرُوا عَلَيْكُمْ يَرْجُمُوكُمْ أَوْ يُعِيدُوكُمْ فِي مِلتِهِمْ وَلَن تُفْلِحُوا اذًا ابَدًا.**

که تاسې پیداکړي،تاسې به دتړو اوکاڼو لاندې کړي. اویابه تاسې خپل دین ته واړوي. په هغه صورت کې به خپل هدف او موخې ته ونه رسیږی.

**توضیح :** دنوي ائین دظهورپه شروع کې ډیر فداکاره مؤمنین دپیشوایانو اودوخت دحاکمانو په حکم په ډیر

سختو شکنجو سره قرباني شول.دهغو دايمان والاقهرمانانو وژنه دسنګساريدلو په طريقه ترسره کيدله .هغو قهرمانانو اواتلانو دخپل ځان ساتني لپاره دوه لارې لرلې .يا بايد خپل ايمان پټ وښائې ترڅو ونه پيژندل شي،اويا دپيژندلو په صورت کې دخپل وخت دموعود څخه دايمان نه لاس واخلي اوخپل ځان بيرته مسلمان وښائې

**کم من ارض صبغت من دمائهم و کم من بلد ارتفع فيه حنينهم و ضجيجهم وبکائهم .٦٧**

**حضرت بهاءالله**

څومره ډيرې ځمکې وې. چې دهغوې (دنوی ائين د مؤمنينو) په وينو سرې نشوی. اوڅومره ډيرښارونه ؤچې په هغو کې دهغوې فريادونه اوچغې پورته نشوې.

داحديث چې دايقان په کتاب کې هم ذکر شوی دی،دنوي ائين په مؤمنينو باندی دبلاګانو خبر ورکوي:

**تستذل اولیائ□ ف□ زمانه و تتهادی رؤسهم...یقتلون ویحرقون ویکونون خائفین وجلین مرعوبین تصبغ الارض من دمائهم ویفشو الویل والرّنة ف□ نسائهم اولئک اولیائ□**
**حقّاً .۶۸**

زما دوستان به دهغه دظهور په وخت
کې،خوارشي...دهغوی سرونه به دتحفي په شکل وړي.هغوې به ئې وژني. اوپه اورکې به ئې سوزوي. هغوې به په ایره اوترس کې ژوند کوي. ځمکه به دهغوې په وینو سره وي.دهغوې فریاد اوژړا به پورته کیږي .هغه زما رښتینی دوستان دي.

یو اطریشي افسر چې دخپل هیواد لخوائې په ایران کې ماموریت درلود. په پوره حیرانتیا ددې ائین فداکاره پیروانو سره دخلکو له وحشته ډک سلوک خارنه کوله.دې افسر خپل یودوست ته په لیک کې داسې لیکلی ؤ:

ځنګه کولای شی تصور وکړې. هغه څه چې ما په خپلو سترګو لیدلي دي...داسې کسان چې دبې رحمه جلادانو په لاسونو ئې یویو غابښ وایستل شو،دهغوې لغړی جمجي چې دښکونو په وهلو سره به تکه تکه شوې وې،اویاکله چې به بازارچراغان اوښکلې شو.

دشکنجه شوو قربانیان دنمایش اوښودني لپاره به ئې هغه قربانیان شمع اجین کول. په داسې ترتیب چې دهغوې په وجود کې به ئې دشمع دایښودلو لپاره سوری ایستل.په هغو سوروکې به ئې روښانه شمع کیښودلی.هغوې به ئې په ځنځیرونو یوله بل سره بسته کول اوتړل اوپه ټول ښارکې به ئې ګرځول .مامورینو به هغه په شلاق اوکمچینه وهل.دپښنوپوستکې به ئې ترې شکول،اوهغوې به یې منډو ته مجبورل .اوپه اخرکې به ئې هغوې په ونو کې سرچپه راځړول.اوهرڅوک به مختاروه، چې دهغوې سره په دې نیم ځان حالت کې هرڅه ئې چې زړه غواړي وکړي .مایوجسد ولید چې په (۱۵۰) مرمیو سوری سوری شوی ؤ.

---

دمظلومانو دنجات لپاره مناجات :

**بسم ا لله الاقدس الامنع !ترىٰ یا الهﻰ اجتمع علﻰ احبّتک طغاة خلقک و عصاة بریّتک مأمن ارضٍ الّا وقد**

**ارتفع فیها نوح احبّائک و حنین اصفیائک اسئلک باسمک الاعظمِ بان تُخرج مِن جیب قدرتک ید قوّتک و تنضر بها احبّتک ترىٰ یا الهی بأنّ عیونهم ناظرة الیک و اَبصارَهم الی افق عز ک و عنایتک بَدّل یا الهی ذلّهم بعزّک و فقرهم بغنائک و عجزهم بقدرةٍ من عندک اِذانّک انت القدیرُ علی ما تُریدُ لا اله الاّ انت العلیم الخبیر.**

۲۸۵ ۱۰فصل: دکهف

سورت،لمړی برخه

---

---

**کله چې هغه څه چې مانو شته کړي اودوهم ځل هغه لولم،فکر کوم چې ته اوستا شاوخوا به وائې چې زه مبالغه کوم .امّا خدای زما دربنتینولی شاهد دی...اوس دکورنه ډیر لرې وځم ترڅو داجنایتونه ونه ګورم...تراوسه می څو ځلی دتبدیلی غوښتنه کړې خوتراوسه موفق شوی نه یم.۶۹**

**ظلم داسې درجې ته ورسید چې دخارجې هیوادونو خلکو وژړل اوفریادئې وکړ: ۷۰**

ظلمونه اوبلاګاني په اوله درجه پخپله ددی ائین موسس ته متوجه وي:

**لعمری لوتران بعین لتری کلّ عضو من اعضائ ف فم ثعبان آه آه عمّا ستر ولاینبغ اظهارها .**
۷۱

**حضرت بهاءالله**

په خدای قسم دی**!** که زما په سترګو ماته وګوری ،زماهرغړی به داژدهااوښامارانو په خوله کې پیداکړی.هغه څه چې پټ دي. اوه اوه، آه آه ،چې ویل یې جائیز نه دي.

**په ټول عمرکې مې یوه شپه راحت نه دی کړې. اوپه ټولو وختونو کې مې یوه ورځ ارامه نه ده تیره کړې ...هرسبائې چې پورته کیدلم دنوې بلاسره مخامخ شوی یم. اوهر ماښام چې دیووالی په غونډه کې ګډون کول، دیوی سزاسره مخامخ شوی یم ...په همغه وخت کې مې دځان نه دساتلو لپاره کوم کارنه دی کړی...۷۲**

**حضرت بهاءالله**

دمطففین په سورت کې چې ټول دراتلونکو واقعاتو پورې اړه لري. دموعود دمنکرینو سلوک په دې نړۍ کې، اودوه ډلو برخلیک په دایمي اوهمیشني جهان کې دارنګه صفت شوی دی:

**اِن الذِينَ اجْرَمُوا كَانُواْ مِنَ الذِينَ آمَنُوا يَضْحَكُونَ وَاذَا مَرواْ بِهِمْ يَتَغَامَزُونَ...وَاذَارَاوْهُمْ قَالُوان هَؤُلَاء لَضَالونَ ...فَالْيَوْمَ الذِينَ آمَنُواْ مِنَ الْكُفارِ يَضْحَكُونَ عَلَ□ الْارَائكِ يَنظُرُونَ هَلْ ثُوّبَ الْكُفارُ مَا كَانُوا يَفْعَلُونَ**

**دمطففين سورت ،(۲۹-۶۳)ايتونه**

داګناهکاران هغه څوک ؤ چې په موعود باندی ایمان راوړونکو پوری به ئې خندل. ...اوکله چې به دهغوې په خواکې تیریدل ،دمسخرى نه به ئې ورته سترګک وهل. اوهغوې ته به ئې دګمراهانو په سترګه کتل.اوکله به چې کورته رسیدل ،هغوې پسی به ئې خندا اوټوکې کولې...امانن ورځ هغوې پخپله مؤمنان دي. په دې زمانه کې دامؤمنان پخپلو تختونو (په جنت کې) ناست دي. اوګوري چې ایا منکرینو دخپلو مخکینو عملونو مجازات لیدلي دي اوکه نه ؟ (ایا وئې کولاى شول چې دخپلو عملونو دنتیجې څخه ځانونه وژغوري. اوکه نه ؟)

قران اوبهاءالله

ټول عمر به دهغه ددوستانو سترګې په ژړاوې ،اودهغه دښمنان به دغفلت نه په خنداؤ.دهغې ژړاشاته سل زره رحمتونه پراته ؤ.اوددې خندا شاته په زرهاو عذابونه پراته ؤ.اوډير ژر به دادواړه دالهي دامر دونې نه خپله ثمره ترلاسه کړي. څومره افتخارپه هغو سترګو چې دژړا وړشي. اوڅومره نیکمرغه دي. هغه چې دخپل دوست پورې وتړل شو.

**هغه څه چه دظهور په ورځو کې ظاهرشول،که په ظاهرکې ذلت دی، سل زره عزتونه په هغه کې پټ اومستور دي، (۷۴)**

**حضرت بهاءالله ،څلورمیاشتې دسیاه چال په زندان کې تیرکړل.داسې یوبداوخطرناک زندان ؤ. چې کمتر څوک به دهغه نه ژوندی وتل .هغه حضرت فرمائی.**

**په هغه وخت کې دنړۍ ترټولوبدایه فردو.۷۵**

ددې ائین پیروان دهمغه لمړیو نه ئې دخلکو لخواتمسخر اوډیر سپکاوی کیدل. اودوې ته ئې دګمراهانو نوم ورکړی ؤ. په مناجاتو کې، دپروردګار سره په راز اونیاز کې حضرت بهاءالله دمنکرانو تمسخر ته په اشارې سره فرمائي :

**سُبْحَانَكَ اللهُم یا الهِي تَرَی فَقْرِي وَافْتِقارِي وَضُرِّيْ وَاضْطِراري وَعَجْزِيْ وَانْكِسَارِيْ وَنُدْبَتِي وَبُكَاي وَحُزْنِيْ وَابْتِلايْ، فَوَعِزتِكَ قَدْ بَلَغْتُ فِي الذِّلةِ ال□ مَقامٍ يَسْتَهْزِءُ**

**عَلَي عِبادُكَ الغافِلُونَ وَانْتَ تَعْلَمُ بِانّـِي اكُونُ مَعْرُوفًا بِاسْمِكَ بَيْنَ خَلْقِكَ، وَلا يُرى فِي شَانِي الا شَانُكَ وَلا فِي وَصْفِي الاوَصْفُكَ وَلا فِي كَيْنُونَتِي الاظُهُوراتُ آياتِ احَدِيتِكَ وَلا فِي ذاتِيتِيْ الابرُوزاتُ تَوحِيدِكَ، وَانكَ اشْتَهَرْتَ كُل ذٰلِكَ بَيْنَ بَرِيتِكَ بِحَيْثُ لا يَعْرِفُنِي احَدٌ الابِاسْمِكَ، وَانّـِيْ فَوَعِزتِكَ لا اجْزَعُ بِما وَرَدَ عَلَي فِي سَبِيلِكَ، وَلكِنْ اشاهِدُ ان بِذِلتِي ضَعُفَتْ قُلُوبُ احِباكَ وَاسْتَفْرَحَتْ افْٔدَةُ اعْداكَ بِحَيْثُ يَشْمَتُونَ عَلَ□ الذِينَ انْقَطَعُوا عَما سِواكَ وَسَرُعُوا ال□ شَرِيعَةِ ذِكْرِكَ وَثَناكَ، وَقَدْ بَلَغُوا فِي الغَفْلَةِ ال□ مَقامٍ اذا يَمُرونَ عَلَ□ احِبتِكَ يُحَرّكُونَ رُؤُوسَهُمْ اسْتِهْزاءً لأمْرِكَ وَيَقُولُونَ ايْنَ رَبكُمُ الذِيْ تَذْكُرُونَهُ بِاللَيالِي وَالايامِ.**

**وَايْنَ سُلْطانُكُمُ الذِيْ تَدْعُونَ بِهِ الانامَ، وَقَدْ بَلَغُوا فِي الغُرُورِ وَالاسْتِكْبارِ الـ□ مَقامٍ انْكَرُوا قُدْرَتَكَ وَسَلْطَنَتَكَ وَاقْتِدارَكَ ...**

٧٦ **حضرت**

**بهاءالله** دالهي

پيغمبرانو مسخره کول کوم نوی کارنه دی.خلکو پيغمبراکرم دهغه دظهور په وخت کې څنګه ولید؟

**وَاذَا رَاوْكَ ان يَتخِذُونَكَ الاهُزُوًا اهَذَا الذِي بَعَثَ اللّهُ رَسُولًا.** **دفرقان سورت، ۴۱ ـ ايت** هرکله چې تاګوري،تابه مسخره کوي اووائې به:«آيا داپيغمبردی چې خدای په پيغمبری مبعوث کړی دی»مؤمينانو ،بې له دې چې دپروردګار په ائين ئې ايمان راوړی دی،بله کومه ګناه ئې نه لرله؟

**وَمَا تَنقِمُ مِنا الاانْ آمَنا بِآيَاتِ رَبّنَا.**

**داعراف سورت، ۱۲۶-ايت**

ستاسې دانتقام اخيستلو سبب په ما،غيرله دې بل څه شي دی ،چې ماپه الهي ايتونو ايمان راوړی دی؟

## پاتې داستان

**۲۱- ايت : وَكَذَلِكَ اعْثَرْنَا عَلَيْهِمْ لِيَعْلَمُوا ان وَعْدَ اللّهِ حَق**

**وَان الساعَةَ لَا رَيْبَ فِيهَا.**

دارنګه دهغوې داستان بیانوو، ترڅو خلک په دې پوه شي، چې دخدای وعده حق ده. اود«ساعت »په راتلوکې شک نشته.

توضیح: په همغه رقم چې موولیدل ،دوه کلمې «وعده»او«ساعت»دقران دمهمو معماو له کلماتو څخه دي.اودادواړه بهائي ائین ته د اشارې لپاره په کراتو سره راغلي دي.له مخکې ایت څخه معلومیږي. چې دغاراوسیدونکو داستان یوې «واقعي»اویا«وعدې»پورې اړوند دی.چې په راتلونکې کې بایدسرته ورسي .کومه «واقعه»په غیرله موعود راتګ نه اودپروردګار د«وعدې»داجراء نه دیوې زرکلنی ورځې دختمیدونه وروسته ؟

**۲۱- ایت پاتې:اذْ يَتَنَازَعُونَ بَيْنَهُمْ امْرَهُمْ فَقَالُوا ابْنُوا عَلَيْهِم بُنْيَانًا ربهُمْ اعْلَمُ بِهِمْ قَالَ الذِينَ غَلَبُوا عَلَ□ امْرِهِمْ لَنَتخِذَن عَلَيْهِم مسْجِدًا.**

خلک دهغوې «دامر» په باره کې (دهغو کسانو دامر په باره کې چې دغارنه بیرون راغلي دي.) یوله بله سره په مجادله اوبحث باندې مشغول شي .ځینې به وائي : په هغوې باندې ساختمان جوړکړئ.

خدای هغوې ښه پیژني. (قضاوت خدای ته پرېږدئ.)چاچې دهغوې دامر په مسئله کې برى ترلاسه کړ،وویل :«ښه دی چې عبادت ځای ورته جوړکړو.»
توضیح: مخکیني ایت دایران داوسنیو بهائیانو دصفت په باره کې دی.دبهائي ائین دپیدایښت دشروع نه،دمسلمانانو ترمنځ دبهائیانو سره دسلوک په باره کې ،همیشه دنظر اختلاف ؤاوشته دی.یوه ډله مخالف دی،یوه ډله بی طرفه دي. اویوه بله ډله هم طرفداردي. مخالفین وائي : بهائیان داسلام دښمنان دي!داګمراهان له منځه یوسی.په مخکیني ایت کې په تفصیل سره دې ډلې ته اشاره وشوه.ومولیدل چې په څه ډول دنوي ائین مؤمنینو دخپل سفرموخه عکا ته پټوله. اودپیژندنې په صورت کې ددې ډلې مسلمانانو دظلم اوشکنجې

لاندې راتلل.

**۲۱- ایت** دوه نورو ډلوته اشاره کوي.هغه ډله چې بی طرفه ده،وائي د«هغوې مخې ته ساختمان جوړکړئ.»یعني هغه ځانته ډله وشمیری .چې خپل ژوند ته په ازاده توګه په ایماني اواجتماعي فضاکې دوام ورکړي .امادې بلې ډلې ددې نه هم اوچته قدم ایښي دی. اووائې :«ښه ده چې دهغوې لپاره عبادت ځای جوړکړو»داډله عقیده منددي. چې بهائیان مترقي اوروشنفکره خلک دي .باید دهغوې سره دایران په ابادۍ ترقۍ اوپرمختګ کې مرسته وکړو،حتی هغوې ته عبادت ځایونه جوړکړو.دانظر په پوره توګه مطابقت لري. دپیغمبر اکرم درفتاراوچلند سره چې دمذهبي اقلیتونو سره به ئې داسلام دظهور په شروع کې کول.**سیدامیرعلی،دروح اسلام په کتاب کې لیکلي دي. چې پیغمبر اکرم امرکړی دی. چې دمسیحیانو اودهغوې دکلیساګانو په ساتلو کې مسلمانان باید کوښښ وکړي.هغوې دې پخپلو عقایدو اورسمونوپه اجراکولو کې ازاده پریږدي. اوپه جبري توګه دې هغه داسلام دین ته نه راولي .اوکه کوم مسلمان مسیحي ښځه لري .خپل ائین دې په هغې نه تحمیلوي. هغه لوی پیغمبر همدارنګه امرکړی ؤ.چې که مسیحیان دکلیساتعمیر ته ضرورت لري. اویابل کوم څه ته**

**ضرورت اواړتيا لري. بايد دهغوې مرستې اوكومك ته ورشي.۷۷**



دغه دي دحقيقي

اسلام رسم اوطريقه اودهغه لوړاولوى مقام پيغمبر خواخوږي، لوړنظريات اوسلوك دمذهبي اقليتونو په باره كې. دې ډلې نظريات چې وائي «ښه دى چې دهغوې لپاره معبد جوړكړو.»دقران دوينا په اساس ،باالاخره به دنورو په نظرياتو برى ترلاسه كړي. دهغوې راۍ دپروردګار «دامر»په باره كې يعني د«هغو خلكو دائين په باره كې چې دلمر په روښانې كې دخوبه پورته شوي، اوله غاره دباندې راوتلي دي»وروسته له ډير بحث اوخبرو دډيرو خلكو دمنلو وړوګرځي.

داعقیده چې بهائیان دلمړیونه دایران دترقۍ ازادی اوپرمختګ لپاره یوقدم وړاندې ؤ.په هغه کتاب کې چې د«رګ تاک »په نوم چې د«دلارام مشهوري »تالیف دی. تائید شوی دی.دهغه کتاب دې نمونې ته چې دبهائیانو دنفس په باره کې دایران دترقۍ لپاره په ځانګړې توګه دقاجاریانو په عصر کې دی توجه وکړئ:

**په ایراني ټولنه کې مترقي عنصر همغه بهائیانو جوړول ...هغوې لمړی درجه کې دخپلو مدني انساني حقوقو غوښتونکي ؤ. اوباید دایران دازادۍ اوترقۍ دلارې دزړه ورومبارزانودعنوان لاندې وګڼل شي.اوهمداچې بې له هیڅ سلااومشورو څخه ئې په دې ډګرکې قدم کیښود ،ددې واقعیت ښودونکې دي. چې په هغه تیاره دوران کې،دهغې روښنایې ساتونکي ؤ.چې دایران دبشری پرمختګ دسپیده داغ روښنایې پیداشوه.  تراوسه پورې هغه روښنایې له منځه نه ده تللې.اوله بله پلوه په مسالمت امیزه توګه په دې نوي دورکې د«اجتماعي جنګونو »فرهنګ دلرې کولو لپاره هم په ټول عالم (په شرق اوغرب کې)ترټولو وړاندی دي.۷۸**

دقران دوړاندوینی سرته رسیدل اوتحقق په دې باره کې چې باالاخره دټولو ادیانو پیروان به دبهائیانو

اودهغوې ائين مرستي ته ورځي. په اسماني اثارو کې هم دخلکو طريقه داوه چې ترڅو سختيو سره مخامخ نشي اوبلاګانې ونه ګوري ،خپلې باطني ستړګې به خلاصی نه کړي. دتقليد څخه به لاس وانخلي. اونه به هم داوهامو اوتعصبونو څخه لاس واخلي.



---

ــــــــــــــــــــــــــــــــــــــوروسته له ډيرو جنګونو، مړينو اوديوبد برخليک له تحمل څخه ،باالاخره دجهان اوسيدونکي ،دپروردګار دنوي ائين – قدرچې دايران څخه پورته شوی دی وپيژني.په هغه وخت کې به نه يواځی دمسلمانانو اوبهائيانو ترمنځ دوستي اوهمکاري وي. بلکه دټولو اديانو دپيروانو

دخلکو ترمنځ به ددوستي اوهمکارۍ رسم اوطریقه وي.

**دلا چو غنچه شکایت زکار بسته مکن        که باد صبح، نس**

## پاتې داستان

**۲۲ – ایت: سَيَقُولُونَ ثَلَاثَةٌ رابِعُهُمْ كَلْبُهُمْ وَيَقُولُونَ خَمْسَةٌ سَادِسُهُمْ كَلْبُهُمْ رَجْمًا بِالْغَيْبِ**
**وَيَقُولُونَ سَبْعَةٌ وَثَامِنُهُمْ كَلْبُهُ مْ قُل ربِّي أَعَلْمَّ بِعِدتِهِم ما يَعْلَمُهُمْ الا قَلِيلٌ.**

ځنی وائی دری تنه ؤ:څلورم نفردهغوۍ سپی ؤ.ځنی وائی :پنځه نفره ؤ،شپږم نفرورسره سپی ؤ.داخلک په هغه څه چې نه پوهیږي. حدس اوګمان کوي.یوه بله ډله وائې :چې(۷)اوه نفره ؤ،سپی دهغوۍ اتم نفرؤ.ووایه چې زما پروردګار دهغوۍ په شمیرپوهیږي .اوکم دي هغه چې په دی پوهیږي.
توضیح: په دې مبارک ایت کې مختلف عددونه ذکر شوی دي. داعددونه دغار داوسیدونکو دتصوراتواوفکرونو پوری مربوط دی. بی له دی چې دقران په رازونو پوه شي. دپروردګاردنوي پیغمبر دظهور په باره کې خبرې کوي.ددې عددونو په پای

کې د(۸)اتوعدد راغلی دی. اواشاره ورته شوې ده چې کم څوک په هغه پوهیږي. داعدد دغه شي پورې اړه لري.

داعدد دحضرت بهاءالله درسالت ددوران دیوې پیښي پوري اړه لري. هغه موعود په (۸)اته الواحو اویالیکنو کې «لوی خبر» دهغه وخت مذهبي اوسیاسي (۸)اتو تنو ته اعلان کړ.(۷)اوه نفره دهغو نه سیاسي مشران ؤ.اویونفر له هغوې دیني پیشواؤدی. هریوله پادشاهانو اودقدرت خاوندانو ته ځانګړي لیکونه ورلیږلي ؤ:



لمړې برخه

---

---

**سیاسي مشران**

| | |
|---|---|
| ۱.ناصرالدین شاه | ۵ .دوم الکساندر(دروسیه پادشاه) |
| ۲.سلطان عبدالزیز | ۶.فرانسوا ژوزوف، داطریش امپراطور |
| ۳.دریم ناپلئون | ۷.ویلهلم اوّل (دالمان پادشاه) |
| ۴.ملکه ویکتوریا | |
| دینی پیشوایان | |
| ۸.نهم پاپ | |

په مخکیني ایت کې ،په ټولو مواردو کې یواځی یونفر دسپی لقب ترلاسه کړی. اودنورې ډلې نه جدا شوی دی .په څه علت ؟ ددی یونفر دجداکیدلو علت د(۷)اوه نفرو څخه دهغه دریاست دډول په خاطر دی .نهم پاپ یواځی یومذهبي رئیس اوپیشواؤ.چې رسماً دحضرت بهاءالله لخوا په یوځانګړی لیک اولوح سره مخاطب شو.په هغه ترتیب چې مووليدل ،په دې داستان کې دسپی کلمه دعالم اسلام دلوی پیشوایعنی دمکې د«شریف»په باره کې هم راغلې ده.دادوه پیشوایان دخپل ائین په دوه مرکزونو کې په مکه اوواتیکان کې اوسیدل.

په اسماني اثاروکې ،حیوانات دمعنا درسولو لپاره دمختلفو مقصدونو په خاطر راغلي دي.باید په نظر کې

راوړو. چې حیوانات ذاتاً بدنه دي،ځکه چې دخدای دنقشې په اساس ئې ژوند موندلی دی.او هرصفت لري. اودهغوی دبقا اوژوند دځانګړو ضرورتونو پورې اړه لري.پروردګار دارنګه تقدیرلیکلی دی.دپروردګار دفضل اورحمت دنښانو څخه په ځناورو باندی همدابس دی. چې په قران کې څو سورتونه لکه دبقرې اوعنکبوت دهغوې په نامه نومول شوي دي. او یوهم (دانعام سورت )دهغوې دتولو په نامه نومول شوی دی.په انجیل کې دخدای پسه اووری په لقب،حضرت مسیح ته دهغه مظلومیت ته په اشارې سره په کراتو راغلی دی.

---

**یوه ورځ وروسته،یحیی ،عیسی ولید چې دهغه خواته راروان ؤ.هغه وخت یحیی خلکو ته وویل: وګورئ!داهمغه پسه دی. چې خدای رالیږلی دی. ترڅو ددنیا خلکو دګناهونو دبښنې – لپاره قرباني شي .داهمغه کس دی. چې خبر مې درکړ. چې وروسته له ماراځي اومقام ئې زمانه لوړ دی.. دیوحنا انجیل ،افصل ،(۲۹- ۳۱ )ایتونه**

دپروردګار په
وړاندی ټول مخلوقات دعزت والادي.اوهريوديومقصد لپاره پيداشوی دی.اما دانسان سرشت اوپيدايښت مقام ځانته اوجدادی:

**دانسان مقام لوړ دی. که په انسانيت ښکلی اوسينګار وي. اوپه غير له هغه دټولو مخلوقاتو نه ټيټ دی.۷۹**

| |
|---|
| **رسد آدمی به جائی که بجز خدا نبيند          بنګر که تا چه** |

امّا که انسان خپل قدرونه پيژني. شرير اوظالم شي. دداړونکي حيوان خوی واخلي. يالکه دچيچو نکی مارپه شان شي. اويا د ويني څښونکي ځناور په شان شي.          حضرت باب
فرمائي: داسې انسان حتی دحيوان دنامه لايق هم نه دی .۸          ځنی
خلک نوروته ضررنه رسوي. دناپوهي ژوند کوي. اوناپوه مړشي. په همغه ترتيب چې «الاغ»کلمه په فارسي کې دناپوهې اوبې فکری ضرب المثل دی ، په قران کې هم دهمدې صفت لپاره کارول شوې ده:

**كَانهُمْ حُمُرٌ مسْتَنفِرَةٌ فَرتْ مِن قَسْوَرَةٍ .**

**دمدثر سورت،(۵۰- ۵۱)ايتونه** (دحقيقت نه

انکارکوونکي)دهغو خرو په شان دي. چې دزمري په ليدلو فراراوتيخته کوي.

**مَثَلُ الذِينَ حُمِّلُوا التوْرَاةَ ثُم لَمْ يَحْمِلُوهَا كَمَثَلِ الْحِمَارِ يَحْمِلُ اسْفَارًا بِسَ مَثَلُ الْقَوْمِ الذِينَ كَذبُوا بِآيَاتِ اللهِ.**

**سورت جمعه ،۵-ايت**

هغه څوک چې دتورات وړونکی دی. امادهغه په معنی نه پوهيږي. اوتحمل ئې نشي کولای. دهغو خرو په شان دی چې په کتاب بار وي .څومره بد دی. دهغو خلکو برخليک چې دخدای ايتونه دروغ ګڼي!

دشاعرانو په اثارو کې ،حيوانات مهم نقش لرل اولري به ئې:

**چون بار همی برد عزيز است**

**به ز آدميان مردم ازاز**

**سعدی**

**ز است**

---

حضرت بهاءالله دقاجار په عصر کې درې غدار اوظالم پيشوايان:

ذئب »ځناور،----- «ابن ذئب» دځناور زوی ----

او«رقشاء»مار نومولي دي»

ــــــــــــــــــــــــــــــــــــــکله دحیوان صفت

دومره بارز اودستاینې وړوي. چې ډیرممتاز انسانان دهغه حیوان سره مقایسه کیږی .مثال ئې زمری او«شیر» دقدرت عظمت اوشجاعت په صفت مشهور دی. په همدی وجه ئې حضرت امیرته د «شیر لقب» ورکړل شوی دی (حضرت علی شیرخدا) دی.دیوحنا په مکاشفاتو کې ،۵فصل،۵ – ایت زمونږ دعصر پیغمبر هم د«شیرقبیله جودا»یعنی دجودا دقبیلې دزمري په نامه یادشوی دی. اودهغه غږ دزمری غږ سره تشبه شوی دی. (۱۰ فصل ،۳- ایت)مولوی له دی هم یوقدم وړاندی ایښی دی. دشیرلقب ئې خدای ته ورکړی دی.نورحیوانات چې دخپل ممتاز صفت په خاطر دانسان سره مقایسه شوي دي. عبارت دي له:

| | |
|---|---|
| باری | خوسکی:فداکاری |
| ت | کوتره:صلح |
| شق | بلبل :عشق |

ه بیاموز کان سوختە راجان شد و اواز نیامد
سعدی

امّا په ډيرو پيښواوموارډو کې چې انسان دحيوان سره مقايسه شوی دی ،منفي جنبه لري .دانموني په اسماني اثارو کې پيداکولای شی:

| | |
|---|---|
| من.<br>ص پيشوا.<br>ه رڼااونورنه | خوګ:هغه څوک چې دپروردګار دکلام داوريدلو لايق نه دی.دايمان دارمغان او هديه لايق نه دی.<br>ګرګ:حريص اوظالم پيشوا.<br>جغد:هغه څوک چې دربنتيني نورڅخه بيزار دی.<br>سپی:ددين مخالف ،اويادډين ساتونکی.<br>ذباب، مچ:انسان خوړونکي اوبی مقداره. |

حضرت مسيح خپل ځان شپون اوخپل پيروان پسونه يادکړي دي:

**زه ښه شپون يم.ښه شپون هغه څوک دی. چې خپل ځان دميږ ونه قربان کړي.**

**يوحنا، ۱۰فصل، ۱۱ ايت.**

دپیدایښت نه دوحشي داړونکو ځناورونه همیشه په خطر کې وي. مهربانه شپون ،دهغو دساتنې لپاره یویاځو سپي په رمه کې ساتي. دسپي بارز صفت خپل خاوند ته اطاعت اووفا داري ده. که دا حیوان دپسونو په ساتنه کې کوښښ وکړي. دتحسین لایق دی.اما که دوفادارۍ څخه لاس واخلي. اودخپل خاوند فرمان ونه مني. اورمه خوشې پرېږدي. څه به وشي؟طبیعی خبره ده. چې داحیوان بې له خپل شپانه درهنمائې اواطاعت څخه دپسونو په ساتلو قادرنه دی.اوکه وږی پاتې شي،شاید ځناوروخوی واخلي اوپسونه اوحتی شپانه وخوري.

په دې بیان کې حضرت مسیح دوه مخي اوتظاهر کوونکی پیشوایان (دخط وخال والا)دښکلو توراوسپینو پټو والامارانو سره تشبه کړي دي:

**وای په تاسو ریاکارو دینی علماو ! تاسې دهغو پیغمبرانو لپاره چې ستاسي نیکونو وژلي دي. پخپل لاس دیادبود څلی جوړوی. اودهغو مؤمنانو قبرونو ته چې دهغوی په لاس وژل شوي دي. ښکلااوزینت ورکوی. اووائې چې :که مونږ دخپلو نیکونو په ځای** وی. **پیغمبران به مونږ نه وی وژلي.اما په دی ویناسره داوښائې. چې دانبیاو دقاتلانو اولادونه**

**اوزامن یاستې .تاسی ګام په ګام له هغوې څخه پیروي کوي. اوپه بدو عملونو کې له هغوې څخه مخکې شوي یاستی .ای دخط اوخال والامارانو! څنګه کولای شی. ددوزخ دمجازاتو څخه خپل ځانونه وژغورئ؟ دمتي انجیل ،۲۳فصل(۳۳- ۲۹ )ایتونه**
درسول اکرم اوحضرت امیر لمړې درجه دښمنان دوخت پیشوایان ؤ.دامام حسین دهغه مظلوم اومهربانه سروراومشر، سردمسلمانوپیشوایانو په رضاغوڅ کړل شو .
په اسماني اثارو کې «دسپي کلمه»دبی ایمانه اوظالمو پیشوایانو لپاره اوهم دبدنیته اوددې دنیاپه کثافت الوده خلکو لپاره په کراتو سره راغلې ده:

---

فریسیان:دیهودانو دیوې ډلې اوقشرنوم ؤهغه ډله متعصب اوکوردله ؤ.

**دجنت نه دباندی سپي اوسيږي. اوهغه خلک چې روح ئې کثيف اوچټل دی...اوهرهغه څوک چې په درواغ ويلو معتاد اواخته دی... ديوحنا مکاشفات ،۲۲فصل،۱۵-ايت قل تالله انّ بحر الاعظم لن يتغيّر بما مسّته الکلاب و انّ جمال الشّمس لن يکسف بحجاب هذه السّحاب الّتي حالت بينهم و بين ربّ الارباب .۸۱ حضرت بهاءالله**

ووايه!په خدای قسم دی. چې لوی درياب دسپيو په اوبو څښلو سره تغيرنه کوي،اودلمر رڼا اوښکلاوريځې نشي پټولی. هغه وريځې چې دخلکو اودخدايانو دخدای ترمنځ پيداشوي دي.

دايقان په کتاب کې حضرت بهاءالله ظالم اوخودنما پيشوايان دسپي سره اودهغوی پيروان ئې دلاش (مړه اوخيرلی جسدونو)سره تشبه کړي دي:

**لکه سپي په مړواو جسدونو راټول شوي دي.۸۲**

حضرت مسيح دوخت دپيشوايانو په غوښتنه اوحمايت په شهادت رسيدلی دی.

مسیحیان فکر کوي. چې لاندی ایت،دیهویانو داسماني اثارو نه دحضرت مسیح په دار زړولو خبرورکوي:
**سپیو زما شاوخوانیولی ده.یوې ډلی بدکاره خلکو زماګردچاپیره حلقه جوړه کړې ده. زمالاسونه اوپښې ئې سوري کړي دي.**
**مزامیرداود،۲۲فصل،۱۶-ایت**
لکه څنګه چې موولیدل ،دسپي اصطلاح داصحاب کهف داستان په شروع کې هم راغلې ده .هلته مونږ وویل چې دهغوې سپی (هغه سپی چې خپل ځان داسلامي امت ساتونکی ګڼي )په داسي حال کې چې خپل لاسونه ئې مخی ته اوږده کړي دي. دلیدونکو دوحشت اوویرې سبب کیږي. طبعاً ددې سپي اصلي مقصد او هدف دغار داوسیدونکو دباندې نه راپریښودل اوغارته دنااشنا خلکو ننوتلو څخه ممانعت دی. ښه به وي. چې هغه ایت یوځل بیا وګورو:
**وَكَلْبُهُم بَاسِطٌ ذِرَاعَيْهِ بِالْوَصِيدِ لَوِ اطلَعْتَ عَلَيْهِمْ لَوَلَيْتَ مِنْهُمْ فِرَارًا وَلَمُلِتَ مِنْهُمْ رُعْبًا.**

**دکهف سورت،۱۸-ایت**

ـــــــــــــــــــــــــــــــــــــــــــــ د هغوې (داسلام
دامت) سپي دغار په مخکې ،خپل لاسونه مخې ته
ایستلي ؤ. که دې دا منظره لیدلې وی،فوراً
راګرځیدې، اوپه ډیرې ویرې اووحشت سره تښتېدلې.
همغسې چې مخکې ولیدل شو،تاریخ ددې شاهد دی.
چې دپروردګار دپیغمبرانو دظهور نه څه موده
وروسته دپیشوایانو جاه طلبه ډلې خپل ځانونو څخه
شپانه جوړوي. اودخدای بنده ګان خپله رمه ګڼي .دغه
ظالمانه حرکت دتاریخ په اوږدو کې دبشر لپاره
ډیرمشکلات رامنځ ته کړي دي .ټول دینونه ددغسې
بی دینه اوناپوه ملایانو دسواستفادې اوغلطې سره
مخامخ شوي دي.ولې دانسانې عالم بلوغ اوترقې ته
رسیدل به په تدریج سره دسؤاستفادې څخه بیخي
خلاص اوریښه کن شي.ځکه چې په بهائي ائین کې
دپیشوا اوملاکیدلو رسم اوطریقه بیخي له منځه تللې
ده.ددې ائین مدیران ددیموکراسې په طریقه دخلکو
لخوا دیوې ټاکلې مودې لپاره انتخابیږي ،اوکه دایمان

اووجدان داصولو نه منحرف شي. فوراً خپل مقام او منصب له لاسه ورکوي.

دابنکلی شعردطاهرې قرةالعين ددې کتاب په شروع کې موولیدل:

| | |
|---|---|
| ازتنفس | روشن همه عالم شد ز آفاق وز آنفُس |
| د تزویر | دیگر نشود مسجد دکّان تّقّدس |
| حَنَک از دُم | نه شیخ بجا ماند،نه زرق وتّدَلَس |
| ی مساوات | معدوم شود جهل ز نیروی تّفَرس |

په همغه ترتیب چې وموليدل،داصحاب کهف داستان دوه سپیوته اشاره کوي. یوهغه سپی چې خپل ځان داسلام ساتونکی ګڼي،اوبل هغه سپی چې خپل ځان دمسیحیت ساتونکی ګڼي.په قران کې ددریم شخص داستان دی. چې هغه هم دسپي سره مقایسه شوی دی.ښه به وي. چې هغه سپي هم وپیژنو. اووبه ګورو. چې ددې داستان اوداصحاب کهف ددوه سپیو داستان ترمنځ څه رابطه وجود لري؟داعراف سورت (۱۷۴-۱۷۳ – ایتونه)      په شروع کې له هغه چاڅخه خبرې کوي. چې دوخت اوزمان پیغمبر دخپلو نیکونو څخه دتقلید په خاطرنه مني .اووروسته بیادداسي یوشخص له داستان څخه خبرې کوي. چې په هرډول له هغه سره سلوک اوچلند وشي.

———————— په هرحالت کې
خپل کم اصل توب اوبدوالی دسپي په شان وښائي:
**وَاتْلُ عَلَيْهِمْ نَبَاالذِيَ آتَيْنَاهُ آيَاتِنَا فَانسَلَخَ مِنْهَا فَاتْبَعَهُ الشيْطَانُ فَكَانَ مِنَ الْغَاوِينَ... فَمَثَلُهُ كَمَثَلِ الْكَلْبِ ان تَحْمِلْ عَلَيْهِ يَلْهَثْ اوْ تَتْرُكْهُ يَلْهَث.**

**داعراف**

**سورت،(۱۷۶ ــ ۱۷۵- )ایتونه**
هغوې ته دهغه چا داستان ووایه. چې هغه ته مې د خپل خدای د لیلونه اونښانې ورلیږلی دي، اماده هغه نادیده وګڼلې .شیطان له هغه پیروي وکړه. هغه ګمراه شو.دهغه مثال دسپي دمثال په شان دی. که په هغه حمله وکړی ،خپله ژبه راوباسي. اوکه په خپل حال ئې پرېږدې. بیا هم خپله ژبه راوباسي.

توضیح: داسپي په کلي ډول داصحاب کهف ددوه سپیو په شان دټولو هغو کسانونماینده دي. چې دالهي ایتونو څخه انکار کوي.اماپه ډیر احتمال سره دیوخاص شخص ژوند داستان ته اشاره ده. چې دمقام اورتبې خاوند دی.مقام ئې له دی ځایه معلوم دی. چې پروردګار لمړی خپلې نښې اودلایل هغه ته ورلیږي .اوبل شیطان چې پخپله دګمراه اومکراوریاهیواد حاکم دی، دهغه پیرودی. اودهغه حمایت کوونکی دی. څوک ممکن دی. دداسې شرایطو لرونکی وي؟دوه تنه نظر ته راځي. چې دقران دایت ټول مفهوم اومعنا دهغوې په باره کې تحقق موندلی دی. لمړی نفر میرزایحیی مشهور په ازل دی. چې دحضرت باب لخوا هغه ته لوړ مقام ورکړل شو.ددې انتخاب مقصد داؤچې دالهي شپون په غیابت کې یعنی دحضرت بهاءالله ترظهوره پورې دبابیانو ریاست په غاړه واخلي. دهغو په ساتنه کې کوښښ وکړي .اما هغه حقیقي شپون هیرکړ. اوفکر ئې وکړ. چې پخپله شپون دی. دحضرت بهاءالله څخه داطاعت پرځای دکینې ،بغض اونفرت سره په پوره مخالفت اودښمنې کې دهغه لوی موعود په مقابل کې پورته شو.

حضرت بهاءالله

دمخكيني ايت اړيكه دميرزا يحيى سره دبديع په كتاب كې تصديق اوتائيدوي :

**انک انت الّذی ذکرت فی کتاب القبل بقوله تعالی :کمثل الکلب ان تحمل علیه یلهث او تترکه یلهث .۸۳**

**حضرت بهاءالله**

په يقين سره ته (ازل) هغه څوک ئې. چې ذكر دې مخكې په قران كې راغلى دى. هغه وينا ډيره عالي ده دهغه مثال، دسپي دمثال په شان دى. خپله ژبه راوباسي كه په هغه حمله وكړى،اويائې ونه كړى.

میرزا یحیی گناه ته دمیل له مخی شاید هیڅ نظیر نه لرل. ټول رذالتونه په هغه کې یوځای شوي اوراټول شوي ؤ.د هرظلم اوگناه په کولو سره چې ددې انسان لاس ورته رسیدل . ناراستی ئې ونه کړه. دټولو انسانې گناهونو اوخطاگانو جامع اوراټولوونکی ؤ.په داسی یو حالت کې دالهي دبخشش دریاب په داسې موجونو کې دی. چې دده په باره کې دارنگه وویل:

**ولو انّه اتی بذنب اثقل عن ثقل السموات والارضین ولکن لمّا تموّجت ابحرالفضل فی ذلک الایّام لو یتوب و یرجع لعلّ ان یغفره الله برحمة الّتی سبقت العالمین .**

۸٤**حضرت بهاءالله** که څه هم دهغه دگناه دروندوالی اووزن دځمکی اواسمانونو دوزن نه زیات اوډیر دی.له دې کبله چې په هغو ورځو کې دالهي فضل اوبخشش دریابونه په موجونو کې دی.که توبه وباسي. اورجوع وکړي ،شاید چې پروردگار دخپل رحمت په وجه چې دټولو جهانیانو لپاره دی. وبخښي.

دبدیع په کتاب کې خوواري دسَیّدمحمدّ نقش ته چې دمیرزا یحیی تشویقوونکی اومحرک ؤاشاره فرمائي:

---

دظهور الحق دکتاب پراساس، میرزا حمیدی گیلانی په اسلامبول کې دشیعه گانو قاضي اوپیشوا دسیدمحمد سره اشناشو. او سید محمد ته په بازی ورکولو دهغه

يوليک چې سرتاسرتهمت او اعتراض ؤ. يو بهائې ته وليږل. کله چې هغه ليک حضرت بهاءالله ته ورسيد. په درى ورځو کې هره ورځ ئې دوه ساعته هغو اعتراضونو ته جواب ويل داځوابونه چې (۳۰۰) درې سوه مخونو اوپانهوته رسي. دبديع دکتاب په نامه ياديږي .

حضرت بهاءالله دخپل  رسالت په موده کې چې (۳۹) نه ديرش کلونو ته رسيږي.     د ۱۰۰ سل جلده په اندازه ايتونه پرې نازل شوي دي.



---

**ـــــــــــــــــــــــــــــــــــــــو هذا لم يكن من عندک بل بما الق□ الشيطان ف□ صدرک .۸۵**

**حضرت بهاءالله** دا(تدبيرونه اوتزويرونه)ستاله خوا نه دي. داد سيّد محّمد دشيطانت څخه ستا په زړه کې دي.

**(سيد محمد)هغه ته (ميرزايحيى ) ته قناعت ورکړى دى. اوپه هغه څه ئې چې هغه ته تلقين اوقناعت ورکړيدى .داټول کارونه دهغه له تدبيرونو څخه دي**

ښه به وي. چې يوځل بياهغه نښانې چې داعراف سورت ددې غاصب په باره کې چې دخدای دشپانه مقام ئې غصب کړی دی. راکړي دي. له نظره تيرې کړو.په قران کې فرمائي ،دهغه چا داستان هغوې ته ووايه چې :

- پروردګار خپلې نښانې اودليلونه هغه ته ورليږلي دي.
- شيطان له هغه څخه پيروي کوي.
- باالاخره هغه ګمراه کيږي.

دې درې واړو علامو اونښو د(ازل ) په ژوند کې تحقق وموند: ۱.حضرت بهاءالله لخوا ورته دعوتنامه وليږل شوه.

۲.دسَيِدّ محمدّ اصفهاني په نامه چې حيله ګر اود(ازل)دپيروانو اومحرکينو څخه و. حضرت بهاءالله هغه ته شيطان وويل.

۳.اخر الهي عدل منځ ته راغی.هغه مقام چې دالهي فضل له مخې نيولی ؤ،له لاسه ووت.

دبهائي په لمړي سل کلن تاريخ کې،يوبل شخص هم په صحنه کې راظاهرشو.چې دا درى واړه علامې دهغه په باره کې تحقق پيداکړ.هغه شخص محمدّشاه دی،چې حضرت باب په څو ليکونو کې دالهي ائين نښې

،دليلونه اوعلامې ورته وليږلی. اوله هغه نه ئې
وغوښتل چې فرصت پيداشي .ترڅو پخپله دخپلې وينا
دحقانيت ثبوت هغه ته وړاندی کړي. محمدشاه
داليکونه اودعوتونه ناديده وګڼل ،اودتحقق اوجستجو
(پلټولو)په ځای حضرت باب داذربايجان هيواد دماکو
اوچهريق بنديخاني ته تبعيد کړ.
له دې څخه ئې هم پورته قدم اوچت کړ،دژوند په
اخرو ورځو کې دميرزاآقاسي په غولولو سره ئې ،



---

دحضرت بهاءالله دقتل حکم هم صادر کړ. اما مرګ
هغه ته دافرصت ورنکړ ترڅو داحکم اودافيصله سرته
ورسوي.۸۷
دقران دوړاند وينې په اساس ،دې شخص ته چې

پروردګار خپل دلیلونه او نښانې رالیږلي، هغه څوک دی. چې شیطان دهغه دحکم اوسلطې لاندی دی.هغه چاچې دقاجارتاریخ لوستلی دی. پوهیږي. چې داشیطان حاجې میرزااقاسي دی.دشیطان کارڅه شی دی ؟ دناپوه اوساده خلکو غولونه.محمدّشاه اګرچې ظاهراُ پادشاه ؤاوپرخپل وزیر حاکم ؤ،اماخپل فکرېی نه لرل اوهمیشه ئې دهغه انسان نما شیطان دغولونو اووسوسو لاندی ژوندکول.

---

❖ دقاجار دحکومت لویان له دی کبله چې محمدّ شاه دحاجې میرزااقاسی په خبرو غولیدلی ؤ. ډیر حیران اومتاثرؤ.لوی میرزانوري چې دحضرت بهاءالله پلارؤ،دمحمد شاه ددولت دلویانو اوفرمانروایانو څخه اوهم دلوی خطاطانو څخه ؤ.چې دمیرعماد ثاني لقب ئې پیداکړ.لوی میرزا دعصر دزمامدارانو څخه یوته ئې داقاسی احمقانه او ظالمانه نفوذ ته په اشارې سره دشاه په وجود کې لیکي :«ای مشره دابیزو دشاه څخه لرې کړی».په هیڅ ژبه کې داسې یوه جمله اویاکلمه نشې پیداکولئ. چې دغه بدشکله اومکار په داسی سم ډول توصیف کړي. داچغلګر شخص ،دخپل ځان لپاره شیریني ، دلوې میرزا لیک داقاسي په نامه لیږي.میرزااقاسي په یوه غونډه کې،ددیوان صاحب په حضورکې ،هغه لیک حضرت بهاءالله ته وښائې اووائي «ماستادپلارسره څه کړي دي. چې زما په حق کې داسې لیکنې کوي ؟»حضرت بهاءالله ځواب نه ورکوي. دیوان صاحب چې دلوی میرزادوست ؤ،دخپل دوست دساتنې لپاره له دې مطلب څخه انکارکوي. اووائي : چې داخط دلوی میرزا نه دی،ولی اقاسي ځواب ورکوي. چې

داسي وينا يواځي دلوی ميرزا په وس پوره ده.دهغه منظور
داؤ چې داسی يولنډه جمله جوړول په دومره ښکلااومهارت
سره په هغې کې دمطلب ځای کول، دايواځې دلوی
ميرزادوينادهنره پورې مربوط کيدلی شي.له دی کبله چې
زمونږ دعصر دوه موعوده اوهغه متفکراوماهرخطاط ،ددې
ظالم اومکار له لاسه روغ اوژوندي پاتي شو،پخپله لويه
معجزه ده.

وګوریٔ. چې محمدشاه څومره ناپوه اوساده ؤچې داسې يو موجود چې
حتی په خپله اداره قادر نه و،دخپل هيواد لمړی وزير اومدير
مقررکړی وه ! داسې يوڅوک چې رهنمائي رمل (فال بين)، دقضاوت
تله ئې نجومي اله  او مدير اومولائې فال بين وي ! يوانسان چې بيخي
دانسانيت ،عقل ،تدبيراو وجدان څخه  خالي کړی. اودهغه ځای رذالت
اوتذوير ته ورکړې.دا د اقاسي دحال صفت دی .بايد دداسی خلکو په
حال چې داډول  لمړی وزيرئې لرل وژړل شي.دحضرت باب څنی
پيروانو ، اقاسی ته دجال، اومحمد شاه ته «خردجال » ويل.
د«روضة الصفا» دکتاب په اساس ميرزااقاسي په «۱۴» کلن وزارت
موده کې ، (۱۴۳۸) قطعې دايران په مختلفو نقاطو کې دځان لپاره
تصرف کړې.

پـه یو قهرجن لیک
کې چې حضرت باب ،اقاسي ته لیکلی ؤ هغه ته ئې
دمظهرالابلیس یعنی (دشیطانانو پیغمبر) ویلی
ؤ.داخولنډې نمونې دهغه قهرجن لیک ښخه ولولئ،
ترڅو دالهي کلام په لویوالي اوقدرت پوه شئ:
**امّا بعد فاعلم ایّهاالکافر بالله والمشرک بآیاته والمعرض عن جنابه والمستکبر عن بابه انّ الله عزّ ذکره لایعزب عن علمه شیئ...فوالّذی نفسی بیده انّ غفلتک عن ذکری و عصیانک فی حکمی و اعراضک عن طلعتی لک اشدّ من نار جهنّم...لو تعلم ما اکتسبت یداک فی امری لتفر الی قلل الاوتاد و تجلس عریاناً فی الرّماد و تشهق من حکم الایجاد و تصعق لاهل الفؤاد اما تعلم ما فعلت یامظهرالابلیس فکانّما ظلمت علی کلّ من فی الوجود من الغیب والشّهود...ازعمت انّک تستلذ فی الدّنیا و قعدت علی بساط السّلطنة و تکبّرت علی من حولک بما جعل الله الحکم فی یدک لا و ربّی ما قعدت الاّ علی صدر النیران و لاتستلذ الاّ بنار الخسران و لاتأکل الاّ من اثمار شجرة الحسبان و لاتشرب الاّ من حمیم الغسلان .۸۸**
**حضرت باب**
دهغه سپي چې په هر حالت کې ژبه راوباسي .

دشیطان ددې دوه پیروانو یعنی میرزا یحیی اومحمد شاه سره دمشابهت وجه څه ده ؟ که یو بنده خپل سر دګومان ،تقلید او ناپوهې په غړوندي کې وردننه کړي. دهغه خلاصون یو سخت اومشکل کاردی.حتی غیر ممکن دی .چې دهری لاری نه ورته ورشو. اوهرڅه چې ورته ووایو. اوپه هرډول ئې ورته ووایو ،دهغه لپاره ټول یو شان اوبې تفاوته دي.داحیوان دانسان په څیره کې داسې د وهم اوګمان په دریاب کې غرق دی. اوداسی په بې اساسه تصوراتو کې بندي دی. چې ډیره کمه توجه دعقل اوحکمت له مخې دحقیقت میزان ته نه کوي.په ټولو حالتونو کې خپل بیهوده اوپوچ خیالونه په ژبه راوړي. اوبې له فکره هغه تکراروي . په قران مجید کې کوم چې اسماني کتاب دی. اوټول الهي اسرار په کې پراته دي. دادوه شخصه چې په (ازل) او (محمدشاه)سره مشهوردي. دهغه سپي سره تشبه شوي، چې د شیطان په (غړوندي) کې ایسار شوي دي. دادوه سپي په ظاهر کې دخلکو ساتونکي ؤ. او په باطن کې دشیطان بنده ګان ؤ.

# دداستان پاتې

## برخه

**۲۵ – ایت : وَلَبِثُوا فِي كَهْفِهِمْ ثَلَاثَ مِاةٍ سِنِينَ وَازْدَادُوا تِسْعًا .قُلِ اللهُ اعْلَمُ بِمَا لَبِثُوا.**

**(۲۵ – ۲۶)،ایتونه**
په هغه غارکې (۳۰۰ )کاله پاتې شو.ددې سره د(۹)عدد اضافه کړئ.
ووایه!خدای پوهیږي. چې څومره کلونه به په غارکې ؤ.
توضیح: په همغه رقم چې داصحاب کهف داستان په شروع کې مووليدل. کله چې لمر راوختل، دغار ځنې اوسیدونکې بیدارشول .دهغه دیار څخه ئې قدم دباندی کیښود .دهغو وینا په اساس ،په غارکې دهغو اوسیدونکو موده یوه ورځ اویا دورځې یوه برخه

وه.ددې دوه عددونو ترمنځ توپير يعنې (۳۰۹ — او ۱۰۰۰) له کومه ځايه دی؟ لمړی عدد(۱۰۰۰ کاله )دغار اوسيدونکو دهغه اول وخت وتلو ته اشاره ده.دوهم عدد(۳۰۹)،په ډيراحتمال سره ،دهغه اخروخت وتلو ته اشاره ده.ددی سورة دوړاندوينې په اساس دغارتخليه کيدل،ددرې پيړو په شاوخوا کې (۳۰۹) کاله وخت نيسي.په اوسني وخت کې مونږ ددې دوران په نيمائي کې يو.دهغه تاريخ په رارسيدوسره (دبهائې دريمي پيړی په اخر کې ) دغار ټول اوسيدونکې،دپخواني ديار څخه خپل قدمونه دباندی کښيږدي ،اونوي هيواد ته به داخل شي.

دبهائي ائين ګستريش اوپراخوالي

اړيکه د۳۰۹عدد سره

هجری قمری هجری قمری

هجری قمری

دوحی اوالهام دوران۲۶۰ ۱۰۰۰کلنه ورځ

۱۲۶۰ ۹ کال ۱۵۶۹

داسلام دتاريخ داخرين امام دبهائي ائين دتاريخ

دبهائي ائين د پراخوالی

شروع درحلت کال شروع دغارنه

پای اودغار څخه

دمسلمانانو وتلو پيل

دمسلمانانو دوتلواخرينى

وخت

دقران وړاند وينه،دغار دتخلې (خالى كيدنې) دتاريخ په باره كې ،دحضرت عبدالبهاء دبيان سره هم موافق ده.ځكه په يوليک كې فرمائې:چې تر(۲۰۰) نورو كلونو پورې (دليک دليكنى نيټى نه) بهائيان بايد چې ددې ائين دډيروسعت اوپراخوالي لپاره كوښښ وكړي.۸۹

۳۰۳ ۱۰ فصل: دكهف سورت،لمړى برخه

---

---

دوه وړاند وينې وښايي. چې دلوى خبرپه خپرولوكې ډيرصبراوكوښښ په كاردى. **دحضرت عيسى دين هم پس له دريوپيړيوعموميت پيداكړ. ددې ظهورمثال دابن ذكريا اودعيسى بن مريم په مثال دى.۹۰**

**حضرت بهاءالله**

پوښتنه: د۹عدد دجداكولو رمز د۳۰۰ عدد څخه څه دى؟

---

د۹عدد په بهائې ائین کې دخاص اهمیت څخه برخه مند دی.دهغې جملې نه یوداچې دحضرت باب اوحضرت بهاءالله دظهور ترمنځ دفاصلې سره برابر دی.ځکه چې حضرت بهاءالله خپل امر دلمړی ځل لپاره (۹) کاله وروسته دحضرت باب دظهور څخه په طهران کې اظهار کړ.بل داچې د۹عدد دابجدو په حساب دبهائې ائین د مؤسس دنامه سره برابر دی یعنی «بهاء».

ب = ۲
هـ = ۵
ا = ۱
ء = ۱
———
بهاء = ۹

ددوعددونو (۹او ۳۰۰) جداوالی یوه لطیفه اشاره ده، دحضرت بهاءالله ظهورته. ځکه علاوه اوبرسیره پردې چې د۹عدد دهغه نامه اودهغه دظهور فاصلې ته اشاره کوي.دهغه جمع کول د۳۰۰ سره دهغه درحلت کال داخرو دری رقمونو سره (اویاددې جهان نه هغه همیشنی جهان ته )

درحلت دنیټې اخرو درې رقمونو سره برابر دی.
که ۱۰۰۰ کلنه ورځ چې دهغې پای مطابق دی،
دغار نه دمسلمانانو دوتلو له پیل سره. د۳۰۹ عدد
(دغارتخلیې ) موده ورزیاته کړو د(۱۳۰۹) عدد به
لاس ته راوړو. داعدد دحضرت بهاءالله درحلت
کال سره مطابق دی.
دقران ټولی وړاند وینې د مروج تاریخ په اساس
دمسلمانانو په منځ کې په قمري کال سره دي .

---

❖ د حضرت بهاءالله د«امر څرګندونه» ددوهم ځل لپاره
په بغداد کې ۱۹ کاله وروسته دحضرت باب دامر
داظهاراوڅرګندونې څخه تحقق وموند.

---



| | | |
|---|---|---|
| دحضرت بهاءالله دصعود کال | دغار دتخلې موده | زرکلنه ورځ |

| | | |
|---|---|---|
| ۱۳۰۹ = | ۳۰۹ + | ۱۰۰۰ |

**دبهائي ائين مهمې پيبنې**
**دکهف دسورت په اساس**

داسلام دتاريخ شروع — دبهائي ائين دتاريخ شروع اودحضرت باب دامر اظهار — دحضرت بهاءالله دامر اظهار — دحـ

۲۶۰ — ۱۰۰۰ — ۹

۱ — ۲۶۰ — ۱۲۶۰

دوران يازمان: يدبرالامرمن اسماء الی الارض

دوران يازمان: «ثُمَّ يُعْرِجُ اليه فی يوم کان مقداره الف سنه مماتعدون»

تول عددونه دهـ ق تاريخ په اساس دي

د

دغارنه دخلکودوتلو شروع
دغار نه دخلکو دوتلو پای
دحضرت باب دامر اظهار
اولوی خبر دمنلوموده دجهان
دتولو خلکو ...اره

دحضرت بهاءالله دامر اظهار

۹ — ۳۰۰

١٢٦٠ په کتاب کې دیادې شوی
مودې په تیریدوسره ١٥٦٩
سمدلاسه به امر اوچته شي. اوټول
به ورته متوجه شي.

حضرت بهاءالله

ددې محاسبې له مخې ، دحضرت باب دظهور له کاله
دغار دتخلې وخته پورې،٣٠٩کاله،
اودحضرت بهاءالله دظهور له کاله دغار دتخلې
تروخته پورې ٣٠٠کاله وخت نیسي.

٣٠٥ ١٠فصل:دکهف
سورة،لمړې برخه

---

---

دخلکو دزړونو دشک اوشبهې په خاطر ،حضرت
بهاءالله په کراتو پخپلو ایتونو کې وعده ورکړې ده.
چې دپروردګار ائین په یوټاکلې موده کې دجهان
دعامو خلکو لخوا قبول شي. ددې ایتونو څونموني:

**داچې دامرالله دلوړوالي دوخت پوښتنه موکړې ده. انّ له وقت مخصوص فی کتاب الله.۹۱**
**حضرت بهاءالله**
(دپروردګار دکتاب په اساس په یو معین اوټاکلی وخت کې لوړتیا مومي.) **دخدای په کتاب کې هغه وخت...ثبت شوی دی.۹۲**
**حضرت بهاءالله**
**فسوف یجتمع الله فی ظله کل من فی الملک ...۹۳**
**حضرت بهاءالله** ژر
دی چې پروردګار دعالم ټول خلک دخپل سیوري لاندې راولي.
**ډیرژر دی. چې حق به ټول ځایونه ونیسي.اوپه ټولوبه غالب شي.۹۴ حضرت بهاءالله**
**باالاخره به پروردګار حق ټولو ته وښائي . ۹۵**
**حضرت بهاءالله**
ډیر ژردی چې دامررڼابه عالم ته ورسي .که څه هم اوس خلک دکفرخواته متوجه دي. خو دهغو لپاره وخت ټاکلی دی. **اذاتم یظهر ماهوالمسطور فی کتب الله ربّ العالمین .۹٦**

**حضرت بهاءالله**

**دځمکې والاو ډیر غفلت اوبې پرائي کړې ده.اوداسې ګمان ئې کړی دی. چې کولای شي امرالله معدوم اونابود کړي، اود الهي امر«رښا»خاموشه اومړه کړي...په خدای قسم دی. چې هرڅومره ئې دخاموشولو لپاره کوښښ وکړي ،هغه به نوره هم روښانه شي...ټول عاجزدي. دهغه دقدرت دظاهریدلو په مقابل کې .۹۷ حضرت بهاءالله**

**دامرونو اوکارونو دځنډیدلو په خاطر زړه تنګي، مه اوسئ. هرامر دوخت پورې مربوط دی .۹۸**

**حضرت بهاءالله**

دداسې دقیقونښانو وړاندی کول دهیڅ یو موعود دراتګ لپاره نه دي وړاندې شوي. په غیر زمونږ دعصر ددوه موعودو لپاره چې سابقه نه لري .ایاکولای شئ دارنګه ایتونه اونښانې دمسیحیانو په اسماني اثارو کې داسلام دظهور په باره کې پیداکړئ؟

---

❖ څه دقران مجید اوڅه هم دحضرت بهاءالله په ایتونوکې په ډیرو مواردو کې قران ته په اشارې سره د«کتاب»یادخدای کتاب(کلام الله) کلمې راغلي دي.

❖ په دې ایت کې نه دي فرمایلي کوم کتاب. په ډیراحتمال سره د (کلام الله) منظور قران مجید

کتاب دی.

قران بهاءالله



---

بنه به وي

يوځل بيا ددې «رازونو ډک»داستان عددونه، چې په بهائې ائين کې تحقق موندلی دی. له نظره تيرکړو:

- دنوي ائين دظهور کال وروسته له يوې زرکلنې ورځې ۱۲۶۰ = ۱۰۰۰ + ۲۶۰
- دبهائي مؤسس نوم دابجدو په حساب ........................ ۹
- زمونږ دعصر ددوه موعودو زماني فاصله .................. ..... ۹
- دسياسی مشرانو شميره چې حضرت بهاءالله ورته خطاب کړی وه. اوه ليکونه ئې ورليږلی ؤ.............................. ۷
- دمذهبي مشرانو شميره چې حضرت بهاءالله ورته خطاب کړئ وه ............................................................. ۱

- دصعود یا رحلت کال یعنې
له دې جهان نه دحضرت بهاءالله درحلت کال.......................... ۱۳۰۹

دکهف په سورة کې چې اصحاب کهف داستان دهغه یوه برخه جوړوي،دحضرت باب ظهور ته هم اشاره شوې ده.په هغه ایتونو باندی وروسته فصل کې بحث شوی دی.مخکې دهغوې له بررسې څخه ښه ده، چې دسورت کهف څو ایتونو ته توجه وکړو:

**۲۹- ایت : وَقُلِ الْحَق مِن ربِّكُمْ فَمَن شَاء فَلْيُؤْمِن وَمَن شَاء فَلْيَكْفُرْ.**

ووایه!حقیقت ستاد پروردګار له طرفه راغلی دی. هرڅوک چې غواړي. ایمان راوړي. اویاهرڅوک چې نه غواړي. ایمان راوړي.

توضیح: په دې ایت کې،پروردګار هغه چاته ښه خبرورکړی، چې دخدای په نوی ائین ایمان راوړي. او هغه چاته خبرورکوي چې ددې لوی بخشش اواسماني ارمغان څخه مخ اړوي.

**من شاء فلیقبل فمن شاء فلیعرض انّ ربّ لغنّ عنکم و عن انفسکم و اعمالکم و افعالکم .**

**۹۹**

**حضرت بهاءالله** هرڅوک چې غواړی ایمان

راوړي، اوراشي . اویاهرڅوک چې نه غواړي ایمان راوړي اومخ واړوي.زما پروردګار له تاسې اوستاسې دنفسونو، اوستاسې له فعلونو اوعملونو بې نیازه دی.
**۵۷- ایت: وَمَنْ اظْلَمُ مِمن ذُكِّرَ بِآيَاتِ رَبِّهِ فَاعْرَضَ عَنْهَا...** ایاله
هغه بل څوک ظالم کیدلی شي. چې دخدای نښانې اوري. اودهغو له منلو څخه ډډه کوي؟

توضیح: ولی دخدای دنښانو اودلایلو څخه مخ اړول ظلم دی؟ظلم یعنی دیوچا محروموال دخپل حق څخه ،دلته حق پروردګار ته نږدی کیدل اوهمیشني جنت ته داخلیدل دي.داهغه حق دی. چې پروردګار مونږ ټولو ته بخشش کړی دی.اویوځل بیامونږ هغه اسمانې میدان ته رابولي :
**ان ادخلوا الجنة رحمة من عندنا و اشربوا فيها خمرالحيوان من يدالرحمن. ۱۰۰**

**حضرت بهاءالله**
جنت ته داخل شئ. اودهمیشني ژوند شراب دپروردګار دلاسه واخلئ اووئې چښئ. ستاسې لپاره دازمان فضل اورحمت دی.
دلوی خبر څخه بی اعتنائي کول، چې دپروردګار لخوا

خپلو بنده ګانو ته دخوښۍ اوکامیابۍ لوی پیغام دی. دهرانسان لپاره بده نتیجه لري.اوهغه نتیجه د خدای نه لریوالی دي. چې په اسماني کتابونو کې ورته «دوزخ » ویل شوی دی. دقران د شهادت په اساس ایاڅوک قادر دی. چې ددې نه زیات ظلم پخپل روح تحمیل کړي؟ددې ظلم اهمیت دهغه په دایمې نتیجو پورې تړلی دی.فرض کړئ یو دوست لری. چې خپلی سلامتیا ته اهمیت نه ورکوي. اوهر څومره چې تاسې دهغه دپوهې لپاره کوښښ کوې ،بې فایدې دی. ایادهغه داغفلت دخپل ځان سره ظلم نه دی؟ایایوه ورځ به دخپل دې چلند نتیجی ته ونه رسي؟

قران اوبهاءالله



---

په هغه ورځ به څوک مقصر اوګناه کار وګڼو ؟خدای؟تاسی ؟یاخپل ځان؟ایا په عالم دایمان اووجدان کې په غیر له دی بل کوم قانون وجود لري. اویاحکم فرمادی؟که د خپل روح اوروان دسلامتیا اوساتنې لپاره کوښښ ونه کړو. څه به وشي؟بې له دې چې په

رواني رنځ اخته شو. اوحتی د معنوي مرګ نه مه واره کیدلې شي دبل څه شی انتظار وباسو؟په دارنګه غفلت اوقصور سره ،ایا انصاف دی. چې په ورځ دحساب بل څوک مقصروګڼو؟

**ووائې اې خلکو !پخپل ځان رحم وکړئ. که په نوررحم نه لری،ځکه چې ستاسې داعمالو اوافعالو ثمره پخپله ستاسې ده. ۱۰۱**

**حضرت بهاءالله**

ښه خبره داده ترڅو فرصت پاتې دی. دااسماني نصیحت دزړه په غوږونو واورو. اودهغه په نتایجو فکروکړو:

**یا ابن الوجود حاسب نفسك فی کل یوم من قبل ان تحاسب لان الموت یأتیك بغتة و تقوم علی الحساب فی نفسك .۱۰۲**

**حضرت بهاءالله** اې دهستې اودژوند

زویه!مخکې له دې چې له تاسره حساب وشي،هره ورځ له ځان سره پخپله حساب وکړه،ځکه مرګ ناڅاپه راځي. اوته باید دخپلو عملونو دنتایجو سره مخامخ شې.ډیرخلک دې ته تمایل لري، چې یوه اسانه لارپیداکړئ.اودا لاره دپروردګار بلنې ته بې اعتنائي ده،اودنیکونو دناګاهانه تصوراتو اوتعصباتوڅخه تقلید اوپیروي ده،نه دتحقیق اوتتبع طریقه اولار.دتقلید مسئله

دومره داهمیت ځخه ډکه ده. چې قران په کراتو سره هغه تکرار کړې ده.دکهف سورة ددې قانون ځخه مستثنی نه دی:

**۵۵- ایت: وَمَا مَنَعَ الناسَ ان یُؤْمِنُوا اذْ جَاءهُمُ الْهُدَی...ا لا ان تَاتِیَهُمْ سُنَةُ الْاولِینَ...**

کله چې دپروردګار هدایت خلکو ته ورسي. (نوی موعود راځي)...دهغوې ممانعت دایمان ځخه ،دمخکنیو دپای دانتظار طریقه ده.

دمسیحیانو په برخلیک اودهغوې دانتظاراتو په هکله فکروکړئ.(۲۰۰۰)دوه زره کاله کیږی، چې منتظردي. چې دهغوې موعود له اسمان ځخه رابنکته کیږي.شیعه یانو هم همغه دمسیحیانو طریقه نیولې ده.هغوې هم له زرو کلونو راپه دې خوا منتظردي،

چې قايم موعود به ئې له څاه څخه راپورته
شي!دمخكنيو په تعصباتو اوګومانونو پورې
تړل.اودپيشوايانو څخه ناالګاهانه پيروي ،دروح اوروان
بنده ګې اوبرده ګې ده. ولې ډيرخلک دجسم دبرده ګې
نه بيزاره دي. امادروح اوروان دبرده ګې مشتاق
اورغبت كوونكي دي؟ترڅو انسان دمعنوي ازادې
قدرونه پيژني اوخپل روان دمخكنيودتصوراتو
،تعصباتو دبندنه خلاص نه كړي،اودتحقيق اوڅيړنې
لارونه نيسي ،هيڅكله به دزمان دموعود په پيژندنه
قادر نشي. اونه به ئې هم هيڅكله دهغه روښانه لمرپه
روښنائې ستركى ولګيږي .په دې قانون كې ،چې
دپروردګار دحكم او حكمت جوړښت دى،هيڅكله
استثنائې نه وه اونه به وي.
دعقيدې اوفكر ازادي دانسان دلويو افتخاراتو
اوامتيازاتو څخه ده.ځناورد دې امتياز اوافتخار څخه
بې بهره دي.كه چيرته دازادې ،پوهې او اختيارهديه
چې دپروردګار لوى بخشش دى. له لاسه وركړو.
اوددې ابدي افتخار نتايجو نه بې برخې شو،دانسانيت
مقام اوفضليت به موله لاسه وركړى وي.

هرمهم تصميم چې په ژوند کې نيسو ،يامثبته نتيجه لري اويامنفي ،ياښه خبر راوړي اويابدخبر. ددين اوائين دلارې ټاکل هم دارنګه دي.دلوی خبر منل زمونږ. دروح لپاره زيری دی. اودطرب (نغمو)اوخوښيوډک دی.دهغه نه مخ اړول اوردول يوبد خبردی. داحقيقت په ټول قران کې له هغې جملې نه په سورة کهف کې تکرار شوی دی:

**وَمَا نُرْسِلُ الْمُرْسَلِينَ الا مُبَشِّرِينَ وَمُنذِرِينَ.**

**دکهف سورة،۵۶ ــ ايت**

زه پيغمبران دښه خبر ورکولو لپاره اودبدخبر (اخطار)ورکولو لپاره ليږم.

زمونږ. دهميشني برخليک انتخاب زمونږ. په لاس کې دي.دائين اوايمان په هيواد کې هيڅکله جبر په کارنه دی:

**وَمَا عَلَيْنَا الاالْبَلاَغُ الْمُبِينُ.**

**ديس سورة،۱۷- ايت**

زمونږ. وظيفه يواځې دخبر رسول دي.

**وَلَوْ**
**شَاء رَبكَ لآمَنَ مَن فِي الارْضِ كُلهُمْ جَمِيعًا افَانتَ تُكْرِهُ النـاسَ حَتى يَكُونُواْمُؤْمِنِينَ.**

**ديونس سورة، ۹۹-ايت**

كه خداى غوښتي وى. دجهان ټول خلک به مؤمينان شوي وى .ايا غواړې چې هغه په جبرسره ايمان راوړي ؟
دخلكو دزړونو تسخير دپروردګار په قدرت سره بس ډير اسانه كاردى.اما دالار اوطريقه دالهي ارادې سره جوړه نه ده.اوفرمائي دپروردګار غوښتنه داده. چې ددليل او اثبات په قوت،دبيان اوحكمت په قدرت، دخلكو زړونه دپروردګار په نور سره روښانه كړئ ،نه په ويرې اوجبرسره.
**مظلوميت ډير محبوب دى...دپروردګار جَلَّ جَلاَلُهْ مظلوميت خوښېدل اوخوښيږي...۱۰۳**

**حضرت بهاءالله**

که دحق جل جلاله اراده نه وی شوې ،هیڅوک به پرهغه دزیاتي کولو قادرنه وی.ټول دهغه دقدرت په قبضه کې راګیر دي. اودهغه دزوراوقوت په مقابل کې ضعیف اوذلیله دي.۱۰۴
حضرت بهاءالله

پروردګار دهغه کلام

څخه

پیژندلای شی

ډیرژردی. چې دپروردګار دقدرت اعلام اوخبربه په ټولو ځایونو کې اوچته اولوړ وګوری. اودهغه داثارو غلبه اودهغه سلطنت په ټولو ځایونو کې ښکارهووینی .۱۰۵

حضرت بهاءالله
ډیر ژر دی. چې وبه ئې ګوري. دهغه څه نه چې اوس منکر دي. اوقبول به ئې کړي. هغه څه چې په هغه اعتراض لري.۱۰۶
حضرت بهاءالله
دنصرت ملایکې دهغه دقدرت په قبضه کې دي. که اراده وکړئ ،په یونفس به ټول عالم تسخیر کړي...
۱۰۷
حضرت بهاءالله

**قل قد جاء الغلام ليُحييَ العالَمَ و يتّحد من عل□ الأرض كلّها سوف يغلب ما أراد الله و ترى الأرضَ جنّةَ الأبهـ□ .١٠٨**

**حضرت بهاءالله**



---

ووایه ! داځوان

جهان ته دژوند بخښلو لپاره اوپه جهان کې دټولو اوسیدونکو ترمنځ داتحاد اویووالی لپاره راغلی دی.ژردی چې دپروردګار اراده وشي. دځمکې مخ جنت وګرځي. (ځمکه د«جنت ابهی » تازه ګي اوځلاپیداکړي).

**اذَا جَاء نَصْرُ اللهِ وَالْفَتْحُ وَرَايْتَ الناسَ يَدْخُلُونَ فِي دِين اللهِ افْوَاجًا فَسَبِّحْ بِحَمْدِ رَبِّكَ وَاسْتَغْفِرْهُ انـهُ كَانَ تَوابًا.**

**سورة نصر،(۱- ۳ ) ایت**
کله چې دپروردګار دکومک اوپیروزی [زمان]
اووخت راورسي.وبه ګورئ، چې ډلې ډلې خلک
دپروردګاردین منلو ته راځي ،دپروردګار ثنا اوصفت
وکړي. اوله هغه څخه بخښنه وغواړي .ځکه چې هغه
توبه قبلوونکی دی.
**قل اذ جاء النّصر کلّ یدّعون الایمان و یدخلون فی امر**
**الله .۱۰۹** **حضرت بهاءالله** ووایه!کله
چې دکومک اویاری وخت راورسي ،ټول خلک به د
ایمان دعوه وکړي.اودپروردګار دین اوائین به ومني.
**فسوف یحیط الارض و من علیها کذلک قضی الامر و**
**لایقوم معه حکم من فی السموات والارضین .**
۱۱۰
**حضرت بهاءالله** ډیرزردی. چې
ځمکه اودهغې اوسیدونکي به په ځان راټول کړي
.او هیڅ قدرت به ئې نه په ځمکه اونه په اسمانونو کې
دهغه مقابله وکړي.
**ډیرزر دی. هغه څه چې په ژبه وویل شو. په ظاهر**
**کې ولیدل شي.۱۱۱ حضرت بهاءالله**

# د کهف سورة
# دوهمه برخه
# دحضرت باب
# دظهور
# اړوند ایتونه

دحضرت بهاءالله دظهور په هکله دډیرو نښانو اوعلائمو دیادونې وروسته ،دکهف سورة دحضرت باب دظهور څخه خبر ورکوي .په شروع کې ، داسورة یو سد او«بند» ته اشاره کوي. چې هیڅوک ئې په لرې کولو قادرنه دی. یعنی دومره قوي اومحکم خنډاو «مانع» ده. وروسته ددې مانع اوبند یادولو څخه ،خبرورکوونکی ،داله خوښې ډکه وعده مونږ ته راکوي:

---

۹۸ -۹۹ ___________________

**آيتونه:قَالَ هَذَا رَحْمَةٌ مِّن ربِّي فَاذَا جَاء وَعْدُ رَبِّي جَعَلَهُ دَكاء وَكَانَ وَعْدُ رَبِّي حَقا وَتَرَكْنَا بَعْضَهُمْ يَوْمَئذٍ يَمُوجُ فِي بَعْضٍ.**

وويل: دازما دپروردګار دلطف اومرحمت څخه دی .هرکله چې د«وعدی» وخت راورسي،هغه دجدائې بند به خدای دړې وړې اولرې کړي.پوه شی. چې د پروردګار وعده سمه ده. په هغه ورځ هغوې خلاصوم ترڅو ددریاب دموجونو په څیر یوبل په غیږ کې ونیسي .

توضیح: مخکنی ایت دحضرت باب دراتګ لپاره مقدمه ده .خبرورکوونکی په دی ځای کې دجهان دبدلون اوخلکو یووالی اومعاشرت زمونږ دزمان اوعصر خبره کوي.دابدلون دحضرت باب دائین په جوړیدو اوراتګ سره یو ځای شروع شو هغه خبر چې دلمړی ځل لپاره دتلګراف داختراع له لارې

مخابره شو. فکر وکړئ.هغه خبر،دحضرت باب د«امرداظهار»څخه یوه ورځ وروسته دیهودیانو دمقدس کتاب په دی ایت سره دجهان خلکو ته اعلان شو:

**(وګورې ) خدای څه وکړل!**

**اعداد:۲۳ فصل۲۳ ـ ایت**

وروسته له زروکلونو جدائې ناڅاپه زمونږ دعصر خلک دیوبل سره مرتبط شول،اودکهف دسورة وړاندوینې په اساس ددریاب دموجونو په څیر په حرکت اوغاړې وتلو کې شول. بهائي ائین ددې لپاره راغلې دی. چې دپروردګار په کومک ،دجهان دا له حرکته ډک موجونه په ډیره ارامې اونظم کې ژوند وکړي.له دی وروسته دسیلابونو اوخرابې سبب نشي.مخکښې ایت یوځل بیا دقران دمعّما خاصه کلمه یعنی «وعده »کارولې ده.داوعده دجهانبین دنظم دظهور اوددې ائین دجهان اراء وعده ده:

**ووایه!اې دوستانو،دیووالی پرده اوچته شوه،دپردیو په سترګه یوبل ته مه ګورئ.ټول دیوې ونې میوه اودیوې څانګې پاڼې ئې .۱**

**حضرت بهاءالله**

**۹۹ ـ ایت: وَنُفِخَ فِي الصورِ فَجَمَعْنَاهُمْ جَمْعًا.**

شپیلې ووهل شوه اوهغه موسره راټول کړل .

توضیح: دموعود ظهور په وخت کې دمستعدو اوبیدارو خلکو روحونه دمختلفو ډلو څخه دیوبل سره راجمع اوراټولیږي. اویو ائین ته به ورشي .اوهغه خلک چې دموعود دظهور څخه خبر پیداکوي،



---

اودتقلید

اوغفلت په خاطر دحقیقت په وینا داقرار په ځای اودخلوص اوبنده ګې داظهار پرځای دپروردګار دعظمت اولویوالی څخه سرغړونه کوي. داډول خلک هم یودبل سره یوځای کیږي. اودمنکرینو دډلی څخه وګڼل شي.

**قل تاالله قد نفخ ف الصّور و نری النّاس هم منصعقون...قوموا من الاجداث ال متـ ترقدون .۲**

**حضرت بهاءالله** ووایه!په خدای قسم

دی،شیپلې وهل شوې ده. امّاخلک دبیهوشې په حالت کې وینم ...له قبرونو څخه پورته شئ.ترڅو به دغفلت په خوب بیده یاستی؟

دموعود دظهوروخت دجهان دخلکو دمحشر اوقیامت وخت دی.هغوې چې دپروردګار اواز دعقل په غوږونو واوري. اودغفلت تیارې کندې راووزي،نوی ژوند به پیداکړي. اوهمیشنې روښنائي ته به ورسي.ددې عالم دسفر نه وروسته به په موعود باندی دایمان له خاطره جنت ته لارپیداکړي.اوپه هغه بې منتها فضا کې به نوی ژوند دسره پیل کړي. دحدیث په اساس مؤمنان په دواړو جهانونو کې ژوندي دي. **(المؤمن حی فی الدارین )**.کله چې هغوې یواځې ددې جهان په چارو اخته شي. دپروردګار غږ به وانه وري،اودغفلت دقبر څخه به پورته نشي،وروسته ددې دیار دسفر نه په همغه تاسف ناکه حالت کې دتیارو په کنده کې ،دخدای نه لرې اوسي.داخلک په دواړه جهانه کې اودقیامت اومحشر دورځې دبخشش څخه ،چې دمعنوي ژوندسرچینه ده بی برخې وي.

**قل قد اتت الصّیحة و خرج النّاس من الاجداث...و منهم مسرع الی شطرالرّحمن و منهم مکبّ علی وجهه فی الن ار و منهم متحي رون .۳**

**حضرت بهاءالله** ووایه!اواز پورته شو. اوخلک دقبرونو نه پورته شوي...یوډله دپروردګار خواته منډې وهي،ځنې په اورکې دي اوبله ډله هم حیران دي.

**طوبی لنائم انتبه من القواة و قام من بین الاموات قاصداً سبیل الربّ ان همن جوهرالخلق لدی الحقّ و انه من الفائزین . ۴**

**حضرت بهاءالله**

نیکمرغه دی. هغه ویده چې له خوبه بیدار شو،دمړوله منځه پورته شو. اودپروردګار لارې ته راغی. هغه نجات پیداکړ.دپروردګارپه نزد دخلکو له جواهرو څخه دی.



دکهف

سورت پاتې ایتونو بررسې ته ادامه ورکوو.

**(۱۰۰ – ۱۱۰) ایتونه: وَعَرَضْنَا جَهَنمَ يَوْمَئذٍ لِّلْكَافِرِينَ عَرْضًا الذِينَ كَانَتْ اعْيُنُهُمْ فِي غِطَاء عَن ذِكْرِي وَكَانُوا لاَ يَسْتَطِيعُونَ سَمْعًا.**

جهنم به په هغه ورځ دحقیقت منکرینو ته وړاندې

کړم.دامنکرین هغه څوک دي. چې پخپلو سترګو ئې پردې اچولې دي زما دذکر (دخدای دذکر) دلیدلو څخه بې برخې دي.هغوې داوریدلو غوږونه نه لري .(«دلوی خبر داوریدلو » قوت نه لري).
توضیح: داایت یوځل بیا د«پردې » څخه خبرې کوي.داهغه پرده ده. چې خلک دموعود د لیدلو څخه اودهغه دحیرانوونکې وینا داوریدلو څخه لرې ساتي .ددې ایت په اساس یواځې هغه کسان دخدای دراالیږل شوي دپیژندنې لایق دي. چې دتعصب اوتقلید پردې دسترګو اوغوږونو نه لرې کړې دي.
په مخکېنو ایتونو کې یوبل رمز هم پټ دی. چې د«قران دمعّما» دمهمو نښانو څخه ګڼل کیږي.هغه رمز د«ذکر» په کلمه کې پټ اونغښتی دی.ښه به وي. چې یوځل بیا دمبارک ایت ترجمه وګورو : (دامنکرین هغه څوک دي. چې ) دهغې پردې په خاطر چې په سترګو ئې پرته ده ،« زماددکر» یعنی د«خدای ذکر» دلیدلونه بی برخې دي.
ددې مبارک ایت له مخې.ددې لپاره چې «زما ذکر» یعنی د«خدای ذکر» وګورو. او دهغه وینا واورو،باید دسترګو اوغوږونو نه پردې لرې کړو.په همغه ډول چې مخکی موولیدل .«ذکر» او«ذکرالله» (چې دذکر سره یعنی دخدای دذکر سره برابر دی.) دحضرت باب

دمهمو القابو ځخه دي .زمونږ ددوه موعودو په اثارو کې داالقاب اويا ددې مشابه په کراتو حضرت باب ته په اشارې سره کارول شوي دي.
دې څو نمونو ته توجه وکړئ:

**لا تکونوا کالّذين غفلوا اذ جائتهم الذّکری ...٥**

**حضرت بهاءالله** دهغه خلکو په شان مه اوسئ. کله چې زما«ذکر» ظاهر شو. غفلت اوبې پروائې وکړه...



---

**فو ربّکم الحقّ ربّ السّموات والارض انّ وعد الله لحقّ في حقّ الذّکر وقد کان الوعد في امّ الکتاب مفعولاً .**
**٦**

**حضرت باب**

**په** پروردګار قسم دی. چې دځمکې اواسمانونو پيداکوونکې دی**!** دپروردګار «وعده» د«ذکر» په باره کې حقيقت ده.دهغه کتاب «وعده » چې دټولو کتابونو سرچينه ده(قران) هغه وعده سرته رسيدلې، تحقق ئې پيداکړی دی.

**و لقد کفر الّذين من قبلکم بآياتنا فاخذناهم بما کسبت ايديهم عل□ غير الحق جزاء بما کانوا يکذبون انّ الذين اتّبعوا آيات الذکر من لدنّا فاولئك هم المهتدون .٧**

**حضرت باب**

هغو کسانو چې مخکې له تاسې څخه بی له دليله زما د ايتونونه انکاروکړ.دهغه ايتونو دتکذيبولو په خاطر په مجازاتو ورسيدل .هغه کسان چې د«ذکر» ايتونه چې زماله طرفه دي ومني،دپروردګار دهدايت نه به برخمن اوسي.

**و ما ارسلنا من نب□ الاّ وقد اخذناه بالعهد للذکر و يومه . ٨**

**حضرت باب**

هر يوله پيغمبرانو څخه چې ما مخکې درليږلی دی،دهغه د«ذکر» او«ورځې » په باره کې مې عهد اوپيمان تړلی ؤ.

داايت هم دکهف له سورة څخه دحضرت باب لقب د«خدای ذکر» راکوي .

**۲۸ ـ ایت: وَاصْبِرْ نَفْسَكَ مَعَ الذِینَ یَدْعُونَ رَبهُم بِالْغَدَاةِ وَالْعَشِيِّ یُرِیدُونَ وَجْهَهُ... وَلَا**
**تُطِعْ مَنْ اغْفَلْنَا قَلْبَهُ عَن ذِكْرِنَا وَاتبَعَ هَوَاهُ وَكَانَ امْرُهُ فُرُطًا.**

یواځی له هغو سره اوسه. چې سهاراوماښام خدای یادوي. (خدای په یادراوړي.)اوهغه غواړي.اوهغه چې دهغه زړه ما د«ذکر» نه غافل کړی دی،اطاعت مه کوی.هغه داسې څوک دی. چې خپلی غوښتنې ئې ترسره کړي دي. اودهغه لپاره امید نشته دی.

توضیح: داایت له هر مؤمین نه غواړي چې دربښتینې مؤمنانو سره محبت وکړي. اوله هغه چانه چې زما«دذکر» یعنی د(دخدای له ذکر) نه غافله دی،پیروي مه کړی. داوړاندوینه اودایادونه دقیقاً دمیرزایحیی په باره کې تحقق ومومند.ځکه هغه دحضرت باب سره خیانت وکړ. اودهغه ځنې پیروان ئې گمراه کړل.

د«ذکر» کلیمه یا زما«ذکر» حضرت باب ته په اشارې سره دقران په نوروسورتونو کې هم کارول شوې ده .دنمونې لپاره دطه سورت، دې ایتونو ته چې حضرت بهاءالله دایقان کتاب په اخره کې ذکر کړي دي،توجه وکړئ:

**وَمَنْ اعْرَضَ عَن ذِكْرِي فَان لَهُ مَعِيشَةً ضَنكًا وَنَحْشُرُهُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ اعْمَى قَالَ رَبِّ لِمَ حَشَرْتَنِي اعْمَى وَقَدْ كُنتُ بَصِيرًا قَالَ كَذَلِكَ اتَتْكَ آيَاتُنَا فَنَسِيتَهَا وَكَذَلِكَ الْيَوْمَ تُنسَى .**

هرڅوک چې زما د«ذکر» یعنی (دخدای دذکر) څخه مخ واړوي.مشکل ژوند به ولري. اود اخرت په ورځ به هغه نابینا راپورته کړم.(په هغه ورځ) به ووائي .اې زما پروردګاره زه بیناوم. زه دې ولې ړوند کړی یم ؟ خدای به ورته ووائي :زماالارښوونې دې نادیده وګڼلې اوهغه دې هیرې کړې،په همغه شکل سره نن ته هم هیر شوی ئې.

دکهف سورة ټولو ایتونو مطالعې ته ادامه ورکوو:

**۱۰۲ ــ ایت: افَحَسِبَ الذِينَ كَفَرُوا ان يَتخِذُوا عِبَادِي مِن دُونِي اوْلِيَاء انا اعْتَدْنَا جَهَنمَ لِلْكَافِرِينَ نُزُلًا.**

ایا(ددې خبر) منکرین تصورکوي. چې کولای شي زماپه ځای زمابنده ګان د خپل ځان لپاره مددګاراو دوستان ونیسي؟  ما د دارنګه منکرینولپاره دوزخ تیارکړی دی.

توضیح : مونږمیل لروچې له اکثریت نه پیروي وکړو.ځکه امنیت په اکثریت کې ګورو.امامهربانه پروردګار مونږ ته په دې ایت کې رازده کوي.چې یواځې باید دخپل رب نه کومک وغواړو،اوپه دې لاره کې ،دنورو له کومک څخه مخ واړو.ځکه چې په ورځ دحساب په غیر دالله نه بل څوک زمونږ مدد او مرستې ته نشي راتللي .هغه کسانو ته چې مونږ سترګې نیولې اوپه هغه تکیه کوو،ایاهغوې دعقل خاوندان ګڼی، په ورځ دحساب به پخپله نیولي وي. اودخپل ځان دخلاصون اونجات توانائې به هم ونه لري. زمونږ خلاصون به څه وکړي.

ګورو چې پروردګار یوځل بیا په دې ایت کې مونږ
دتقلید څخه منع کوي.ولی دامسئله په قران کې دومره
تکرار راغلې اوډیر زیات تاکید ورباندې شوی
دی؟دوه علته نظرته راځی.لمړی ددې لوی اوخطر
ناکې ګناه دوسعت په خاطر.ځکه چې دتقلید پرده
دومره پراخه ده. چې عالم ئې په ځان کې نیولی
دی،اودومره ډبله ده. چې دلمر عظمت اوښکلا ئې پټه
کړې ده.دوهم ددې ګناه دوخامت او سختی په خاطرپه
دین کې تقلید خدای ته لوی توهین اوسپکاوی دی. په
دې مثال کې فکر وکړئ: کله چې خلک غواړي.
جرابې اوبوټان واخلي ،لمړی ئې په لټولو شروع
وکړي. ترڅو ډیرښه ئې واخلي .ایاددین اوایمان
اهمیت اوارزش چې دهرانسان اسماني اوهمیشني
برخلیک په هغه پوری تړلې دی، دجرابو اوڅپلیو نه

ئې انتخاب باید کم وي ؟که یوڅوک خپل بچي ته دلوبو
سامان اخلي دهغو پسې یوه لټونه کوي. ترڅو یو
مناسب اوښه شی واخلي .ایا ددین اوائین دانتخاب
اهمیت کمتر دلوبو دسامان څخه دی؟ددې سبب څه
دی. چې خلک خپل همیشني برخلیک ته په کمه ګوري
؟په دې باره کې ډیرفکر اوتامل وکړئ.

**انسان دکسّب لپاره په دنیا کې د ا سببابونو په وجه خپل ځان محتاج ګوري ،اوټول هغه ته متوجه دي. ترڅو کسب لاس ته راوړي. او حال داچې دځان په فنا اوتغیر باوري دي اواوس ددې لپاره چې په هغه الهي سلطنت او عالم کې واوسیږي. کوم ځای ځانته نه دی پیدا کړی .۹**

**حضرت بهاءالله**

**ووایه !یا قوم خذالعمل قبل ان یأت الاجل اغتنموا الفرصة قبل ان تفوت والمهله قبل ان تموت .انّ الوقت یأت بغتة لعمرالله اذاً لا تحفظکم الحصون و لا تحرسکم الجنود اسمعوا نداء المظلوم انّه یذکرکم لوجه الله و ینصحکم فضلاً من عنده .۱۰ حضرت بهاءالله**

ووایه! اې خلکو: ددې جهان له سفره مخکې ،نیک
رفتاراوچلند وکړئ.وخت غنیمت وګڼئ. مخکې له دې
چې دلاسه ووځي .ځکه چې ستاسې دسفر نیټه له دې
جهان نه ناڅاپه رارسي .په خدای قسم دی ! چې

لښکرې اوقصرونه تاسې نشي ساتلاى .ددې مظلوم غږ اونصيحت واورئ،



هغه دخداى درضا لپاره تاسې ته يادونه کوي. اودهغه دفضل نه تاسې ته نصيحت کوي.
که وغواړو دقران فشرده په يو ايت کې پيداکړو ،هغه ايت به کوم يووي؟هغه لنډ ايت د«**زُمُرْ**» په سورت کې دى. که خلک دزړه له کومې دهغه ايت حکم ومني اودخپل ژوند رهنمائې وګرځوي. ځمکه به جنت وګرځي .
**فَبَشِّرْ عِبَادِ الذِينَ يَسْتَمِعُونَ الْقَوْلَ فَيَتبِعُونَ احْسَنَهُ اوْلَئكَ الذِينَ هَدَاهُمُ اللهُ وَاوْلَكَ هُمْ اوْلُوا الالْبَابِ.**

**دزمرسورت،(۱۸ ــ ۱۷ ) ایتونه**
پس هغه بنده ګانو ته زیری ورکړه. چې خبرې اووینا وې اوري. اوپه هغه خبرو اووينـاو کې دنيـکې نـه دډکو خبرو پیروي کوي.پروردګار دداسې لټوونکو رهنما دی اوهغه دعاقلانو دډلې نه دي.
ددې مخکنیو خبرو مشابهه خبرې حضرت بهاءالله په اثارو کې هم شته دی:
**رأس کلّ ما ذکرناه لك هوالانصاف و هو خروج العبد عن الوهم والتّقلي ...والمشاهدة في کلّ الامور بالبصر الحدید .۱۱**
هغه څه چې مې تاسی ته بیان کړل دهغو ټولو اساس انصاف دی. اودتقلید وهم اوګومان پریښودل اولرې کول دي...اوهرشي ته په دقت اوفکر سره بی له عجلې نظر وکړئ.
که انسان همیشه دانصاف والاوي. اودمخکینیو بې ګټې تصوراتو نه روح او روان خلاص کړي، اوپه قضاوت کې عجله ونکړي،په هرکار کې په ځانګړې توګه په معنوي ،اخلاقي اوالهي کارونو کې چې دهغه همیشنی برخلیک په هغو پورې تړلی دی. په ډیر فکر اودقت څخه کارواخلي ،اووروسته له ډیر دقت ،مطالعی اوتحقیق څخه قضاوت وکړي.په هر امر کې به کامیاب شي. اوهمیشنې نیکمرغي اوسعادت ته به

لاس رسی پیداکړي.ځکه په هغه وخت کې به نه یواځی خدای ورکړې نیرو اوقوت دپروردګار په اراده په کارواچوي،بلکه دخدای دحمایت اوملاتړڅخه به هم برخه من شي:

**اوْلَئكَ الذِينَ هَدَاهُمُ اللّهُ وَاوْلَئكَ هُمْ اوْلُوا الْالْبَابِ.**

**دزمر سورة،۱۸- ایت**

پروردګار دارنګه لټوونکو لپاره رهنما دی اوهغوې دعاقلانو دډلې نه دي.

۳۲۱ ۱۱ فصل:دکهف سورة،دوهمه برخه

---

توجه

وکړئ،پروردګار زمونږ سره وعده کوي. چې که تحقیق اوجستجو وکړو،پروردګار به زمونږ یاری اوکومک ته راشي. اومونږ ته به سمه لاروښائي،ځکه چې دهغه لوړ اولوی ارمغان چې عقل

دی، له دې کبله ئې مونږ ته راکړی دی. ترڅو مونږ دښه اوبد توپیر پرې وکړو،او په کارئې وا چوو. دتېرلو سترګو نه کوم انتظار کیدلای شي؟دتېرلو ذهنونو نه کوم انتظار کیدلای شي؟ایا هغه ذهن چې غلامي زده کړې وي دحقیقت دقیمتی جوهر په پیژندلو قادر دی؟ایاهغه روح چې حقیقي اراده اوپوهه ئې لرې ګذار کړې ده دخدای دجمال اوعظمت دلیدلو وړدی؟ که دعقل او (پوهی) لوی ارمغان چې دښتون نښانې ئې فکر اوتحقیق کول دي،اودنښتون نښانې ئې تقلید دی. په کار وانه چوو،دپروردګار دیارې اوحمایت لایق

اووړ یو؟ دپروردګار یاري

اوملګرتیا همیشه زمونږ په عاقلانه کوښښ اوپلټنه متکي اوولاړه ده.

**دانسان عاقلانه کوښښ**

**دپروردګار یاري اوحمایت**

**جهان نیوونکي لمر وړانګو نړۍ روښانه کړې ده. اومړژوانده روزګارته ئې تازه والی ورکړئ دی. نیکمرغه دي هغه سترګې چې ئې ولیدل اووئې پیژندل .دپروردګار نه ئي وغواړه. ترڅو دورځې په راز دې پوه کړي. اوتاپه نوي ژوند سره تازه اوتازه کړي.**

**هغه دی دقدرت والااوهغه دی دپوهی والا.۱۲**

**حضرت بهاءالله**

وګورئ دعقل اوپوهې ارمغان چې دپروردګار په نظر ځومره لوړ مقام اورتبه لري، اوځومره لوړبنسټ اودرجه لري:

**دعقل اوپوهي ژبه وائي:هرڅوک چې مانه لري، (هغه پوهه ) نه لري .هغه هیڅ نه لري.هرڅه چې دي دهغه نه تیرشئ. اوماپیداکړئ. زه دلیدلو لمر یم اودپوهې دریاب. مړژواندي تازه کوم. اومړي ژوندي کوم.زه هغه روښنائې یم چې خلکوته لاروښایم .زه دپروردګار هغه لوی سپین ښکارکوونکی بازیم .چی د چاوزرې تړلې وي. هغه خلاصوم اوالوتنه ورزده کوم..۱۳**

**حضرت بهاءالله** دکهف

سورة دپاتې ایتونو مطالعې ته ادامه ورکوو:

**۱۰۳ )ایتونه: قُلْ هَلْ نُنَبِّكُمْ بِالْاخْسَرِينَ اعْمَالًا الذِينَ ضَلَ سَعْيُهُمْ فِي الْحَيَاة الدنْيَا وَهُمْ يَحْسَبُونَ انهُمْ يُحْسِنُونَ صُنْعًا.**

ووايه!غواړئ پوه شئ، چې دکوموکسانو عملونه عبث اوهسې ځي.(بې له پاداش اوبخشش څخه پاتې کيږي.) دهغوکسانو عملونه چې دخلاصون اونجات راز ئې ددې دنيا په پرستش اوبنده ګې کې پيداکړی وي.په دې فکر اوتصور چې ښه کار کوي.

توضيح: داسې ډيرخلک دي. چې دخلاصون اونجات راز دمال په جمع کولو اودثروت په پيداکولوکې ګوري،غافل له دې نه چې باالاخره ،ددې جهان دمنافعوپه لاس ته راوړنه کې کوښښونه به ټول هسې او بې ځايه ولاړ شي.ځکه چې دنيا ته سخته توجه، هغوې دزمان دموعود دليدلو اوپيژندنې څخه لرې ساتي.

**۱۰۵ــ ايت: أولئک الذِينَ كَفَرُوا بِآيَاتِ رَبِّهِمْ وَلِقَاهِ فَحَبِطَتْ اعْمَالُهُمْ فَلَا نُقِيمُ لَهُمْ يَوْمَ الْقِيَامَةِ وَزْنًا.**

هغوې هغه کسان دي. چې دپروردګار دايتونو،دهغه دديدار د«وعدې» څخه انکارکړی دی.اوپه دې سبب ئې عملونه عبث اوخوشې لاړل. اوپه ورځ دمحشراوقيامت به هيڅ ارزش ونه لري.(په هغه ورځ به دخپلو کوښښونو په خاطر کوم انعام اوپاداش

وانخلي ).
توضيح : دپروردګار د«دیدار اصطلاح» دمتشابه ايتونو څخه اودقران دمعما دمهمو اسرارو اورازونو څخه ده. چې داسلام علما دهغې دمعنی څخه پوهه نه لرله. اونه ئې لري. په همغه ترتيب چې په ۱۳ فصل کې به ئې وګورو ،دااصطلاح دپروردګاردعظمت اود قدرت طلوع اوظهور ته په اشارې سره، زمونږ دعصر ددوه موعودو په باره کې په کراتو سره په اسمانې کتابونو کې کارول شوې ده.
مخکينی ايت دهغه چاپه باره کې دی. چې دپروردګار ددیدار دوعدې نه انکار کوي.که دوې د وعدې نه انکار کوي.په يقين سره به دموعود نه هم چې ددې وعدې دتحقق مدعي دی. انکار کوي.دامنکرين څرنګه خپل ځان ته اطمنان اوډاډ ورکوي؟ چې دخدای دبخشش لطف اومرحمت نه برخه من دي .دهغوې خوښې اودهغوې افتخار دهغوې په نيک رفتار کې دی.پروردګار داسې خلکوته اخطار ورکوي. چې داهسې بې هوده تصور دی. اولويه خطاده .ځکه چې دپروردګار دموعود نه انکار ،دمنکرينو نيک رفتار باطلوي .داحقيقت په بهائې اسمانې اثارو کې هم تائيدشوی دی.

دې ایت ته په لیک کې چې حضرت باب ،محمد شاه ته په خطاب کې لیکلی توجه وکړئ:



---

و

**انّ من یوم الّذی ظهر امر ربك لن یقبل منك شیئ و انك انت ف ضلال مبین .١٤** له هغې ورځې چې دپروردګار امر ظاهر شوی دی،ستاهیڅ یوعمل به قبول نشي.ستاګمراهي ښکاره ده.

شریف سلیمان ،دمکې شریف هم په همدې خطاب کې دحضرت باب لخوا مخاطب شو:

**و من کفر بآیات هذا الکتاب لن یقبل الله من عمله شیئ و قد کان ف ضلال مبین١٥ .** هرڅوک چې ددې کتاب له ایتونو نه انکار وکړي،دهغه هیڅ یوعمل به د پروردګار له طرفه قبول نشي. په یقین سره هغه په ښکاره ګمراهې کې دی.

دپروردګار لمړنی فرمان بنده ګانو ته ،دایمان اوعمل یووالی دی.دالهي حکمت اوحکم په اساس نیک

عملونه، اوپه راليږل شوي يعنې د(زمان په موعود) ايمان بايد يوځاى وي. اوپه غيرله هغې نه ځانته ځانته بيهوده اوباطل دي.«دکتاب اقدس»لمړني ايت ته چې دحضرت بهاءالله له مهمو اثارو څخه دى. توجه وکړئ:

**انّ اوّل ما کتب الله عل□ العباد عرفان مشرق وحيه و مطلع امره...من فاز به قد فاز بکلّ الخير والّذى منع انّه من اهل الضّلال ولو يأت□ بکلّ الاعمال...لانّهما معاً لا يقبل احدهما دون الاخر . ١٦**

دپروردګار لمړنى حکم بنده ګانوته ،دخداى دوحې ظاهريدل، اودخداى دامر پيژندنه ده... هرڅوک چې دې مقصد ته ورسيدل ،هرخير ته رسيدلى دى.

اوهرڅوک چې له دې مقصد څخه پاتې شو،دګمراهانو له جملې نه دى.که څه هم دهرنيک عمل کوونکى هم وي...ځکه چې دادواړه ايمان اوعمل سره يوځاى دي. يوبې له بل نه پروردګار ته قبول نه دي.

دکهف سورة ايتونو څيړنى اوتحقيق ته دوام ورکوو.

**١٠٦ ــ ايت : ذَلِكَ جَزَاؤُهُمْ جَهَنمُ بِمَا كَفَرُوا وَاتخَذُوا آيَاتِي وَرُسُلِي هُزُوًا.** ددې خلکو مجازات اوسزا دوزخ دى. ځکه چې انکار ئې کړى دى. اوزمالخوا ليږل شوى، اوزما نښانې ئې هيڅ ونه ګڼلې .

توضیح

: ددې منکرینو ځای اوجزا ولې دوزخ دی؟ دخدای دموعودنه انکار پروردګار ته لوی توهین اوسپکاوی دی.داتوهین دومره سخت اوشدید دی. چې پروردګار حتی ددوې نیک عملونه نه قبلوي. بس دداسې کسانو ځای چې دومره لویه ګناه ئې کړې وي. اودپروردګار رضائې نه وي غوښتي چیرته دی؟په همغه ترتیب چې په (۹۸ ) ایت کې مو ولیدل ،په دې سلسله ایتونو کې،ویونکې په شروع کې د«وعدی» حتمیت ته اشاره کوي. (وَكَانَ وَعْدُرَبِّيِ ) د«وعدی» کلمه کله دځه مقصد لپاره به کاروړل کیږي؟ایادتیری زمانی لپاره

ده، اوکه دراتلونکی لپاره ؟ معلومه ده چې «وعدی» په اینده پورې اړه لري. ښکاره ده. یوه واقعه په جریان کې ده. چې خلک دهغې دتحقیق په انتظار کې وي.

توجه وکړئ. چې دکهف مبارک سورة چې وروسته دخبر ورکولونه زمونږ دعصر ددوه موعودو دظهور څخه ،په مخکیني (۱۰۶ ) ایت کې د«رُسُلِيْ »کلمې په کارولړل (زما دهریو استوونکي) هغو دواړه ته اشاره کوي .د(رُسُلَيْ) کلمه وښائي چې دپروردګار وعده په قران کې د یونه دزیاتو درسول دراتګ پورې اړه لري. دتعجب ځای نه دی. چې دازیری«لوی خبر» نومول شوی دی. ددوه مستقلو پیغمبرانو دراتګ خبر چې دواړه دخدای دنومونو سره راغلي دي.

اودپروردګار دعظمت ،قدرت اوښکلا مظاهردي ،چې هیڅکله ئې سابقه نه لرله.دالوی اوبې مثاله ارمغان دپروردګار فضل اوبخشش دی. زمونږ دعصر دخلکو لپاره:( **"هَذَا رَحْمَةٌ مِّن ربِّي )۹۸ ــ ایت**

**واستعرف قدر ایام الله فان الشمس ما طلعت بمثلها .**

۱۷ **حضرت باب**

دخدای دورځې قدر وپیژنئ.لمر دهغې په څیرپه یوه ورځ کې نه دی راښتلی .

**دجهان ثروتمند راغلی. لاره ئې په لارو کې ځانګړې**

**ده. اووينا ئې په وينا ګانو کې ځانګړې ده. ۱۸**
**حضرت بهاءالله**

واورئ اوراشئ.ددې ورځې په شان دظفر ورځ نه وه. اونه به وي.داده دپروردګار وينا اوکلام. بس ښه به وي چې دا فضل دکهف سورة په اخرين ايت سره پای ته ورسوو: ۱۱۰ –

**ايت : قُلْ انمَا انَا بَشَرٌ مِّثْلُكُمْ يُوحَ□ الَي انمَا الَهُكُمْ الَهٌ وَاحِدٌ فَمَن كَانَ يَرْجُو لِقَاء**
**رَبِّهِ فَلْيَعْمَلْ عَمَلًا صَالِحًا وَلَا يُشْرِكْ بِعِبَادَةِ رَبِّهِ احَدًا.**



دوهمه برخه

---

وو ايه!

زه يواځې ستاسې په شان انسان يم چې ماته وحې رسي .ستاسې خدای يودی.هرڅوک چې دخدای ددیدار غوښتونکی دی. بايد نيک چلند وکړي. اويواځې دخدای بنده ګي اوعبادت وکړي.

مخکینی ایت زمونږ دعصر دوه پیغمبرانو سره څه رابطه لري؟ دي ټکوته توجه وکړئ:

- «زه یوائې ستاسې په مثل انسان یم...» خلک همیشه به انتظار کې ؤ.اووی به. چې پیغمبرئې دانسان نه مافوق وي.اما دپروردګار دشهادت په اساس دا انتظار بې پایه دی. اوتصور ئې بی مایه اوخام دی.هیڅکله دنورو نه متفاوت پیغمبر ظاهراً نه راغلی و، اونه به هم راشي.دپیغمبرانو نه دانکار یوسبب همداوه.خلکو همیشه ویلی دي:داڅنګه پیغمبر دی. چې زمونږ په شان ډوډی خوري،سترې کیږی ،خوب کوي. اوحتی ناروغه کیږي؟ زمونږ دعصر خلک هم له دې نه مستثنی نه دي.ډیرله هغونه نشي کولای، داومني. چې دانااوتوانا پروردګار دې ۲۵ کلن ځوان زلمی له شیرازه په پیغمبرې وټاکې .اوهغه دې دجهان دخلکو موعود وګرځوي.
داخلک ددې حقیقت نه غافله دي. چې مهربانه پروردګار همیشه دخپلو رااستونکو عظمت ،لوی والی ،قدرت جلال اوښکلادهغو دصبراومظلومیت شاته پټ وي. چې یوائې دبصیرت صاحبان ئې مقام وپیژني. اواسماني همیشني دربارته لارپیداکړي. تنګ نظره اودنیا پرسته خلکو یوائې

ظاهر ته ئې نظر وي. اوله باطن اومعنی څخه ناخبره وي.مولوي څومره ښکلی بیت ویلی دی:

| | |
|---|---|
| م وحال را | ما برون را ننگریم وقال را |

«هرڅوک چې دپروردګار ددیدارغوښتونکی وي...»په همغه ترتیب چې ذکرئې وشو.

- ،«دپروردګار ددیدار» وعده ،زمونږ دعصر ددوه موعودو دراتګ اوظهور پورې اړوند ده.

قران اوبهاءالله



---

دا«وعده »په نورو اسماني لیکنو کې هم په تکراري توګه پیداکیږي ،اوباید هغه د «قران دلوی معما»له ښکاره نښانو څخه وګڼل شي.

- «باید نیک چلند خپل کړي. اویوازی دخپل رب عبادت وکړي.»دپروردګار ددیدارشرایط څه شی دی؟دمخکیني ایت په اساس ،یوشرط لازم دی،هغه نیکو کاري ده. په ټولو اسماني لیکونو کې ،مهربانه خدای په پیغمبرانو باندی دایمان وعده یواځې دنیک خویه اونیک رفتاره اونیک سیرته خلکو سره کړې ده. او هرکله ئې دخپل مقام عظمت اوښکلائې له نامحرمه خلکو نه په زرهاو پردو کې پټّه کړې ده.

دمخکیني ایت په اساس ،دپروردګار دښکلا لیدلو بل شرط یکتا پرستي (دواحد خدای بنده ګې )اود (خدای سره مینه ) ده.

د«یکتا پرستې » مقصد څه شی دی؟ لمړنې نښه دیکتا پرستې ،دخدای سره مینه او هغه ته توجه ده. اودهغه دغوښتنو پیروي ده. امّا زمونږ په عصر کې خلکو دخدای پرستې نه مخ اړولی دی. اوځان پرستی اودنیا پرستی ته ئې مخه کړی ده. په دې عصرکې نوي بتان ډیر شوي دي.دهغې جملې بتانو نه ددنیا ثروت دی. چې ډیر خلک ،دخپل ژوند ډیر قیمتي وختونه دهغو په طلب اولاس ته راوړلو کې تیروي .اودعمر په پای کې ،هغه «بی روحه بت» نورو ته پریږ

دي. اوپه خالي لاسونو باقي نړۍ اوجهان ته درومي.

**اې بنده ګانو !بی روحه تن مړی دی.اوهغه زړه چې دپروردګار یادپکې نه وي. پژمرده اومړژواندی دی.دخپل دوست دیاد سره ژوند وکړئ. اوله دښمنه څخه ځان وژغورئ.ستاسې دښمنان ستاسې شیان دي. چې پخپله غوښتنه موهغه پیداکړي دي. اوساتلي مودي. اوخپل ځانونه موپه هغو الوده کړي دي،ځان دجانان دیاد لپاره دی. اوهغه پاک وساتی...۱۹**

**حضرت بهاءالله**

بل بت زمونږ په عصرکې مخکینې بې اساسه تصورات اوتعصبات دي. چې خلک دهغوې عبادت کوي. اوکله دهغوې دساتنې لپاره ځان قربانوي.

---

دامخکيني ګمانونه اوپوچ خيالونه دتحقق اوکنجکاوي لپاره انګيزه نه پريږدي،اودنيا پرستي، خداې پرستې لپاره خلکو ته فرصت نه ورکوي.

**دخيال اوګمان بنده ګې کوئ. اودهغه نوم موحق ايښى دى. اغزي ګورئ،اودهغه نوم موګل ايښى دى. ۲۰**

**حضرت بهاءالله**

**ډير خلک دخيالونو سره مينه لري .دګمان اوخيال ددرياب يوڅاڅکې د يقين دبحر سره نه برابر وي .په معنى ئې نه پوهيږي. په نوم پورې تړلى دي.۲۱**

**حضرت بهاءالله**

- بل شرط (دپروردګار دديدار ) عاشق کيدل دي.(دخداى دديدار)غوښتونکى بايد هم نيکوکاره وي. اوهم دخداى دجمال عاشق وي.رښتينى عاشقان يواځې دخپل رب ناظر

وي،اودنیکونو له تصوراتو اودنادانو او ګمراه پیشوایانو له انصاف نه باید لرې وي .په غیر دنیکوکاره او فداکاره عاشقانو نه دپروردګار دربارته لاره نشته اودپروردګار له دیداره به محروم وي.

یوځل بیا دې مسئلې سره مخامخ کیږو. چې زمونږ ایمان یوازې اویوازې زمونږ په لاس اودرب په لاس کې دی.

**مَا كَانَ لِنَفْسٍ ان تُؤْمِنَ الابِاذْنِ اللهِ وَيَجْعَلُ الرِّجْسَ عَلَ الذِينَ لاَ يَعْقِلُونَ.**

**دیونس سورت، ۱۰۰-ایت**

دپروردګار له اجازې پرته به هیڅوک دایمان ارمغان ته لاس رسی پیدانه کړي. پروردګار دهغه چاپه روح چې دفکراو عقل نه کارنه اخلي پرده اچوي.

**خدای په خپل کامل قدرت سره دبیان اسمانونه پیداکړه. اوهغه بې لوړ کړل. په داسې یوې ارتفاع سره چې څوک هغه لمس نه کړي. اومقدس پاتې شي. دنامحرمودلمس کولو نه اویاداچې هغه کوم ناپاکه محرم درک نشي کړلی...۲۲**

**حضرت بهاءالله**

په هرځای کې دزړه خبرې دي :

**دزړه سترګې سپیڅلی کړئ. اوخپله سینه رڼا کړئ ،ترڅو دحق اوباطل توپیر وکړئ ...۲۳**

**حضرت بهاءالله**



---

---

هرکله چې دانسان زړه دپروردګار دورانګو لایق شي. لکه دپاکې ائینی په څیر دلمر رڼا نه رښتینې روښنائي واخلي. اودپروردګار ښکلا هردم وښائي ،او په غیر له هغه نه دخپل معشوق اومعبود دلریوالی په تیارو کې دغم په اوردشمع په شان وسوځي. اووژاړی ،اودخپل یارپه جداوالی کې هردم دافسوس آه وباسي.اوفریادوکړي.

**ان ا کن ا یومئذ فی ایام الله ظاهرون تلك ایام ما اشرقت الشّ مس علیها بمثلها من قبلو تلك ایام تنتظرها الامم من قبل یومئذٍ فکیف انتم راقدون فتلك ایام اظهر الله**
**شمس الحقیقه فیها فکیف انتم صامتون فتلك ایام انتظر تموها من قبل و تلك ایا م العدل ان اشکروا الله یا ایهاالمؤمنون ۲٤.**
**حضرت باب**

یقیناً مونږ اوس دخدای په ورځ کې ژوند کوو .داورځ پرشکوه اوله عظمته ډکه ورځ ده. چې لمر هیڅکله ددې په څیر ورځ کې راختلی نه دی. اونه ئې هم داسې ورځ لیدلې ده.داهغه ورځ ده. چې مخکینیو په پوره شوق سره ددې ورځې دراتګ اوظهور انتظار ایستلی دی. څه شوي دي. چې دومره سخت په خوب ویده یاستې؟ داهغه ورځ ده. چې په مخکی زمانو کې ددې دراتګ انتظار موپه مینه ایستل. داورځ دالهي عدل دظهور ورځ ده.دخدای شکر په ځای کړئ .

**دټولو پیغمبرانو په ژبه دقیامت دورځې وعده**

**ورکړل شوې ده. اوټول دينو نه هم دوعدې سره سم دهغه منتظر دي. اوددې له کبله چې دپيغمبرانو اواولياو بيان پټ اومرموز وي،له دى امله هرڅوک دخپل فکر اونظر په اندازه فکر کوي .دهر چاپه سرکې يوهوس دى. اويو کار په مخکى .اما ددى په خاطر چې هيڅ يوله هغو حقيقت ونه ليد ،دافسانې په لاره لاړل. اودحق اوحقيقت څخه لرې پاتې شول... دګمان په پردو کې تاو شوي دي. اودسمې اومستقيمې لارې نه پاتې شول. ۲۵**

**طاهره قرة العين**



## دپروردگار دنقشې دښمنان
## دمُدثّر سورت

**قد اتی امرالله بامر لا یقوم معه جنود الارض .۱**

**حضرت بهاءالله**

په یقین سره دپروردګار «امر» ظاهرشوی دی. هغه «امر» چې دټول جهان سپاهیان اواردوګانې دهغه په مقابل کې مقاومت ونشي کولای .

قران کریم هم دیهودو اوعیسویانو دمقدسو کتابونو په شان دبهائې ائین دظهور په باره کې له نښانو او«دښه خبرونو » دایرة المعارف دی.ډیرې داسې نښانې اوخبرونه درمز اوپردې ترشاپټ دی،امّا کله چې داپردې لرې شي،دهغو رازونه اواسرار دورځې په شان روښانه اوښکاره شي.

دمدثّر سورت یولنډ سورت دي. چې په هغه کې ډیررازونه پټ دي.دپروردګار دکلام ښکلا په دې ټول سورت کې ښکاره ده.



داسورت

داول نه تراخره پورې دبهائي ائین له ظهوره اوراتګ نه ،اوددې ائین دمهمو تاریخي پیښنو ځانګړې شرح ده،چې درمز په قالب کې نازل شوی دی. یواځې زمونږ دعصر ددوه موعودو دظهور اوهغه معنی چې په هغه کې پرته ده. راښکاره کړې ده.داسورت په

(۵)پنځو برخو کولای شو وویشو:
۱. معمم شخص داستان چې دموعودپه مقابل کې ودریږي. اودهغه دمنځه وړلو لپاره ځان په مکر وهي.د(۱- ۳۵ )ایتونو پورې.
۲. د۱۹ عدد انتخاب دخلکو دازمایش لپاره دمنکرانو ګیچ کول اومؤمنانو ته ډاډورکول. د(۲۶ – ۳۱ ) ایتونو پورې .
۳.زمونږ دعصر ددوه موعودو دظهور خبر اوخلکو ته اختیار ورکول. دهغو په منلو او یادهغو په ردولو کې.د(۳۲ – ۳۸ ) ایتونو پورې .
۴. په همیشني عالم کې دمنکرینو اومؤمنینو برخلیک. د(۳۹ -۵۳ ) ایتونو پورې .
۵.ددې ایتونو اوخبرونو هدف د(۵۴ – ۵۶ ) ایتونو پورې .
دمدثر سورت غم انګیز اصلي داستان دیو مجتهد دسلوک اوچلند پورې اړه لري.دامجتهد ډیر مکار اوقدرتمندؤ.اوشیخ عبدالحسن طهرانی – شیخ العراقین – په نومونو یادیدل .دحضرت بهاءالله داقامت په دوران کې ئې ډیر مهم نقش لرل.دی مغرور اوجاه طلب مجتهد نه حتی ناصرالدین شاه چې د(ظالمانو درئیس) لقب ئې ګټلی ؤ.ایریدل اونشوئې کولای، چې دخپل تسلط اوقوماندی لاندی راولي. اوپه دې سبب ئې

هغه ئې دمتبرکه اماکنو دجوړیدلو په بهانه ئې عراق ته ولیږل. چې شاید دهغه نه په امان کې شي.
ددې په خاطر چې زمونږ دبحث څخه وتلی دی.حضرت بهاءالله دبند په موده کې چې په بغداد کې ؤ.دهغه ښار ډیرو خلکو دعادي انسانانو نه نیولی بیا تر داشمندانو اوحاکمانو پورې دحضرت بهاءالله ډیر احترام او قدرکول.دی کار دشیخ عبدالحسین دکینی حس راوپارول. اوهغه دحضرت بهاءالله په ضدپورته شو. په دې حیله ګر اومکار شیخ کې دکینی ،نفرت اوحسادت اور دومره په لمبوؤ،



---

چې

ته به وایی د هغه په زړه کې په غیر د موعود د نابودې نه بله ارزونه لرله . خپل مقصد ته د رسیدولو

لپاره  يې حداقل (۷) نقشې طرح کړې. او دهغوې داجراءلپاره يې کار کول:

- لمړيي نقشه يې داوه. چي د بغداد د حاکم نه د حضرت بهاؤالله د نيولو،او دهغه ايران ته د بيرته تبعيدلو امر واخلي . دا نقشه يی اجرا نشوه کړلای.
- وروسته له دی يی تصميم ونيو چی د بغداد د خلکو کرکه او نفرت د بهائيانو په ضد  راپورته کړي .دې مقصد ته درسيدلو لپاره ئې داسې خبره خپره کړله چې – خوب ئې ليدلی. ترڅو پخپلو شومو هدفونو دتصديق مهرووهي.دانقشه ئې هم ځای ته ونه رسيده.
- ددې ناکامې نه وروسته ئې بله نقشه جوړه کړه:دلوی ميرزا خان،چې دايران کنسل ؤپه بغداد کې دهغه څخه ئې په دې کارکې کومک وغوښتل ،دواړه يارانو دبغداد متعصب خلک دحضرت بهاءالله په ضد تحريک کول، چې شايد ددې لارې بهائيان ددوې مقابلې ته راپورته شي.اوپه دې وسيله دحضرت بهاءالله دتبعيد لپاره بيرته ايران ته بهانه جوړه شي.دانقشه ئې هم په اوبو لاهوشوه.
- وروسته له دې ماتې ،تصميم ونيو. چې حضرت بهاءالله ووژني .ددې کار اوطرح سرته  رسولو لپاره يی يو ترکي قاتل  چی(رضاء) نوميده استخدام کړ. يوه   ورځ حضرت بهاءالله حمام ته تللی ؤ. رضاء په

پټه د خپلې وسلې سره حمام ته داخل  شو . اما کله چی حضرت بهاءالله ولید ، هغه ته داسې یوه ایره او اضطراب پیداشول. چې د خپلي نقشې د عملې کولو څخه عاجز شو.

- دا قاتل بیا هم د دې. کار نه لاس په سر نشو. او د بل ځل لپاره د شیخ عبدالحسین په کومک یي د بغداد په یو بل محل او ځای کی حضرت بهاءالله خپل هدف وټاکل .اما کله چی هغه مبارک ته نږدې شول ،بیا د داسي یو اضطراب او وحشت سره مخامخ شو. چی اسلحه یی د لاس ولویده .هغه وخت حضرت بهاءالله خپل ورور جناب کلیم ته وویل چی دا اسلحه ورته ورکړه .او د کور لار ورته وښایه.

- له دي ټولو ناکاميو سره سره ،شيخ عبدالحسين دکاره لاس وانخيستل اونه ئې هم زړه تور شو .بله طرح ئې داوه چې ناصرالدين شاه قانع کړي. چې دحضرت بهاءالله اوسيدل په بغداد کې دهغه لپاره لوی خطر دی .دخپلې ادعا دثبوت لپاره ئې دشاه دربارته اوږده ليکونه ورواستول.په دې ګذارشونو کې دحضرت بهاءالله قدرت اونفوذ ئې دخپلې اندازې
نه زيات ښودل. اوداسې دعوه ئې لرله. چې دعربو صحرائې کورنې اوقبيلې ئې طرفداره شوي دي،په داسې اندازه چې حضرت بهاء الله کولای شي په يوه ورځ کې سل زره خلک راټول کړي .همدارنګه ئې ګذارش ورکول هغه کولای شي دځنې ايرانې حاکمانو اوزمامدارانو په مرسته ايرانيان دپادشاپرضد راوپاروي.وروسته له ډيره کوښښه په دې کارکې کامياب شو اودناصرالدين شاه څخه ئې حکم واخيست. چې ځنې علمااوځنې حکومتي مشران بايد دشيخ سره همکاري وکړي.

وروسته دايران دپادشاه ددې حکم په ترلاسه کولو سره علمائې راټول کړل. اوغونډه ئې جوړه کړه. ترڅو دهغوپه مرسته خپل مقصدته ورسيږي.اماداځل بياهم دده نقشه په اوبو لاهو شوه.ځکه چې په غونډه کې دڅو خبرو نه وروسته ،دغونډې رئيس ،شيخ مرتضی

انصاري  چې دشیعه ګانو رئیس ؤدهغې غونډې مقصدئې ونشو منلی. اووروسته دمخالفت نه ئې ،ناڅاپه غونډه پریښوده.

---

☆شیخ انصاري...«دخپل وخت دتقلید لویه مرجع وه...دارنګه ئې  له سیاست څخه لریوالی کول. چې یووخت دسیدعلی محمد باب دفتوای دصادرولو په ردولو کې ده ته مراجعه وکړه،حاضر نشو چې هغه مرتد اعلان کړي. اووویل:زه دهغه دخبرو اوحال سره اشنانه یم.» [مجله ره اورد ،۴۴ ګڼه ،(۱۴ - ۱۵ ،مخونه. ) ].
دوخت دعجایبو نه یوه داچې دشیخ عبدالحسین یو کړوسی چې دفاضل طهرانی نوم مشهور ؤ په بهائې ائین ایمان راوړ. اودهغه دخپرولو لپاره ئې ډیر کارونه ترسره کړل.

ددې

طرح له ناامیدې نه وروسته ئې خپلو مشوروته دوام ورکړ. اویوه بله نقشه ئې جوړه کړه.ددې نقشې شرح دحضرت عبدالبهاء څخه واورو.
ایرانې علما چې په نجف اوکربلا کې ؤ. یوعالم شخص ئې انتخاب کړ. اوهغه ئې وکیل کړدهغه شخص نوم ملاّعموؤ.دحضرت بهاءالله مبارک حضورته راغي دځنې علماو لخوا ئې پوښتنې وکړئ.هغه مبارک ځوابونه ورکړل .اووروسته ئې عرض وکړ. چې ټول علماپه دې اعتراف کوي چې حضرت بهاءالله ډیرعالم اوفاضل دی.اوپه ټولو علومو کې مثال او نظیر نه لري .اوداهم حقیقت دی. چې زده کړه اوتحصیل ئې نه دی کړې. خوعلماوائي چې مونږ په دې باید قناعت ونکړو. اودعلم اوفضل په سبب دهغه په حقیقت اعتراف اواقرار ونه کړو.له دې کبله غوښتنه کوو. چې یوه معجزه زمونږ دډاډ اواطمنان لپاره راوښائي .
جمال مبارک (حضرت بهاءالله)وویل؛که څه هم حق نه

لرى،ځکه چې حّق بايد دخلکو نه امتحان واخلي نه له حّق څخه .علمادې کښېني اوپه اتفاق سره دې يوه معجزه انتخاب کړي اوودې ليکي. چې ددې معجزې په ظاهرولو سره مونږ ته شک اوشبهه نه پاتې کيږي. اوټول به ددې «امر»په حقانيت اقرار اواعتراف کوي،هغه ورقه اوکاغذ دې مهرکړي. اورادې وړي. اودابايد دځان لپاره يوميزان وګڼي .که چيرته معجزه ظاهره اوښکاره شوه ستاسې لپاره شک اوشبهه نه پاتې کيږي. اوکه ظاهرنشوه زما بطلان اونه حقيقت به ثابت شي.

هغه عالم شخص ...علماراجمع کړل.اودجمال مبارک پيغام ئې ورته ولوست. **علماومشوره وکړه. اووئې ويل: داشخص جادوګر دی. شايد کوم جادووکړي .هغه وخت به مونږ ته کوم خبره اوبهانه پاتې نشي ،داجرئت اودلاوري ونه کړه.چې هغسې يوخط وليکي .هغه عالم شخص په ډيرو محافلو کې ددې خبر ذکر اويادونه وکړه. اودکربلاڅخه کرمانشاه ته اوبياطهران ته ولاړاوداحقيقت ئې ټولوته په تفصيل سره وويل. اودعلماو ويره اودعلماو نه اقدام ئې ټولو ته ذکرکړ...۲**

کله چې خلکو دحضرت رسول اکرم نه معجزه وغوښتله ،څه ځواب ئې واوريدل؟

**قُلْ سُبْحَانَ رَبِّي هَلْ كُنتُ إَلابَشَرً ا رسُولاً ؟**
**داسرا سورة،۹۳ ــ ايت**
ووايه!زماپروردګار له هره وصفه مقدس اوپاک دی.ايازه په غير دپروردګار له طرفه راليږل شوی انسان يم؟



مخکنيی

ايت وښائي چې رسول اکرم ته دمعجزی دښودلو اجازه ورنکړل شوه.پس ولی حضرت بهاءالله ته داسې اجازه ورکړل شوه؟داپوښتنه مطلب روښانوي . که حضرت بهاءالله علماوته منفي ځواب ورکړئ وی.څه به شوي وی؟دې ځواب به شيخ عبدالحسين ته څومره غټه بهانه اووسله په لاس ورکړې وی؟ له دې نه مه واره ،حضرت بهاءالله له مخکې پوهيدل چې علما دده په روحاني قدرت تريوحده پورې پوهيږې. اودهغه خط دامضاء اولاسليک څخه چې ددوې مقام اومنزلت ته تاوان رسوي. ډيره ويره لري. اودداسې يوکار په کولو نه راضي کيږي.

په همغه ترتیب چې ګورو ،شیخ عبدالحسین چې مقتدر مجتهد اوپه غولونه اوحیله ګرۍ کې نظیر اومثال نه لري ،خپل ځان دالهي تقدیراتو په مقابل کې عاجز ولید اوټولې نقشې په اوبو لاهو شوې .اوس به وګورو چې قران مجید ددې ماجراڅخه څرنګه خبر ورکوي:

**دهغه مجتهد داستان چې**

**دموعود**

**په مقابله کې**

**ودرېږي.**

**قُلْ سُبْحَانَ رَبِّي هَلْ كُنتُ إَلا بَشَرً ارسُولاً ؟**

**دمدثّر سورت،(١)ایت**

اې هغه څوکه چې خپل ځان دې تاوکړی دی!

توضیح:داټول سورت داسې یوچاته خطاب دی. چې هغه ته (مُدَثِّرْ)ویل شوی وي.

مدّثر یعنی: هغه څوک چې خپل ځان ئې تاوکړی دی! هغه جامې چې سرترپایه انسان په کې پټ وي.

«مُدَثَّرْ» کیدلی شي هم په ظاهري شکل معنی شي ،اوهم په باطني شکل معنی شي:

په ظاهري شکل : کوم کسان دنورو په نسبت خپل ځانونه ډیر پټوي؟کومه ډله خلک خپل سرونه دعامو خلکو په منځ کې دټوټې په وسیله پټوي؟ایا داډله (معمم) دپګړې والا خلک نه دي؟

---

---

- په باطنی شکل : کوم کسان خپل روح پټوي؟کوم کسان په ظاهر کې ښکلي دي. اوکوم کسان په باطن کې بدرنګ دي؟دغه خلک دوه مخي دی.تظاهرکوونکي دي.قران مجيد کله دپيريانو په نوم هغوې يادوي.

وروسته له ډير صفته ، پروردګار د مخاطب شخص څخه غواړي. چې خپل ځان د موعود دمنلو لپاره اماده کړي :

**قُمْ فَانذِرَ .**

**مدثر سورت ،(۲) ایت** پورته شه !
او خبردار اوسه .
**وَرَبكَ فَكَبِّر.**
**مدثر سورت (۳) ایت**
خپل پروردګار لوی وګڼه .
وروسته له هغه څخه وغوښتل شو. چې خپلي جامې پاکې کړه :
**وَثِيَابَكَ فَطَهِّرْ.**
**مدثر سورت،(۴) ایت**
جامې دې پاکې کړه(دنیکو خلکو صفتونه پیداکړه) .
«پاکې جامې»د«پاک سیرت»(پاک مذهب)نماینده ګي کوي.د(خپلو جامو پاکوالی ) یعنی خپل روح دبدیو دغبارنه پاکول.ناپاکه خلک هیڅکله دپروردګار دپیژندني اودایمان د ارمغان راوړلو لایق نه دي.
**وَلِبَاسُ التقْوَىَ ذَلِكَ خَيْر .**
**داعراف سورة،۲۶ ــ ایت**
دتقوا جامه ښکلې اوبهترینه ده.
وروسته له دې معمم سړی څخه وغوښتل شو. چې دخپل بد سلوک څخه لاس واخلي،اودخپل لیاقت څخه دې ډیر انتظار ونه لري.

**وَالرجْزَ فَاهْجُرْ.**

**دمدثر سورة، ۵ ــایت** دبدو اعمالو څخه لاس واخله .

---

☆ بله معنی ئې:پورته شه اونورو ته خبرداری ورکړه.دمذهبي پیشوایانو وظیفه د خلکو پوهول اونورو ته خبرداری ورکول دي.



---

**وَلَا تَمْنُن تَسْتَكْثِر** .

**مدثر سورة، ۶- ایت**

له هغه څه چې ورکوي ډیر انتظار مه لره.

توضیح: دشیخ عبدالحسین سلوک اوچلند دا وښائې چې دنیکانو دصفت نه اودایمان دارمغان نه بې برخې ؤ.دموعود په مقابل کې د ودریدلو په ځای دهغه بنده ګي کړې وی. اودهغه دلوی ګڼلوپه ځای ئې خپل ځان

لوی وګڼل ،اوحرص ته ئې ډیر تمایل لرل .هرڅه چې به ئې اخیستل ډیرنور به ئې هم غوښتل .

«دزشتو عملونو څخه لریوالی»دشیخ عبدالحسین طرحوته اشاره ده.هغې مبارزې ته چې دموعود په مقابل کې کوله.

**وَلِرَبِّكَ فَاصْبِرْ.**

**دمدثر سورة،۷ ـــ ایت** دپروردګار

دظهور لپاره خبردار اوسه.

توضیح: دربّ ظهور ته صبرکول(یعنی هغه موعود چې دربّ په نوم راځي )پند اوذکر دی. چې څو ځلې په مقدس کتاب اوقران مجید کې زمونږ دعصر موعود ته داشارې په اړه په کاروړل کیږي:

**دربّ دراتګ منتظر اوسئ .صبر وکړئ ترڅو راشي.**

**دمزامیر داود:۳۷ فصل :۷ ـــ ایت**

دمخکیني ایت نه مخکې ،ناڅاپه په قران کې نوي مطلب عنوان کیږی:

**فَاذَا نُقِرَ فِي النـاقُورِ فَذَلِكَ يَوْمَذٍ يَوْمٌ عَسِير .**

**دمدثر سورة،(۸- ۹) ایتونه**

کله چې شپیلی وهل کیږي. سخته ورځ ده. (دبې ایمانه خلکو لپاره اسانه ورځ نه ده)

**توضیح:** په همغه ترتیب چې په (۲۰ )فصل کې په تفصیل سره وربانديې بحث شوی دی،د

(شپیلې)وهل»دقیامت ورځې ته اشاره ده.هغه لویه ورځ په قیام دقائم موعود یعنی دحضرت باب په ظهور سره شروع شوه.ولی دقیامت ورځ سخته ورځ ده؟ځکه چې د«تصمیم ورځ»ده.که شیخ عبدالحسین ددې ورځې اوددې پیښې سره نه وی مخامخ شوې داسې مشکل سره به نه – مخامخ کیدلې .دحقیقت ظهور دهغه داخلي قواوي اعلی حد سره دامتحان لاندی راوستلې، اودده روح ناپاکي ئې ښکاره کړه.



---

---

دبلی خوا دموعود څخه انکار دخلکو پخوانی طریقه ده. اودژوند رسم ئې دی.دډیرومؤمنانو لپاره دداسی لوی تصمیم سره مخامخ کیدل .دموعود منل اویا دهغه ردول ډیر سخت اومشکل کاردی.

دقيامت دورځې دذکر نه وروسته چې عمومې جنبه اواړخ  لري.دقران خطاب يوځل بيا دنظر وړکس ته دى.په ورستيو ايتونو کې ددې مکار سړي په نسبت اواړه دپروردګار غضب مخکې راښکاره شي:

**ذَرْنِي وَمَنْ خَلَقْتُ وَحِيدًا.**

**مدثر سورت،۱۱ــ ايت**

ماهغه چا سره يواځې پريږدى. چې ماپيداکړى دى .( دهغه حساب ته ورسيږم.)

**وَجَعَلْتُ لَهُ مَالًا ممْدُودًا.**

**دمدثر سورت،۱۲ ــ ايت**

ماهغه ته ډيرثروت بخشش کړى دى.

**وَبَنِينَ شُهُودًا.**

**دمدثر سورت،۱۳ ــ ايت**

اوهغه زامن چې له هغه څخه ملاتړ کوي.

**وَمَهَّدتّ لَهُ تَمْهِيدًا.**

**دمدثر سورت،۱۴ ــايت**

دهغه ژوند مې اسانه کړى دى .

**.ثُم يَطْمَعُ انْ ازِيدَ.**

**دمدثر سورت،۱۵- ايت**

اماهغه په طمع کې ولويد اونورئې هم وغوښتل .

**كَلا انـهُ كَانَ لِآيَاتِنَا عَنِيدًا سَارْهِقُهُ صَعُودًا .**

**دمدثر سورت، ۱۶- ایت** په

هيخ وجه !له دې کبله چې هغه زما دايتونو اونښانو په مقابل کې ودريدل. هغه به دسختو بلاګانو سره مخامخ کړم.

توضيح: شيخ عبدالحسين – بانفوذه شخص ددې جهان دټولو نعمتونو څخه پريمانه ګټه واخيسته. سره ددی قانع اوخوښ نه و.هغه دحضرت بهاءالله دمقام اومحبوبيت په شان ځانته ارزولرله ،اوهغه څه چې هغه لرل ،حتی دهغه څخه ډيرئې دځآن لپاره غوښتل.



په

کتاب د«قرن بدیع»کې چې دبهائي ائین تاریخ پورې اړه لرې .لولو چې حضرت بهاءالله :
**نوموړی شیخ خبیث ،مفسداوشریر یاد کړی دی.**
**اودهغه په حق کې په دې کلماتو «جرّدت سیف نفسک علی وجه الله »او«هوالّذی وسوس الشیطان في نفسه »او«یفرّالشیطان عن کفره »او«مامن ظلم ومامن فسق الاّ وقدبدء من هذاالشقّي وسیعود کّل ذلک الیه »خبرې کړئ دي .۳**
حضرت بهاءالله هغه دښکاره دلیل اوبرهان لپاره دعوت کړ.چې دحقیقت دپیداکولو په خاطر دهغه سره په یو ځانته ځای کې ملاقات اوخبرې وکړی . هغه دادعوت ومنل ،اماپه خپله وعده ئې وفاونکړه. اوهغه ځای ته حاضر نشو. حضرت بهاءالله په دې لوح یا لیک کې دهغه نه راتګ هغه ټاکلي ځای ته په اشارې سره فرمائي:
**ان یا حسین تزور الحسین و تقتل الحسین یا ایّها الغافل المرتاب .انّا اردناحضورک فی العراق و جعلنا الاختیار بیدک فی ایّ محلّ ترید لتحضر و نظهرلک البرهان . انّک قبلت و اذا جآء المیقات هبّت الاریاح انّک فررت یا ایّهاالذّباب .اتینا بیتاً قرّر فیه الاجتماع و ما وجدناک یا ایّها المشرک بالله مرسل الاریاح .لمّا رایت عجز**

**نفسک اعتذرت یا ایّها المکّار .ما اردنا لقآئک الّا لیتمّ حجّة الله علیک و عل□ من حولک لعلّ تسکن نار البغضآء ف□ صدرک و صدور الّذین کفروا بربّ الارباب .انّک اعرضت عن لقائ□ بعد الّذی یشتاقه اهل الفردوس و اهل حظآئر القدس سوف تبک□ و تنوح و لا تجد لنفسک من مناص.**

**ان اصبر حتّ□ یأتیک الله بقهر من عنده سوف تاخذک نفحات العذاب وترجعک ال□ النّیران .قد ات□ الرّحمن ف□ ظلل البیان و الملک لله المقتدرالقهّار . ٤**

ددې مکار اوکینه کښ شیخ په باره کې دقران پاتې ایتونو اونښانو مطالعی ته ادامه ورکوو.

---

**انهُ فَكرَ وَقَدرَ.**
**مدثّرسورة،۱۸- ايت**
هغه فکر وکړ اونقشه ئې جوړه کړه.
**فَقُتِلَ كَيْفَ قَدرَ.**
**مدثّر سورة،۱۹- ايت**
وای په هغه!چې په څه ډول ئې نقشه جوړه کړه!
**ثُم قُتِلَ كَيْفَ قَدرَ.**
**مدثر سورة، ۲۰- ايت**
یوځل بیا وای په هغه !چې په څه ډول ئې نقشه جوړه کړه!
توضیح: مخکینی ایت داسې یو چاته اشاره کوي. چې په مکر ،ټګی،چلول او دسیسه کاری کې ډیر مهارت لري.دشیخ عبدالحسین شله ګي او هنر په «طرح کولو»کې بې مثاله اودتعجب وړدی .قران مجید یو ځل د«قَدَّرَ»(نقشه ئې جوړه کړه)په یادولواوذکر سره ،اودوهم ځلی د«كَيْفَ قَدَّرَ»(په څه ډول ئې نقشه جوړه کړه!)په یادولو دزمان اووخت دموعود سره ددښمنې په ښودلو کې ددې مکرجن شخص مهارت وښائې.

**ثُم نَظَرَ. .**

**دمدثر سورة ٢١ ـــ ایت**

اوبیاهغه دهغه شاوخوا ته نظر واچول.

**ثُم عَبَسَ وَبَسَرَ. .**

**دمدثر سورة،٢٢ـ ایت**

هغه وخت ئې خپل مخ وښوده، اوتندہ ئې تروه کړه.

**ثُم ادْبَرَ وَاسْتَکْبَرَ.**

**دمدثرسورت،٢٣ـایت** اوبیائې مخ واړول

،اودلویوالي احساس ئې وکړ.

**فَقَالَ انْ هَذَا ا لا سِحْرٌ یُؤْثَرَ.**

**دمدثر سورة ،٢۴ ـــ ایت**

اووئې ویل : دایواځې هغه جادو دی، چې تازه ګي نه لري.

**انْ هَذَا ا لا قَوْلُ الْبَشَرَ.**

**دِمدثر سورة،٢۵ـ ایت**

دایواځې دانسان قول اوژمنه ده، نه د«پروردګار».

**توضیح**:دایتونه.دشیخ عبدالحسین احساسات اوفکر دحضرت بهاءالله دځوابونو په نسبت دهغه اویارانو غوښتنه تشریح کوي. په دې کې شک نشته چې دحضرت بهاءالله لخوا دمعجزې دسرته رسولو منل دشیخ عبدالحسین لپاره دحیرانتیا وړوه.

هغه شيخ باور نه کاوه. چې هغه حضرت بهاءالله دې دعلماو غوښتنه ومني ،اوکه نه نو داسې طرح به ئې هيڅکله نه وی جوړه کړې. يواځې دداسې غيرې منتظره ځواب سره دمخامخ کيدو په صورت کې دسحراوجادوگرې موضوع رامنځ ته کړه:

**فَقَالَ انْ هَذَا الا سِحْرٌ يُؤْثَر.**

**دمدثر سورة،۲۴-ايت**

پس وويل: دايواځې جادودی. چې نويوالی نه لري**!** په همغه ترتيب چې يادونه ئې وشوه ،دمعجزې غوښتونکو چې دهغوې په راس کې شيخ عبدالحسين و،وويل:

**داشخص (حضرت بهاءالله)جادوگردی. شايد جادو وکړي،هغه وخت به مونږ ته بيا هيڅ دکومې خبرې**

**ځآی پاتې نشي.۵**
**حضرت بهاءالله**
**کذلک اردنا فی العراق ان تجتمع مع علماء العصر لمّ ا سمعوا فر وا و قالوا اِ نْ هوالّا ساحر مبین .**
**٦**

**حضرت بهاءالله** مونږ. اراده کړې. چې دوخت دعلماو سره غونډه وکړو.چې داخبرئې واوریده فراراوتیښته ئې وکړه. اوویل: «هغه په غیر دجادوګرنه بل څوک نه دی!»
په پیغمبرانو دجادوګرۍ تورلګول کوم نوی کارنه دی:
**يَقُولُ الظَالِمُونَ ان تَت بِعُونَ الارَجُلاً مسْحُورًا.**
**داسراسورة۴۷- ایت**
ظالمان وائې :تاسی (مسلمانان)دیوجادوګرشخص څخه پیروي کوې.
**وَقَالَ الذِینَ کَفَرُوا لِلْحَقِّ لَما جَاءهُمْ انْ هَذَا الا سِحْرٌمبِینٌ .**
**دسباسورة،۴۳- ایت**
کله چې کافران دحق سره مخامخ شول وویل :«داپه غیردښکاره جادونه بل څه نه دي.»
**«ځنې پیغمبرانو ته دلیونتوب نسبت کول.اوځنې ته دجادوګرواوځنې نوروته د دروغجنو. »۷**
**حضرت بهاءالله**

په مخکينو ايتونو کې نورې نښانې دي. چې دهغوې
اړيکه دنظر وړپيښنو سره تائيدوي:
**فَقَالَ... انْ هَذَا الا قَوْلُ الْبَشَرِ. .**
**مدثر سورة،(۲۴- ۲۵) ايتونه**
پس وويل...دايواځې دبشر قول اوژمنه ده.(نه
دپروردګار.)



---

مخکښنی ايت وښائې. چې يوشخص خپل ځان پيغمبر
کړی دی.اويوبل شخص چې معمم دی ،خپل مقام څخه
ئې انکار کړی،اودهغه کلام ئې يواځې دبشر کلام
ګڼلی ،نه دپروردګار وحی.
داپيشوا (ملا)چې عمّامه ( پګړۍ)ئې په سر ايښې ده
،بايدخپل پيروان سمې لارې ته رهنمائي کړي، نه

دتباهې اونيستې لارې ته. دداسې ظالم اومکار مجتهد جزا په هميشني جهان کې څه ده؟

**سَاصْلِيهِ سَقَرَ.**

**مدثر سورة،۲۶-ايت**

ډير ژر به ئې په جهنم کې واچوم.

**وَمَا ادْرَاكَ مَا سَقَرُ؟**

**مدثر سورة،۲۷-ايت**

ځنګه ئې ورته تشريح کړم چې جهنم څه شی دی؟

**لَا تُبْقِي وَلَا تَذَرُ.**

**مدثر سورة،۲۸- ايت**

څه شی نه ترې پاتې کيږي،نه هم څوک ورڅخه خلاصيدلی شي.

**لَواحَةٌ لِّلْبَشَرِ.**

**مدثر سورة،۲۹-ايت**

دانسان رنګ بدل شي !

توضيح:همغه خالق چې داظالم اومکار پيشوائې دقران مجيد له مخې په هميشني عالم کې ددوزخ په لمبو سره ئې ايرولی دی.يوځل بيا په دې عصر کې داخبر هغه ته ورکوي :

**سوف تاخذک نفحات العذاب و ترجعک ال النّيران .قد ات الرّحمن ف ظلل البيان و الملک لله المقتدر القهّار .**

**حضرت بهاءالله** ډير ژرديږ. چې دعذاب بادونه به در پسې راورسيږي. ددوزخ اورته به دې ورسوي. پروردگار د«بيان سيورو»ته راښکاره شوی دی. داجهان مقتدر اوقهاررب پيداکړی دی. حضرت بهاءالله پخپلو ډيرو اثارو کې له پروردگاره غوښتنه کوي. چې دمنکرينو سره ياري وکړي،شايد دايمان اوپوهې رڼاته ورسيږي:

---

☆ «دعذاب بادونه»،نفحه:نسيم ،دبادلږيدل



---

---

**دخپل ربّ ج څخه غواړم. چې دامنکرين اومغرضين دتوبې اوزارۍ خواته تائيد کړي. ډير دافسوس ځای دی. چې خپل ځان ددايمي غضب مستحق کړي.٩**

د(جانکاه)یعنې روح ازارونکي دوزخ دصفت نه
وروسته په څولنډو ایتونو کې ،پروردګار یوه
«ځانګړې نښانه »دهغه په باره کې مونږ. ته راوښائي:
**عَلَیْهَا تِسْعَةَ عَشَر.**
**دمدثر سورة،۳۰- ایت**
دهغه «دوزخ»په رآس کې (۱۹)نفره دي.
**وَمَا جَعَلْنَا اصْحَابَ النارِ ا لا مَلَاکَةً.**
**دمدثر سورة،۳۱- ایت**
یواځې فرشتې ددوزخ په راس کې دي.
**وَمَا جَعَلْنَا عِدتَهُمْ الا فِتْنَةً لِّلذِینَ کَفَرُوا.**
**مدثر سورة ،۳۱- ایت**
دهغوې یو شمېر(یعنی ۱۹)مې دمنکرینو دازمایش
لپاره یوه وسیله جوړه کړه.
**لِیَسْتَیْقِنَ الذِینَ اوتُوا الْکِتَابَ وَیَزْدَادَ الذِینَ آمَنُوا ایمَانًا.**
**دمدثر سورة،۳۱- ایت**
او(یوه وسیله )می وګرځوله دهغه چادډاډ لپاره چې
هغه ته کتاب ورکړل شو. (یهودان اومسیحیان )اوهغو
کسانو لپاره چې پخپل دین باندی رښتینی ایمان لري.
**وَلَا یَرْتَابَ الذِینَ ا وتُوا الْکِتَابَ وَالْمُؤْمِنُونَ .**
**دمدثر سورت،۳۲-ایت**
اوددې لپاره (چې دنوي ائین)په باره کې دکتاب والا
اورښتینو مسلمانانو په زړونو کې شک پیدانشي.

ډير پيشوايان دخلكو دګمراهي لپاره په مكر ځانونه اچول. اواچوي. داايتونه دابراهيم سورة څخه زمونږ دعصر دمكرجنو خلكو پورې اړه لري.هغه خلك چې كوښښ كوي. دمكر په وسيله،دپروردګار د وعدو دتحقق خنډ اومانع وګرځي. شيخ عبدالحسين ددې مكرجنو پيشوا اومشرؤ:

---

❖ دبهائي ائين په ايتونو كې هم، ددوزخ دملائكو خبرې شوې دي. حضرت بهاءالله يو بيان كې فرمائي: چې دبقاجام دجنت اودوزخ دملائكو په لاس كې وي .

**پس نيكمرغه دى هغه نفس، چې دبقا دجام څخه وڅكي. اودفنا جام دهغو اهل ته پريږدي .**

**(الهي ايتونه ،٢جلد،١٨٣- پاڼه )**

**وَقَدْ مَكَرُواْ مَكْرَهُمْ وَعِندَ اللهِ مَكْرُهُمْ وَان كَانَ مَكْرُهُمْ لِتَزُولَ مِنْهُ الْجِبَالُ فَلاَتَحْسَبَن اللهَ مُخْلِفَ وَعْدِهِ رُسُلَهُ ان اللهَ عَزِيزٌ ذُو انْتِقَامٍ يَوْمَ تُبَدلُ الارْضُ غَيْرَالارْضِ .**

**دابراهيم سورت،(۴۶- ۴۸)،ايتونه**

په يقين سره خپل مکر ئې په کارواچول ،دمکرجزا دخدای سره ده.دهغوې نيرنګ اونقشه دارنګه وه. چې غرونه به هوار کړي .تصور مه کوی. چې پروردګار به دخپلو پيغمبرانو سره وعده ماته کړي.پروردګار قادراوقهاردی .دا(هغه)ورځ ده. چې دځمکی نه به بله ځمکه جوړه شي.

**دښمنان په دومره مکر سره ظاهر شول چې شيطان حيران شو. ۱۰ حضرت بهاءالله**

## په ۱۹ عددکې پټ راز

**وَلِيَقُولَ الذِينَ فِي قُلُوبِهِم مرَضٌ وَالْكَافِرونَ مَاذَا ارَادَ اللّٰهُ بِهَذَا مَثَلًا. مدثر سورة،۳۱- ايت**

اووددې لپاره چې د(۱۹عددانتخاب ددی سبب شو.)ترڅو هغه کسان چې دهغوې په زړونو کې مريضتيا ده. او هغه چې دموعود څخه انکار کوي،ووائي:

«دخدای منظور ددې مثال څخه (یعنی د۱۹ عدد دانتخاب)نه څه شی دی؟»
توضیح: په مخکښني ایت کې د۱۹ عددته یومثال ویل شوی دی.ددې مثال نه منظور څه شی دی؟دمثال معنی دکتاب دلغتونو په اساس: شباهت اومثال، یو شی چې دبل شي نماینده ګی وکړي، درس، نمونه.
پورتنی ایت په روښانه توګه وښائې چې د۱۹ عدد بې حسابه نه دی انتخاب شوی. په دې عدد کې یورمز پټ دی. چې باید ټول مؤمنان چې دهردین څخه وي. که اهل کتاب والا وي. اوکه مسلمانان وي. رابیدارکړي. ولی دزرهاوعددونو څخه یواځی یوعدد انتخاب شوی دی؟ څنګه کیدلی شي. یوعدد دخلکو دیوې ډلې دډاډ وسیله ،اودیوې بلې ډلې دامتحان سبب اوموجب شي؟ د۱۹عدد دکوم اهمیت وړ دی ؟ ددې پوښتنو ځوابونه دبهائې ائین په تاریخ اوتعلیماتو کې په روښانتیا سره کولی شی پیداکړئ. ځکه چې په دې ائین کې له هماغه شروع څخه د نهه (۹)اونولس (۱۹)عددونو ډیر مهم نقش لرل اولري. مثلاً:

- .بهائې کال «۱۹»میاشتې دی.
- . بهائې میاشت«۱۹»ورځې ده.
- . دهرښاربهائیان «۱۹»ورځنی ضیافت نیسي.
- . بهائیان هرکال «۱۹»ورځې روژه نیسي.
- . دنوروز ورځ وروسته د«۱۹»میاشتو په «۱۹»ورځ ده.
- . بهائیان هره ورځ باید (۱۹ ×۵ ) = ۹۵ ځلی دالله ابهی ذکروکه. الله دهرې روښنائې روښانتره دی.
- په بهائې ائین کې په هرو «۱۹»کلونو کې یوځل دکورکالي اواسباب باید نوي کړي، ددنیا دمال سره دانقطاع په خاطر.
- . دحضرت باب پیروان (حروف حیَّ) دخپل ځان په شمول «۱۹»نفرؤ.

- . دحضرت بهاءالله حواريون (دحضرت ولی امرالله په انتخاب)«۱۹»نفره ؤ.۱۱
- . دحضرت باب امر اظهار په شيراز کې اودحضرت بهاءالله امر اظهار په بغدادکې ددې دوه الهي امرونو ترمنځ فاصله دشمسي تاريخ په حساب ۱۹ کاله وه.
- دبحارالانوار حديث په اساس دقائم دوره «۱۹»کاله ده.۱۱
- بهائې ائين په ۱۹ ميلادي پيړې کې راظاهر شو.

- دحضرت باب ارامګاه (قبر)دکرمل دغره په سرپه(اعلی مقام )په ۱۹ پوړه کې جوړه شوې ده.
- دحضرت باب ترټولو مهم کتاب «بیان»د«۱۹»دعدد په اساس ویشل شوی دی: ۱۹«بابه»یعنې(۱۹ فصله)چې هرباب ئې «۱۹»واحده دی.
- دحضرت باب بل کتاب چې کتاب الاسماء دی،۱۹ واحده دی. اوهر واحد ئې ۱۹ بابه دی .
- بهائیان هرکال باید دخپل مال په (۱۰۰)کې (۱۹)دخپل میل اوخوښې په اساس یعنی دخپل اختیار له مخې دخیریه کارونو لپاره اودخپل ائین دخپرولواو اداري کارونو لپاره انفاق او بخشش کړي.

د۱۹ عدد دحضرت باب په ایتونو کې په مختلفو ډولونو سره لیدل کیږي .چې په دې وینا کې ئې درې (ډوله ۱۹)ته اشاره شوې ده:
**۱۹ یونوم دی. چې دعلی الله مُدِل دی ...او۱۹ دنفې یوتوری دی. ددوزخ ۱۹ دروازی دي،دجنت د۱۹دروازو په مقابل کې ....۱۳**
**حضرت باب**
ایا داټول مختلف اوډول ډول اړیکې د(۱۹)عدد دبهائې ائین دایتونو ،قوانینو ،تاریخ اوښوونو سره دتصادف له مخې دي:
دقران نه مه واره یو حدیث هم د(۱۹)عدد اړیکه دبهائې ائین سره تائیدوي:
**یدورالامر فی زمن القائم علی عدد حروف البسمله .**
**۱٤** الهي
ائین او«امر»دقائم په زمانه کې (دبسم الله الرحمن الّرحيم )دحروفواوتورو دعددو نو په محور راګرځي .
په همغه ترتیب چې دانسان دترقې اوکمال درجې بې شماره دي،دهمیشنی جنت درجې هم بې شماره دي:
**دجنت دهرو (۱۹)دروازو دسیوري لاندې بې نهایته دروازې وې، اووي به .**

---

---

**د«بسم الله الّرحمن الّرحيم»**

**«۱۹» توري**

| |
|---|
| **ب،س،م،ا، ل، ل، ه، ا، ل، ر، ح، م، ن، ا، ل، ر، ح ، ی، م** |
| **۱، ۲، ۳، ۴، ۵، ۶، ۷، ۸، ۹، ۱۰، ۱۱، ۱۲، ۱۳، ۱۴، ۱۵، ۱۶، ۱۷، ۱۸، ۱۹** |

په همغه ترتيب چې مووليدل ، قران مجيد د۱۹عدد د سمې لارې دوستدارانو لپاره يو كومک كوونكی مثال راوړي. (۳۱ ،ايت).دهغه اسماني كتاب په اساس ،هغه خلک چې دداسې مثالونو څخه پند اخلي. كم دي:

**وَلَقَدْ صَرفْنَا لِلناسِ فِي هَذَا الْقُرْآنِ مِن كُلِّ مَثَلٍ فَابَ اكْثَرُالناس الاكُفُورًا.**

**داسرار سورة،٨٩-ايت** مايه دې قران کې دخلکو لپاره هر ډول مثالونه راوړي دي.ډيرو خلکو دناشکرۍ په وجه له هغوې څخه انکار کړی دی.
**وَلَقَدْ ضَرَبْنَا لِلناسِ فِي هَذَا الْقُرْآنِ مِن كُلِّ مَثَلٍ وَلَن جتَهُم بِآيَةٍ لَيَقُولَن الذِينَ كَفَرُوااِنْ انتُمْ ا لا مُبْطِلُونَ كَذَلِكَ يَطْبَعُ اللَّهُ عَلَى قُلُوبِ الذِينَ لَا يَعْلَمُونَ فَاصْبِرْ ان وَعْدَاللَّهِ...**

**دروم سورت، ٦٠- ٥٨،ايتونه**
مايه دې قران کې دخلکو لپاره هرډول مثالونه راوړي دي. اوکله چې دهغوې لپاره کوم ايت اويانښانه راوړې ، منکرين وائې : «تاسې يواځې باطلې خبرې کړی»په دې ډول خدای دهغوې په زړونو مهرلګولی دی.پس له دې کبله صبر ناک اوډاډه اوسه. چې دخدای وعده سمه ده...
دقران ايتونه دا راوښائې چې د«١٩»په عدد کې يوبل رمز هم پټ دی. ددې فصل په اخر کې به دهغه رمز سره اشنا شو.
**كَذَلِكَ يُضِل اللَّهُ مَن يَشَاء وَيَهْدِي مَن يَشَاء.**
**دمدثر سورت، ٣١-ايت** په دې ډول

پروردګارچې هر څوک وغواړي ګمراه کوي. او هر چاته چې وغواړي هدايت کوي.



---

---

توضيح:مخکېنی ايت راوښائې چې دبحث وړ (واقعتونه)دخلکو دګمراهې اوهدايتونو پورې اړه لري.دکومې لارې هدايت ؟ دسمې لارې هدايت. مسلمانان په سمه لاره روان دي.نورې کومې لارې شته دی ؟ هغه لارې چې نوی پيغمبر ئې راوښائې. دمدثر سورة پاتي ايتونه ته د۱۹ عدد دبررسې اوڅېړنې په باره کې ادامه ورکوو:

**وَمَا يَعْلَمُ جُنُودَ رَبِّكَ ا لا هُوَ.**

**مدثر سورة، ۳۱- ايت**

هیڅوک په غیرالله نه دخدای دلښکرو په «شمیر »نه پوهیږي.
**وَمَاهِیَ اِلاَّ ذِکْرَی لِلْبَشَرِ.**
**مدثر سورة،۳۱- ایت**
هغه عدد یواځې یوه یادونه ده دبشر اوخلکو لپاره .
په همغه ترتیب چې دفرشتو شمیر(۱۹)تنه دی.(۳۰-ایت)مخکښی ایتونه مونږ ته راوښائي چې دفرشتواوملائکو په شمیر باندی یواځی دهغوې پروردګار پوهیږي. د۱۹عدد یواځې یومثال دی یعنی یوه معنوي معنالري.هغه عدد یواځې دملائکو دشمیر یوه نمونه اومثال دی. دخدای منظور د۱۹ عدد دذکرڅخه څه شی دی؟ددې کارڅخه څه نتیجه لاس ته راځي ؟دبل ایت په اساس ،ددې څخه مقصد په منکرینو کې دکنجکاوي راپیداکول دي:
**وَلِیَقُولَ الَّذِیْنَ فِی قُلُوبِهِمْ مَّرضٌ وَالْکَافِرُونَ مَاذَاأَرَادَاللهُ بِهَذَامثَلاُ.مدثر سورة،۳۱ – ایت**
ددې لپاره چې د«۱۹»عدد ددې باعث شي. ترڅو هغه کسان چې به زړونو کې مرض دی. اوهغه کسان چې دموعود څخه انکار کوي. ووائي : «دخدای منظور ددې مثال څخه (د۱۹عدد دانتخاب څخه )څه دې ؟»

دایت دوهمه برخه،د(۱۹)عدد دکارولو اصلی مقصد مونږ ته راوښائي:

**وَمَاهِىَ اِلاَّ ذِكْرَى لِلْبَشَرِ.**

**مدثر سورة،۱۳- ایت**

هغه عدد یواځې زماله طرفه خلکوته دتذکراویادوني یوه وسیله ده.

**كَلاَّ وَالْقَمْرِ وَاللَّيْلِ اِذْ أَدْبَرَ وَالصُّبِحْ اِذَاأَسْفَرَ.**

**دمدثر سورت،۳۴- ۳۲،ایتونه**

نه! په میاشت قسم دی. اوپه هغه وخت چې شپې په خوب کې وي،اوپه سبائې قسم دی.اوپه هغه وخت چې بیدار اوروښانه دی.

**اِنهَا لاِحْدَی الْکُبَرِ.**

**دمدثر سورة،۳۵- ایت** هغه عدد یواځې یوه لویه نښانه ده.

**نَذِیرًا لِّلْبَشَرِ لِمَن شَاء مِنکُمْ ان یَتَقَدمَ اوْ یَتَاخرَ کُل نَفْسٍ بِمَا کَسَبَتْ رَهِینَةٌ.**

**دمدثر سورت،۳۸- ۳۶،ایت**

(دانښانه)بشرته اخطار دی .هرڅوک چې غواړي. مخ ته ولاړشي ،اویاوروسته پاتي شې. په تحقیق شروع وکړي ،اویادانښانې نادیده وګڼي.)هرفرد دخپلو اعمالو ځواب ویونکی دی.

وروسته پروردګار دنوي ائین دمنکرینوبرخلیک په همیشني جهان کې دخبرو اتروپه شکل دمؤمنینو اودهغوې ترمنځ داسې بیانوي.

**اصْحَابَ الْیَمِین فِي جَنات یَتَسَاءلُونَ الْمُجْرِمِینَ عَن مَا سَلَکَکُمْ فِي سَقَرَ.**

**دمدثر سورت،۳۹-۴۲،ایتونه**

(داسې وخت به راشي چې )دښې لاس خلک (په نوی ائين مؤمنين)چې په جنت کې به وي.له ګناه کارانو څخه (له منکرينو څخه )به بوښتنه وکړی: ستاسي د تګ سبب دوزخ ته څه دی؟

**قَالُوا لَمْ نَكُ مِنَ الْمُصَلِّينَ وَلَمْ نَكُ نُطْعِمُ الْمِسْكِينَ وَكُنا نَخُوضُ مَعَ الْخَاضِينَ وَكُنا نُكَذِّبُ بِيَوْمِ الدِّين حَت□ اتَانَا الْيَقِينُ. دمدثر**

**سورة،(۴۳- ۴۷) ايتونه**

منکرين به په ځواب کې ووائي : مونږ لمونځ نه کولو،فقيرانو ته مونږ ډوډی نه ورکوله،خوشې خبرې موکولی(دموعود دظهور خبر مونږ په بې اساسه خبرورردول اوددين دورځې نه به مونږ انکار کولو .ترڅو چې (دې عالم ته راغلو)اويقين موحاصل کړ.چې ددين ورځ هغه ورځ ده. چې پروردګار نوی دين خلکو ته هديه کوي.

**فَمَا تَنفَعُهُمْ شَفَاعَةُ الشافِعِينَ.**

**دمدثر سورة،۴۸ ــ ايت**

(په هغه جهان کې )هغوې ته شفاعت بې ګټې دی.

(وخت ترې تيرشوی دی)

---

❖ «ددين ورځ»ځوځلی ددې ائين دظهور وخت ته اشاره شوی ده.

داړول اصطلاحات په ۱۹ او۲۰ فصلونو کې دبحث لاندی نیول شوي دي.

۳۴۹ ۱۲فصل:دپروردګار دنقشې دښمنان

---

---

**دپروردګار دائین نه تیښته اولریوالی**

وروسته له دې پروردګار پوښتنه کوي. اوبیا هغه ته ځواب ورکوي:

**فما لهُمَ عَنَ التَّذْكِرَةِ مُعْرِضِينَ كَانهُمْ حُمُرٌمسْتَنفِرَةٌ فَرتْ مِن قَسْوَرَةٍ.**

**دمدثر سورة،(۴۹- ۵۱)ایت**

څه وشو مشکل څه شی ؤچې زما «تذکر »ته ئې اهمیت ورنکړ؟علت داؤ چې دپروردګار له طرفه دتازه اونوی دین دخبر په راتګ سره ،ددې په ځای چې تحقیق وکړي. د«ګوره خر»په څیر دزمري په لیدو ئې فرار اوتیښته وکړه.

دخلکو ترس اوویره دپروردګاردائین سره په مخامخ کیدلو کې اودهغوې تیښته اوفرار ددې دلوی

«خبر»څخه په مقدس کتاب کې هم وړاند وينه شوې ده:
وای په هغو کسانو چې دخدای دورځې ارزو لري:
د«خدای ورځ»څنګه ورځ ده؟...
دهغه په شان ده، لکه دزمري نه چې منډه وکړي...عاموس نبی :۵فصل،۱۹ – ایت
دخلکو داسختـه ويره دالهي ائين دمنلو څخه اودهغه څخه تيښته اوويره دربښتينولی اوپوهی په رڼا کې ،دحضرت بهاءالله په اثارو کې په کراتو سره تکرار شوې ده:
**هذا ربّكم الرّحمن الـ من تـهربون .١٥**
**حضرت بهاءالله**
داستاسې مهربان اوبخښونکی پروردګاردی!دچاخواته تيښته اوفرار کوئ؟
**يهرب منّا عباد جاهلون .١٦**
**حضرت بهاءالله**
ناپوه بنده ګان له ماڅخه فرار کوي.
**قد وقعت الواقعة وهم عنـها يفرّون .**
١٧ **حضرت بهاءالله**
«لويه پيښه »رامنځ ته شوې ده ،اما هغوې دايمان راوړلو اواقرار پرځای تيښته اختيار کړه.

**غوړونه داوریدلو لپاره دي. دپروردګار راز راغلی،اوسترګی دلیدلو لپاره دي،ولی تیښته کوې ؟بې مثاله دوست راغلی .اووائې چې دنجات اوخلاصون لاره دهغه سره ده.۱۸**

**حضرت بهاءالله**



---

**دپروردګار دسپیڅلی وږمې څخه په تیښته کې اودهمیشني جمال سره په جګړه کې دی. ۱۹**

**حضرت بهاءالله**

دخلکو ویره دپروردګار دنوي ائین دتحقیق په باره کې دخلکو پخوانې سنت اوعادت ؤ:

«مه ويريږئ!اې وړو اولنډ نظره خلکو،پروردګار غواړي تاسې ته په دې دنيا جنت جوړ کړي.»
«دبې ايمانه اوترسو خلکو ...ځاى ددوزخ په اور کې وي.»
**دا ايتونه ،زمونږ دعصر خلکوته په خطاب کې نازل شوي دي.**

**حضرت مسيح**

**مکاشفات يوحنا: ۲۱فصل،۸-ايت**
**هغه چې ترسواوايروندک دي. ورته ووايه:قوي اوسئ !مه ويريږئ!ستاسې پروردګار راتلونکى دى.**
**اشعيا ،۳۵ فصل ۴ ـ ايت**
**قوي اوباشهامته اوسه .دپروردګار دظهور په انتظار کې اوسه .**

**مزامير داود،۲۷فصل،۱۴-ايت**
**حضرت باب فرمائې په هره اندازه چې دراتلونکې موعود په پيژندنه کې(حضرت بهاءالله) احتياط وکړو. په همغه اندازه دخداى څخه دلريوالي په اور اخته کيږو.** ۲۰ په دې بيان کې
پروردګار«احتياط»دموعود دپيژندنې په لارکې دلويو ګناهونو څخه ګڼلى دى:

**ددې ورځې په پېژندنه کې احتياط ترټولو بدوکارونو څخه ګڼل شوی دی.۲۱**

**حضرت بهاءالله**

دمدثر سورت پاتې ايتونو څېړنې ته ادامه ورکوو:

**بَلْ يُرِيدُ كُل امْرِئٍ مِّنْهُمْ ان يُؤْتَ صُحُفًا من شرَةً.**

**مدثر سورت،۵۲- ايت**

هريوله هغو څخه په انتظار کې دی چې بيرته شوی صفحې دې هغه ته ورکړل شي.

---

❖ صمدانيّه : ابدي، سرمدي،رباني . صمد: بې نيازه ،هميشنی ،دايم

دمخکېني ایت په اساس دمنکرینو څخه هریو ځانته دیوې خاصې معجزې ارزو لري.غواړي چې له اسمانه څخه په ده باندې یوه لیکنه نازله شي.دپروردګار ځواب دداسې خلکو لپاره څه شی دی؟
**كَلَّا بَل لَا يَخَافُونَ الْآخِرَةَ.**
**دمدثر سورت،۵۳- ایت**
په هیڅ وجه !(داډول انتظار به ترسره نشي). داخلک داخرت دمجازاتو څخه نه ویریږي.
توضیح:داایتونه دموعود دمنکرینو بې ایمانې ته اشاره کوي. هغه خلک چې داخرت دحساب اوکتاب څخه ویره اوترس نه لري.هغوې غواړي، دمعجزې په ښکاره کولو سره یعنی دطبیعت دقوانینو په ماتولو سره خپل موعود وپیژني.دپروردګار معجزه دهغه په کلام کې، اودهغه دبشارتونو په تحقق اوعملي کولو کې ده. ددې ټولو ایتونواوددې ټولوبشارتونود تحقق څخه ددې ائین په ظهور اوراتګ سره بله لویه معجزه څه شی کیدلی شي؟ که دچا په زړه کې دذرې په اندازه

ترس اوویره دخدای څخه وي.دا اخطارونه ،نښانې ،اویادونې به له یاده ونه باسي.

**په ټولو عصرونو کې خلکو دپیغمبرانو څخه غوښتي دي چې دقدرت په ښکاره کولو سره اودطبیعت په قوانینو باندی په غلبې سره ، هغوی دایمان په راوړلو راضي کړي.په پروردګار دایمان راوړل دمعجزې دلارې یوډول اجبار ګڼل کیږي. داډول ایمان اواقرار دپرودګار په نظر بې قدره اوبې اعتباره دی.دحضرت بهاءالله دبیان په اساس ،که پروردګار خپل قدرت دمعجزو له لارې خلکوته ثابت کړي،ځنې له هغو به ریااوتظاهرته تمایل پیداکړئ وي.په ښکاره به ئې دایمان اظهار کولی ،بې له دې چې هغه ارمغان او(هدیه)په زړه کې ولري.۲۲**

دپروردګار دپیغمبرانو کلام ، رفتار،سلوک ،اوپندداټول دهغوی په لویوالی اوبزرګې شهادت ورکوي .هغه کسان چې دحضرت باب دژوندسره دنږدې نه شاهدان ؤ.لیکلي ئې دي. چې له هغه څخه ئې په غیر دخارق العاده عادتونو څخه بل څه نه دي لیدلي.په داسې حال کې پروردګار هیڅکله راضي نه ؤاونه به وي. چې بنده ګان ئې دمعجزې له لارې په هغه اودهغه په پیغمبرانو ایمان راوړي.

دمحمد علي زنوزي (چې په انيس مشهوردی.)
دشاهدې په اساس چې دحضرت باب سره په شهادت
ورسيد:
**دحضرت باب څخه دومره زيات خارق العاده عادتونه ليدل شوي دي. چې هيڅ يو دښمن اويا دوست نشي کولی ، له هغه څخه انکار وکړي. اودې طايفې ډيرو افرادو اوکسانو بې شماره کرامات ليدلي دي.٢٣**
محمدبيک چاپار(پوسته رسان) د١٢تنو ساتونکورئيس اومشر چې دميرزا اقاسی لخوا ورته دحضرت باب دانتقال ماموريت داصفهان څخه دماکو زندان ته چې د اذربايجان په يوه ولسوالې کې واقع دی، ورکړل شوې ؤ. دارنګه وائي:
**په خدای قسم دی. چې دهغه سيّد (حضرت باب)څخه په غير دکراماتو ،اومعجزو نه مابل څه ونه ليدل .٢۴**

معجزه دظاهر به حساب ،خلک دانکار څخه منع کوي.ایادهغوې په روح کې هم بدلون راولي؟ایا نالایقه خلک دمعجزو په لیدلو سره ناڅاپه رښتینې مومنان کیږي؟

**که ټول ایتونه وګوري، پروردګار ته به قبول نشي.۲۵ حضرت بهاءالله**

**وَان يَرَوْاْ كُل آيَةٍ لايُؤْمِنُواْ بِهَا.**

**دانعام سورة،۲۵ ــ ایت**

که هره نښانه وګوري ،بیاهم ایمان نه راوړي.

شیخ عبدالحسین اونورو علماو چې دحضرت بهاءالله څخه معجزه غوښتې وه ،که معجزه ئې لیدلی هم وی، نه قانع کیدل. هریو له هغوې څخه خپل ځان لپاره یوه خاصه معجزه غوښته. مثلاً داسمان نه دخپل ژوند په باره کې پرانیستې صفحې غوښتلې.دمدثر په سورة کې خلاصی شوي صفحي یوبل ایت ته په اشارې سره، داسراء په سورة کې دي .دهغه ایت اصلی مطلب عیناً زمونږ دبحث وړمطلب تکرار دی .دوه سورتونو دایتونو دمقایسي څخه دامعلومیږي. چې دپروردګار دسنتو اودخلکو په سنتو کې هیڅکله تغیر اوتبدیل نه ؤ اونه به وي. په دې مطلب په تفصیل سره په دوهم جلد کې «دپروردګار نقشه دانسان دسعادت لپاره »بحث شوی دی.

اوس به وګورو داسراء دسورت په اساس دحضرت محمد دراتګ په وخت کې ،خلکو څه ویل او څه ئې وکړل .دهغه عصر اوزمان دخلکو دفکر طرز زمونږ دعصر دفکر دطرز سره مقایسه اموزنده اولاربښوونکې ده:

**وَلَقَدْ صَرفْنَا لِلناسِ فِي هَذَا الْقُرْآنِ مِن كُلِّ مَثَلٍ فَابَ اكْثَرُ الناسِ الا كُفُورًا وَقَالُواْ لَن نوْمِنَ لَكَ حَت تَفْجُرَ لَنَا مِنَ الارْضِ يَنبُوعًا اوْ... تُنَزِّلَ عَلَيْنَا كِتَابًا نقْرَؤُ ُه قُلْ سُبْحَانَ رَبِّي هَلْ كُنتُ إَلابَشَرًا رسُولاً وَمَا مَنَعَ الناسَ ان يُؤْمِنُواْ اذْ جَاءهُمُ الْهُدَى الاان قَالُواْ ابَعَثَ اللهُ بَشَرًا رسُولاً.**

**داسراء سورت،(۸۹- ۹۴)،ایتونه**

په قران کې مې هرډول مثالونه (هرډول يادونې اونښانې )راوړي دي، (سره له دې کومه فايده نه ده کړې).يواځې به (بدله )کې دډيروُ خلکو دکفر کيدلو سبب شو (خلک په عوض ددې چې له دې مثال څخه پند اوعبرت واخلي)وائي چې هيڅکله په تاايمان نه راوړم. مګر هغه وخت چې وکولی شو. هغه ولولو ووايه: چې زما پروردګار مقدس او سپيڅلی دی!ايا زه هغه څوک يم. په غير له هغه انسان څخه چې خدای رالیږلی دی؟ پروردګاريواځې انسان رسالت ته رالیږلی دی؟

مخکېني ايتونه (چې دهغه وخت خلکو انکار ته اشاره ده. چې درسول اکرم څخه ئې کول.)څومطالبو څخه جوړدی. چې عيناً دمدثر دسورت په ايتونو کې تکرار شوی دی. او(زمونږ دعصردموعود څخه دانکار )په اړه دی:

- پروردګار دمثالونو له لارې خپل ائين مونږ ته راپيژني اوهغه ثابتوي.
- خلک مثالونو ته توجه نه لري. اوپه عوض کې معجزې غواړي .اودانتظار يوه نمونه ئې داده چې له اسمان نه يو سرخلاصی ليک هريوته راشي.

- خلک ددې انتظار لري.چې پيغمبر ئې دانسان څخه مافوق اواوچته وي.

دشيخ عبدالحسين په اړوند ايت کې دې ايراد ته په عين شکل اشاره شوې ده:



---

**ثُّمَّ ادْبَرَ وَاسْتَكْبَرَ فَقَالَ... انْ هَذَا الا قَوْلُ الْبَشَرِ.**

**دمدثر سورت،٢٣-٢٥ ايتونه**

اوبياهغه مخ اړوي. اودلويوالي احساس وکړي. اووائي ...دايوائې دبشر قول دی.

- دپروردګار سنت په ټولو زمانو کې يوشان ؤ: دخلکو دعقل اوفکر په قوت پورې هرڅه تړلي

دي، نه په سترګو پورې. دخلکو سنت هم همیشه
یوشان ؤ. دهغوې سترګې دمعجزې په لیدلو
متکي اوولاړې وې اووي به.

**دپیغمبرانو وظیفه**

**یواځې تذکر اویادونه**

**ده**

دجهالت په دور کې دعربستان دخلکو دفکر طرز اورقم اوزمونږ دعصر دخلکو دفکر طرز اورقم ترمنځ شباهت په دې زمان کې چې علم اوپوه اسمان ته رسیدلې ده. دتعجب سبب ده .دمدثر سورت په دې درې ایتونو سره پای ته رسیږي:

**كَلا انهُ تَذْكِرَةٌ.**

**دمدثر سورت،۵۴- ایت**

نه په هیڅ وجه !(پروردګار خپلو سنتو رسم ته تغیر نه ورکوي.دایواځې یوتذکر دی.

(پروردګار یواځی بنده ګانو ته تذکر ورکوي.)

**فَمَن شَاء ذَكَرَهُ.**

**دمدثر سورة،۵۵- ایت**

پس هر څوک غواړي دهغه ذکر ومني.

**وَمَا يَذْكُرُونَ الا ان يَشَاء اللَّهُ هُوَ اهْلُ التقْوَى وَاهْلُ الْمَغْفِرَةِ.    دمدثر سورت،۵۶- ایت**

ځوک به دتذکر والانشي. ترڅو پروردګار ونه غواړي
.یواځې دهغه نه باید ویره ولرو اویواځې دهغه نه باید
دخپلو ګناهونو بخښنه وغواړو.
توضیح: مخکینی ایت مونږ ته رازده کوي. چې
زمونږ دپروردګار ژوند طریقه اوسنت اورسم یواځې
تذکر اوپوهاوی دی.پروردګار یواځې زمونږ دعقل
اووجدان پورې هرڅه تړي .اویواځې ددې لارې مونږ
ته پوهاوی راکوي.پروردګار هیڅکله مونږ دایمان
راوړلو لپاره په جبر سره نه رابولي.



---

موعود باید په ډیرې مینې اودغښت احسان سره ومنو.
نه دزور اوجبرله لارې .**لَااِکْرَاَهَ فِي الّدِیْنَ** (دبقری
سورة،۲۵۶- ایت).داپه دې مطلب شاهدي
ورکوي.اوزمونږ رابطه دپروردګار سره په ډیرې

روښانتیا وښائي .پروردګار یواځې دحقیقت عاشقانو
اوطلب کوونکو ته دموعود دپیژندنې اجازه ورکوي
.اونور ددې غبې فیض اوافتخار څخه لرې اومحروم
پاتې کیږي.
په بغداد کې دحضرت بهاءالله داقامت په وخت کې
،میرزا سعید خان دایران دخارجه چارو وزیرؤ.دې
وزیر حضرت بهاءالله ته یو لیک ورولیږل ،اودهغه
څخه ئې وغوښتل چې خپل ځان دې ددښمنانو ددسیسو
څخه لکه دشیخ عبدالحسین نه وساتي .هغه ځواب چې
حضرت بهاءالله هغه وزیر ته ولیږل. ډیر آموزنده
،رهنما اوله درس نه ډک دی:
دمحبوب دځای دوستداران اودمطلوب ځای اوحریم
ساتونکي اومحرمان دبلاګانو پروانه لري .اوله قضا
ځان نه پټوي. دبحر څخه خپل رزق اخلي، اودجنت
دچینې له ویالی څخه خپل څښاک اخلي.دخپل دوست
رضا په دوه جهانه نه ورکوي. اودخپل محبوب قضا
په لامکانه فضا نه بدلوي.دبلاګانو زهرلکه دژوند
داوبو په شان وڅښي .اووژونکي زهر لکه دروح
بخښونکو شاتوپه څیر ئې په یوشان په سرواړوي.په
هغه بې اوبو وچو خطرناکو صحراګانو کې ،ددوست
په یاد په حرکت کې وي. اوپه هغه وژونکو یادونو
اوتوفانونو کې په ډیرې جانفشانې اوچالاکې سره په

حرکت کې وي. دخپل ځان څخه يې لاس اخيستې
وي.اودخپل جانان عزم ئې کړې وي .خپلې سترګې
دعالم څخه پټې کړې وي.اوددوست دجمال ليدو لپاره
ئې خلاصې کړې وي.په غير له محبوبه بل مقصد نه
لري .اوپه غير دوصاله بل کمال نه لټوي .دتوکل په
بڼکو پرواز کوي.اودوزرونوپه
وسيله الوتنه کوي.اودهغوې په نزد دوريښمېنو جامو
څخه په وينو کې رنګ شمشير ورته ښکلې ښکاري.
اوتيز تير دمورد شيدو څخه ورته په زړه پورې
ښکاري.

**ره صد هزار تاکند درهرنفس صد جان نثار**

دقاتل لاس بايد چپ کړل شي. اوپه ګډاګډا سره
ددوست خواته ولاړشي .څومره ښکلې اونيک دی
داساعت. اوڅومره مليح اوملايم دی داوخت. چې
معنوي روح دزنکدن په حالت کې دی. اوهيکل دوفا
دفناکيدو لوړمعراج ته عزم کړی دی.غاړه مو ورته
نيولې ده. اوديار دبې دريغه تيغ ته په پوره خوښې
اواشتياق سره مشتاق يم. سينه مې ورته سپر کړی ده.
اودقضا تيرته ډير محتاج يم .له نوم څخه بيزاريم.

**اوټول هغه څه چې غير دی ترې لرې شو.فرار اوتيښته ونکړو. اوددښمن سره په مقابله کې ونه دریږو. په دعا سره دبلاګانو غوښتونکی یو. ترڅو دروح په مقدسو هواګانو کې پرواز وکړو. اودمحبت دوني دسيوری لاندی ځای جوړ کړو....۲۶**

**نولس «۱۹» پټ عدد**

**په ټول قران کې**

يوعرب محقق دډاکټر رشاد خليفه په نوم ،وروسته له ډير کوښښ څخه دې نتيجې ته ورسيد. چې دقران ايتونه د«رياضي نظم»لرونکي دي. چې د(۱۹)په عدد ولاړ دي.دې محقق دخپل کشف داثبات لپاره کتاب وليکل. اودخپل ځان نه ئې دقران ترجمه په انګليسي ژبه يادګارپريښوده. ځنی دکشفياتو څخه ئې ددې کتاب په ضميمه کې نقل شوي دي.

باالاخره رشاد خليفه په خپلو عقايدو دصحت ،اسراراوټينګښت په خاطر دمسلمانانو ديوې ډلې سخت مخالفت سره مخامخ شول .دهغه جملې نه هغه ئې دبهائې په نامه اودبهائيانو دطرفدار په نامه متهم

ګړ.داتهام کوونکو په ځواب کې وويل:«بې له دې چې
پوه شي پروردګار ئې په بهائي کيدلو متهم کړی دی!
»ځکه چې د۱۹عدد دپروردګار لخوا په قران کې
غوره شوی دی.
وروسته درشاد خليفه ،يوبل مسلمان په دې ميدان کې
قدم کيښود. اودهغه دکشفياتو داصلاح اوتکميل لپاره
ئې کارشروع کړ.په دې وخت کې دمسلمانانو ددوه ډلو
ترمنځ بحث دموافق اومخالفت په جريان کې دی.

---

❖ Qur'án : Visual Presentation of the Miracle (Islamic Productions, 1982, 247 pages

For those who know English and love mathematics, a section of his findings, as presented in his book, is offered in the appendix.

بايد پوه اوسو چې دالهي کلام اواسرارو ارزښتونه
زمونږ دهيڅ يوه په پوه اوفهم ،تغير اوتفسير پورې اړه
نه لري.ايا داسې څوک شته چې دخطاڅخه په امان کې
وې ؟خليفه رشاد دځينو افکارو داظهاراتو اودخپل نقش
په حصه کې داسرارو دکشف په باره کې دخطاګانو
سره مخامخ شواوباالاخره کله چې يوسهار وختي
مسجد ته دعبادت دپاره روان ؤددښمنانو په لاس
ووژل شو.

---

دقران «رياضي نظم»د۱۹عددپه اساس يوه معجزه دامراودهغه کتاب اسماني منشأ دښبانو څخه ګڼلې ،اوکوښښ کوي چې ددې لارې څخه دمسلمانانو په ايمان کې زياتوالی پيداکړي.لاندينې ليکنه دقران ديوترجمه کوونکي دنظرياتو لنډه نمونه په فارسي ژبه کې ده. چې د«قران رياضي نظم»ددفاع اواهميت په باره کې د۱۹عدد په اساس ليکلی ده. اودخپلې ترجمې په ضميمه کې ليکلې اوساتلې ده:
دقران داسماني کيدلو يوه مهمه نښه (په همغه ترتيب چې په ۴۷: ۳۰- ۳۵،ايتونوکې هغې ته اشاره شوی ده)دقران د«رياضي نظم »دی. چې اساس ئې د۱۹عدد دی ...لمړنی پوښتنه چې مخ ته راځي داده. چې ولی پروردګار د۱۹عدد دقران درياضي اساس ريښې دي؟ څنګه چې واضح ده چې هيڅ يو عدد خاص اهميت نه لري ،اوپه عددونو کې ښه اوبد نشته

اوپروردګار کولای شو. چې یوبل هرعدد انتخاب کړي .بهترین دلیل چې تراوسه پورې وړاندې شوی دی، دادی چې داعدد،د«واحد»دکلمې دتورو دابجدو په حساب دجمع حاصل دی.یعنی دپروردګار په مطلق بې همتائي اویووالي تاکید اودلالت کوي.۲۷

(۶)+(۱=۱)+(ح=۸)+(د=۴)=۱۹

دامسلمان لیکونکي ،ډیر مطالب دخپلې عقیدې داثبات لپاره اظهاراو بیانوي .په دې کتاب کې دهغه دنظریاتو دیوقسمت په ذکر د۱۹عددپه اړه اودقران په مقطع تورو بسنه کیږي:
مقطَع توري په نظر کې ونیسي .دمقطّع تورو جمع په مربوطه سورتونوکې ،د۱۹ضریب لري .په ۷سورت کې دهغه دمقطع تورو جمع **(۱،ل،م،ص)** **:(۱۹×۲۸۰ = ۵۳۲۰)**په ۱۴سورت کې **(ا ،ل ،ر):(۱۹×۶۳=۱۱۹۷)**دراتلونکومقطع تورو په باره کې داحقیقت په رښتینې دحیرانتیا وړدي...پروردګار په ډیرو مواردو کې دمقطع تورو څخه اشاره فرمائي.

**ددې لپاره چې داتوري ددې اسماني کتاب دنښو څخه دي .ولی ددې تورو دويشلو قابليت ددې يوازې پورې محدود نه دي. اوپه همغه ډول چې د«الله »په کلمه کې وښودل شو. دامناسبات څوارخيزه دي.۲۸ داتحقيقات تراوسه پورې سرته رسيدلي نه دي. اوپه نظر نه راځي. چې دهغو ټولو کشف ته به نږدې شوي يو،ولې په هرحال دهرنوي کشف لپاره ،دقران درياضي ددې اساس ژوروالی اوفوق العاده ګي زياتيږي. اوپه رښتينې سره دادتقليدنه لرې دی. اوهم د تصور وړنه دی.۲۹**

دحضرت بهاءالله دوينا په اساس ،دقران په مقطعه تورو کې دپروردګار په لاس ډير اسرار ليکل شوی دي:

**دفرقان په مقطّعه تورو کې دهُويّه اسرار پټ شوي دي. ۳۰          حضرت بهاءالله**

«دهويّه اسرار»ددې تورو په اساس کې پراته دپروردګار دعلم په حيطه (احاطه )کې دي.

مونږ يواځې دهغو اسرارو په ظاهر پوهيدلی شو.مثلاً د«طس»کلمه دنمل دسورت په سر کې په نظر کې ونيسئ:

**طس تِلْكَ آيَاتُ الْقُرْآنِ وَكِتَابٍ مبِين هُدًى وَبُشْرَى لِلْمُؤْمِنِينَ. دنمل سورت،(۱-۲)اياتونه**

«طس»هغوې دقران اوکتاب روښانه نښانې دي.

دمؤمنانو لپاره رهنما اوښه خبر دی.

اياد«ط» اود(س)په تورو کې کوم رمز پټ شوی ... دوه تورو عددی قيمت دابجدو په

س=۶۰   ط = ۹

د«س»توري دحضرت باب دظهورکال ددوه اخرو رقمونوسره برابر دی. يعنې۱۲۶۰، اود«ط»توری زمونږ دعصر ددوه موعودو دظهور ترمنځ فاصلی سره برابر دی.

---

❖ هويّه:هغه چې په حق اوذات پورې اړه لري. ؛ذات بحث (خدای ته اشاره )

ځکه چې حضرت بهاءالله خپل د«ظهور»امر،
دحضرت باب «دظهور »دامرنه «۹»کاله وروسته
اعلان کړ. برسیره پردی ،د«ط»دتوري عددي قیمت
...رش سره برابر دی:

ب= ۲+هـ=۵+ا=۱+ء=۱) =۹

**دحدیث په اساس :**

دخدای رسول (ص)وفرمایل:دابجدو تفسیر زده کړئ.
چې ټول عجایب به هغه کې دي. افسوس په هغه عالم
چې دابجدو په تفسیرپوه نه شي.۳۱
دقران دمقطعه تورو یوبله نمونه:

**طسم تِلْكَ آيَاتُ الْكِتَابِ الْمُبِين.**

**دشعراسورت،(۱-۲)ایتونه**

«طسم»هغوې دكتاب روښانه نښانې دی.

«طسم»یوتوری د«طس»نه زیات دی. اوهغه د م توری دی. د«م»دتوري عددي شماره دابجدو په حساب ۴۰) ده. د۴۰عدد دحضرت بهاءالله درسالت ددوران سره دقمري تاريخ په اساس برابردی. په همغه ترتیب چې ئې ګورو، په دې درې تورو کې(ط،س،م)څلورنښانې پټې شوې دي:

ظهور دکال اخر دوه رقمه.

ځ دظهورفاصله اودبهاء دنامه شماره، دابجدودتورودقیمت

درسالت دوران.

دحیرانتیا خبره ده. چې راتلونکی ایت ددې مقطعه تورو، په درې واړو سورتونو کې یوشان دی:

**طس:تِلْكَ آيَاتُ الْقُرْآنِ وَكِتَابٍ مبِين.**

**دنمل سورت،(۱-۲)یاتونه**

**طسم:تِلْكَ آيَاتُ الْكِتَابِ الْمُبِين.**
**دشعرا سورت،(۱-۲ )ایتونه**
**طسم:تِلْكَ آيَاتُ الْكِتَابِ الْمُبِين.**
**دقصص سورت،(۱-۲)ایتونه**
وروسته دمقّطعه تورو دذکرڅخه ،ددې درې سورتونو څخه په هریو سورت کې ،پروردګار مونږ ته رازده کوي چې داتوري د(روښانه کتاب)یعنی دقران ایتونه دي.ایت یعنی څه ؟دایت معنا دکتاب دلغتونو په اساس
:
نښان ،نښانې،علامې معجزه،دلیل هریوئې دقران جملې دي.په همغه ترتیب چې ومولیدل ددې سورتونو څخه په یوسورت کې ذکر شوي دي. چې هغوې (مقطّعه توري)«دمؤمنانو لپاره رهنما اوښه خبردی.»

**هُدًى وَبُشْرَى لِلْمُؤْمِنِينَ.**

**دنمل سورت ،۲- ايت**

له دې بيان څخه معلومه ده. چې په دې تورو کې يوخبرپټ دی. چې دمؤمنانو دهدايت لپاره يورمز دی.دبشردهدايت لپاره ددوه لويو پيغمبرانو دظهور دخبر څخه بل کوم دخوښې ډک خبر شته ؟

دقران دسورتونو څخه ديوسورت نوم «طه»دی. په دې دوه تورو کې يعنی «ط»او«ه»کې کولای شئ، دبهائي ائين سره رابطه اواړيکه پيداکړئ: ط=۹ ؛هـ =۵

| **دبهاء دکلمې عددي ارزش دابجدو دتورو په اساس** | **دباب دکلمې عددي ارزش دابجدو دتورو په اساس** |
| --- | --- |
| ب ۲<br>هـ ۵<br>ا ۱<br>ء ۱<br>———<br>بهاء=۹ | ب ۲<br>ا ۱<br>ب ۲<br>———<br>باب= ۵ |

---

---

**بحرف الطّاء المدلّة عل□ هذاالاسم**

**)بهاء.۳۲ حضرت بهاءالله**

د«طاء»توري چې د(بهاء)په نامه دلالت کوي.

ايا ممکنه ده چې «طه»طهران ته اشاره وي.

کوم چې دحضرت بهاءالله دتولد اوهم دامر داظهار ځای دی ؟

طهران ته خطاب:

**افرح□ بما جعلک ا لله افق النّور .۳۳**

**حضرت بهاءالله**

خوشحاله اوسه ،ځکه چې پروردګارته درنړا افق وګرځولې.

**دعقل اوفکر**

**نقش**

ولی په مخکېنی ایتونو کې ،قران کریم روښانه
کتاب نومول شوی دی؟ددې لپاره چې ددې
ظهور علامې اونښې په هغه ټول کتاب کې
دلمر په شان روښانه دي. په کوم اسماني اثر
کې دارنګه مکرر اوروښانه خبرونه دبل ائین
په باره کې کولی شی پیداکړئ ؟ پروردګار
همیشه مونږ عقل اوتفکر ته رابولي:
**افَلَا تَعْقِلُونَ ؟**
**دمؤمن سورة، ۸۰-ایت**
دعقل نه ولې کارنه اخلې ؟
**افَلَا يُبْصِرُونَ ؟**
**دسجدې سورة، ۲۷-ایت**
سترګې ولې نه غړوې؟
خدای علم اوعقل ددې لپاره پیداکړی. ترڅو
دپو هاوې لپاره میزان وي.نه باید دارنګه یوه
قوه چې دپروردګار محبت دی. خنډ نې اوبې
کاره شي .ټول کارونه باید له هغې سره پرتله
کړو.

---

❖ حضرت بهاءالله دوه ځلې دامر اظهار
وکړ.لمړی ځل ئې په طهران کې دحضرت باب
پیروانو یوې ډلې ته چې دهغه سره په زندان کې

ؤ؛اودوهم ځل دبغداد په دارالسلام کې درضوان
په باغ کې ټولو حاضرینو ته اودجهان ټولو
خلکوته دامراظهار وکړ.



---

---

**ځکه چې ددین درک کول په عقل کیږی. که انسان عقل ونه لري. دین به ځنګه وپیژني؟ داښکاره اوواضح خبره ده. چې علم اوعقل لازم دی.۴۳ حضرت عبدالبهاء**

ایاکله موفکرکړی دی.چې په څه دلیل موداسلام دین اویابل کوم دین منلی دی؟

که تاسې په حضرت موسی عقیده لرې.ولیکځ چې په هغه پیغمبرموپه کوم دلیل ایمان راوړی؟

که تاسې په حضرت زردشت عقیده لری،ولیکځ. چې په هغه پیغمبرموپه کوم دلیل ایمان راوړی؟

که تاسې په حضرت عیسی عقیده لری،ولیکی چې په هغه پیغمبر موپه کوم دلیل ایمان راوړی؟
که تاسې په حضرت محمد ایمان لری،ولیکی چې په کوم دلیل موپه هغه پیغمبر ایمان راوړی؟
دقلم پورته کول اولیکل مونږ فکرکولو ته رابولي اوپه اسمان کې دالوتنې تصّور اوخیال څخه مولرې کوي.
اودحقیقت عالم او نړی ته موراولي.ولی حضرت بهاءالله په کراتو دایو ټکی زمونږ فکر اوذهن ته راوړي:
**که یوڅوک له دې امر څخه انکاروکړي. اوله دې لوئ ظهورڅخه غافل شي. دهیڅ یوامر په قبلولو به نه قادر ؤ،اونه به هم قادرشي.۳۵**
**داسې بنده ګان دحیرانتیاوړدي. چې په څه ډول ئې دپروردګار په واضحو اشارو سره  د امرڅخه ځانونه ساتلي اوپرهیز کړي دي؟۳۶**

**هغه پیشوا چې هم کریم ؤ،هم اثیم(ګناهکار)اوهم عزیز**

دحضرت باب اوحضرت بهاءالله درسالت په دوران کې یوبل پیشوا (ملا)دتاریخ په میدان کې قدم ږدي. چې دشیخ عبدالحسین سره ډیر ورته والی اوشباهت لري.ښه به وي. چې دهغه یادونه هم په دې فصل کې وکړو. نوم ئې کریم خان اودکرمان اوسیدونکی ؤ.دشیخ عبدالحسین په شان دنوم اومقام غوښتونکی ؤ.پخپل نوم ئې یوځانته مکتب جوړکړ. اوخپل ځان «څلورم رکن»وګڼل. دعالم دثروت څخه پوره برخه مندؤ. وائې ۴۰ زامن ئې لرل په داسی یوحالت کې هم قانع نه ؤ. اوډیرعزت اوقدرت ئې غوښتل .دې

ارزوګانوته درسیدو په خاطرزمونږ. دعصر ددوه موعودو (پیغمبرانو)په مخالفت کې پورته شو.اودهغود ردولو لپاره ئې ردیه ګاني وړاندی کړی.هغو دوه پیغمبرانوپه کراتو هغه دخدای دامر سره له دښمنې څخه منع کړ.اما کومه ګټه ئې ونه کړه.

قران هغه ګنجینه اوخزانه ده. چې هر(لونداووچ)په هغه کې پټ دی. داپیشوا ئې هم له یاده نه دی وتلی .مخکې له دې چې ددې پیشوا (ملا)په باره کې قران ته مراجعه وکړو. ښه به وي. چې یوځل بیا په یاد راوړو. چې دجنت اودوزخ صفتونه په اسماني کتابونو کې اکثره وختونه «متشابه»اړوند ایتونه په همیشني جهان کې ،له دې ډول ایتونو څخه دي. اودالهي غضب له نښانو څخه دخودخواهې سزاده. چې دډیرو مؤمنانو دګمراهی سبب شوې ده:

**أَن شَجَرَةَ الزقومِ طَعَامُ الْاَثِيمِ كَالْمُهْلِ يَغْلِي فِي الْبُطُونِ كَغَلْيِ الْحَمِيمِ خُذُوهُ فَاعْتِلُوهُ**

**الَ□ سَوَاء الْجَحِيمِ ثُم صُبوا فَوْقَ رَاسِهِ مِنْ عَذَابِ الْحَمِيمِ ذُقْ انكَ انتَ الْعَزِيزُ الْكَرِيمُ أَن هَذَا مَا كُنتُم بِهِ تَمْتَرُونَ.**

**دخان سورة (۵۱ ــ ۴۳)ایتونه**

---

❖ اثَیم .ګناهکار

دزقوم ونه دگناهکارو خوراکه ده. هغه خوراکه چې په
زړونو کې دويلي شوي فلز اويا دجوش اوبو په څير
جوش کوي. هغه ونيسي اوددوزخ په کنده کې واچوي.
اودهغه په مخ جوش اوبه واچوي، اوورته ووائي: اې
گناهکاره داتريخ جوشان خوراک وخوره .په رښتينې
چې ته کريم او عزيز ئې. دامجازات ستادشک اوشبهې
له مخې دي.
واضح ده چې داايتونه يوخاص شخص پورې اړه
لري. چې غټه او لويه گناه ئې کړې ده. آيا له دې بله
لويه گناه ديوپيشوا لخوا چې دپروردگاردموعود سره
دښمني ده. بله کومه گناه کيدلی شي؟ «تريخ خوراک
او طعام»دجوشان فلز په څير دپروردگار دغضب لويه

نښانه دکبرجن اوځان خوښوونکي سړي لپاره ده .ددې په ځای چې ايمان راوړي. اوخلک وپوهوي،دخلکو دګمراهې سبب شوی دی. په هغه ايتونو کې چې ددې پيشوا صفت راغلی دی. په ظاهري شکل کې ضدونقيض دي. چې هر متفکر حيرانوي . د**«اِنَّکَ اَنْت الْعَزِيْزَالْکَرِيْمُ»**جمله (په يقين سره ته عزيز اوکريم ئې)خاص دپروردګار لپاره په کار وړل کيږي. څنګه کيدلی شي. هغه صفتونه چې دپروردګار لپاره دي. اودهغه په تسبيح اوصفت کې ويل کيږي.

ديوګناهکارانسان لپاره په کار وړل کيږي؟

«کريم اوعزيز»داکلمات ديوبې وجدانه انسان سره څه رابطه لري؟

دايمان په کتاب کې حضرت بهاءالله په يوه جمله کې له دې رمز څخه پرده پورته کړې ده. اودامعما ئې حل کړې ده. قران مجيد ددې پيشوا په صفت کې درې کلمې کارولي دي:

## ـ کريم ـ عزيز

کريم خان په خپله معرفي کې يوه طريقه لرله . په ليکلو کې دوه لمړنې کلمې **اثيم او کريم** هميشه په کار وړلې په دې شکل :

**يقول العبد الاثيم كريم ابن ابراهيم...**
اثيم(ګناهکار)بنده ، کريم دابراهيم زوي دارنګه وائي...



---

حضرت بهاءالله دايقان په کتاب کې ، په دې لنډې جملې سره ، ددې پيشوا اړوند معّما حل کړې ده:
**اَثيمٌ فِ الکِتابِ وَعَزيزٌ بَينَ الاَنعامِ وَ کَريمٌ فِ الإسم .**
**۳۷**
دقران په اساس ګناهکار، دنادانو خلکو په منځ کې عزيز ، اونوم ئې کريم دي. په قران کې ډير اسرار پټ دی. اودهغې معّما رمز چې عالمان اومفسرين ئې په پيړيو پيړيو حيران کړې ؤ ، زمونږ په عصر کې دپروردګار په غوښتنه ، زمونږ ددوه موعودوپه قلم

روښانه اوښکاره شو. قران دحال احوال وړاند وینه وکړه ؟ دهغه چاچې:

- «نوم»ئې دپلار په انتخاب«کریم»ایښودل شوې ؤ.
- دخپل قول په اساس روحًا ګناهکارؤ.
- او«وجود»ئې دپیروانو په منځ کې «عزیز»ؤ.

کریم خان به هغه کتاب چې په حضرت باب ایمان راوړل، خالص مرتد ګڼل، اوپیروانو ئې هغوې کافران اوواجب القتل ګڼل.۳۸ دارنګه لیکي:

**[هغوې] دخدای(ج)اورسول (ص)[دښمنان]دي. ددولت اوملت تخریبوونکي دي. او ددې خاورې مفسدبنده ګان دي.۳۹**

اوبیا فتوه ورکوي. چې ددین اودولت مشرتابه اوچاروا کي باید:

---

❖ د«الانعام(څناوران)کلمه اشاره ده. دکریم خان مشهور کتاب «ارشادالعلوم ته».

دخپلې وینا په اساس ، داکتاب ئې دعوام الناس په ځانګړې توګه دښځو لپاره لیکلی دی. ښکاره ده. چې د«عوام»کلمه توهین امیزه ده. ځکه چې په فارسي ژبه کې دعوام کلانعام شکل کارول کیږي. کریم خان ددې کلمې په کارولو سره

خپل نظر خلکو ته اوهم خپلو پیروانو ته ښکاره کړ.

د«الانعام» دکلمې استعمال دحضرت بهاءالله له طرفه په ډیراحتمال سره اشاره ده. ددې پیشوا له تکبره ډک نظر ته دخپلو پیروانو په حصه کې کوم چې هغه عزیز ګڼي. اوخپل ناجي ئې جوړ کړی دی.

تاریخ لیکونکو لیکلي دي. چې کریم خان په مخدره موادو په نیشه ئې شیانومعتاد ؤ دهغه اړوند نښانه یعنې دزقوم ونه(ترخه ونه) په سورت دخان کې نازل شوې ده.



---

**دهغوې په ختمولو کې کوښښ وکړي. اوهغوې پرې نږدی. چې په خپلو پښو ودرېږي،اوداسلام دین په ملاتړکې ددین دښمنان دجهان دمخ نه ورک کړي ۴۰.**

ددې ائين «۲۰,۰۰۰»پيروان ئې په فجيع شکل سره ووژل اوهم ئې په سل هاو زره بې ګناه خلک په ايران کې ووژل. داټول دداسې پيشوايانو په غلطو فتوه ګانو ووژل شو.
په قران کريم کې ډيرکم داسې ايتونه ديوخاص فرد په حصه کې ،په هغه ډول چې ددې دوه پيشوايانو ته خطاب شوی، ليدل کيږي:

| | |
|---|---|
| **شيخ عبدالحسين طهراني** | **يَا ايهَا الْمُدثِّر قُمْ فَانذِرْ وَرَبكَ فَكَبِّر...وَالرجْزَ فَاهْجُرْ.**<br><br>**دمدثر سورة، ۱-۵ ،ايتونه**<br>اې هغه څوکه چې خپل ځان دې دروحانيت په جامو کې پوښلې دی!پروردګار دې لوې وګڼه...اودبدو عملونو څخه لريوالی وکړه. |
| **کريم خان کرماني** | **ذُقْ[شَجَرَةَ الزقومِ ]انكَ انتَ الْعَزِيزُ الْكَرِيمُ.دخان سورة، ۴۹-ايت**<br>(اې اثيم):ترخه خواړه وڅکه!ته هم عزيز ئې اوهم کريم ! |

حضرت باب هم په دې بيان کې دقران دايتونو رابطه دکريم خان سره تصديقوي.

فرمائي:

**فجاءالحق وظهر امرالله واليوم يوم الله علی الكافرين شديد ان هذه هی الساعة ظهرت وانشقّ القمر وانّ الايات نزلت وقال المعرضون هذا سِحْر مستمرّ...قل ذوقوا العذاب بشرككم هذه شجرة الزقّوم...انّا اوعدنا الاثيم بالعذاب الاليم والسموم والحميم ونار الجحيم قد قضی الوعيد ذق يا ايها العزيز الكريم. ۴۱**

حقيقت رابښکاره شو اودخدای «امر»راظاهر شو.دادخدای ورځ ده.دمنکرينو لپاره سخته ورځ ده.«ساعت»حقيقت وموند،مياشت نيمه شوه ،ايتونه نازل شو .منکرين وائي :داهغه جادودی، هميشنی اودوامداره ...ووايه!دشرک په خاطر عذاب وګورئ !داترخه ونه ده چې «اثيم»اوګناهکارته مووعده ورکړې ده.دردناک عذاب ،ګرمي اوددوزخ اوردهغه سهم اوبرخه ده .دخدای وعدی تحقق پيداکړ.پس وخوره ترخه خواړه اې «عزيز اوکريم»!

دکريم خان مشهور کتاب ارشادالعلوم ،په دې ډول پېل کيږي:

**دارنګه وائي اثيم اوکريم بنده دابراهيم زوی کله مې چې وليدل ...عوام دده له پوهې [نورو کتابونو]څخه محروم پاتې شوي ؤ...اوځنو هم غوښتنه کوله...چې دهغوې لپاره کتابونه وليکم...اوهغه دليلونه چې هريودعوامو ...څخه پری پوه شي.دخپل خدای څخه مې ددې دخيرکار غوښتنه وکړه. وروسته له رخصته مې ...ددې کتاب په ليکلو شروع وکړه...۴۲**

**اذکروا الکريم اذ دعوناه الی الله انّه استکبر بما اتّبع هواه بعد اذ ارسلنا اليه مارقرّت به عين البرهان فی ا لامکان و تمّت حجّة الله علی من فی ا لسّموات والارضين .انّا امرناه بالاقبال فضلاً من الغنيّ المتعال انّه ولّی مدبراً الی ان اخذتهرزبانية العذاب عدلاً من الله انّا کنّا شاهدين .٤٤**

**حضرت بهاءالله**

**کريم خان په ارشادالعلوم کې په مختلفو علومو کې دمهارت دعوه کړی.حضرت بهاءاللّٰه فرمائي ،ددې دعوې څخه ئې مقصد افتخار دی،اوبې له دې چې پوه شي کلونه کلونه ،ددې له پاره په کاردی هغه څه چې ده زده کړی خپل زړه له هغو څخه پاک کړی اوخپل رب ته رجوع وکړي.۴۳**

په کتاب داقدس کې هم دهغه ذکر شوی دی:
**اذکروا الکریم اذدعوناه الی الله انّه استکبربمااتّبع هواه بعداذلدسلنا الیه ماقرّت به عین البرهان فی الامکان وتمت حجّة الله علی من فی الّسموات والارضین .انّاامرناه بالاقبال فضلاً من الغنّي المتعال انّه ولی مدبراً الی ان اخذته زبانیة العذاب عدلاً من الله انّا کنّا شاهدین.۴۴**
**حضرت بهاءالله**

## مرزا تقی خان اوقربان خان

دځواني په موده کې حضرت بهاءالله (امرداظهار)نه مخکی په یومجلس کې ناست ؤ په هغه مجلس کې میرزا تقی خان اووزیر ناصرالدین شاه هم حضور لرل.
میرزا تقی خان دمسخرې په شکل پوښتنه وکړه. چې **لاَرَطْبٍ وَلاَ یابَسٍ اِلاَّفِی کِتاَبٍ مّبِیْنَ** .(داسې لوند اووچ نشته چې په هغه کتاب کې روښانه شوي نه وي.)څه معنی لري؟حضرت بهاءالله وفرمایل: په هغې کې هیڅ شک نشته .پوښتنه ئې وکړه:            یعنی
څه ؟وئې ویل:

---

---

يعنې په قران کې تاريخونه ،تفسيرونه، معناګانې، تاريخي لحظې، زيري اووعدې.
اودهرشي ذکر په هغه کې شته. وويل:زه هم په هغه کې ذکر شوی يم؟
**وئې فرمايل: بلې ته هم په هغه کې ذکر شوی ئې .وويل په اشاره ياپه صراحت سره؟**
**وئې فرمايل: بالصّرا حة (په صراحت سره ).وويل:مادخپل ځان خبرپه هغه کې ونه ليد.۴۵**
دتقی خان دپوښتنې په ځواب کې حضرت بهاءالله دقران داايت رانقل او وئې فرمايل: **انِّي اعُوذُ بِالرحْمَن مِنكَ ان كُنتَ تَقِيا. دمريم سورة،۱۸- ايتونه**
زه له تاڅخه خپل رب ته پناه وړم.که ته تقی (پرهيز ګاره )اوسې!
هغه تقی خان ډيرسخت په غضب شو. ولی څه ئې ونه ويل،اوپوښتنه ئې وکړه :ايازما دپلارقربان خان په

حصه کې هم څه شی شته ؟ وئې فرمایل:هوشته
.وویل:په صراحت سره اویاپه اشاره کې ؟وئې
فرمایل:په صراحت سره .اووروسته ئې داایت بیان
کړ.

**قَالُواْ ان اللهَ عَهِدَ الَيْنَا الانُؤْمِنَ لِرَسُولٍ حَتىٰ يَاتِيَنَا بِقُرْبَانٍ. سورة العمران - ١٨٣،ايت**

وویل:خدای له مونږ سره پیمان بسته کړی. چې مونږ
به په هیڅ یوپیغمبرایمان رانه وړو،مګرداچې یوقربان
به ئې راوړي. چې اسمانې اورئې وسوزوي.
معلومه نه ده. چې وروسته بیاڅه وشو.په زیات احتمال
سره،تقی خان ددې نوو اوتوندو ځوابونوپه اوریدلو
حیران، ناراحته اوشایدهم شرمیدلی وي. چې خاموشي
ئې په خبرو غوره وګڼله .

---

❖ په عربی ژبه کې قربان یعنی هغه څاروی، چې دخیرپه لارکې اویائې دیوخاص مقصد لپاره قربانې کړي. لکه دپسه اویاغوائې په شان .په دې ایت کې دقربان کلمه داور(اتش)سره ملګرې اویوځای شوې ده.دسلهاو ډولونو معجزو په منځ کې چې خلکو ئې غوښتنه کوله ،ددارنګه معجزې انتخاب (دحیوان سوزول داسمان په اور)دهغوې له منځه دحیرانتیا خبره ده

.ايامکنه ده. دهمدې حادثې په خاطر اويادهمدې
وينا لپاره دارنګه ځانګړې معجزه دې انتخاب
شوي وي؟



---

«تقي»يعنې پرهيزګاره ،باتقوا ،دخداى نه ايريدونکى
.**«اَعُوْذُبِرَبِّ النَّاسِ...مِنْ شَرِّ الْوَسْوَاسِ»**(دناس
سورت،(۱-۴)ايتونه )، دا راوښائي چې شيطان نه بايد
پروردګار ته پناه يووړل شي.ايرانيانو،ميرزاتقى خان
داصلاحاتو په خاطر دهغه قدر کول اوهغه ئې «لوى
امير»وګڼل ،امادزړه دبغض نه ئې خبرنه ؤ.(ډيرخلک
په دې خوښ نه و. چې قهرمان ئې لکه دارشي).هغه
داسې يوڅوک ؤ.چې دحضرت باب دشهادت حکم ئې
دوه ځلى صادر کړ.

له دې مه واره،ددوه نفرو بابيانو برخليک په يوازيتوب سره دميرزا تقي خان خوی اوخصلت ښکاره اوپه ډاګه کوي.دهغه دوزارت په دوران کې هغه غوښتل. چې دحضرت باب دپيروانو څخه يوپه دې خاطر شهيدکړي، چې ولی ئې په باب ايمان راوړی دی. يو دهغه له دوستانو نه چې دربار سره ئې رابطه لرله،له تقي خان څخه ئې وغوښتل. چې له دې جنايت څخه لاس واخلي اوواسطه شي. تقي خان حکم وکړ. چې هغه شخص ده ته ورولي ،وروسته دملاقاته له هغه څخه وغوښتل چې علی محمد باب څخه انکار وکړي.هغه فداکاره مؤمن دهغه په ځواب کې وويل :دکوم يوڅخه انکار وکړم ؟دعلی څخه يادمحمد څخه ؟تقي خان ددې ځواب په اوريدو سره سخت په غضب شو،حکم ئې وکړ. چې سرئې کټ کړئ.مير غضبانو دارنګه کارونه کول.دحضرت باب دائي چې دشيراز دډيرو محبوبو تجارانو څخه ؤ.په همدې شکل دتقي خان په دستور اوحکم سره له منځه يووړل شو.اوپه شهادت ورسيدل.دقران د ايتونو په اساس ديونفر وژنه دټول بشروژنه ده. .**مَنْ قَتَلَ نَفْساُ ...فَکَاَ نَّمَا قَتَلَ النَّاسَ جميعاً.** **(دمائدې سورت ،۳۲ – ايت)**

---

❖ اسکندرته هم «لوی »او«کبیر»وائي .هغه ځوک چې دزرهاو انسانانو دوژنې موجب اوسبب شول. اودجهان ترټولو ښایسته اوښکلې ماڼې د(هخا منشي ماڼې ) ئې داورپه لمبو کې اوسوه .

حضرت باب اودهغه یوځوان فداکاره پیرو (محمد علي زنوزي )دوه ځلې د(۷۵۰)مرمیو هدف وګرځیدل.داول ځل لپاره هیڅ یوه مرمې په هدف ونه لګیده. داحیرانوونکی پیښه دزرهاو خلکو تماشاچیانو په مخ کې سرته ورسیده. په بهائي اوغیربهائي مراجعو کې ثبت شوې ده.



**پیری اوشیطان یعنی ځه؟**

بهائي ائین ډیردښمنان لرل، اولري. دهغې جملې نه دوه یاران اوهمکاران دمیرزایحی په نوم مشهور په

ازل اوبل ئې سیدمحمد اصفهاني چې دحضرت بهاءالله
په وخت کې ژوند کاوه. له دې دواړو همکارانو نه په
قران کې په رمز اواشارې سره یاد شوی دی.ددوې
پورې دمربوطو ایتونو پوهاوي لپاره لمړی لازمه ده.
چې له دې دوه کلمو پیري اوشیطان سره اشناشو
.دادوه کلمې دقران دلویو اسرارو څخه دي. په
ځانګړې توګه د«پیري»کلمه چې په مختلفو پیړیو
اوزمانو کې دډیرو لپاره دکنجکاوي اودتحقیق مسئله
وه، وګورو چې د«جن »اوپیری نه منظور څه دی.
اود«انسان»سره څه تفاوت لري.
د«جن»اصلي معنا پټول دي.اوعقیده داسې ده. چې
«پیریان »هغه موجودات دي. چې شعورلری.
اوزمونږ. له سترګو پټ دي.حضرت عبدالبهاء ددې
اسرارامیزه کلمی نه پرده لرې کړې ده:
**د«پیري»نه مقصد دقران په ایت کې هغه نفوس دي.**
**چې دهغوې ایمان اوانکار پټ اومنفي وي**
**.«جن»یا«پیری»یوپټ موجود دی.دادی چې**
**فرمائې.یَرَوُنَکُمْ مِنْ حَیْثِ لاَتَرَ وْنهُمْ .یعنی هغوې**
**ستاسې په ایمان اوایقان پوه اوواقف دي ،ولی تاسې**
**څخه دهغوې ایمان اوایقان پټ دی.۴۶**
له کومه پلوه عادي خلک ممکن پیریان وګڼل شي؟ځنې
خلک له دې کبله چې پخپله پوهیږي، اوکوښښ کوي،

چې همیشه خپلې خبرې پټې کړي.که له هغوې څخه پوښتنه وکړی،په ډیرمحبوریت سره یولنډځواب ورکوي ،اودخپلو پټو خبرودښودلو نه بیم اوایره لري.داخلک اکثره دشک اوشبهې سره لاس اوګریوان دي.اودایمان اوایقان دلوړو مرتبو په لاسته راوړلو قادرنه وي .ځکه چې دایمان او ایقان اصلي لوازم ،شجاعت ،صراحت صداقت اوشفافیت دی. چې دحکمت اوعقل سره ملګري وي .د«جن»یاپیری کلمه دداسې خلکو لپاره چې هرڅه پټ ساتي، په کاروړل شوې ده.

دقران دوینایه اساس د«انسان اود«پیری»عادتونه بیخي توپیر اوفرق لري.

(۲۷- ۲۶ :۱۲)

حضرت باب پیری داسې تعریف کړی دی:



---

---

**الجنّ من استجنّ فیه نار النّف□.** ۳۷

پیری هغه څوک دی. چې په هغه کې دانکاراوړپټ وي.
د«شیطان »کلمه هم هغه چاته منسوب وي. چې مکار، اهسته ګو او پټ کاره وي:
**انمَا النجْوَی مِنَ الشیْطَانِ.**
**دمجادلې سورت، ۱۰- ایت**
نجوایعنې پس پسک دشیطان کاردی.
شیطان اویاران ئې دساده خلکو زودباوري ګوري.
اماساده خلک دشیطان اودیارانو دمکرنه بې خبره دي:
**انهُ یَرَاکُمْ هُوَ وَقَبِیلُهُ مِنْ حَیْثُ لاَ تَرَوْنَهُمْ.**
**داعراف سورت،۲۷ ـــ ایت**
هغه اویاران ئې تاسې وینې. اوګوري. اوحال داچې تاسې هغوې نه ګورئ .
**ځنې خلک دوه شکله لري. ظاهري بدن ئې دانسان وي اوباطنی بدن ئې دپیري وي.**
**ځني دوه مخي کسان دي.۴۸**
**حضرت بهاءالله**
ولې دخلکو ځینې ډلې پټ کارخواته اوځینې نورې د شفافیت خواته تمایل لري؟
**(پټ کاره)خلک داسماني رڼاڅخه کرکه لري. ځکه چې هغوې غواړي. په تیاره کې ګناهونه وکړي. له دي کبله رڼاته نه نږدې کیږي،داسې نه چې دګناه ډک**

**کارونه ئې ونه لیدل شي. اودخپلو عملونو په سزا ورسیږي. ولی هغه خلک چې سم اوربنتیني کارونه سرته رسوي. په ډیرې خوښې رڼاخواته راځي. ترڅوټول خلک وګوري. چې هغه څه چې کوي.دخدای خوښیږي . حضرت مسیح (یوحناانجیل ۳فصل،( ۲۰ ـ ۲۱ )ایتونه**

---

❖ نجوی:په کراره خبرې کول .پس پسک کول .داایت هغه کسانو ته اشاره ده. چې په کراره خبری کوي. اوکمې خبرې کوي. اودادې لپاره یوه وسیله ګرځوي. ترڅوهغه خبرې چې دده په زړه کې دي. پټې وساتي اوخپلی ناسمي نقشې اجراء ته ورسوي .هغه کسان چې په جا سوسې کې مشغول دي. داوسیله په کاروي. دهغوې دموفقیت رمز په کمو خبرو اوپټ کاری کې دی. ائینه دربنتینولي اودسم کارلپاره بهترینه ښودونکې اونماده،هرڅه همغسې وښائې لکه څنګه چې دي.خرابه خرابه اوښکلي ښکلي وښائي .باید شفافیت اوصداقت دائینی څخه زده کړو.

د«اِنْس »یادانسان کلمه هغه چاته په کاروړل کیږي. چې دهغوې په سرشت کې دپټ کاری شیوه اوطریقه وجود ونه لري .داسې خلک دایمان په مختلفو درجو اومرتبو کې قرار لري . اوحتی ممکن بې دینه اوبې ایمانه وي.دهغوې په منځ کې ګډه وجه دلهجې صراحت اودباطن اوظاهر په منځ کې توافق دی.دوست ته دوست وائي، اودښمن ته دښمن وائي. زمونږ انسانیت زمونږ په شفافیت پورې اړه لري.هرڅومره چې زمونږ شفافیت زیات وي.زمونږ انسانیت به زیات وي.هرڅومره چې زمونږ زړه پاک وي. هغومره به زمونږ انسانیت زیات وي. هرڅومره چې پټ کاره دوه مخي ،ریا اونیرنګ ته نږدې شو،دانسانیت څخه لرې کیږو، اوپیریانو ته نږدي کیږو.دحضرت عبدالبهاء دویناپه اساس:

**صداقت اوربښتینولي دټولو انساني فضیلتونویا برتریواساس دی.۴۹**

اياکيدلی شي. يوساختمان بې له بيناد اواساس څخه جوړشي؟

**دانسانيت لپاره لمړی شی انصاف دی. اونورټول کارونه دهغه اړوند دي.۵۰**

**حضرت بهاءالله**

**دې بنده داول نه تراوسه پورې ايرانيان عدل اوانصاف ته دعوت کړل.په حقيقت کې هرڅوک چې په دې دوه صفتونو ښکلی نه وي.دانسان له نوع څخه نه وه ،اونه هم ګڼل کيږي.۵۱**

**حضرت بهاءالله**

آيا بې له صداقته ممکنه ده. چې دانصاف والا اوسې؟ په دې اساس څوک چې له صداقته خلاص وي انسان نه دی.د«انسان»کلمه يواځی هغه چاته ويل کيږې. اودهغه چاپه باره کې صدق کوي چې. حداقل له صداقته برخه من وي.

---

❖دعدل اوانصاف فرق اوتوپير څه شی دی؟دهغوې دتوپير پيژندنه مشکل کاردی.

عدل تردېره دقانون پورې اړه لري،په دې معنی چې ټول خلک دقانون په وړاندی یوبرابر دي.انصاف دانسانو په منځ کې په فردی اړیکو پورې مربوط دی .دانصاف لپاره لازمه ده. چې اړچاته انصاف ورکړل شي. ورته بخشش کړی شي.که یوه ډوډی ددوه تنو ترمنځ په مساوي ډول تقسیم کړو. داعدالت دی.اوکه وړ.ی کس ته ډیره ورکړو. داانصاف دی.



---

شاید په همدی سبب وي. چې په قران کې دروغجن صفت دډیرو دتاکید سبب شوی وي.
مثلاُ دموعود منکرانو ته ،دروغجن ویل کیږ.ي:
**وَالْمُرْسَلَاتِ عُرْفًا..انمَا تُوعَدُونَ لَوَاقِعٌ... وَاذَا الرسُلُ اقِّتَتْ... وَيْلٌ يَوْمَذٍ لِّلْمُكَذِّبِينَ.**

**مرسلات**

**سورة،(۱، ۷ ، ۱۱ ، ۱۵،) ایتونه**

په دوه پرله پسې رااستول شوو(زمونږ دعصرپه دوه موعودو)باندی قسم دی .هغه څه چې له تاسې سره

وعده شوې ده.هغه سرته رسي...دهغو رالېږل شوو دظهور وخت رارسي...وای په هغو خلکوچې په هغه ورځ په درواغو مشغول شي!
پروردګار په قران مجيد کې زمونږ دبيدارې لپاره په کراتو داپوښتنه کوي:
ايايه پروردګار باندی ددروغ تړلو نه بل لوی ظلم څه شی کيدلای شي؟
**فَمَنْ اظْلَمُ مِمن كَذَبَ عَلَ□ اللهِ وَكَذبَ بِالصِّدْقِ اذْ جَاءهُ الَيْسَ فِي جَهَنمَ مَثْوًى لِّلْكَافِرِينَ وَالذِي جَاء بِالصِّدْقِ وَصَدقَ بِهِ اوْلئَكَ هُمُ الْمُتقُونَ لَهُم ما يَشَاءونَ عِندَ رَبِّهِمْ ذَلِكَ جَزَاء الْمُحْسِنِينَ.**

**دزمرسورت،ايات (٣۴ – ٣٢)ايتونه**
پس څوک دی دهغه نه بل لوی ظالم، چې پروردګار دروغګو وګڼي. هغه څوک چې حقيقت وروسته له اوريدونه دروغ وګڼي ؟ ايا دوزخ دمنکرانو (کافرانو )ځای نه دی؟هغوې چې حقيقت مني. اوصادق دي. هغوې پرهيز ګاران دي. هرڅه چې وغواړی. دخپل رب سره ئې پيداکوي .دادنيکو خلکو پاداش اومکافات دي.«دموعود نه انکار ددروغو سره څه اړيکه لري؟اسانه دروغ هغه دروغ دي. چې خپل ځان ته ئې ووائې نه نوروته .په غيرله دې نه هيڅ کومه لارنشته

چې دپروردګار موعود نه انکار وکړي. دهغه متل له مخې چې وائې: هیڅوک نشي کولای مونږته دخپل ځان نه ډیره فریب او«بازی»راکړي.»
په قران کې دپیري تصویر اوشکل منفي دي. (۱۴ :۳۴ )اوپه اوله درجه کې بې شعوره اونادانو خلکوته اشاره ده. چې خپل ځانونه مؤمنان ګڼي .امادایمان نه خلاص دي. اوشیطان په لمړې درجه کې مکاروپیشوایانو ته اشاره ده .چې ددې نادانو خلکو دایمان نه خپلو ناوړو هدفونو ته درسیدو کاراخلي .دپروردګار په نظر«کفر»د«مکر»نه ښه دی.



---

**اور اوسه، ولی ریاکارمه اوسه .کافراوسه، ولی مکرکوونکی نه .په میخانه کې اوسه. خوفریب**

**اوغولونې په کوڅه کې مه ځه ...۵۲**

**حضرت بهاءالله**

څومره بدبختي اوبلاګانې چې تراوسه پورې ددين په نامه راغلې دي. ددې دوه ډولو شيطانانو اوپيريانو لخوا وې، اووي به. کله چې دادوه ډلې يودبل همکارې شي.دهغوې قدرت سل چنده زيات شي .بې وجدانه پيشوايان دا بې شعوره اونادان پيروان داسلحې په څير استعمالوي. اودخپلو هدفونو دلاسته راوړلو لپاره ئې په کار اچوي .هغه کسان چې خپل ځان اوخپل خلک په بمونو باندې تکه تکه اوټوټې کوي. ددې خبرى ښه ثبوت دى.دقران اخرينى سورة ټول ددې دوه ډلو پورې اړوند دي.

لمړنى سورة دقران چې (۷)ايتونه دي.پروردګار مونږته رازده کوي. چې دسمې لارې دپيداکولو لپاره بايد خپل دعاجزې لاسونه پورته کړو. اوپه دعا پيل وکړو .اودقران په اخري سورة کې چې (۶)ايتونه دى ،مونږ ته ښوونه کوي. چې دپټ کاره اومکاره خلکو دشر نه دخلاصون لپاره پروردګارته پناه يوسو .ځکه چې دايمان لاسته ته راوړل اودهغه ساتل يواځې دپروردګار په فضل رحمت اوياري سره ممکن دي. دشيطان اوپيرى کلمې نه بايد دهغوې په ظاهري معنى سره ووينو .داکلمې هغه صفاتو ته اشاره کوي. چې په

ډيرو خلکو کې کم اوزياد پيداکيږي .اماهرانسان چې
په پټاوي، فريب اودرواغو کې دهغه خپل حدنه چې
يواځې پروردګار دهغه حدنه اګاه دی، تجاوز
وکړي،دپروردګارله نظره ئې دانسانيت دحد نه دباندی
پښه ايښی ده.مثلاً ابليس په لمړيو کې دپيريانو دډلې
څخه ؤ.وروسته په فريب کارۍ اوتزوير کې دشيطان
مرتبې ته ورسيد.(۵۰ :۱۸)
دپيغمبرانو دراتګ په وخت کې ،خلک دانسان څخه
نيولی بيا ترجنّ اوشيطانه پورې ټول دهغه رااليږل
شوو په مخالفت کې ودريږي:

**وَكَذَٰلِكَ جَعَلْنَا لِكُلِّ نِبِيٍّ عَدُوا شَيَاطِينَ الانسِ وَالْجِنِّ يُوحِي بَعْضُهُمْ الَى بَعْضٍ زُخْرُفَ الْقَوْلِ غُرُورًا وَلَوْ شَاء رَبكَ مَا فَعَلُوهُ فَذَرْهُمْ وَمَا يَفْتَرُونَ.            دانعام سورة،۱۱۲- ایت**

دارنګه مې اجازه ورکړې چې دهر پیغمبرلپاره دشیطانانو دډلې نه دښمنان څه انسان وي اوکه شیطان راظاهر شي. اوخلکو ته ناسمې اوغولوونکی خبرې ورسوي ،که پروردګار نه وی غوښتي ،په داسې یوکارکولو به قادرنه وی .هغوې په خپلو درغو کې پرېږ دی .

**هرکله چې دپروردګار اواز پورته شي ،دشیطان اواز هم پورته شي .ځکه چې هروخت تیاره اوظلمت دنور اورڼا دمخنیوی مقاومت کوي. ظلم دعدالت په مقابل کې مقاومت   کوي. اوجهالت غواړي دعلم سره مقاومت وکړي.۵۳            حضرت عبدالبهاء**

حضرت بهاءالله په دې عصر کې دشیطان ظهور ته په کراتو اشاره کوي:

**قد ارتفع نداء الرّحمن و عن ورائه نداء الشّیطان. ۵۴ حضرت بهاءالله**

په يقين سره دپروردګار غږ پورته شو. اودهغه پسې دشيطان اواز پورته شو.
**شيطانان په کمين کې ؤ.اووي به. اودمکر په ډولونو به لاس پورې کړي...۵۵**

**حضرت بهاءالله شيطانانه په کمين کې ؤاوشته دی. اودحق په نامه ئې خلک ګمراه کړي اوکوی ئې .۶۵**

**حضرت بهاءالله**
**قل قد ظهر الشّيطان بشأن ما ظهر شبهه فی الامکان و کذلک ظهر جمال الرّحمن.۵۷**

**حضرت بهاءالله**
وايه !شيطان داسې ښکاره دی. چې چاته په کې شبهه نشته. اودپروردګار ظهور هم په دی ډول ښکاره دي.
**قل قد ظهر الشّيطان بشأن ما ظهر شبهه فی الامکان و کذلک ظهر جمال الرّحمن.** ۵۸

**حضرت بهاءالله**
که يوڅوک تادپروردګار دلارې وګرځوي .په يقين سره پوه شه چې شيطان دی. ولوکه دانسان په شکل وي.

**ووايه !دښمنان په کمين کې ولاړدي .هوښيار اوسئ .اوپه رڼا کې دبيناپه نوم خپل ځان له تيارو څخه خلاص کړئ.۵۹**
**حضرت بهاءالله**



---

**په هرظهورکې ډيرخلک دشيطان دوسوسوله مخې دپروردګار دپيغمبر دعرفان نه محروم پاتې شوي دي. اودباقي اوهمېشني تول ژوندنه محروم شوي دي.۶۰**
**حضرت بهاءالله**
**په دې ورځو کې شيطان دپروردګار په نامه بلنه ورکوي. اوسامري دازلي ذکر غږ کوي. اوابليس په ډيری زياتې غولونې مشغول دی.۶۱**
**حضرت بهاءالله**
زيات مشکلات کوم چې ددين به نامه په عالم کې راپيښ شوي دي، اوراپيښيږي. دشيطانانو اوپيريانو

لخوا دي. کوم چې په ظاهر کې انسانان دي .دادایمان متظاهرين دپروردګار داديانو داخلي دښمنان و،اووي به. په بهائي ائين کې ،دادوه مخي اودروغجن سرغړوونکي ګڼل شوي دي .ځکه چې پروردګار سره په خپله وعده ولاړنه دي. دپروردګار داديانو نه په مخکنيو زمانوکې دسرغړونې سبب شوي دي.داډول دروغجن دوه مخي اوتظاهر کوونکي ؤ.

**دبهائي ائين دوه**

**سرسخته**

**همکار دښمنان**

بهائې ائين هم دشيطان نما په پيري ډوله انسانانو څخه بې برخې نه ؤ.اماهغوې دپروردګار دارادې په اساس ،دخپلو شومو نقشو داجرا کولو څخه پاتي شو .دهغوې په منځ کې ترټولو مهم اومشهور ميرزا يحيی مشهور په ازل دی. قران کريم کوم چې داسرارو دذخيرو ګنجينه ده .ددې جاه طلب اوخودخواه سړي اودهغه مکاريار سيد محمّد څخه ځو ځلې يادونه کړې ده .مخکی له هغوايتونود تحقيق او بررسې څخه لازمه ده. له ځو ټکو څخه خبر اواګاه اوسو :

- ميرزا يحيی دحضرت بهاءالله ناسکه ورور ؤچې هم دحضرت باب اوهم دحضرت بهاءالله لخوا دډير فضل اوعنايت لاندې ؤ.

❖ میرزا یحیی ته خپلو پیروانو صبح ازل ویل .اما بالاخره شام ازل شو.



په دې حالت قانع نه ؤ اودهغه موعود سره ئې حسادت اوکینه کوله ، اودشیخ عبدالحسین په شان دمقام اوډیر قدرت غوښتوونکی ؤ.

- بالاخره ئې دمکارسړي په تحریک چې سیدمحمد نومیده دحضرت بهاءالله سره مخالفت وکړ اوخپل ځان ئې دوخت موعود اعلان کړ.

- ازل خپل ځان ته دخطر نه ډیره ایره درلوده. اوډیر وختونه به ئې ډیر مهارت سره خپل ځان پټاوه.

اوس به وګورو چې قران مجید دهغه په باره کې اودهغه اودهغه دمکاریار اومددګار سیدمحمد په باره کې څه معلومات اوخبر ورکوي:

**وَاتْلُ عَلَيْهِمْ نَبَاالذِيَ آتَيْنَاهُ آيَاتِنَا فَانسَلَخَ مِنْهَا فَاتْبَعَهُ الشيْطَانُ فَكَانَ مِنَ الْغَاوِينَ.**

**داعراف سورة،۱۷۵ ــ ایت**

هغوې ته دهغه چاخبر ورکړه. چې ماخپل ایتونه هغه ته ورکړي دي ،اوهغه زماایتونو ته کوم نظرونه کړ.وروسته شیطان دهغه شاونیوه ،اودګمراهانو څخه شو .

مخکېنی ایت وښائې چې دداسی یوچا داستان په منځ کې دی. چې دالهي ایتونو سره ئې مستقیماً سرو کار لرل.میرزا یحیی له همغه شروع څخه زمونږ دعصر ددوه موعودو ډیرایتونه ترلاسه کول .اوڅه موده ئې دحضرت باب دپیروانو ریاست په غاړه لرل. سره له دې هم په هغه ایتونو ایمان نه لرل اوله همغه لمړیو څخه درياست په فکر کې ؤ اما په یواځي سر ددې کار دعهدې څخه نشو وتلای .هدفونو ته درسیدو لپاره

يومشوق اومحرک ته ئې اړتياه وه. چې هم هغه ته
اميد اوجرئت ورکړي. اوهم هغه ته نقشه جوړه کړي
.په دې منځ کې يوداسې سړی پيدا شو،هغه څه ته چې
ديحيی ضرورت ؤهغه ټول په دې سړي کې جمع
شوي ؤ.
شيطان چې په غيردعالم خيال اوتصور نه وجود نه
لري. له ځومهارته برخوردار دی .له هغې جملې څخه
:



---

- پټ پټاوې ،پټ کارې.

- په مکر اوحیله کې ډیره دانائې .
- دلنډفکر وخلکو په روح کې وسوسه پیداکول.

سیدمحمد داټول کمالونه لرل. اودیحیی سره په همکارۍ کې داټول ډیرمهارت سره په کارواچول .که دسید محمد وسوسه په کارکې نه وی ،شاید میرزایحیی دعوه نه وی کړې.ددې دواړو یارانو همکاري ،لکه ددوه خطرناکوزهرو ګډول ؤ،ددوې دزهریاتو قوت سل چنده کړ.په دې ماجرا کې ،ازل دجن اوپیری نقش لرل اوسیدمحمد دشیطان نقش لرل.دې دوه یارانو دیوبل په همکارۍ ،دادوه نقشونه په پوره توګه دژوند په صحنه کې ښکاره کړل.

دهغې جملې نه دسید محمد په تحریک یحیی څو نقشې دحضرت بهاءالله دمرګ لپاره په کارواچولې ،امامقصد ته ونه رسید:

**هغه نفس چې ... دپروردګار په لاس مې پاللی ؤ زما دقتل لپاره پورته شو .۶۲**

**حضرت بهاءالله**

هغه څه چې سید محمد میرزا یحیی ته ورزده کول ،هغه دحضرت باب نوم په هغه ایښودل اودهغه حضرت په مُهر،به ئې هغه لیکنی اصل ګڼلې .

حضرت بهاءالله دسیدمحمد په اړه کله دشیطان لقب په کار وړی دی. دهغې جملې نه په دې ایتونو کې :

**هرهغه څه چې شیطان سیدمحمد هغه (یحیی)ته ورزده کوي. دحضرت بهاءالله په مُهر ئې ټاپه کوي.۶۳**

**حضرت بهاءالله**

**هغه شیطان چې هغه ئې ... تیرایستل اودظاهري ریاست لپاره ئې پروردګار ته دڅومره غندنې نسبت ورکول.۶۴**

**حضرت بهاءالله**

داعراف سورة د پاتې ایتونو بررسې اوتحقیق ته ادامه ورکوو:

وَلَوْ شِئنَا لَرَفَعْنَاهُ بِهَا وَلَكِنهُ اخْلَدَ الَ الارْضِ وَاتبَعَ هَوَاهُ فَمَثَلُهُ كَمَثَلِ الْكَلْبِ ان تَحْمِلْ عَلَيْهِ يَلْهَثْ اوْ تَتْرُكْهُ يَلْهَث ذلِكَ مَثَلُ الْقَوْمِ الذِينَ كَذبُواْ بِآيَاتِنَا فَاقْصُصِ الْقَصَصَ لَعَلهُمْ يَتَفَكرُونَ.

**داعراف سورة، ١٧٦- ايت**

که مې غوښتي وی. دهغه مقام مې په هغه ایتونو باندې لوړولی شو.ولی هغه دې دنیا پورې زړه وتړل. اودخپل هوا اوهوس پیروي ئې وکړه .هغه کیدلی شي،د هغه سپي سره تشبیه شي. چې په هغه ګوزار وکړئ ،ژبه راوباسي. اوکه ئې پریږدې بیاهم خپله ژبه راوباسي.

دمخکېني ایت یوه برخه مو په «١٠»فصل کې مطالعه کړه. حضرت بهاءالله دبدیع په کتاب کې دهغه رابطه دازل سره تصدیقوي:

**انک انت الّذی ذکرت ف کتاب القبل بقوله تعال :کمثل الکلب ان تحمل علیه یلهث او تترکه یلهث .٦٥**

**حضرت بهاءالله**

په یقین سره ته هغه څوک ئې چې په قران کې دې دمخه ذکر راغلی دی.ډېر لوړ بیان اوذکردی :

دهغه مثال دسپې دی. خپله ژبه راوباسي. څه په هغه حمله وکړئ او يائې ونه کړئ.
مخکيني ايت کې دميرزا يحيی دقيق احوال پروت دی .هغه دهوااوهوس تابع دی. ددې دنيا دعزت اوراحت سره ئې ډير ميل لرل .اودهغه بخشش اولطف لياقت ورسره نه ؤ.هرڅومره چې نورو ورسره خواري وکړه. چې هغه وپوهوي. کومه ګټه ئې نه لرله.
اودخپل عمر ترپايه پورې په ناسمو عملونو بوخت ؤ.اوباالاخره په ډيرې نااميدې سره بې ياره اوبې باوره له دې جهان نه سترګې پټې کړې.
دمخکېني ايت په دوهمه برخه کې اودهغه نه وروسته دوه ايتونه داعراف په سورة کې وښائې. چې دقران خبر دايمان اوهدايت پورې اړه لري.هغه ايتونه مونږ ته پند راکوي. چې ددې دوه يارانو اوهمکارانو نه دعبرت درس واخلو:
**ذَلِكَ مَثَلُ الْقَوْمِ الَّذِينَ كَذَّبُواْ بِآيَاتِنَا فَاقْصُصِ الْقَصَصَ لَعَلَّهُمْ يَتَفَكَّرُونَ. .**

**داعراف سورة،۱۷۶- ايت**

برخلیک دی. چې زماایتونه دروغ ګڼي .پس داداستانونه هغوې ته ورزده کړه .شاید په فکر کې ولویږي.

**سَاء مَثَلاً الْقَوْمُ الذِينَ كَذبُواْ بِآيَاتِنَا وَانفُسَهُمْ كَانُواْ يَظْلِمُونَ . داعراف سورة،۱۷۷ ـــ ایت**

څومره بدبرخلیک دی دهغو کسانو چې زما ایتونو نه ئې انکار کړی دی.اوپخپل ځان ظلم کوي.

**مَن يَهْدِ اللهُ فَهُوَ الْمُهْتَدِي وَمَن يُضْلِلْ فَاوْلَئَكَ هُمُ الْخَاسِرُونَ. داعراف سورة،۱۷۸ ـــ ایت**

هرچاته چې پروردګار هدایت وکړي.هدایت به شي .اوهرڅوک چې ګمراه کړي دتاوان کوونکو نه دی.

دحج سورة هم دهغه چاخبره رامنځ ته کوي. چې بې دالهي هدایت نه اوداسماني کتاب څخه خلک ،ګمراه کوي:

**وَمِنَ الناسِ مَن يُجَادِلُ فِي اللهِ بِغَيْرِ عِلْمٍ وَلَا هُدًى وَلَا كِتَابٍ منِيرٍ ثَانِيَ عِطْفِهِ لِيُضِل عَن سَبِيلِ اللهِ لَهُ فِي الدنْيَا**

**خِزْيٌ وَنُذِيقُهُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ عَذَابَ الْحَرِيقِ ذَٰلِكَ بِمَا قَدمَتْ يَدَاكَ وَان اللهَ لَيْسَ بِظَلَامٍ لِّلْعَبِيدِ.**

**دحج سورة، ۱۰ ــ ۸ ،ایتونه**

دخلکو په منځ کې داسې یوڅوک شته دی .چې بې له الهي علم اوهدایت اوروښانه کتاب څخه دخدای سره (دخدای دامر په باره کې )په مجادله اواړولو شروع کوي.خپل ځان غټ وښائی ترڅو خلک دخدای دلارې واړوي .په دې دنیا هغه ته رسوائې اوذلت په برخه شوی. اوپه ورځ دقیامت داورعذاب .دادهغو اعمالو سزاده. چې ته ئې دمخه مرتکب شوی ئې .پروردګار خپلو بنده ګانو سره ظلم نه کوي.

مخکېني ایتونه هم دمیرزا یحیی دحال احوال په باره کې دي:

- دالهي هدایت اوعلم دبخشش څخه بې برخې ؤ اواسماني کتاب ئې هم نه لرل .
- په داسې حال کې ځان غټ وګڼل اودپیغمبری دعوه ئې وکړه.

---

❖په غلطه لاره اویاپه سمه لاره تګ دواړه دخدای په لاس کې دي، امادالهي عدل دمیزان په اساس ،چې هیڅوک دهغه څخه اګاه اوخبر نه دی .ایمان اوانکار دواړه دانسان دلیاقت

اوشايسته ګي پورې اړه لري .پروردګار هميشه
دلايقو خلکو ساتونکی اوحامي دی. اودنالايقو
خلکو مانع دی .دامطلب ددې کتاب په اخر کې
په تفصيل سره بيان شوی دي.



---

دخلکو يوه ډله ئې
ګمراه کړه.

- دعمرپه اخرکې له ذلت سره مخامخ شو.اوپه ډيرسپکاوي له دې جهان څخه ولاړ.

په دې بيان کې فرمائې:

**يحيی په دعوه اوادعا کې ځان دهرچانه لوړ اوغټ ګڼل. اماپه عمل کې دهرواړه نه وړو کئ ؤ.۶۶**
**حضرت بهاءالله**

مخکيني ايتونه ،دحج دسورة څخه دداسې
يوچاخبرورکوي چې (**کتابٍ مُّنِيْرٍ**)يعنې اسماني کتاب
نه لري.داتکی شاهدي ورکوي. چې دنظر وړ شخص
پيغمبرې دعوه کړې ده،ځکه يواځې پيغمبران دداسې

کتاب په راوړلو سره قادروي د«يَدَاکَ»دکلمې استعمال ستاالاسونه ددې ښکارندوی دي. چې دا ايتونه ديوخاص شخص پورې اړه لري .
دهمدې سورت ،څو ايتونه وروسته ناڅاپه ددوه کسانو خبره رامنځ ته کوي. چې دپروردګار سره مجادلې ته ودريږي.په مخکني ايت کې دنظر وړشخص (**يُجَادِلُ فِی الله** )دخدای سره مجادله کوي)معرفي شوی ،په ورستي ايت کې ،دوه دنظر وړکسان (ميرزا **يحيى اوسَيّدِ محّمد** )**د«اُخْتَصِمُو فِي رَبِهِمْ »(**دخدای سره دښمني کوي )معرفي شوي دي:
**هَذَانِ خَصْمَانِ اخْتَصَمُوا فِي رَبِّهِمْ فَالذِينَ كَفَرُوا قُطِّعَتْ لَهُمْ ثِيَابٌ مِّن نارٍ... ..»**

**دحج سورت ،۱۹ ــ ايت**
«داهغه دوه دښمنان دي. چې دخپل پروردګار سره ئې دښمني وکړه. چاچې کفر غوره کړ. داورجامې به واغوندي...»
دميرزايحيى په باره کې فرمائې «په دې وختونو کې دټولو ګناهونو په ضد قيام وکړ.»اووروسته دميرزا يحيى اودهغه د محرک له غمه ډک برخليک په عالم دآخرت کې ښايی»:

**لذا اطردناهما و ترکناهما فی عذاب السّعیر.**۶۷

**حضرت بهاءالله**

په دې اساس مې دواړه طرد اوایسته کړل اوددوزخ په عذاب کې مې واچول .

په دې بیان کې فرمائې ،څوک چې دخدای سره په جنګ کې دي ،خلکو هغه خپل خدای منلی دی:

**هغه څوک چې دخدای سره په جګړه کې دی ،هغه ئې خپل رب نیولی دی.**۶۸

**حضرت بهاءالله**

**قال انا ربّکم الاعلی.**

**حضرت بهاءالله**

«ازل»وویل: زه ستاسې ترټولو لوړ پوړی پروردګار یم»

دقران په اخری سورت کې ،۱۱۴ سورت کې ،دداسې یوچاخبره رامنځ شوې چې دخلکو په زړونو کې ،څه پیری وي اویاانسان ،وسوسه اچوي .داایت ددې ائین دټولو دښمنانو په باره کې صدق کوي. په خاصه توګه د(میرزا یحیی اوسیدمحمد)په باره کې :

**قُلْ اعُوذُ بِرَبِّ الناسِ مَلِكِ الناسِ الَـهِ الناسِ مِن شَرِّ الْوَسْوَاسِ الْخَناسِ الذِي يُوَسْوِسُ فِي صُدُورِ الناسِ مِنَ الْجِنةِ وَ الناسِ. دناس سورة ،(۶- ۱)ایت**

ووایه ! دعالمیانو پروردګار ته پناه وړم. هغه پروردګار ته چې دخلکو فرمانروا او دهغوې خدای دی .هغه ته پناه وړم ،دپټ کاره وسوسه اچوونکي دشرڅخه، هغه څوک چې دخلکو په زړونو کې څه پیری وي اویاانسان وسوسه اچوي.

دحضرت باب اوبهاءالله دالاندې دوه ویناوې، دهغوې په هکله هم صدق کوي.

**يا ذكرالله قل اعيذوا انفسكم بالله من شرالوسواس الّذى يوسوس فی صدورالنّاس.** ۷۰

**حضرت باب**

اې د«خدای ذکره »(خلکوته)وو ایه**!** حضرت باب دهغه چا دوسوسو د شرڅخه چې دخلکو په زړونو کې وسوسې اچوي. خپل خدای ته پناه یوسې.

**خپل ځآنونه دخناس دوسوسو څخه وژغوری کوم چې دخلکو په منځ کې په وسوسو اچولو مشغول دي.** ۷۱

**حضرت بهاءالله**

د۱۱۳ سورت موضوع د۱۱۴ سورت سره ډیر شباهت لري. په همدومره تفاوت سره چې حسد اوکینې ته اشاره کوي:



---

**قُلْ اعُوذُ بِرَبِّ الْفَلَقِ... مِن شَرِّ حَاسِدٍ اذَا حَسَدَ.**

**دخلق سورة، (۱- ۵)ایتونه**

«ووایه !پناه ورم پروردګارته ...دکینه کښو دشرڅخه چې کینه کوي.»
شاید دمیرزا یحیی مهمترین محرک دشومو مقصدونو داجرا لپاره دحضرت بهاءالله اودهغه پیروانو سره کینه اوبغض کول.
**که ټول عالم اراده وکړي چې خپلې کینې اوبغضونه حساب کړي،ټول به خپل ځانونه عاجز وګوري . ۷۲**
**حضرت بهاءالله**
**په دې ورځو کې دحسد اوکینې داسې وړمه لګیدلی ده چې ...دانسان دپیدایښت نه ترننه پورې دارنګه حسد اوبغض نه دی لیدل شوی .۷۳**
**حضرت بهاءالله**
**په دې عالم کې دده په شان څوک نه دی لیدل شوی، چې دمقام اوریاست سره دې دومره مینه ولري.۷۴**
**حضرت بهاءالله**
میرزا یحیی دملایکو مقام ته ورسید،اما څه موده وروسته دشیطان مقام ته راټیټ شو.دابلیس داستان دهغه دمال اوحال قصه کوي:
**وَاذْ قُلْنَا لِلْمَلَاکَةِ اسْجُدُوا لِآدَمَ فَسَجَدُوا الا ابْلِیسَ کَانَ مِنَ الْجِنِّ فَفسَقَ عَنْ امْرِرَبِّهِ افَتَتخِذُونَهُ وَذُرِّیتَهُ اوْلِیَاء مِن دُونِي وَهُمْ لَکُمْ عَدُو بِسَ لِلظَالِمِینَ بَدَلًا. دکهف سورة، ۵۰ ــ ایت**

کله مو چې ملايکو ته وويل. چې ادم موعود ته سجده وکړي .ټولو سجده وکړه ،مګر ابليس چې دپيريانو څخه ؤ.هغه دپرورګار دامر څخه سرپيچې (سرغړونه)وکړه .ايا تاسې هغه اوزامن ئې زما په ځاى په دوستې قبلوى ،اوحال داچې هغه ستاسې دښمنان دي؟ ظالم خلک څومره بدکسان دپروردګار پرځاى انتخابوي.

دمحکينى ايت ټولى نښانې ديحيى په باره کې سمې وې :

- يحيى دباب دپيروانو په منځ کې يوه ملايکه وه چې دحضرت بهاءالله په مقابل کې دبنده ګې اظهار ونه کړ.

---

❖ په دې بيان کې حضرت بهاءالله يحيى ئې دابليس سره يو شان وګڼل :

هويدّعى في نفسه جوهرالايقطاع کما.

- هغه په ظاهر کې دملائکی رتبې ته ورسید ،اما دابلیس نقش ئې په غاړه واخیست اودجنّیاتو (پیریانو )دډلې څخه وګڼل شو.
- دپروردګار دامرڅخه ئې سرغړونه وکړه.
- دحضرت باب دډلې څنې پیروانو دموعود دمنلو په ځاې هغه ئې خپل دوست اوحتی خپل خدای وګڼل .

**انّالّذی اتخذوه المشرکون ربّاً لانفسهم...** ۷۵

**حضرت بهاءالله**

هغه څوک چې مشرکینوهغه دپروردګار په ځای غوره کړل.

- هغو پیروانو څومره غټه اشتباه وکړه. اودپروردګار دموعودپرځای ئې څومره یوبد انتخاب وکړ.

**و انّا نحن قد امرنا الملائکة بالسّجود لادم الباب فسجدوا الملائکة کلّهم...الّا ابلیس ابی واستکبر من**

**امرنا ۷۶.**

**حضرت بهاءالله**

ماملائکو ته امر وکړ،ادم ته چې باب دی سجده وکړئ .هغو ټولو ملائکو ورته سجده وکړه ...په غیر دابلیس نه .هغه زما دامر نه سرغړونه وکړه. اوخپل ځان ئې غټ وګڼل .

په محکني ایت کې په ډیر لطافت سره دحضرت باب نوم راغلی دی. په ځنې الهي ایتونو کې ،د«ادم»او«انسان»کلمې پیغمبرانو ته په اشارې سره کارول شوي دي .دحضرت باب رښتیني پیروان ټول ملائکې وې .ازل په کبر اوانکار سره چې دحضرت بهاءالله په اړه ئې وکړ خپل ځان ئې دابلیس په شان وښود .ازل ته په اشارې سره ئې وفرمایل:

**شیطان په هراسمان کې په یونوم باندی مشهور دی ،اودملائکو ښوونکې و...اووروسته په یوځل لعنتي اورټلی شو.۷۷ حضرت بهاءالله**

داایت دشیطان ګوند ته ،اودحضرت باب لقب (ذکرالله) دواړو ته اشاره کوي:

**اسْتَحْوَذَ عَلَيْهِمُ الشيْطَانُ فَانسَاهُمْ ذِكْرَ اللهِ اوْلَئَكَ حِزْبُ الشيْطَانِ الَا أَن حِزْبَ الشيْطَانِ هُمُ الْخَاسِرُونَ.**

**دمجادلې سورة،۱۹- ايت**

شيطان په هغوې تسلط پيداکړ،اود دې سبب شو. چې «ذکرالله» هېر کړي .هغوې دشيطان ډله ده .دشيطان پيروان زيان کوونکي دي.

په دې بيان کې حضرت بهاءالله ديحيى پيروان د«شيطان حزب»نومولى دى:

**درحمن له حزب څخه ووتل اودشيطان حزب ته ئې توجه وکړه...۷۸ .**

حضرت بهاءالله کلونه ديحيى په ښوونه اوروزنه تيرکړل ،له هغه څخه ئې انسان جوړ کړ،او هغه ئې

دمقام اونامه خاوند کړ.اما هغه ئې په قدر پوه نشو. اودهغه څخه ئې زيات شی غوښتل. باالاخره ئې دپروردګار دموعود سره په دښمنې شروع وکړه. اوهرڅه ئې چې دلاسه پوره ؤ هغه ئې وکړل. حتی دڅو تنو مؤمنانو دقتل سبب شو. دازل دتاسف نه ډک داستان په دې ایت کې پیداکولای شی:

**تالله الحقّ قد أخذنا ترابا و عجنّاه بمياه الامر و صوّرنا منه بشراً و زَيناه بقميص الاسماء بين العالمين .فلمّا رفعنا ذكرَه و اشهرنا اسمَه بين ملأ الأسماء اذاً قام علی الاعراض و حارب مع نفسی المهيمن العزيز العليم .**

**حضرت بهاءالله** ۷۹

داوینا دحضرت مسیح ددې حالت سره مناسبه ده:

زه هغه څوک يم چې په مزرعه (پټي)کې ښه غنم کري. مزرعه دادنيا ده ،ښه تخمونه دپروردګار دملکوت (سلطنت)پیروان دي،اوهرزه وابښه دشيطان پیروان دي .هغه دښمن چې هرزه وابښه ئې په غنمو کې وکرل شيطان دی. دريبلو فصل ئې ،اخر زمان دی. اولوکوونکي ئې دنوي ائين مؤمنين (ملائکې )دي.

په همغه ترتيب چې په دې حکايت کې هرزه وابښه ئې ګيډی کړل. اووئې سوزول. په اخرزمان کې به هم په همدې ترتيب وي .زه به خپلې ملائکې ورولیږم

ترڅو....بدکاره خلک دپروردګار دملکوت څخه جداکړي .هغوې داورپه کوره کې واچوي اووئې سوځوي. هغه ځای چې دژړا اودغابښونو دچیچلووي [دوزخ].



---

**په هغه وخت کې به نیک انسانان زما دپلار په سلطنت کې یعنې دخدای په سلطنت کې دلمر په شان وځلیږي. که اوریدونکي غوږونه لرئ،وائې ورئ ۸۰.**

**دمتي انجیل ،۱۳ فصل ،۴۳**

داجهان دازموینی ځآی دی .دخلکو څخه ځنی دشیطان اوجنّ ،نقش انتخابوي.اوبله ډله دملائکو نقش اودپروردګار سره مینه اوعاشقي څومره سرلوړي ده. هغه خلک چې ددې فاني ژوند نه ابدي سرمایه ترلاسه کوي. هغوې چې دخپل انسانیت ازرش اوپه دې جهان کې خپل نقش په همیشني برخلیک کې ګوري ،هغه منزلت اومقام ته رسي. کوم چې ددوې لپاره مقدرشوی دی.

**که انسان دانسانیت له مخې ظاهر شي. دملائکو څخه بهتر دی. اوپه غیر له هغه دحیوان څخه ټیټ دی.۸۱دانسان مقام لوړدی ،که په انسانیت ښکلی وي ،اوکه نه دټولو مخلوقاتو څخه پست تراوټیټ دی.۸۲که انسان په خپل مقام پوه شي .په غیر دنیکو اخلاقو اوپاکو عملونو څخه بل څه شی به دهغه څخه ظاهرنشي.۸۳ حضرت بهاءالله**

دغمه ډک داستان په دې فصل کې زمونږ. دعصر ددوه موعودو پنځه سرسخت دښمنان دبحث لاندې ونیول شو.دادښمنان دډیرو ساده دلو خلکو دګمراهې موجب وګرځیدل. پیشوایان دپروردګار په نزد لوړمقام لري ،که دخلکو دحمایت اوهدایت لپاره کاروکړي. اماکه چیر ته دهغوې دګمراهې سبب شي ،دډیرسخت مجازات به د هغوې په انتظار کې وي.حضرت بهاءالله په خپلو

مناجاتو کې په کراتو سره دګناهکارانو دنجات لپاره اودهغوې دهدایت لپاره دعاګانې کړي دي:

**ای ربّ ایّد الغافلین عل□ الاعتراف بما اظهرته بقوّتک و المعرضین عل□ الاقبال ال□ باب رحمتک و المنکرین عل□ الاقرار بوحدانیّتک و فردانیّتک ای ربّ وفّقهم عل□ الرّجوع الیک و القیام عل□ تدارک مافات عنهم عند تجلّیات انوار نیّر ظهورک ... ۸٤**

**حضرت بهاءالله**



---

**قل الهی□ الهی□ لک الحمد بما انزلت آیاتک و اظهرت بیّناتک .و نوّرت افئدة المقرّبین بنور عرفانک و**

المخلصين بضيآء بيانک اسئلک ببحر فضلک و سمآء جودک و ما کان مخزونا فی علمک...ان تؤيّد المعرضين علی الاقبال و المنکرين علی الاقرار و الغافلين علی الرّجوع الی شطر رحمتک و الانابة لدی باب عفوک و غفرانک .انّک انت التّوّاب الغفّ ار الفضّال العليم الحکيم .۸۵

حضرت بهاءالله

په دې بيان کې ،مهربانه اوبخښونکی خدای دخپل رالیږل شوي په ژبه په ډیرلطف اواحسان سره کريم خان ته ،هغه دګناهونو لويه منبع ته درس ورکوي ،اوپه ډيرو ښکلو اوزړه پورې کلماتو هغه ته يادونه کوي. چې پخپل علم مغروره نشي اوددې بې وفااوژرتيريدونکی دنيا څخه دعبرت درس واخلي:

دنيا را بقائی نه و طالبان آنرا وفائی مشهود نه .لا تطمئن من الدّنيا فکّر فی تغييرها و انقلابها .أيْنَ مَنْ بنی الخَوَرْنَقَ و السّديرَ . و أين من أراد أن يرتقی الی الأثير .کم من قصر استراح فيه بانيه فی الأصيل بالعافية و الخير و غداً ملکه الغير. و کم من بيت ارتفع فی العشيّ فيه القهقهةُ و شدوا الزّرقاءَ و فی الاشراق نحيبُ البکاء .أيّ عزيز ما ذلّ و أيّ أمر ما بُدِّلَ و ای روح ما راحو أيّ ظالم شَرِبَ کأسَالفلاح .و همچنين

**بعلوم ظاهره افتخار منما .و فوق کلّ ذی علم علیم . فاعلم لـکلّ صارم کلالٌ و لـکلّ فرح ملال و لـکلّ عزیز ذِلّة و لـکلّ عالم زَلّة .تقوی پیشه کن وبه دبستان علم الهی وارد شو .اتّقوا الله و یُعلّمکم الله .قلب را از اشارات قوم مقدّس نما تا به تجلّیات اسماء و صفات الهی منور شود .چشم اعراض بربند وبصر انصاف بگشا ...٨٦ حضرت بهاءالله**

وروسته هغه ته دعوت ورکوي ترڅو خپل رب ته رجوع وکړي. اوپه دې مناجاتو سره بخښش وغواړي ،اودمؤمینانو اومخلصانو دلې ته واوړي:

**قل سبحانک اللّهم یا إلهی أنا الّذی فرّطتُ فی جنبک و اعترضتُ علی ما نزّل من عندک ثمّ اتّبعتُ النّفسَ و الهوی و غفلتُ عن ذکرک العليّ الابهی .یا إلهی لا تأخُذْني بجریراتی طهّرنی عن العصیان ثمّ أرْ سِلْ عليّ من شطر فضلک روائحَ الغفران ثمّ قدّر لی مَقْعَدَ صدقٍ عندک ثمّ الحِقنی بعبادک المخلصین .یا إلهی و**

**محبوبي لا تَحرِمْنى عن نفحات کلماتک العليا و لا من فوحات قميصک الأبهى ثمّ أرْضِنى بما نزّل من عندک و قدّر من لدنک انک فعّال لما تشاء و انّک أنت الغفور الجوّاد المعطى الكريم .۸۷**

**حضرت بهاءالله**

حضرت عيسى فرمايلى دي.( چې هره ونه بايد دهغې دميوې څخه وپيژندل شي.) دحضرت بهاءالله دپيژندنې لپاره لازمه ده. يواځې دهغه رفتاراوچلندته نظر واچوو. چې دميرزايحيى په وړاندى ئې لرل ،ترڅو دهغه دلطف اومهربانې په درجه پوه شو.

ايا تراوسه پورې داسې يوه پيښه شوې ده ؟ چې يوورور دې دخپل ورور سره دومره ډيره مينه اومحبت وکړي .دهغه په پالنه کې کوښښ وکړي ،او دهغه دراحت اوکاميابې لپاره هرډول فداركارې ته تياروي. اونه پريږدي چې په دې كار کې كومه نيمګړتيا پيښه شي ،ددې ټولو سره هغه ورور وروسته له څه مودې ،ددې مهربان ورور په دښمنى کې پورته كيږي. دهغه سره كينه اوبغض کوي .هرډول ظلم

دهغه په باره کې روا اوسرته رسوي .په کراتو سره دهغه دوژنې نقشه جوړوي ،اوڅوځلی هغه نقشه اجراکولوته رسوي ،دهغې جملې نه هغه مسموموي. اوترمرګه ئې رسوی. ترهغه حده پورې چې دامهربانه ورور دژوند ترپایه پورې له هغه مسموم کیدلو داثراتو څخه رنځ وړي .سره ددې کارونو هغه مظلوم ورور دې بې وجدانه وروته بخښنه کوي،دهغه دخلاصون لپاره کوښښ کوی. اوپخپله مهربانه لمن کې پالنه ورکوي.ایادژوندون دشروع څخه ترننه پورې داسې یوه پیښنه شوی ده؟

**تالله یا اخ□ لم یکن ف□ قلب□ بغضک و لا بغض احد من الممکنات .اذا فاسمع قول□ ثم طهر نفسک و لا تکن من الغافلین ...۸۸**

**حضرت بهاءالله**

ای زماوروره ،په خدای قسم دی!زماپه زړه کې ستاپه نسبت اوپه دنیا کې دهیچالپاره کینه اوبغض نشته دی .پس زما وینا واوره ،خپل نفس دې پاک کړه. اوپه دې کار کې غفلت ونه کړئ....

په دې بیان کې فرمائې حتّی دازل لپاره هغه دګناهونو بې پایانه منبع لپاره دتوبې ایستلو په شرط سره بیاهم دخلاصون اونجات لاره خلاصه ده:

---

---

**ولو انه اتی بذنب اثقل عن ثقل السموات والارضین و لکن لما تموجت ابحرالفضل فی تلک الایام لو یتوب و یرجع لعل ان یغفره الله برحمته التی سبقت العالمین .**

**۸۹ حضرت بهاءالله**

که څه هم ګناه ئې دځمکې اواسمانونو څخه درنه ده ،اما دپروردګار دفضل اوبخشش دریابونه ،په دې زمانه کې په موجونو دي. که توبه وباسي. اورجوع وکړي. داسې ډیرپروردګار پخپل فضل اوکرم سره بخښلي دي ،هغه به هم پروردګار وبخښي .

په دې حیرانوونکی بیان کې ،حضرت بهاءالله له خدایه غواړي. چې دګناه کارانو په ګناه کې فداشي:

**ذاتی لذنب مذنبیک الفداء بما عرفت به ا ریاح فضلک و تضوعات مسک الطافک .کینونتی لعصیان عاصیک**

**الفداء لان به ا شرقت شمس مواهبک من افق عطائک و نزلت امطار جودک . ۹۰**

حضرت بهاءالله هغه دخدای نور،عظمت اوجلال ،ټولو خلکو سره حتّی ددښمنانو سره به ئې خپل محبت اومهرباني کوله:

**په پاک ذات مې دې قسم وي،چې ټول عالم ئې په وړاندی ودريږي. ټولو ته به دبخشش به سترګه وګوري. اوټول به دبزرګې په طريقه ښکلي کړي.۹۱ په هيچامې په امر کې افتخارنه دی کړی. اوپه هيچامې ځان لوړ نه دی ګڼلی. دهر هرنفس سره مې په ډيری مهرباني خبرې کړي دي. اوبې له کومې طمع دهرچالپاره ډير بې نهايته بردباره ملګری، دفقيرانو سره دفقيرانو په شان وم.۹۲**

ښه به وي. چې دافصل دقران په څو ايتونو سره چې دهرمنکرداثيم ،اوستمګر دحال احوال په باره کې لکه شيخ عبدالحسين ،کريم خان اويحيی نازل شوي دي ،ختم کړو. داايتونه دجاثيه دسورة نه چې دايقان په کتاب کې نقل شوي دي.ټولو خلکوته په خاصه توګه زمونږ دعصر مسلمانانوته خطاب دی:

---

**تِلْكَ آيَاتُ اللهِ نَتْلُوهَا عَلَيْكَ بِالْحَقّ فَبِايِّ حَدِيثٍ بَعْدَ اللهِ وَآيَاتِهِ يُؤْمِنُونَ وَيْلٌ لِّكُلِّ افاكٍ اثِيمٍ يَسْمَعُ آيَاتِ اللهِ تُتْلَ عَلَيْهِ ثُمَّ يُصِر مُسْتَكْبِرًا كَان لمْ يَسْمَعْهَا فَبَشِّرْبَعَذَابٍ عَذَابٍ الِيمٍ وَاذَا عَلِمَ مِنْ آيَاتِنَا شَيْا اتخَذَهَا هُزُوًا اوْلَكَ لَهُمْ عَذَابٌ مهِينٌ. دجاثيه سورت،۶- ۹،ايتونه**

هغوې الهي ايتونه دي چې په حقيقت کې تاته وايم .پس په کومو خبرو ،په غير دپروردګار دخبرو اوايتونو نه ايمان راوړي ؟ وای په هرګناهکاره دروغجن چې دپروردګار ايتونه اوري ،په خپل کبر پافشاري کوي.دهغوپه ګمان ايتونه ئې نه دي اوريدلی .هغوې ته دردناک عذاب خبر ورکړه اوکله چې زماله ايتونو

څخه څه اوري ،هغوې پسې پسخند وهي .دداسې منکرانو دپاره دردناک عذاب په انتظار کې دی.
دپروردګار دائین سره ددښمنې اظهار ښکاره نښانه، اختیار اوازادي ده. اوهمدارنګه دانسان دقدرنه پیژندنه ده .هغه دښمنانو بې له کومې پوهی (ناآګاهانه)دالهي ائین په خپریدلو کې لوی نقش اورول لرل. اولري ئې
.

**که دحق جلاجلاله اراده نه وی شوې ،هیڅوک به په دې نه وی قادر شوی چې په هغه ئې ظلم اوستم کړی وی .ټول دهغه دقدرت په قبضه کې دي. اودظهور په مقابل کې ئې زور اوقوت ضعیفه دی.۹۳**
**حضرت بهاءالله**
**دځمکې خلکو ډیر غفلت کړی دی. اودارنګه ګمان ئې کړی دی. چې کولای شي، امرالله له منځه یوسي. اویاالهي روښنائي خاموشه کړي...په خدای قسم دی. چې هرڅومره ئې په خاموشولو کې کوښښ وکړئ. په همغه اندازه لا روښانه کیږي.ټول دهغه دقدرت دظهور په مقابل کې عاجزدي.۹۴**
**ووایه!په یقین سره دهرمنکرمخ اړول له دې امرڅخه ددې امرغړ لاډیر پورته کوي. اوظهور ئې په خلکو کې لاډیر خپروي.۹۵**

**وَان رَبكَ لَذُو فَضْلٍ عَلَ□ الناسِ وَلَكِن اكْثَرَهُمْ لَا يَشْكُرُونَ.          دنمل سورة،۷۳- ایت**

ستادپروردگار فضل په خلکو دی. امااکثره دهغوې ددې فضل په قدرنه پوهيږي. اودپروردگار شکرنه اداکوي.

**پروردگار په ایرانیانو څومره غټ بخشش وکړ،خوهغوې ئې قدر ونه پيژندل.۹۶**

**حضرت بهاءالله**

# شپږمه برخه

# دخدای دظهور وعده

**په دريِ فصله کې:**

**۱. دپروردګار دموعود دراتلو وعده دخدای په نوم .**

**۲. دپرودګار لويه ورځ.**

**۳.بهاءالله :دخدای نور اودخدای جلال اوعظمت .**

**دخبرو شروع دپرودګار په صفت او ستاينه شوې ده.۱ حضرت بهاءالله**

**مَن كَانَ يَرْجُو لِقَاء اللهِ فَان اجَلَ اللهِ لَآتٍ.**

**دعنکبوت سورة ،۵- ايت**

هرڅوک چې دخدای سره دملاقات اميد لري (بايد صبروکړي)هغه ټاکلې موده به راورسي.

**اې زما پروردګاره زما بې مثاله خدايه !شاهدې ورکوم چې ته «يو»ئې اوپه دې باندې چې تا وزير اومعين نه لرل، اونه به ئې ولري.۲**

**حضرت بهاءالله بخښوونکيه اومهربانه خدايه ! شاهدي ورکوم. چې ته يوئې اوستامثل نه و. اونه شته دی.۳**

**حضرت بهاءالله**



**دخدای په نوم**

**دپروردګار دموعود**

## دراتلووعده

زمونږ دعصر ددوه موعودو په ایتونو کې دخدایې ثنااو صفت

دپیدایښت هدف اومقصد ،دخدای پیژندنه اوخدای سره دوستي ده:

**وروسته له ټولو ممکناتو دپیدایښت ...انسان ئې دخپل معرفت اومحبت لپاره چې یواځنی هدف ...اوسبب ئې دکائیناتو دپیدایښت وکدارکول وه، واکدار کړ. حضرت بهاءالله**

دپیغمبرانو دپیژندنې یوه لار،دهغوې اړیکه اورابطه دهغوې دخالق سره ده:

**ځوک چې له خپله ځانه خبرې کوي.نیت ئې دخپل ځان لویوالی وي .اوځوک چې دخدای له طرفه وي ،خدای لوی ګڼي. حضرت مسیح یوحنا انجیل،۷فصل،۱۸-ایت**

هیڅ یو دمخکنیو پیغمبرانو څخه ،زمونږ دعصر ددوه رالیږل شوو په شان ،دخپل خالق ئې دومره صفتونه نه دي کړي،لکه دې دواړو چې دخپل خالق صفتونه کړي دي.دخدای دلوی والي په صفت کې داسې خبرې کړي دي. چې بیان ئې له صفته عاجزدی. حضرت بهاءالله دبنده ګې داظهار لپاره د خپل خالق په وړاندې خپل ځانته په اشارې سره یواځې دبهاءکلمه استعمال کړې ده.زمونږ دعصر ددوه پیغمبرانو دالواحو اوایتونو په

هرپانه کې چې دسلو جلدونو څخه زيات دي.
دپروردګارصفتونه په کې دلمرپه شان روښانه
اوځليدونکی دي.
دافصل پخپله يوه بله نښه ددې ائين دحقانيت څخه ده:
**پاک پروردګار دصفتونو لايق دی. چې پخپله پخپل سرژوندی اوهميشنی دی. هرنابود دهغه له بودڅخه پيداشوی دی .اوهرژوندی دهغه له ژوند څخه ښکاره دی.۵**
**حضرت بهاءالله**
**هيڅ يوه هغه ونه پيژاند.اودهغه دلارې ملاتړاومرستندوی هيڅا پيدانکړ. ټول عارفان دهغه دمعرفت په وادي کې سرګردانه دي. اوټول اولياء دهغه ذات په درک کولو حيران دي.منزه اوپاک دی، دهر درک کوونکی ددرک څخه، متعالي اولوړدی. دهرې پيژندنې دپيژندګلوې څخه. ۶ حضرت بهاءالله**
**امکان نه لري چې يو شی دی هغه وپيژني، په رښتينې پيژندګلوې سره .۷ حضرت بهاءالله**
**پروردګاره داقتدار والا شاهدي ورکوم چې ته په کيدونکو صفتونو معروف اومشهور کيدلی نشي اودژونديو مخلوقاتونو په ذکرونو ستا ستاينې نشي کيدلی.۸**
**حضرت بهاءالله**
**هرې پوهې ستا په يووالې شاهدي ورکړې ده.ته ئې هغه توانا چې ستا نيکيو اوښه واليو ستاوجود موجود کړ. اوستا دبنده ګانو خطاګانو ستا دبخشش مخنيوې ونه کړ.۹**
**حضرت بهاءالله**

**هغه دی لوړ اواوچته دهر ذکر اوثنا څخه اوسپیڅلې دی له هرې ستاینې اومثال څخه. ۱۰**

**حضرت بهاءالله**

**اې خدایه بې نیازه ،سخاوت منده، بخښوونکېه څښتنه ! داتول ستا بنده ګان دي او«ستا»دکلمې څخه دنشت نه منځ ته راغلل. په خپلې عاجزې اوستا په غنا، په خپل جهل اوستا په علم، په خپل ضعیفوالي اوستا په اقتدار، په خپله فقیرې اوستا په پادشاهي، شاهدي ورکوي. ۱۱**

**حضرت بهاءالله**

اې پروردګاره ! ته شاهد ئې چې دابنده په ټولو
وختونو کې په غيرستاله رضا دبل څه غوښتونکې نه
ؤ اوانشاء الله چې نه به وي ...دابنده کله ددې لايق
دی. چې خبری ئې منلې اوقبولې وي. اوبيان ئې ذکر
شي . پخپله پوره نابود دی څنګه کولی شي دپيدايښت
بيرق پورته کړی.۱۲
حضرت بهاءالله
ازلي ذات، بذاته لن يدرک و لن يوصف... دی. ۱۳
حضرت باب
ازلي ذات لوړ او اوچته دی. دذکر اونږدي کيدلو
څخه..اوهغه څه په امکان کې دکيدو وړ دي دالهي
لوی روح ظهور دی. په ظهوراتو کې ، نه پخپله ازلی
ذات، هغه دی دپروردګار موعود چې په هغه کې نه
ليدل کيږي الاّ الله جلّ وعزّ، اودازل جلّ وعزّ
محبوب.هرچاچې هغه ومنل هغه خدای ومنل.۱۴
حضرت باب
پروردګار دصفتونو لايق دی. چې دخپل بخشش له
دريابه ئې دشبنم په وسيله دهستې اسمان لوړ
کړ.اودپوهې په ستورو ئې ښکلی کړ...هغه پوه
اوبخښتونکی دی.اوهغه دی پاک اوسپيڅلی دهرې
خبرې کولو اواوريدلو څخه...۱۵
حضرت بهاءالله

**فَوَعِزتِكَ يا مَحْبُوبَ البَهآءِ وَخالِقَ البَهآءِ لا يَرَى البَهآءُ لِنَفْسِهِ الاالعَجْزَ عَنْ ذِكْرِكَ وَثَناكَ علَ ما يَنْبَغِيْ لِعَظَمَتِكَ وَاجْلالِكَ . ١٦**

**حضرت باب**

ستاپه عزت قسم دی !اې بهاء ته محبوبه! اودبهاء خالقه ! بهاء په خپل نفس کې په هغه ډول چې ستادلويوالي اوجلال لايق دی .په غير دعاجزې نه بل څه نه ګوري .

وګورئ حضرت بهاءالله دخپل پروردګار دلويوالي اوعظمت څومره ښکلې ستاينه کړې ده:

که وايم چې سترګو ته مې راشه. چې سترګې پخپله ځان نشې ليدلای تابه څنګه وګوري ؟ اوکه وايم چې په زړه درک کيدلی شې،زړه پخپله دخپلو مقامونو دتجلی پيژندونکی نه دی. څنګه تاوپيژني؟

---

❖مشيت اوليه : الهي لوی روح ،لمړنی اراده اوغوښتنه ،دپيدايښت منشاء.

کينونيَّت : ظهورته رسيدلی، راښکاره شوی ،راظاهر شوی .

اوست کينو نيّت مشيت :دپروردګار موعود دالهي ارادې دمشيّت مظهر دی.

**که ووایم چې معروف ئې،ته دموجوداتو دپیژندنې څخه سپیڅلی اومقدس ئې. اوکه ووایم چې معروف نه ئې ته دهغه نه ډیر مشهور اوښکاره ئې. چې پټ اوغیر معروف پاتې شې.۱۷**

حضرت باب پخپلو ډیرایتونو کې ،دپروردګار داسې ستاینه کړې ده. اوداسې ئې داخپله بنده ګي اونابودي دخپل خالق په وړاندې ښودلې ده. چې ډیره حیرانوونکې ده .ددې ایتونو یوه نمونه چې دمناجاتو دمجموعې په نامه ده په ۱۹۷ نمونو کې په چاپ رسیدلې ده. هغه ځوان موعود چې په وجود کې د (پروردګار اعظم روح)دلمرپه څیر روڼ اوځلیدونکی ؤ. اوهیڅکله ئې کومه ګناه نه وه کړې ،په دې مناجاتو کې دخپل پروردګار څخه دبخشش غوښتنه کوي.
اوحتی خپل وجود دپروردګار په وړاندې ګناه ګڼي :

**یا الهـ□ انّ علوّ احسانک ظاهرة لاتختلف و انّ عظمة امتنانک ناطقة لا تحتجب قد خلقتن□ و لم اَکُ مذکوراً مِن قبلُ و اَکرمتن□ نعمائک ما لانستحق بشئ□ من بعد فکلّ ما اذکرُ نفس□ ما نشهَدُ الّا عصیانَهُ و ما نَرىٰ الّا احسانَک و مُداراتَکَ فیا الهـ□ کیفَ اذکُر نفس□ و سَیّئاته بعد ما کنتُ اَعلم انّ وجودی لَدیٰ وجهک اعظم ذنب لایَشبهه نار فسبحانک یا الهـ□ فبعزّتک و جلالتک و لاحَولَ و لا قوّة الّا بقدرتک ما احببت ف□ شأن الّا حبک و ما اَردتُ ف□ وجهٍ الّاوجهک...فآهٍ آهٍ عمّا یحص□ الکتابُ من جریرات العلاماتِ مِن نَفس□ عمّا یحک□ من دون فطرة توحیدک وَدَلّ عل□ غیر نعتِ ازلیّتک فبحقّک الّذی لا اله الاّ انت لواَردت حکم عدلٍ عل□ جزاء ما اکتَسَبَت نفس□ بالاغفال من اَمرک لدی محضرک لقد ملأ ارکان اِلابداعِ من النّار ...**

**۱۸**

**حضرت باب**

**و ان الله رب□ هوالحق و ما اران□ الله شیئاً الاّ وقد رایت الله وحده لا اله الاّ هو ولامعه الاّ هو .**

**۱۹**

**حضرت باب**

په یقین سره خدای زما پروردګار دی .هغه حق دی خدای ماته څه شی راونښودل مګر یوواحد خدای می.

ولیدل .چې په غیر له هغه بل خدای نشته، اودهغه سره بل څه شی په غیر دهغه نه نشته دی.



---

---

دبنده ګانو لپاره دپروردګار په اړه دپیغمبرانو نقش. دبهائي ائین په ایتونو کې ،خدای دلمر اوپیغمبران ئې دائینی سره تشبه شوي دي.
دامقایسه ،دخدای رابطه دپیغمبرانو سره په ډیرې روښانتیا کې وښائې. که د لمرتصویر په ائینه کې ووائې :«چې په غیر له مانه بل لمر نشته »په خطاسره به ئې داخبره نه وي کړي. ځکه چې ویونکې ئې لمر دی. اوکه ووائې :«زه لمر نه یم»بیائې هم وینا رښتیاوته نږدې ده .ځکه چې دلمر اوائینی ترمنځ

توپيردځمکې نه تراسمانه پورې دی.

**و ما نشهد فی ظهورهم الاّ ظهورالله...و کلّهم مراياءالله بحيث لايُری فيهم الّانفس الله و جماله و عزّ الله بهائه لو انتم تعقلون . ٢٠**

**حضرت بهاءالله**

هغه ټول (پيغمبران) دخدای آئينې دي.په داسې شکل چې په هغوکې په غيردخدای دښکلا، دخدای دعزت اود خدای دبري څخه بل څه نه ليدل کيږي.که دتعقل څخه کارواخلئ.

**نه ليدل کيږي په هغه کې، په غير دالاّﷲ عزّوجل، اوهغه دی اول ...اوهغه دی اخر ٢١.**

**حضرت بهاءﷲ**

**داسپيڅلی اوقدسيه هيکلونه اوليّه اوازليّه ائينې دي. چې دخدای دټولو نومونو اوستاينې څخه حکايت کوي. دهغه دعلم، قدرت، سلطنت ، عظمت، رحمت، حکمت ، عزت، وجود اوکرم...داصفتونه دهيڅ يو پورې مختص نه ؤ اونه به وي.٢٢ حضرت بهاءﷲ**

**انكَ جَعَلْتَ ارادَتِي نَفْسَ ارادَتِكَ وَمَشِيتِي ذاتَ مَشِيتِكَ .**

**٢٣ حضرت بهاءالله**

په يقين سره زما اراده دې، دخپلې ارادې سره ،اوزما غوښتنه دې، دخپل ذات دغوښتنې سره يوه کړه .
دحضرت عبدالبهاء دوينا په اساس الهي پيغمبران درې رتبې لري:

- «جسماني رتبه »له دې نظره مونږ دهغو سره شريک يو.
- «انساني رتبه » له دې نظره هم مونږ دهغو سره شريک يو.
- «الهي رتبه »دادپيغمبرانو ځانګړې رتبه ده .۲۴

په خپله ځانګړې رتبه کې چې «الهي ظهور»دهغوې دوجود په ائينه کې دی ،پیغمبران دوه رتبی یامقامونه لري:

- دتوحيد مقام.
- دتحدید ،تفصیل اوتمیز مقام.

**دتوحيد په مقام کې ...دالوهيت اوربوبيت اطلاق(يعنې دخدای مقام ته پورته کول اومنسوبول)...دهغه جواهرو په وجود شوي اوکيږي به ...اوپه دوهم مقام کې ...یواځی عبادت. ..له هغوې څخه ظاهردی.۲۵ حضرت بهاءالله**

دمخکښني مطلب داثبات لپاره درسول اکرم ددې حدیث په بیانولو سره پیلوي :

**لي مع الله حالات .انا هو و هو انا الاّ انا انا و هوَ هو . ۲٦**

زما لپاره دخدای سره حالات اواړیکې دي .زه هغه یم اوهغه زه دی. په دې توپیر چې هغه هغه دی. اوزه زه یم.

دحضرت بهاءالله داوینا ،دپیغمبرانو رابطه دخپل رب سره په روښانه توګه وښائې :

**یا الهي اذا انظر الي نسبتي الیک احبّ بان اقول في کلّ شيء بانّي اناالله انظر الي نفسي اشاهدها احقر من**

**الطّين .۲۷**

**حضرت بهاءالله**

ای زما خدايه **!**کله چې ستانسبت ځان ته کوم،په ډيرې مينې سره دهرشي له منځه خبری کوم. چې په حقيقت کې زه خدای يم .اوکله چې خپل نفس ته نظر کوم. ګورم چې دخاورونه ټيټ دی.

پيغمبران په غير دخدای له نوراوروښنائي څخه بل څه په ځآن کې نه لري ،دهغو څخه انکار په غير دخدای څخه انکارکول بل څه نه دي:

**هرچاچې له ماڅخه انکار وکړ ، دهغه خدای څخه چې زه ئې راليږلی يم، دهغه څخه ئې انکار وکړ.**

**حضرت مسيح انجيل لوقا: ۱۰ ، ۱۶ـ ايت**

**دتوحيد جوهر هغه دی. چې دپروردګار راليږلی دخدای سره يووګڼي ،په دې معنی چې دهغوې چارې اوکارونه ،وکړئ اومه کړئ دخدای له لوري وګڼي...۲۸ حضرت بهاءالله**

---

له یو نظره ،دعالم هستي، دپررودګار دوجود نښانه اوائینه ده:

**ټول شیان چې حق ته منسوب دي داغږ کوي. «انّنی اناالله لااله الاّ انا».اوداډیره واضح ده. چې داکلمه اودارتبه دهغه شي خپل نفس نه دی. بلکه داهغه څه دي. چې دپروردګار په سیوری کې پروت دی. اوله حق څخه ګڼل کیږي.۲۹ حضرت بهاءالله**

**الحق شنود**

**ورنه این زمزمه در هرشجری نیست که نیست**

ټول پیغمبران له یوې منشاء اومنبع څخه سرچینه اخلي .د«الهي لوی روح»څخه یاد«لمړني مشیتّ»څخه، په هغو ټولو کې روښانه اوځلیدونکی دی .دهغوې توپیر دهغوې دروښانتیا په شدت کې دی. ددې دځلیدلو شدت زمونږ په عصر کې ډیر زیات دی .

په دې بيان کې حضرت باب مونږ. ته دپيغمبرانو وحدت رازده کوي.پروردګار ئې دلمر سره اوپيغمبران ئې دائينو سره تشبه کړي دي. چې دلمر په مقابل کې ايښودل شوي دي. دهغه نوراوروښانتيا نوم چې له ټولو پيغمبرانو څخه ځليږي ،«لمړنی مشيّت»دی.

**دالاالله خالق ښکاره کړی شوی...چې په ټولو هندارو کې متجلي اوښکاره نه دی، يواځې ديولمر په هنداره کې اوهغه حقيقت الهي لوی روح دی. ۳۰**

**حضرت باب**

**ازلي اوابدي ذات ،لم يزل ولايزال په واحد حالت کې ؤ اووي به. ظهور اوښکاره کيدل ،بطون اوپټيدل دخوښې صفت دی. ۳۱**

**حضرت باب**

**هرشی چې دشي په نامه ئې ذکر اوياد کيږي. پروردګار هغه دخوښې لپاره پيداکړی دی. اوهغه خوښې ئې دځان لپاره پيداکړي دي. ۳۲**

**حضرت باب**

**دلمړنې ارادې پيدايښت ئې وکړ. دهغه په شان چې د ټولو شيانو پيدايښت کړئ وي، د هغه نفس لپاره، اوهغه ئې پيداکړی دځان لپاره ،اونور ټول دهغه لپاره ،اودځان نسبت ئې هغه ته وکړ...يوه اراده وه اووي به.چې په هرکوراوعصرکې به سرته رسيږي.۳۳**

---

په دې بيان کې حضرت باب مونږ ته رازده کوي. چې دخدای دديدار مقصد ،د (لمړني مشيّت) ديدار دی:

**دقران داايت دپروردګار اړيکه دخپلو پيغمبرانو سره روښانوي:۳۴ حضرت بهاءالله**

**ان الذِينَ يَكْفُرُونَ بِاللهِ وَرُسُلِهِ وَيُرِيدُونَ ان يُفَرِّقُواْ بَيْنَ اللهِ وَرُسُلِهِ... اوْلَئكَ هُمُ الْكَافِرُونَ حَقا وَاعْتَدْنَا لِلْكَافِرِينَ عَذَابًا مهِينًا . سوره نساء، آيات، ۱۵۰ ـ ۱۵۱**

هغه خلک چې دخدای اوپیغمبرانو نه انکار کوي.
اوکوښښ کوي. چې دخدای اوپیغمبرانو ترمنځ توپیر
پیداکړي. په رښتینی کافر دي ...دداسې کافرانو لپاره
دزلالت نه ډک عذاب تیارکړی شوی دی.
«دخدای اوپیغمبرانو ترمنځ توپیر اچولو څخه مقصد
څه دی .؟»که دکلماتو ظاهرته وګورو ،کولای شو.
ووایو چې رسول اکرم هم دخدائي دعوه کړې ده. اما
ددې ایت مقصد دانه دی .دوحدت مقصد دخدای
اودهغه دپیغمبر ترمنځ اوپه حقیقت کې ټول پیغمبران
دي. حضرت مسیح هم داسې یوبیان فرمایلی دی:

**زه او پلارمې یوشی یو. یوحنا انجیل : ۱۰ فصل، ۳۰ - ایت**

مسیحیانو له دې بیان څخه داسې استنباط اوراایستنه
کړې ده. چې مسیح پخپله همغه دخدای نفس دی
.دلمراودهغه تصویر په ائینه کې نشي کولای چې
توپیر وکړي.«اما دهغوترمنځ توپیر دځمکې اواسمان
په اندازه دی. »په همغه ترتیب چې پاکه اوصفا ائینه
کې په غیر دلمر دنورڅخه بل څه شی پخپل ځان کې
نه لري. پیغمبران هم دالهي ارادې نه په غیر خپله
کومه اراده نه لري.

❖ یوانسان ته ،دخدای نسبت کول ،دمسیحیانو په
منځ کې رواج لري .دهغوې ډیر یوڅه
دکاتولیک دفرقې څخه، یوڅه دپروتستانو دډلې
څخه، په اشتباء کې، عقیده مند دی. چې خدای
همغه مسیح دی، چې ځمکې ته راغی. اوپه دار
وزړول شو!
قران مجید ددې عقیدې څخه په کلکه انکار کوي .

۴۰۱ ۱۳فصل:دخدای دموعود دراتلو
وعده دخدای په نوم سره .

---

---

که ټول پیغمبران دخدایي دعوه وکړي ،حق
لري ،ځکه چې دهغوې اودخدای ترمنځ فرق
نشته .همغه واحد دی. چې دخپلو رااستونکو په
ژبه خبری کوی. ددې حقیقت درک کول اومنل
ددې سبب کیږي. چې دادیانو پیروان داپیدا
کړي چې دپروردګار په نوي ائین په ایمان

راوړلو سره یواځې دخپل ائین نوم بدلوي نه خپل ائین .هغه یوابدي ائین په قران کې «اسلام »نومول شوی دی .ترڅو جهان وي. همغه یوائین، که څه هم ځوځلې به په نوي اوتازه نوم سره په جهان کې رابنکاره کیږي .

په همغه ترتیب چې وینو دبهائې ائین دایتونو په اساس ،درسول اکرم مقام په مراتبو لوړ تردی. دهغه نه چې مسلمانانو پیژندلی دی .دمسلمانانو له نظره رسول اکرم یوداسې بشرو. چې هغه ته وحی کیدله .داعقیده ددې ایت په اساس متکي ده :

**أَنَابَشَرٌ مِّثْلُكُمْ يُوْحَى اِلَيَّ .**

**دکهف سورة،۱۰۹ ــ ایت**

زه ستاسې په شان انسان یم .یواځې ماته وحی کیږي .

مسلمانان درسول اکرم اهمیت د«خاتم النبین »په لقب کې پیداکولای شي .اماهغه لوی مقام چې حضرت بهاءالله هغه لوی رسول ته عطا کړی دی. دهغه لقب سره دقیاس وړ نه دی .هغه رسول دپروردګار تمام نما ائینه ده.

دپروردګار ټول صفتونه اونومونه په هغه کې بنکاره ؤاووي به .داالقاب چې حضرت باب

اوحضرت بهاءالله دهغه په وصف او (ستاینه )کې استمعال کړي دي. دخاتم النبین دلقب سره ئې وسنجوئ. اووئې ګورئ. چې دهغوې توپیر ترکومه ځای پورې رسیږي:

**د رسول اکرم القاب**

| | | |
|---|---|---|
| جمال بې مثال | جوهر لطف وکرم | شمس افق توحید |
| سرور کل | سیدالاولین والاخرین | مخزن علم صمداني |
| سيّد رسل | شمس نبّوت | مظهر ذوالجلال |



| | | |
|---|---|---|
| سیدالمرسلین | جمال ازلی | مشیت اوّلیه |
| سیدالعالم | مربّی الامم | سلطان اصفیاء |
| فخررُسُل | سلطان بقا | هیکل ازلی |

| جمال احديّه | شمس احّديه | معدن حکمت الهي ۳۵ |
|---|---|---|

هرائين چې ظاهرېږي. دمخکنيو تصديق کوي .دادخاتم النبين اصلي معنی ده. بهائې ائين هم په الهي ټولو اديانو دتصديق مهُر لګوي.اوهم دهغوې تعليمات تشريح اوتوضيح کوي. حضرت عبدالبهاء په امريکا کې څه به کنيسا ګانو اوياپه کليساګانو کې پخپلو ويناګانو سره هغوې ته په خطاب کې درسول اکرم په باره کې خبرې وکړې. اوځنې سوی تفاهمات چې دغرب اوسيدونکو سره ؤ.هغه ئې له منځه يووړل .دهغه دخطابې يوه لنډه نمونه چې ديهوديانو په لويه کنيسا سانفرا نسيسکو کې کړې ده. توجه وکړئ **وګورې چې حضرت محمد (ص)دعربو دوحشي قومونو په منځ کې وزيږيدل. اوژوندئې وکړ.په ظاهر کې امّي اوبې خبره ؤ. اودعربو قومونه په ډيرجهالت کې ؤ. په داسې ډول چې خپلې لونې يا (لورګانې )به ئې ژوندې خښولې ...څنګه چې محمدي رڼآ راښکاره شوه. ،به عربو کې د ظلم تورې تيارې ختمې شوې. هغه وحشي قومونه په ډيره لږه موده کې دمدنيت درجې ته ورسيدل. څرنګه چې دهغوې دمدنيت څخه په اسپانيا اوبغداد کې داروپا خلکو ګټه پورته کړه. اوس له دې نه بل کوم غټ دليل کيدلی شي. اودا**

**واضح دلیل دی، مګر داچې انسان دانصاف نه سترګې پټې کړي .۳۶**

ددې ائین دظهور له همغه لمړنیو څخه ځنې، ( له ردیه نویسانو )بې ځایه غوغا جوړه کړه، چې حضرت بهاءالله دخدائي دعوه کړې ده:

---

داسلام دشروع څخه ترننه پورې دمسیحیي علماو داسلام په ضد ډیرې (ردیه ګانې )لیکلې دي .ددې نیوکو په ځواب کې مې په انګلیسي ژبه یوکتاب کې په مفصله توګه ځواب ورکړی دې. داکتاب تراوسه په فارسي ژبه ژباړل شوی نه دی :

Muhammad:The spirt who Golrified Jeaus

منـهم ن قال انّـه ادّعـ□ الرّبوبيـة و منـهم من قال انّـه افترى علـ□ اللـه و منـهم من قال انّـه ظهر للفساد...الا انّـهم من عبدة الاوهام .۳۷

**حضرت بهاءالله**

**یوډله وائې :چې هغه دخدائي دعوه کړې ده ! بله ډله وائي :هغه خدای پورې تـهمت کړی دی !اوبله ډله وائې هغه دفسادلپاره راغلی دی !...پوه شی چې هغوې ټول داوهاموګومانونو بنده ګان دي.(۳۷)**

حضرت بهاءالله له همغه شروع څخه دبدیع په کتاب کې ددې مخالفینوځواب ورکړی دی:

**ان جرى من قلمـ□ ذكر الالوهية ما كان مقصودى الا الله العالمين .۳۸ حضرت بهاءالله**

**هرکله چې زما دقلم څخه خدائي ذکر جاري شي ،مقصد مې په غير دعالمیانو دپروردګار نه بل څوک نه دي .(۳۸)**

**يا قوم انـ□ ما اردت فيما اقول نفسـ□ بل نفس اللـه ان انتم من المنصفين و نلقـ□ عليـكم ما اراد ربـكم العلـ□ العظيم .۳۹**

**حضرت بهاءاللـه**

ای خلکو !هغه څه چې وایم دهغې نه مې مقصد خپل نفس نه دی. بلکه الهي روح دی. که په انصاف ورته وګورئ .هغه څه چې تاسې ته وایم ستاسی دلوی پروردګار د ارادې په اساس دي .
په سورت الملک کې هم ددې مطلب تاکید شوی دی:
**و منکم من قال انّ هذا هو الّذی ادّع□ ف□ نفسه ما ادّع□ فو الله هذا لبهتان عظیم و ما انا الّا عبد آمنت بالله و آیاته و رسله و ملائکته و یشهد حینئذ لسان□ و قلب□ وظاهری و باطن□ بانّه هو الله لا اله الّا هو و ما سواه مخلوق بامره ... ٤٠ حضرت بهاءالله**
دخلکو یوه ډله وائې :هغه داسې یوڅوک دی. چې دخپل ځان دپاره مدّعی دی. دهغه څه دپاره چې مدعي دی !په خدای قسم دی ،دالوی بهتان دی. زه یواځې هغه بنده یم چې په خدای دهغه په ایتونو ،دهغه په رسولانو اودهغه په ملائکو ایمان لرم .په دې وخت کې ژبه اوزړه مې ظاهر اوباطن مې ټول شاهدي ورکوي چې :هغه پروردګار دی .په غیرله هغه بل پروردګار نشته دی. اوټول هغه څه چې په غیرله هغه څخه دي. دهغه پیدایښت دی...
حضرت باب وړاندوینه فرمائي: چې د«موعود بیان »یعنی حضرت بهاءالله به دخدای له ژبې څخه دارنګه ووائي :

**دپروردگار په ژبه وائې :اننی اناالله لااله الاّ انا وان مادونی خلقی .(۴۱)حضرت باب**

دبل ځل لپاره فرمائي: ګويا ګورم ئې چې يوڅوک دحضرت بهاءالله څخه پوښتنه کوي. اوهغه دخدای له لوري څخه نه دخپل نفس له قوله، داځواب نازل اوفرمائي :

**اننى اناالله الا انا قد خلقت کلشيئ و ارسلت الرّسل من قبل و نزلت عليهم ا لکتب الّاتعبدواالاالله ربّى و ربّکم . ٤٢ حضرت باب**

په يقين سره زه پروردګار يم .پوه شئ. هرڅه چې وجود لري. ماپيداکړي دي .مخکښني پيغمبران مې استولي دي. اوپه هغوې مې کتابونه نازل کړي دي. دهيچاعبادت مه کوئ. په غير د زماد پروردګار اوستاسې د پروردګار لپاره .

په مخکيني بيان کې په ډير لطافت سره مونږ ته رازده کوي. چې خدای هم دموعود پروردګار دی. اوهم زمونږ پروردګار دی .
په دې بيان کې دحضرت بهاءالله رابطه دخپل خالق سره روښانه اوفرمائی :
**دهغه لپاره حرکت اوسکون نه وه اونه به وي ،الاّبالله عزّوجل .(۴۳) حضرت باب**
ددې ټولو توضيحاتو اوتفصيل سره ،(ردنويسان)له تهمته څخه لاس نه اخلي. اوداتهام ئې پخپلو کتابونو کې نوشته کړی اونوشته کوي .اوهغه خلک چې اعتراض ته پورته کيږي. اوددې ائين ته په واړه نظر ګوري. دهغه منادي (جاروهونکي )دي :
**قل انّ الاعراض من کلّ معرض منادی هذا الامر و به انتشر امر الله و ظهوره بين العالمين .٤٤**
**حضرت بهاءالله**
ووايه !په يقين سره دهر مخ ګرځوونکي مخ اړونه ددې ائين لپاره داعلان يوغږ دی .اوپه دې وسيله دپروردګار امر اودهغه ظهور دجهان خلکوپه منځ کې خپروي .

---

❖ په يقين سره زه پروردګار يم .په غير له مابل پروردګار نشته .په غير له مانه ټول زمامخلوق دی .



---

---

**دپروردګار دموعود دظهور وعده**

**دخدای په نوم**

**آَلاَ اَنَّ وَعْدَ اللهِ حَقٌّ وَلَکِنَّ اکْثَرَهُمْ لاَ يَعْلَمُونَ .**

**ديونس سورة ،۵۵-ايت**

**په يقين سره پوه شئ. چې دخدای وعده سمه ده ،اما ډير خلک دهغې نه ناخبره دي.۴۵**

**حضرت بهاءالله**

**دپروردګار بې اندازې برکتونه چې دپروردګار بنده ګانو لپاره مقدرشوي دي.دالله دیدار اودهغه پیژندنه ده...۴۶**

**حضرت باب**

داڅه ډول وعده ده. چې پروردګار دهغې دتحقق لپاره شاهدي ورکوي ؟داڅه ډول وعده ده. چې ډیر خلک له هغې څخه بې خبره دي؟دقران داسرارو څخه اود نورو اسماني کتابونو څخه یو راز دادی. چې زمونږ موعود ئې د«خدای »په نوم یادکړی دی.اوزیری ورکړی دی. داسې وخت به راشي چې ددیداراوکتنې ورځ به راورسیږي. اوخلک به دخدای په لیدلووویاړل شي .

**مَن کَانَ یَرْجُو لِقَاء اللهِ فَاِنَّ  أجَلَ اللهِ لآتٍ.**

**دعنکبوت سورة،۵- ایت**

هر څوک چې دخدای سره دملاقات امید لري ،په یقین سره دې پوه شي. چې هغه وخت به راورسي.

**یُدَبِّرُ الامْرَ یُفَصِّلُ الآیَاتِ لَعَلکُم بِلِقَاء رَبِّکُمْ تُوقِنُونَ.**

**درعد سورة ،۲- ایت**

خدای «امر»اداره کوي. اوایتونه تشریح کوي. شاید دپروردګار ددیداراوکتنې په وعده یقین وکړئ.

**واحد خدای شاهد دی. چې هیڅ یوامر دهغه «امر »په شان په صراحت په قران کې ذکر شوی نه دی .(۴۷)**

**حضرت بهاءالله**

دالاندی مبارک ایت ددې نښانه ده. چې دپروردګار ددیدار اوکتنې ویاړ دهغه چاپه نصیب دی. چې په دې لاره کې څیړنه اوکوښښ وکړي:



---

**یَاَآَیَّهَا الْانسَانُ اِنكَ كَادِحٌ اِلَی رَبِّكَ كَدْحًا فَمُلَاقِیهِ . دانشقاق سورة، ۶ ــ ایت**

اې انسانه !تادپروردګار دکتنې په لار کې ډیر کوښښ کړی دی. اوپه دې سبب به دخدای په دیدار اوکتنه کامیابه شې.

دبهائي ائين تر ظهوره پورې هيڅوک، ددې له اسراره ډکې وعدې څخه، دخدای د ديداراوکتنې نه پوهاوی نه لرل .دپروردګار ظهور دانسان په صورت کې متفکرين په تعجّب اوحيرّت کې واچول. اوداپوښتنه ئې دهغوې په فکر کې رااوچتوله :په څه ډول دځمکې اوسمانونو خالق په ناڅاپه توګه دانسان حالت اوطبيعت اختياروي ؟هيڅکله داسې يوامر ممکن نه دی ،دقران دشهادت پراساس :

**لا تُدْرِكُهُ الابْصَارُ.**

**دانعام سورة ،۱۰۳ ــ ايت** سترګې دهغه دليدلو توان اووړتيا نه لري .

حتی حضرت موسی ،هغه لوی پيغمبر ،دپروردګار دليدلو طاقت اوتوان نه لري :

**قَالَ رَبِّ اَرِنِي اَنظُرْ اِلَيْكَ قَالَ لَن تَرَانِي .**

**داعراف سورة،۱۴۳- ايت** وويل خدايه !خپل ځان راته وښايه ترڅوتاته وګورم .پروردګار ځواب ورکړ: هيڅکله به ماونه ګورې.

## دخدای دديدار اود خدای دظهور مقصد

**اِنَّ عَلَيْنَا بَيَانَهُ .**

**دقيامت سورة،۱۹ ــ ايت**

په يقين سره دقران وضاحت اومعلومات زمونږ سره دی.

دپروردګار دحکمت اوارادې په اساس داپټ رازاودا حیرانوونکې معما،داقیمتي غمی زرُونه کلونه په پټ شوی صدف کې دجهان دخلکو څخه پټ پاتې شول. ترڅو چې په دې عصر کې داسرارو پرده دهغه له مخ څخه پورته شوه:



---

---

**دازلي ذات(خدای)دیدارمنع دی .اودهغه دیدارچی په قرآن کې ذکرراغلی دی. دهغه څخه مراد موعود دی. چی دنسبت له مخې هغه ته پروردګارد خپل دیدارنسبت ورکړی دی.۴۸**

**حضرت باب**

**په اسانۍ سره دازلي ذات ديدارممکن نه دی.اوهغه څه چی مراددی. دخدای ديدارپه قرآن کی،دحقيقت دونې ديدار(دخدای له طرفه درالیږل شوي)ديدارمراددی.۴۹**

**حضرت باب**

پيغمبران لکه دائينې په
ځيرصفااودپروردګاردصفتونوځليدونکي مظاهردي.
اودهغوی لويوالی اوعظمت زمونږ.داستعدادپه اندازه
وښائی.دخدای راتلل يعنی دخدای درالیږل شوي راتلل
دي،اودخدای ديداريعنی دخدای درالیږل شوي
ديداردی،په انسانی هيکل کې:
**مقصد...له ديدار څخه دهغه د جمال ديداردی.(خدای)دهغه دظهورپه هيکل کې.۵۰**

**حضرت بهاءالله**

**دديدارڅخه مقصد،دهغه نفس ديداردی. چې دخلکوپه منځ کې دخدای قايم مقام دی.۵۱**

**حضرت بهاءالله**

**د ظهورهيکل (دخدای پيغمبر)دپروردګارقايم مقام ؤاووي به.۵۲ حضرت بهاءالله**

**دخدای دیدار به حاصل نشي مګر دهغه په دیدار سره .هغه ته ظاهر شو. هغه چې ابدالابد مستور اوپټ ؤ.۵۳**

**حضرت بهاءالله**

کله چې پیغمبران دخدائې اظهار کوي ،مقصد ئې صرف دنیستی اظهار دی.دخپل ځان نیستي ده.

اودخدای سره  هست کیدل دي .په هغه صورت کې ویونکی خدای دی، نه دخدای پیغمبر:

**وواپه !دادخدای نفس دی چې پرتخت ناست دی .۵۴**

**حضرت بهاءالله**

**ان الذکر لرب و لکن الکل یحتجبون .هوالذی قد ظهر و قام بامر ربه حین الذی کل الناس یغفلون .۵۵**

**حضرت باب**

په یقین سره دربّ «ذکر»دی. خوخلک ټول په پرده کې دي.هغه ،هغه څوک دی چې ظاهر شو.

اودپروردګار په حکم په پښو ودرید.اماخلک ټول په غفلت کې دي.

په دي وینا کې ،پروردګار مونږ دحضرت باب له نفسه مخاطبوي:

**یا اهل العرش اسمعوا ندائ من نفس الباب انّ اناالله لا اله الّا انا ...٥٦ حضرت باب**

اې دجهان خلکو !زما غږ دباب له نفس څخه واورى : زه پروردګار یم .په غیر له مابل پروردګار نشته دى...

**دادخداى مقام دساه کښ دنابودى مقام اوالله دبقا اوپایښت مقام دى. اوکه داکلمه ذکر شي په مطلق نابودې دلالت کوي.٥٧**

**حضرت بهاءالله**

**پیغمبران دبنده ګې په نهائې رتبه کې ظاهر شوي دي .هیڅ یوئې ددې طاقت او توان نه لري. چې په هغه شکل دبنده ګې کې ظاهر شي ...په همدي رتبه ،انتهائې نیستي اوفنا پخپل ځان کې مشاهده اولیدلى ده ...اوخپل ذکر ئې په هغه الهي درګاه کې شرک ګڼلى دى.ځکه چې په دي مقام کې «ذکرمطلق »دوجود اوهستې لیدل دى.٥٨**

**حضرت بهاءالله**
پيغمبران يواځې دپروردګار پيغام رسونکي دي.هم دخدای «نی نواز »دي. اوهم دخدای «اواز».
په دې ايتونو کې له «مزامير»اوله انجيل څخه د«پروردګار دراتلو»معنی په پوره توګه ښکاره اوواضح ده :
**مبارک دی هغه څوک چې د«خدای په نوم»راځي.**
**داود مزامير:۱۱۸،فصل،۲۶-ايت**
زه تاسې ته وايم چې مابه نور ونه ګورې ترهغه وخته پورې چې ووائې:
**مبارک دی هغه څوک چې دخدای په «نوم»راځي.**
**حضرت**
**مسيح ،متی انجيل۲۳فصل،۳۹-ايت**
**دخدای ددیدار دوعدې**
**تحقق**
په دې دعوت نامه کې حضرت بهاءالله نه يواځې دپروردګار دراتلو اوددیدار دورځې درارسيدو زيری راکوي، بلکه ددیدار شرايط هم مونږ ته رازده کوي:

**نن دديدار ورځ ده ،اوپروردګار بې پردې معلوم اوښکاره دی.په پاک ځان سره عجله وکړئ ،شاید چې ورسيږی. اوهغه څه چې وړتيا لری پرې پوه شئ.په دری شيانو ديدار ترلاسه کيږي : دزړه پاکوالی ،دسترګو پاکوالی اودغوږنو پاکوالی له هغه څه څخه چې اوریدلی دي.۵۹**

**حضرت بهاءالله**

**ورځ غږاواز کوي ،لمراوسپوږمې زيرې ورکوي .اې دوستانو !په هرڅه پوه اودانا خدای**

**راغلی،شاهدي ورکړئ. پټه رڼائې ښکاره شوه. دزړه نه عجله وکړئ.۶۰**

**حضرت بهاءالله**

ددیدار دورځې وعده په اسماني کتابونو کې په کراتو سره تکرارشوې ده:

اې پروردګاره ! زما غوښتنې ومنه. په مارحمت وکړه. زما زړه ماته وائي:

هغه «موعود»ولټوه .ستاوجود،ای پروردګاره غواړم وئې وينم.

**اې پروردګار !زه غواړم ستاسيما اوبڼه وګورم ،ستاسيما له ماڅخه مه پټوه ...اې پروردګاره !ستالاره راته وښايه ،ماسمې لارې ته هدايت کړه...زه يقين لرم چې د«پروردګار خوبی يا بهاء»به دځمکې په ژوندانه کې وګورم .دپروردګار په انتظار اوسه ،قوي اوسه، اوپه قوي زړه سره دخپل پروردګار په انتظار کې پاتی شه.**

**دداود**

**مزامير:۲۷فصل،(۱۴- ۷)،ايتونه**

**اې دجانان دمخ عاشقانو !دفراق اوجدائې غم دوصال په خوښيو بدل کړئ. اودهجران زهر ددیدار په شاتو واړوئ...دافضل غنيمت وګڼئ اودانعمت کم مه ګڼی .باقی اوپاتی نعمتونه مه پرېږدئ. اوپه فاني شيانو مه قانع کيږئ .دزړه له سترګو پردې لرې کړئ. اودزړه**

**دسترګو پردې وشکوئ. ترځو ددوست جمال بې پردې وګورئ. نالیدلي وګورئ. اونااوریدلي واورئ.(۶۱)**

**حضرت بهاءالله**

**اې دپروردګار ددیارخلکو !یکتا دوست بې پردې ظاهر دی..ترځووخت باقي دي په باقي ذکر مشغول شئ. اوخپل رب لورې ته مخ واړوئ.(۶۲)**

**حضرت بهاءالله**

**فهنیئاً لمن قرت عیناه فی هذاالیوم بلقاءالله...۶۳**

**حضرت بهاءالله**

---

❖ بهاء : کلمه مختلفې معناګانې لري،دهغې جملې نه «خوبی»خوبی پروردګار، د بهاءالله سره برابره ده.

نیکمرغه هغه څوک دي. چې په دې ورځ
ددیدار اوکتنه کې دپروردګار په دیدار کامیابه
او (فائز) شو...
پیغمبران دخدای ځیره ده. دهغه دبنده ګانو په منځ کې
اودهغه لویوالی اوعظمت مونږ ته راوښائې:
**انّنی انا وجه ا لله الذی لا یموت . ٦٤**
**حضرت باب**
زه په رښتینې دخدای «ځیره »یم دهغه خدای چې
همیشه ژوندی دی.
**کلّ من علیها فان و هذا وجه ربّکم العزیز المحبوب .**
**٦٥ حضرت بهاءالله**
ټول هغه څه چې په جهان کې دي،ټول به فناشي
.داستاسې دمحبوب اوګران پروردګار «ځیره »ده.
**حضرت باب فرمائې: هیڅ عمل له دې نه پورته نه دی. چې دسمې لارې لټونکی د انصاف نظر دبیان ایتونو ته واچوي. ترڅو حقیقت په روښنائي سره وګوري. اودهغه پیغمبرد لیدلونه چې دیدار ئې دخدای دیدار دی. اورضا ئې دخدائې رضاده، پاتې نشي. ځکه چې ټول خلک په همدې سبب پیدا شوي دي. دهرفرد عزت په دې کې دی. چې دخپل وجود ثمره اوګټه چې دخدای دیدار دی. اودهغه په ایتونو ایمان راوړل دي. کامیابه شي.٦٦**

خدای له مونږ ځخه غواړي. چې دا«لوی خبر»او«لوی نوم»په ټولو امتونو کې خپور کړو:

**قل...ینبغ لکم الیوم بان تصیحوا بین الأمم بهذا الاسم الاعظم اتختارون الصّمت بعد الّذی کلّ حجر و شجر یصیح باعل النّداء قد ات الرّبّ ذو المجد الکبیر.۶۷ حضرت بهاءالله**

وواېه ...په دې ورځ کې له تاسې سره ښائې چې دپروردګار د«لوی نوم»دظهور خبر په لوړاوازپه ټولو امتو کې خپورکړئ. په داسې حال کې چې هر کاڼی اوهرونه فریاد اوچغې وهي. چې باعظمته اولوي پروردګار ښکاره شوی دی،اوتاسې چوپ یاستې ؟

د«خدای ددیدار اودخدای دراتللو »زیری داسلام دظهور سره نه پیلیږی. ځکه دقران په اساس داسرائیلو امت هم په دې زیری سره ویاړ ترلاسه کړی دی:

**ثُم آتَیْنَا مُوسَ الْکِتَابَ... لَّعَلَّهُم بِلِقَاء رَبِّهِمْ یُؤْمِنُونَ . دانعام سورت،۱۵۴-ایت**

وروسته مې موسی ته کتاب ورکړ...شایدهغوې (داسرائیل امت)د«خدای ددیدار»په وعده باور ترلاسه کړي.

**دپروردګار دراتګ زیری ،دیهودانو اومسیحیانو په اسماني مقدسو کتابونو کې په کراتو تکرار شوی دی:**
**اشعیا،۲۵فصل،۹-ایت**
**په هغه ورځ به وویل شي : وګوری دازمونږ پروردګار دی. چې په انتظار کې وو.هغه به مونږ ته نجات راکړي.**
**زکریا،۱۴فصل،۵-ایت**
**نور به ما (مسیح )ونه ګورئ. ترهغه چې ووائي :«مبارک دی هغه څوک چې دخدای په نوم راځي.»**
**انجیل متي،۲۳فصل،۳۹-ایت**
**حضرت باب هم په کتاب دبیان کې دمخکنیو پیغمبرانو زیری تائید کړی دی:**
**نه لیدل کیږی په هغه کې په غیر دالاّ الله څخه .۶۸**
**حضرت باب**
**او است مرآت الوهیّت و شمس ربوبیّت. ۶۹**
**حضرت باب**

**اوهرچاچې دالله دمظهر دیدار وکړ،دالله دیدار ئې وکړ. اودپروردګار په دیدار کامیابه  شو. که په هغه ئې ایمان راوړی وي.۷۰**

**حضرت باب**

حضرت باب ددیدار وخت هم مشخص کړی دی:

**و ف□ سنة التسع انتم بلقاء الله ترزقون .۷۱**

په (۹)کال کې به دخدای په دیدار کامیابه شي.

حضرت بهاءالله (۹)کاله وروسته دحضرت باب دظهور څخه ،دطهران په خطرناک زندان سیاه چال کې د«امراظهار »وکړ.

دقران په دې لاندی ایت کې چې د«دیدار»ایت په نامه دی. ډیر اسرارپه کې پټ دي:

**هَلْ يَنظُرُونَ الا ان يَاتِيَهُمُ اللهُ فِي ظُلَلٍ مِّنَ الْغَمَامِ وَالْمَلآكَةُ وَقُضِيَ الامْرُ وَالَ□ اللهِ تُرْجَعُ الأمُورُ .**

**دبقرې سورت، ۲۱۰ ـ ایت**

ایا په غیر له دې بل کوم انتظار وباسې. چې پروردګار دخپلو ملائکو سره دوریځو دسیوري لاندې راښکاره شي او«امر»ځای ته ورسیږي.

او«اموریاچارې» هغه ته  بیرته وګرځي؟

په مخکېني مبارک ايت کې دانتظار خبره منځ ته راغلې ده. (**هَلْ يَنْظُرُنَ؟**).
دې انتظار د«پروردګارراتګ »په اينده پورې تړلی دی. (**يَأْتِيَهُمُ اللّهُ** ُ).
حضرت بهاءالله پخپلو اثارو کې ددې (بنې وعدې )دسرته رسيدلو اعلان په کراتو سره دجهان ټولو خلکوته ورکړی دی. اوله هغوې څخه غواړي. چې په پاک ذهن سره دمخکينو بې اساسه تصوراتو په هکله تحقيق اوڅيړنه وکړي:
**قل يا قوم قد شقت سحاب الوهم...واتى الله على ظلل القدس وفى حوله من الملائكة قبيلاً.۷۲**

**حضرت بهاءالله**
ووايه !اې خلکو دګومان پردې وشکيدې
...اوپروردګار دخپلو فرشتو سره په پاک سيوري کې ظاهر شو.

**قل ضعوالاوهام .قداتی العلام علی ظلل الغمام .۷۳**
**حضرت بهاءالله**
ووایه !ګومانونه پرېږدئ. داناپروردګار دورېځو
دسیوري دپاسه راغلی دی.
**قدقضت السّاعة بالحق ...یاقوم دعواالهوی هذاالهکم**
**اتی من سماء القضاء بسلطانٍ عظیم.۷۴**
**حضرت بهاءالله**
په یقین سره «ساعت»حقیقت ومومند...ای خلکو خپلې
غوښتنې پرېږدئ. داستاسې پروردګار دی. چې
دقدرتمند اوحکم د اسمان څخه معلوم اورا ښکاره
شوی دی.
**فهنیئا لمن قرّت عیناه فی هذا الیوم بلقاء الله الملک**
**المتعالی العزیز .۷۵حضرت بهاءالله**
نیکمرغه هغه څوک دي. چې په دې ورځ کې سترګې
دلوی پروردګار په دیداراوکتنه روښانه شي.
**قل اولم یکفکم ربّ السّموات والارض انّه قد اتی بالحق**
**باسمه المهیمن علی الابداع .۷٦**

**حضرت بهاءالله**
**ووایه ! تاسي دپاره کافی نه ده. چې داسمانونو**
**اوځمکې پروردګار ظاهر شوی دی. په**

**حقیقت کې هغه دهغه نوم سره چې په ټولو ممکناتو غالب دی، راغلی دی.۷۶**

حضرت باب دحضرت بهاءالله دمقام په باره کې دارنګه فرمائي:

**کینونیت او مظهر الوهیت و ربوبیت است .۷۷**



---

---

دحضرت بهاءالله پلاراومور ،دخپل بې مثاله زوی سره ډیره کلکه علاقمندي لرله ،ځکه چې دهمغه وړوکتوب څخه ئې په هغه کې حیرانوونکې نښانې پیداکولې. داسې دبلوغ اوهوښیاری نښې، چې ددوی دحیرانتیا سبب کیدلې.

دهغه پلارلوی نوري میرزا ،چې دهغه وخت دلوی خطاطانو څخه و. دالاندی دوه بیتونه شعر ئې پخپل خط ولیکل. اودخپل کور په دروازه ئې وځړول. یعنی

دییلاقی په قصر چې په مازندران کې دتاکرُ په قریه کې لرل:

| | |
|---|---|
| کانجا نه سلام راه دارد نه علیک | ی گولبیک |
| این ارض مقدّس است فاخلع نعلیک۷۸ | هدارم قدم |

داپورتني دوه بیتونه شعر ،دقران ددې ایت څخه اقتباس شوی دی:

**انِّي انَا رَبكَ فَاخْلَعْ نَعْلَيْكَ انكَ بِالْوَادِ الْمُقدسِ طُوًى وَانَا اخْتَرْتُكَ فَاسْتَمِعْ لِمَا يُوحَ انني انَا اللّهُ لَا الَهَ الا انَا فَاعْبُدْنِي وَاقِمِ الصلَاةَ لِذِكْرِي .**

**سوره طه، آیات۱۴- ۱۲**

په یقین سره زه ستا پروردګار یم .پڼې دې وباسه ،ته د«طوی په مقدس وادی»کې (کوه طور ته نږدی)ئې .ته ماوټاکلې ،اوهغه څه چې درته وحی کیږي. هغې ته غوږ کښیږده .زه پروردګار یم !په غیر له مانه بل خدای نشته دی .زما د«ذکر »لپاره لمونځ په پښوودروه.

- مخکنی ایت دطه په سورة کې نازل شوی دی .حضرت بهاءالله په تهران کې زیږدلی دی. ایا دایوه تصادفي رابطه ده؟

- په همغه ترتيب چې مخکې تير شول .«زما دذکر»لقب زمونږ دعصر دواړو موعودو ته په اشارې سره په کراتو تکرار شوی دی.

**دخلکو ناامیدي اود دیدار دوعدې نه**

**انکار**

ایا دپروردګار ددیدار څخه برتردځه شي تصور کیدلی شي ؟ټول ثروتونه اودعالم ټول عزتونه ددې ویاړ په نسبت لکه یوڅاڅکی ددریاب په نسبت وي . پس خلک ولې د خدای ددې لوې فضل اواحسان څخه مخ اړوي؟په قران مجید کې ډیر ایتونه ،



---

د«دیدار دوعدی»دمنکرانو په باره کې نازل شوي دي. داایتونه ددې ښکارندوی دي چې دموعود دظهور

په لمړیو کې ،ډیر خلک دهغه دپیژندنې استعدادونه نه لري .یواځې دوخت په تیریدو سره به دهغه مقام وپیژني:

**وَاِنَّ كَثِيرًا مِّنَ الناسِ بِلِقَاء رَبِّهِمْ لَكَافِرُونَ .**

**دروم سورت،۸-ایت** ډیر خلک دپروردګار ددیداروعده دروغ ګڼي.

**وَيْلٌ يَوْمَئذٍ لِّلْمُكَذِّبِينَ الذِينَ يُكَذِّبُونَ بِيَوْمِ الدِّين وَمَا يُكَذِّبُ بِهِ ا لا كُل مُعْتَدٍ اثِيمٍ اذَاتُتْلَ عَلَيْهِ آيَاتُنَا قَالَ اسَاطِيرُ الْاولِينَ ..كَلَّا انـهُمْ عَن ربِّهِمْ يومئذ لمَحْجُوبُونَ. دمطففين سورت،۱۵-۱۰،ایتونه**

په هغه ورځ وای په هغه چا چې درواغ ئې ګڼل **!**یعنی هغه چاچې ددین ورځ په درواغو ګڼله. یوازی تجاوز پیشه اوګناهکاروخلکو هغه ورځ د درواغوحسابوله .هرکله چې زما ایتونه واوري، (دموعود ایتونه)بیابه وائي :«دادمخکنیو افسانې دي»...نه ، دارنګه نه ده **!** هغوې به په هغه ورځ دخپل پروردګار له (دیدار)څخه محروم وي.

**يَقُولُ ا لانسَانُ يَوْمئذٍ ايْنَ الْمَفَركَلا لَا وَزَرَ الَ رَبِّكَ يَوْمئذٍ الْمُسْتَقَر.**

**دقیامت سورت،۱۲-۱۰،ایتونه**

په هغه ورځ به انسان وائي :دفرار لارچیرته ده ؟حاشا
!پټن ځای نشته ! په هغه ورځ به دامن ځای ستا
دپروردګار په خواه کې وي.
**سَنُرِيهِمْ آيَاتِنَا فِي الْآفَاقِ وَفِي انفُسِهِمْ حَتى يَتَبَيِنَ لَهُمْ انهُ الْحَق اوَلَمْ يَكْفِ بِرَبِّکَ انهُ عَلَى كُلِّ شَيْءٍ شَهِيدٌ الَا انهُمْ فِي مِرْيَةٍ مِّن لِّقَاء رَبِّهِمْ .                دفصلت**
**سورت،۵۴-۵۳،ايتونه**
ډيرژردی. چې خپلې نښانې هم په عالم دهستی اوهم
دهغوې په نفس کې هغوې ته وښایم ترڅو هغوې ته په
اثبات ورسيږي. چې هغه (موعود مې )حق دی. ایا
کافي نه ده. چې پروردګار پخپله دهرشي شاهددی؟
بلې هغوې دپروردګار ددیدار په وعدې »شک لري.
**وَالذِينَ كَفَرُوا بِآيَاتِ اللهِ وَلِقَائهِ اوْلَئكَ يَسُوا مِن رحْمَتِي وَاوْلَئكَ لَهُمْ عَ ذَابٌ الِيمٌ.**

**دعنکبوت سورت،۲۳-ايت**
هغه کسان چې الهي ايتونه اودهغه ددیداره انکار کوي
.زما دفضل اورحمت څخه نااميده دي .دهغوې دپاره
دردناک عذاب مقدّرشوی دی.

**قَدْ خَسِرَ الذِينَ كَذبُواْ بِلِقَاء اللهِ وَمَا كَانُواْ مُهْتَدِينَ .**
**ديونس سورت،۴-ايت**
هغه څوک چې دپروردګار ددیدار دوعدې څخه انکار کوي. دګمراهانو له جملې څخه دي.
**كذلک يبطل الله اعمال الّذين هم كفروا و أشركوا و كانوا في مرية من لقاء ربّهمر بعد الّذی ظهر بکلّ الآيات .۷۹**
**حضرت بهاءالله**
دارنګه پروردګار دهغو کسانو «عملونه »چې دموعود څخه ئې انکار کړی دی. اوپه شرک کې لویدلي دي ،اودخپل پروردګار ددیدار څخه په شک کې دي.
وروسته کله چې دټولو ایتونو اونښانو سره ظاهرشو. باطل به ئې کړي.
**اللهَ يَفعَلُ بِهِم كَما هُم يَعمَلون و يَنْساهم كما نَسَوا لِقائه في اَيّامِهِ . ۸۰ حضرت بهاءالله**
دخدای رفتاراوچلند دهغوې سره لکه دهغوې رفتار دخدای سره دی : په همغه ډول چې دهغه ددیدار وعده

دظهور په وخت کې له یاده ایستلی وه ،خدای هم هغوې له یاده وباسي.
ځنی مفسرین وائي چې دخدای ددیدار وعده دبل عالم پورې اړه لري. یوازې په هغه دیار کې دخدای په دیدار کامیابه کیږو.دالاندی ایت دامطلب روښانه کوي:
**بَلْ بَدَا لَهُم ما کَانُواْ يُخْفُونَ مِن قَبْلُ .**
**دانعام سورت،۲-ایت**
بلې ،(وروسته له مرګ نه )هرڅه ئې چې له مخکی څخه پټول ،هغوې ته ښکاره شي.
وروسته ددې دنیا له سفر څخه اودپروردګار دحکومت اوعظمت دلیدلو څخه وروسته په هغه دیار کې ،ممکنه ده چې دهغه دلیدو دامکان څخه انکار وکړو؟دخدای په دیدار کامیابه کیدل په هغه دنیا کې دهرروح لویه ارزو وي .اوکه فرضاً روح انکار ته مخ واړوي ،دهغه انکار څه اهمیت لري؟اما دخدای دوعدو دتحقق څخه انکار په دي دنیا کې دډیر اهمیت وړ دی .ځکه که دخدای دوعدو څخه انکار وکړو. بې له دې چې پوه شو، دخدای نه موهم خدای مه کړه انکار کړی دی!دې لاندی ایت ته توجه وکړئ:
**ان مَا تُوعَدُونَ لآتٍ وَمَا انتُم بِمُعْجِزِينَ .**
**دانعام سورت،۱۳۴-ایت**

په یقین سره به دپروردګار وعده حقیقت پیداکړي.
اوتاسې به دهغې مخنیوی ونه کړی.
څه وعدې دي ـ خلک کوښښ کوي. چې دحقیقت څخه
ئې لرې پاتې کړي؟ایا په هغه دنیا کې به خلک ددې
جرئت ولري. چې دپروردګار دوعدې دسرته رسیدلو
سره مخالفت وکړي؟
**هغه علت چې ټول خلک ئې دپروردګار ددیدار څخه محروم کړي...دادی، چې یواځې په ګومان ئې بسنه کړې ده...۸۱**
**حضرت بهاءالله**

دډيرې حيرانتيا ځاى دى. چې ددې ټولو ايتونو اونښانو سره اوددې ټولو وعدو اوزيرو سره زمونږ دوخت ډير مسلمانان په شک اوشبهه کې دي. اوديقين اواطمنان څخه بې ګټې دي. دشک اوترديد دوادي، اوددډاډ اويقين دښار ترمنځ چندان فاصله نشته دى.
حضرت بهاءالله مونږ ته رازده کوي. چې زمونږ او خداى ته د نږدې لوړومقامونو ترمنځ فاصله ديوقدم نه زياته نه ده .اومونږ ته نصيحت کوي .ترڅوزمونږ دالنډ سفر په دى دنيا کې پاى ته رسيدلى نه وي.
فرصت غنميت وګڼو اومقصد ته درسيدو لپاره دخپل پيدايښت څخه غفلت ونه کړو. لمړى قدم ددې فاني اوژرتيريدونکى نړۍ څخه پورته کړو. اوبل قدم په همشني جهان کې کيږدو.
پيغمبرانو له مخکې څخه خبر راکړى دى. چې زمونږ زمانه دناامیدى دزياتيدو زمانه ده .
ډير مؤمنان دپروردګار دلوى غوره شوي دظهور خبر چې داسماني ايتونو لوى زيرى دى. له نظره غورځوي .ځنى نور ،وروسته داوريدلو ددې خبر څخه انکار کولو ته پورته کيږي .ددې نااميديو اوددې انکارونو په کراتو په قران کې وړاندوينې شوي دي :
**وَالذِينَ كَفَرُوا بِآيَاتِ اللهِ وَلِقَائَـهِ اوْلَئكَ يَسُوا مِن رحْمَتِي وَاوْلئَكَ لَهُمْ عَذَابٌ الِيمٌ.**

**دعنکبوت سورت، ۲۳-ایت**

هغه کسان چې د الهي ایتونو،دخدای د دیدار اوملاقات د(وعدې )نه انکار کوي. زما فضل اورحمت ته امید نه لري .هغوې ته دردناک عذاب مقرر شوی دی.

**ووائې اې بنده گانو !دهغه څه سره چې پروردگارئې نصیحت کړی دی، یوځای شی .نن ورځ ددیدار اونزدیکت ورځ ده. اودرحمت اوبخششونو ورځ ده .۸۲ حضرت بهاءالله**

**نن ورځ لویه ورځ ده اودتوحید په رڼا روښانه ده.۸۳ حضرت باب**



---

---

**هغه لویه ورځ ده. بې مثاله او بې شانه ورځ ده .**

**ارمیا: ۳۰سورت، ۷-ایت**

ولې اکثره مسلمانان ددې لوی خبر په اوریدو اوددې بې مثاله اوبې شانه وعدې په سرته رسیدلو سره تحقیق

لپاره نه پورته کیږي ؟ولې دخوښې اوخوشحالې پرځای دناامیدۍ اوناکامۍ خواته ځي ؟ددې مسئلی ځواب لپاره ځانته کتاب ته ضرورت دی .دې څوټکوته توجه وکړئ:

- دجهان اجتماعي نظم دخرابیدو په خاطر ،ډیر خلک په بدبینۍ اوناامېدۍ معتاد اوعادت شوي دي.
- ډیری مؤمینانو دهغې جملې نه مسلمانانو دبې دینۍ لار غوره کړې ده.
- مسلمانان وروسته درسول اکرم څخه دبل پیغمبر راتللو ته امید نه لري.
- دخدای دیدار ته امید واري په دې دنیا ځه اسانه کارنه دی .ددې امیدواری لازمه دپروردګار په وعدو کلک اوخلل نه منونکی ایمان دی .زمونږ په عصر کې مروجه ناامیدي، اوبدبیني یوه خطرناکه اوساري ناروغي ده .مونږ په امید سره ژوندي یو. اودخدای په مینې خوښ اویا بنده یو.دامیدحس مړه کیدل یعنی دژوند سره دمینی مړه کیدل دي.

پروردګار زمونږ عاشق دی. اومونږ ئې دعشق په خاطر پیداکړی یو.ایا ممکنه ده چې عاشق خپله معشوقه له یاده وباسي ؟مهربانه پروردګار په ټول

قران کې ددیدار وعده تائید اوتکراروي. اوحتی دهغه مسلمانانو سره چې خپل زړه ته دشک لاره ورکوي. اوپه نااميدی اصرار کوي. اخطار ورکوي، چې که ددې وژونکو زهرو څخه خپل ځان اوروان خلاص نه کړئ،د«سرگرداني په گرداب کې »به په خپله ولویږئ ،ځکه په عالم دعشق اوايمان کې فشار اوجبر په کار نه دی:

**فَنَذَرُ الذِينَ لاَ يَرْجُونَ لِقَاءنَا فِي طُغْيَانِهِمْ يَعْمَهُونَ .**

**ديونس سورت، ۱۱-ایت**

هغوې چې زماددیدار امید نه لري. همداسې پرېږدم. ترڅوپه خپله سرغړونه کې (دخدای په وعدې نه ایمان)سرګردانه پاتې شي.

هغه کلمې چې د«دیدار»او«لقا»په ایتونو کې دبلې هرې کلمې نه زیات تکرارشوي دي،«دامید واری»او«ناامیدی»کلمې دي:

| | | |
|---|---|---|
| دکهف سورت،۱۱۰ – ایت | **يَرْجُولِقَاَءَ رَبِّهِ** | دپروردګار دیدارته امیدوار |
| دعنکبوت سورت،۵- ایت | **يَرْجفولِقَاَءَ الله** | دپروردګار دیدارته امیدوار |
| دیونس سورت،۱۱- ایت | **لاَيَرْجُونَالَقَاَءَ نَا** | زمادلیدلو امیدنه لري |
| دعنکبوت سورت،۲۳- ایت | **كَفَرو بَايات الله ولقائِه أوُلَئِكَ يَئسُوا** | ددیدار دوعدې اوایتونو منکرین امید نه لري. |

امید څومره دزړه پورې اوله خوښې ډک دی.

اوناامیدی ترکومه پورې دخفګان سبب، اودژوند سره دمیل اودمینې دریښو غوڅول دي.هغه څوک چې په بل جهان کې دژوند امید نه لري. اوهم په دې دینا کې دبل پیغمبر دراتلو امید نه لري .له همدې ډلې څخه وي.

پروردگار یوځل بیا،زمو دعصر دموعود له ژبې مونږ ته نصیحت کوي .ترڅو چې فرصت لرو،له نااميدې څخه ځانونه خلاص کړو. اوداميد رڼاپه زړه کې پیداکړو.

دالاندی وینا څوځو ځلی ووائې. ترڅو دپروردګار په محبت چې دخپل هربنده سره ئې لري،پوه شی:

**اې زما بنده!اې حرکت کوونکې خاورې!زه له تاسره ځومره مینه لرم. اوته له ماڅخه مایوسه ئې. زه په ټولو حالتونو کې تاته نږدې یم. اوته په هرحالت کې له ماڅخه لرې ئې.ماستا لپاره بې زواله عزت خوښ کړی دی. اوتادخپل ځان لپاره بې انتها ذلت خوښ کړی دی. ترڅو چې وخت باقي دی. رجوع وکړه، اوفرصت له لاسه مه ورکوه.۸۴**

**حضرت بهاءالله**

دقران ایتونه حکایت کوي چې ډیر خلکو دنااميدی له حده هم قدم پورته ایښی ،دقران وعده ئې یعنی (دخدای ددیدار)زیری ئې دروغ ګڼي.

---

پروردګار دې منکرینو ته اخطارورکوي. چې دهغوې دژوند نتیجه په دې جهان کې په غیر دضرر اونقصان څخه بل څه شی نه دی:

**قَدْ خَسِرَ الذِينَ كَذبُواْ بِلِقَاء اللهِ وَمَا كَانُواْ مُهْتَدِينَ .**

**دیونس سورت،۴۵-ایت**

څوک چې دپروردګار ددیدار وعده دروغ ګڼي. دنقصان کوونکو، اوګمراهانو څخه دی.

**اولَئكَ الذِينَ كَفَرُوا بِآيَاتِ رَبِّهِمْ وَلِقَائهِ فَحَبِطَتْ اعْمَالُهُمْ .**

**دکهف سورت،۱۰۵-ایت**

هغوې هغه څوک دي. چې پروردګار نښانې اودهغه ددیدار «دوعدې »څخه ئې انکار کړی دی.دهغوې نیک عملونه باطل اوبې ارزښه دي.

ښکاره ده. چې د«دیدارایتونه»چې کولای شي. هغه دامید ایتونه هم ونوموي. دټول جهان خلکو لپاره

خطاب دی. په ځانګړې توګه دمسلمانانو لپاره چې رسول اکرم اخرینی پیغمبر ګڼي .
هغه مسلمانان چې وائي پروردګار نورزمونږ لیدوته نه راځي :هغه مؤمنان چې دپروردګار احسان اورحمت دروازې تړلی وینی. اوخپل ځان ته وائې :په (۷)اوومه میلادي پیړۍ کې داسلام دپیغمبر درحلت سره ،ناڅاپه دپروردګار خبرې دانسان سره پای ته ورسیدې. له دې وروسته به بشر دخپل پروردګار خبرې وانه وري . پیړۍ به تیرې شي ،په زرهاو کلونوبه تیرشي امّا مهربانه پروردګاربه چپ پاتې شي .ځکه چې نور بشر تازه ښوونې ،ښه خبرته اودخپل خدای لارښوونې ته اړتیا نه لري.
زمونږ دعصر ددوه موعودو راتګ دبشر په تاریخ کې ترټولو لوی خبر دی. .قران هغه ته «لوی خبر»وائې .د«لوی »کلمه ددې ظهور ځانګرتیا ده. اویواځې ددې امر اوائین دصفت لپاره په کار وړل شوې ده .زمونږ دعصر خلک دپروردګار ددې زیری دتحقق اودداسې بې پایانه فضل اوعنایت څخه ،دارنګه په شوراوشوق راشي. چې په «صفت»کې رانشي .داسماني شهادت نامو په اساس ،دجهان څومره ډیرو بزرګانو اوعارفانو ددې ارزو لرله، چې په دې زمان کې ژوند وکړي.
ترڅو دالهي بخششونو اوروښانه لمرڅخه برخه من

شي .امّا هغوې چې دې ارمغان ته لاس رسی پيداکړی دی. اوقدرئې ونه پيژني. اوبهره ترې وانخلي،



---

دناامیدی سره به عادت واخلي.ناپوهي اوفقربه دالهي بخششونواوفضل څخه پورته وګڼي.

**کم من عالم اراد لقائ□ ف□ الاعصار الخالیة و ف□ هذا العصر فلمّا اظهرت نفس□ اعرضوا عنّ□ ...۸۵**

**حضرت بهاءالله**

څومره ډيرو علماو په تيرو وختونو کې اوپه دې عصر کې زما ددیدار ارزو لرله.

امّا کله مې چې مخ راښکاره کړ،له ماڅخه ئې مخ واړول.

د«خدای ددیدار»معنی چې یوپټ رازو،وروسته دزرو کلونو په تیریدو سره ،زمونږ دعصر دپیغمبر په لاس

د«خدای بهاء»چې دپروردګار دعظمت اوځلا ائينه ده.
ښکاره اومعلومداره شو.دادجشنونو اوخوښيو ورځ ده.
نه دمايوسی ډک ژمی اوناکامی ورځ:
**بې نيازه ذات په لوړ اواز فرمائي ،دخوښيو ډک جهان راغلی، غمجن مه اوسئ.**
**پټ راز راښکاره شوی،خپګان پرېږدئ.۸۶**
**حضرت بهاءالله**
**نن دستاينې ورځ ده. نه دالايش اوککړتيا وخت .ووايه ای دوستانو!خپل روان ددنيا الودګې اوککړتيا څخه پاک کړئ. اودخپل يکتا دوست په ستاينه شروع وکړئ ...اې دوستانو !له هجران څخه غمګين مه اوسئ ،دخوښيو ورځ ده. نه دخپګان وخت.۷۸**

**حضرت بهاءالله**
**اې دپروردګار بنده !دپروردګار «پيک اوځری»ښکاره دی ،دانتظار وخت نه دی.خپلی سترګې خلاصې کړه ترڅو ددوست مخ وګورې . فکر دې ونيسه، ترڅود پروردګار دفرښتې زمزمه واورې.۸۸**
**حضرت بهاءالله**
هغه څوک چې دبهائې ائين سره مخالفت کوي ،بې له دې چې پوه شي ،زمونږ دعصر ددوه موعودو اړوند

ایتونه سرته رسوي .له دي نظره هم دپروردګار
دوعدو په سرته رسولو کې نقش اورول لري.
**كلّ كلمة تكلّم بها الأعداء إنّها يكون بنفسها منادية لهذا النّبأ الأعظم و هادية لهذا الصّراط المستقيم .٨٩**
**حضرت بهاءالله**
هرکلمه چې دپروردګار دائین دښمنان په ژبه راوړي ،هغه کلمه پخپله ددې «لوی خبر»داعلان وسیله اود دې مستقیمې لارې دهدایت سبب کیږي.



---

---

**دښمنانو مخالفت په غیر له دې چې امرته ګټه ورسوي بل څه نه دي.۹۰**

**حضرت بهاءالله**

دقران دشهادت په اساس ،پروردګار مشرکین دخپل دیدار څخه منع کوي:
**فَمَن كَانَ يَرْجُو لِقَاء رَبِّهِ فَلْيَعْمَلْ عَمَلًا صَالِحًا وَلَا يُشْرِكْ بِعِبَادَةِ رَبِّهِ احَدًا.**

**کهف سورة، ۱۱۰-ایت**
هرڅوک چې دپروردګاردیدار ته امید لري. باید نیک عملونه ترسره کړي.څوک دپرورګار په عبادت کې شریک نه کړي .یعنی (مشرک نه وي).
**(پروردګار )مشرکین دخپل جمال دلیدو څخه منع کړی دي.۹۱ حضرت بهاءالله**
د«مشرک »کلمه په الهي اثارو کې حداقل په دوه معناګانو سره استعمال شوې ده:
- هغه کسان چې دپروردګار په وحدانیت عقیده نه لري.
- هغه کسان چې دپروردګار دموعود دپیژندنې لایق نه دي ،اودهغه څخه انکار کوي.

په همغه ترتیب چې په (۲۶)فصل کې به ئې په تفصیل سره وګورو،دپروردګاردپیغمبرانو پیژندنه ډیر شرایط لري .پروردګار خپله بشکلې څیره هیڅکله نامحرموته نه وښائي!

# ديهودو قوم سره

## د«ديدار»وعده

اسماني كتابونه ،نه يوازې زمونږ دموعود ظهور دخداې ظهور ګڼلى دي،دهغو دزمان اوعصر ظهور ئې هم د«خداى ورځ »ګڼلې ده .دقران دشهادت په اساس ،پروردګار حضرت موسى ته دارنګه خطاب وکړ:

**ذَكِّرْهُمْ بِايامِ اللهِ.**

**دابراهيم سورت،۵-ايت**

د«خداى ورځې»دهغوې (داسرائيلو قوم)په ياد راوړه.

---

☆ حضرت باب دپروردګار ددې وعدې ته په اشارې سره فرمائې :

**و كذلک نوح الیک و ال النّبيّين والمرسلين من قبلک ان انذروا النّاس لايّام الله فانّ اجل الله لات والله غنّ حميد .**

**كتاب الروح ،نسخه خطي،۴۶-ايت**

**“روز خدا ”خواهد آمد .آن روز نزدیک است .**
**کتاب یوئیل :۲سورة ، ۱-ایت**
د«خدای ورځ»به راشي هغه ورځ نږدې ده.
پروردګار دابنه خبرمسلمانانو ته هم ورکوي:
**فانا قد نزلنا من عندنا بشراً مثلکم لیذکرکم بایام الله ...**
**۹۲ حضرت باب**
مایوانسان (رسول اکرم)ستاسې په شان له خپله طرفه درولیږل ترڅو«دخدای ورځې»تاسې ته درپه یادکړي.
په قران کې هرمطلب دپروردګار سره دانسان داړیکې په اړوند یاپه پرده اویاپه ښکاره په تفصیل سره بیان شوي دي:
**وَتَفْصِيلَ کُل شَيْءٍ.**
**دیوسف سورة،۱۱۱-ایت** دهرشي
تفصیل په هغه کې شته دی.
په هغه کتاب کې چې کولای شئ. هغه د«الهي علومو ددایرة المعارف »ونوموئ ،هیڅ یوه وعده دپروردګار

دظهور دوعدې په څیر په صراحت سره عنوان شوی نه ده.
**ثُم آتَيْنَا مُوسَ الْكِتَابَ... لعَلهُم بِلِقَاء رَبِّهِمْ يُؤْمِنُونَ .**
**دانعام سورة،۱۵۴-ایت** بیامې موسی ته کتاب ورکړ...شاید چې پیروان ئې د«خدای په «دیدار»یقین وکړي.
**وَلَقَدْ آتَيْنَا مُوسَ الْكِتَابَ فَلَا تَكُن فِي مِرْيَةٍ مِّن لِّقَائِهِ وَجَعَلْنَاهُ هُدًى لِّبَنِي اسْرَأِيلَ.**

**دسجدي سورة،۲۳-ایت**
موسی ته مې کتاب ورکړ.پس دهغه د«دیدار»په باره کې شک مه کوه .هغه مې دبنی اسرائیلو لپاره دهدایت وسیله وګرځول.
دهغه «دیدار»دچا«دیدار»ته اشاره ده ؟کوم «دیدار»دی، چې خلک په هغه شک کوي ؟
دادیدار دنورو ډیرو د«دیداردایتونو»په شان دموعود ظهور ته اشاره ده.
وروسته دوحې ژبه خبر ورکوي. چې دبنی اسرائیلو له منځه به یوه ډله موعود پیژني اودنورو په هدایت به لاس پورې کړي:
**وَجَعَلْنَا مِنْهُمْ ائمةً يَهْدُونَ بِامْرِنَا لَما صَبَرُوا وَكَانُوا بِآيَاتِنَا يُوقِنُون .دسجدي سورة،۲۴-ایت**

دهغوې (یهودیانو)له منځه مومبلغین ټاکلي دي. چې زما دحکم پراساس خلکو ته هدایت وکړي .ځکه هغوې صبرناک ؤ اوزمونږ په ایتونو ئې یقین لرل. دقران دې وړاند وینې هم حقیقت پیداکړی.ډیرو یهودیانو په بهائي ائین ایمان راوړی دی. اوپه همدې وجه رسول اکرم ته دخپل ائین دپیغمبر په شان دقدر په سترګه ګوري. دامؤمنان دجهان دخلکو په هدایت کې دهغې جملې نه دجهان مسلمانانو لپاره په کوښښ کې ؤاووي به.

**عجبه داچې دخلیل ویناء اودکلیم وارثه کامیاب شواودپروردګار دبخشش دبحرڅخه ئې چښناک وکړ....لکن هغه غافل حزب (شیعه ګان)تراوسه غافل**

**اومحجوب پاتې شوي دي.۹۳**

**حضرت بهاءالله**

که فرض کړو. چې د«خدای وعده»دحضرت موسی سره پیل شوه،دهغې وعدې داظهار دوخت څخه دهغې دتحقق تروخته پورې د(۳۰۰۰)دری زرو نه زیات کلونه وخت ونیو. په دې خاطر مخکنیو پیغمبرانو دخپلو پیروانو څخه غوښتي دي. چې ددې بې شانه اوبې مثاله وعدې دتحقق تروخته پورې صبر ولري.

اودامید څخه لاس وانخلي :

**وَلِرَبِّكَ فَاصْبِرْ .**

**دمدثر سورت،۷-ایت** دپروردګار راتګ ته صبر وکړئ.

**منتظر آمدن خدا باشید .صبر کنید تا بیاید.**

**مزامیرداود،۳۷صل،۷-ایت**

دخدای دراتګ منتظر اوسئ .صبر وکړئ. ترڅو راشي.

په همغه ترتیب چې ومولیدل. هغه یهودان چې د«خدای ددیدار»دافتخار څخه برخه من کیږي،دوه صفته لري.«صبر»او«باور»(۲۴: ۳۲).

دخدای ورځ لویه ورځ ده. چې دعالم سترګو دهغې مثل نه دی لیدلی:

**لِيَوْمٍ عَظِيمٍ يَوْمَ يَقُومُ الناسُ لِرَبِّ الْعَالَمِينَ .**
**مطففين سورة،(۶-۵)،ايتونه**
لويه ورځ هغه ورځ ده. چې خلک دجهان پروردګار مخ ته ودرېږي.



# دپروردګار په وړاندې دحضرت بهاءالله عاجزي

یوځل بیا دتاکید لپاره ،لازمه ده. چې یادونه وکړو.
چې د ردیه لیکونکو پرخلاف ،
بهائیان حضرت بهاءالله خدای نه ګڼي . دخدای په
وړاندی دهغه بنده ګي اوحتی مؤمنانو لپاره په ټولو
اثارو کې دځلیدونکی لمر په شان ښکاره ده:

**دابنده اودامظلوم شرمیږي. چې خپل ځان لره دهستې اووجود نسبت ورکړي. پورته مقامونه خوپخپل ځای پریږده.لیدونکی انسان کله چې دځمکې پرمخ تګ کوي،خپل ځان خجله ګوري. که څه هم په یقین اوښکاره سره پوهیږي.چې دنعمت عزت،لوړوالې او دهغه داقتدارعلت دالله په اراده دی. ځمکه دټول عالم دقدمونو لاندې ده.څوک چې په دې مقام پوه شو.البته هغه دکبر،غروراودښمنې څخه خلاص اوپاک دی.۹۴**

**حضرت بهاءالله**

**دې مظلوم...د«لااله الاّهو»بیرغ پورته کړ.۹۵**

**حضرت بهاءالله**

**دعَلَم والاوڅخه نه یم .بلکه داعنایت چې ظاهر شوی دی. دپرودګار دفضل څخه دی. اوزه دهغه فضل مستحق نه یم.۹۶**

**حضرت بهاءالله**

دهیڅ یوسره مې په امر ویاړ نه دی کړی. اوپه هیڅا مې ځان لوړنه دی ګڼلی .دهر چاسره مې په ډیره مهربانې خبرې کړې دي .اودهر چالپاره رایګان ملګری اودوست یم. **دفقیرانو سره دفقیرانو په شان یم. اودعلماو اولویانو سره په پوره تسلیمې اورضا مندې کې وم.۹۷**

**حضرت بهاءالله**

په ډیرو الواحو،لیکنواو خطابو کې خپلو پیروانو ته حضرت بهاءالله خپل ځان «خادم ،اوکله «دابنده»او«داذلیل بنده»ویلی دی.

**دهغې ځمکې دوستان دهغود جملې څخه دا خادم خدای پاک په لوئې سره یادولو ته ورسوي...۹۸**

**حضرت بهاءالله**

دحضرت بهاء خضوع اوخشوع یا کمیني اوعاجزي په ټولو ایتونو کې دورځې په شان ځلانده اوروښانه ده:

**و عزّتک یا الهَ الکائنات و مقصودَ الممکنات أحبّ أن أضعَ وجهی علی کلّ بقعةٍ من بقاع أرضک لعلّه یتشرّف بمقام تشرّف بقدوم أولیائک .۹۹**

**حضرت بهاءالله**

ستا په لویوالی مې قسم دی، اې دخلقتونو پروردګاره ! ډیر مې خوښیږي. چې خپل ځان مې ستا دځمکې هرې نقطې ته ورسوم ،ترڅو ستا ددوستانود پښو خاورې شم .

**پروردګار په دې پوه اوشاهددی. چې په غیر دهغه د رضا مې بل څه نه غوښتي ، اونه به ئې وغواړم ۱۰۰.**

**حضرت بهاءالله**

**اې ابدي پروردګاره !ته شاهد اوپوه ئې. چې دابنده په هرحالت کې په غیر له ستا درضا نه دبل څه شي غوښتونکی نه ؤ.اوانشاء الله چې ستا دعنایت په مرسته به دبل څه شي غوښتونکی نه وي ...دابنده کله ددې لایق دی. چې کلمات ئې ښکلي اومقبول وي.اویا دی دهغه بیان ذکر وشي .پخپله نیست**

**اونابود څنګه کولی شي. دهستی عَلَم پورته کړي؟۱۰۱**

**حضرت بهاءالله**

**دې غلام پخپل ژوند کې په غیر له ستا د خاصې بنده ګې نه بل څه شی سره مینه نه لرله. فوالّذی نفسي بیده بنده ګي زما دزړه مینه وه.۱۰۲**

**حضرت بهاءالله**

**لانّ□ عبد آمنت به و برسله و صفوته و لا اجد لنفس□ من وجود لانّه قد بعثن□ بالحقّ و ارسلن□ عل□ العالمین...هل تظنّ بانّ□ انطق من تلقاء نفس□ او ا کون موجودا بوجودی لا فوربّ العالمین بل یحرکن□ ارياح مشیّته کیف شاء و اراد .۱۰۳ حضرت بهاءالله**

زه هغه بنده یم. چې په خدای دهغه په پیغمبرانو اوغوره شوو باندی ایمان لرم .دخپل ځان لپاره وجود نشم پیداکولای .پروردګارزه حیران کړم اودجهان خلکوته ئې ولیږلم ...ایا ګمان کوی. چې زه دخپل ځان نه خبرې کوم. اوپه خپله رامنځ ته شوی یم ؟ دجهانیانو په پروردګار مې قسم دی. چې دارنګه نه ده . دالهي ارادې نسیم په هغه ډول چې غواړي ماپه حرکت راوړي.

پروردګار ته د بنده ګې اظهار کول، دټولو پیغمبرانو رسم اولاره ده:

**دهيڅا لپاره به هلته يار اومددګار نه وي، چې په هغه طريقه دبنده ګې په هغه ځاى کې ظاهر شي...ته به وائي يوازې خپل ځان نشت اونابود ګڼلى دى. اوخپل ذکر ئې په هغه ځاى کې شرک ګڼلې دى.۱۰۴**
**حضرت بهاءالله**



**دعوا ما عندکم من الاوهام ثم استمعوا ما ينطق به لسان ربکم العزيز العلام .ال□ مت□ تتبعون الهوى قد اشرقت شمس الهدى ان اقبلوا اليها مقدسين عما ذکر من قبل من علمائکم تالله هذالظهور الله...لايعرف بما عندکم من کلمات اهل الجدال تقربوا اليه بعيون نوراء و وجوه بيضاء کذلک امرتم ف□ ا لالواح من لدى ا لله المقتدر العليم الخبير .۱۰۵ حضرت بهاءالله**

دخيالونو ګمانونو څخه لاس واخلئ. اوهغه څه چې ستاسې دانا اوعزيز پروردګارپه ژبه راوړي واورئ . ترڅوبه دنفس اوهوس پيروي کوى؟ دهدايت لمر راختلى دى ،هغه ته مخ راواړوى ،اودهغه څه چې

مودخپلو علماو څخه اوريدلي دي. ځانونه پاک اوخلاص کړی . په خدای قسم دی. چې دادخدای ظهور دی ...هغوې چې جګړې ته مایل دي. دهغه دپيژندنې څخه عاجز دي .په روښانه سترګو اوپه پاکې څيره کې دهغه خواته نږدې شئ .په الواحو اوايتونو کې دارنګه دپروردګار لخوا تاسې ته امر شوی دی.

**انه لظهورالله بين عباده و طلوعه لمن في السموات والارضين قل ان الغيب لم يکن له من هيکل ليظهر...ينطق انني انالله لا اله الّا اناالعليم الحکيم .١٠٦**

**حضرت بهاءالله**

هغه [موعود]دخدای ظهوردی. هغه دبنده ګانو په منځ کې ،دځمکې اواسمانانواوسيدونکو لپاره ځليدونکی لمر دی .ووايه هغه څه چې په عالم دغيبو کې دي ،هيکل نه لري چې دهغه سره ظهور ته ورشي ...هغه غيبي وجود وائي :زه پروردګار يم ،اوپه غير له ماحکيم اوعليم بل پرورګار نشته دی .

**فاشهد کما شهدالله لنفسه قبل خلق السّموات والارضين باتّه لا اله الّا هو و انّ هذاالغلام عبده و بهاؤه .١٠٧**

**حضرت بهاءالله**

پس شهادت ورکړه ،په همغه ډول چې پرورګار مخکې دځمکې اواسمانونو دپيداکولو څخه شهادت

ورکړ. چې په غير دهغه بل خدای نشته دی. اوداځوان دهغه بنده اودهغه روښنائې ده .

**قد اتى من کان موعودا فى کتب الله ان انتم تعرفون قد انار افق العالم بهذا الظّهور الاعظم ان اقبلوا بقلوب نوراء .١٠٨**

**حضرت بهاءالله**

داسماني کتابونو موعود ظاهر شوی دی ،که ئې وپيژنئ .دعالم افق ددې لوې ظهور څخه روښانه شوی ،په پاکو زړونو سره ورته راشئ.



دخدای په نوم

---

---

حضرت بهاءالله په کراتو سره په سلهاو مناجاتو کې په راز اونياز کې خپل خالق ته دهغه دعظمت اولويوالی اودخپلې بنده ګي اوعاجزې پناه وروړې ده.

**هیځ «حق»په هیځ ظهور کې دخلکو په خیال نه دی ظاهر شوی. اوبرخلاف دخلکو دتوقع په اساس ظاهر شوی دی.۳۷**
**حضرت بهاءالله**

ځومره ډیر شیعه ګان منتظر دي. چې ددوې قائم دخیالونو په ښار جابلقا اوجابلسا په نوم دکوهی له عمق څخه جهان ته راشي .اوهغوې لره به دناڅاپه اوبې پایانه قدرت په اظهار سره دشمشیر په زور له بلاګانو څخه وژغوري .دې شیعه ګانو ته په خطاب کې وائي:
**ووایه !اې دګمراهې دوادي د لارې ګمراهانو !ستاسې په نزد د کوم یو محقق ګمان رښتینی ؤ.۳۸**
**حضرت بهاءالله**

وروسته د«خیالی ښار»دذکر نه فرمائي:

**هغه څه چې دهغه لوی نور ورکوونکی په ذکر سره یعنی دهغه قوم په منځ کې قائم ؤ یوه کلمه ئې دهغه له تحقق څخه نه لرله.۳۹**

**حضرت بهاءالله**

**اوفرمائې:**

**ډیر خلک دمخکنیو ګمانونو اولمړینو قصو په اساس دعالم دمقصد څخه محروم پاتې شوي دي،باید هغه څه چې دخلکو په لاس کې موجود دي ،دحکایتونو ،کلماتو اواشاراتو څخه قطع شي ،اودزړه له کومي خپل رحمن ته توجه وکړي.که یوڅوک مخکنیو ګمانونو ته منتظر وي. دابد لپاره به دهغه بې مثاله کوثر دصافو اوبو څخه ونه چښي.۳۰**

**حضرت بهاءالله**

نور خیالونه اوګمانونه چې دنورو دینونو دپیروانوپه منځ کې دي. دپیشوایانو دنقش پورې مربوط دي. ډیر مؤمنان په دې ګمان اوخیال دي. چې دهغوې ښه رهبران دهغوې پیشوایان دي. اوجنت ته درسیدو نقشه یواځې دهغوې په لاس کې ده. ایا داخلک په یادنه راوړي. چې ددین پیشوایان همیشه دپیغمبرانو دازار دهغوې څخه دانکار اوردولو سبب شوي دي؟ ایا اوریدلي نه دي. چې دپروردګار پیغمبران دظهور په شروع کې دې د

☆ زمونږ په عصر کې دغه دخيالونو ښار
د«چمکرانو»نوم پيداکړی دی.



قدرت صاحبانو ،دخپل منصب اومقام دساتلو لپاره دبلې هرې ډلې نه ډير دهغوې سره په ظلم کې اودهغوې دپيروانو په وژلو کې لاس لرل؟
دځوانو انجونو په داستان کې ډير پټ اوښکاره اسرار دي .دهغې جملې نه دغه درس اوداخطار: هغه خلک چې دپروردګار اودهغه دپيغمبرانو په پيژندنه کې حکمت اوعقل دخپل برخليک مدير اواومدبر ونه ګرځوي. ددې دنيا نه هغې ديناته دسفرنه وروسته

دپروردګار دسلطنت دروازې به دخپل ځان په وړاندې تړلې وګوري.
کله چې دامؤمينان ،همشنې جنت ته دداخليدو غوښتنه وکړي ،ناڅاپه پوهيږي، چې په هغه ديار کې «نااشنا اوغريب دي!» هغه ملائيکې چې جنت ته دننوتلو اختيارات دهغوې سره دي، هغوې ته نااشنا اوناپيژانده وائی:
**زه رښتيا وايم!زه...تاسې نه پيژنم ! حضرت مسيح (متی انجيل،۲۵فصل،۱۳- ايت**
ولې هغه مؤمينان داسې ځواب اوري؟حضرت مسيح جنت دناوې دجشن سره تشبيه کړی دی .ايا معقوله ده چې داماد او ناوې غريبان خپل دواده جشن ته دعوت کړي ؟
داناپوه پيروان چې روح ئې دعقل اوحکمت دغوړو ، دپوهې اوبينائې له وړانګو بې برخې ؤ اودې ،که په رښتينې پيغمبرئې پيژندلی وی ،اودهغه دستورونه ئې دزړه نه منلي وی. برعکس هغوې دهغه درضا مخالف عمل ترسره کړ.درجوع په وخت کې دمينې ،ايمان اوبنده ګې په لار کې داظهار په ځای هغوې لره غريب اونااشنا وګڼل. کارونه ئې ګرامي حساب نشو.هغه موعود دهغوې زړونو ته دداخليدو اجازه وغوښته،

❖ (په جنت کې)اویا(په دوزخ کې)اصطلاح ګانې
ډیرواسمانې کتابونو کې دنمود په شکل کارول
شوي دي.نه باید دهغوې ظاهري، معناګانو ته
وګورو. دا اصطلاح ګانې ددوزخ اوجنت مراتبو
اودرجو ته په اشارو سره هم کارول شوي
دي.حضرت بهاءالله په دې لاندې بیان کې دجنت
دروازې ته اشاره فرمائې:

**بشّرالنّاس بلقاء فی جنهّ الابهی وقد فتح بابهابالفضل علی وجوه المقبلین.**

**حضرت**

**بهاءالله(اقتدارات،۹۵- ۹۴ مخونه)**

په «جنت ابهی»کې دپروردګار ددیدار ښه خبرخلکوته ورکړه .دهغې دروازه دخدای دفضل اورحمت له مخې مؤمینانو ته خلاصه شوې ده.

امّا دروازه ئې ورته خلاصه نه کړه،دزړونو کورته ئې لاﺭ ورنکړه،اوشايد هغه به ئې په درواغواوريا سره متهم کړي وي. ايا داشنا رفتار داشنا سره ،اوددوست رفتار ددوست سره داسې وي ؟بلې هغوې يواځې په ژبه په خپلو پيغمبرانو ايمان لرل،امّا هغوې نه پيژندل .څنګه ممکنه ده اشنا ،اشناو نه پيژني ؟ ايمان په ژبه نه دی.دهر ائين په پيروانو کې داسې ډله پيداکولای شئ. چې دخپل پيغمبرپه حقانيت شاهدي ورکوي. امّا هغه ئې نه وي پيژندلې :

**ځنيو پيژندلي دي اوشاهدي ورکوي. اوځنې شاهدي ورکوي خوهغه ئې نه دی پيژندلی.۴۱**

**حضرت بهاءالله**

اوس هغه مؤمنان چې خپل موعود ته ئې اعتنأ نه ده کړی. هغه ئې غريب اوناآشنا ګڼلي دي،دخپل رفتار دنتيجی سره مخامخ شوي دي.په همغه ترتيب چې دخپل موعود سره ئې رفتار کړی دی ،دهغوې سره هغسې رفتار کيږي. په همغه ترتيب چې زړونه ئې دهغه په مخ وتړل، هغه هم دجنت دروازه دهغوې په مخ تړلې ده. ايا داعادلانه نه ده ؟

حضرت باب چې پخپل ظهور سره دمسیح
د«رجوع»وعده سرته رسوي،همدا اخطار ټولو
مؤمینانو ته په خاصه توګه هغو مسلمانانو ته چې له ده
څخه منکر دي. ورکوي:
**په هغه ورځ به ته ګومان کوې. چې دجنتیانو ... له
ډلې څخه ئې ،خو ...په اصل کې ستا ځای دوزخ دی
،اوته پخپله نه پوهیږي.۴۲**
**حضرت باب**
په جهان کې مختلفې عقیدې اوفکرونه دي .یواځې
مسیحیت په زرهاو ډلو ویشل شوی دی .ولې داخلک
په متضادو اومختلفو باورونو سره ،دهرې ډلې نه چې
وي ،څه بې دینه اوڅه بادینه ،خپل باور سره مینه
لري.اوهغه بهترین ګڼې ؟
**كُل حِزْبٍ بِمَا لَدَيْهِمْ فَرِحُونَ .**
**دمؤمنون سورت،۵۳-ایت** هرډله هغه څه چې لري
،ترې خوښ اوراضي دي.
حضرت باب همدا حقیقت په یوبل شکل سره تائیدوي
اوفرمائی:

**هرملت ته چې نظر واچوی دهغوې کسان وائي:«مونږئې دخدای لپاره کوو»اوحال داچې دخدای په خلاف ئې کړي دی.۴۳**

**حضرت باب**

«تصور،وهم گمان اوخیال»دادقدرت صاحبان ،دادوست نما دښمنان چې ډیرو خلکو په زړونو کې دامن اوامان ځای پیداکړی دی ،په کراتو سره په الهي دادگاه کې محکوم شوي دي .په همدی حالت کې ډیر مؤمینان څه یهودي ،څه زردشتي ،څه مسیحی ،څه مسلمانان هغوې دخپل ځان رښتیني دوستان گڼي ،دهغوې قضاوت په سترگو مني ،اوخپل همیشنی برخلیک هغوې ته سپاري .سل کاله ژوند کوي ،یوځل پوښتنه نه کوي:«ولې خلک پخپلو متضادو اومختلفو باورونو ،دخپلو عقاید په سموالي تاکید اویقین لري؟

**ډیر بنده گان دگومانونو سره مینه لري دگومان دبحر یوڅاڅکې دیقین پر بحر لوړ گڼي. دمعنی څخه محروم**

**دي. په نوم پورې تړلي دي.۴۴**
**حضرت بهاءالله**
**کله چې دالهي ورځې ګهيځ راورسيد. اوداسمان لمنې دظهور په لمر روښانه شوی،ټول تياره ګومانونه دلمر خاته په رڼا په پردو کې وليدل شو...هريو په کتاب پورې ځان نښلولی دی. دهغه منزل څخه محروم پاتې شوي دي.۴۵ حضرت بهاءالله**
**ووايه اې خلکو!نن ورځ هغه ورځ ده. چې بايد ټولی پردې وسوځوئ. او ګمانونه محو کړئ.۴۶**
**حضرت بهاءالله**
يوبل اصل چې په دې لنډ اوښکلي داستان کې حضرت مسيح مونږ. ته رازده کوي دادی:
بې عقلو انجونو دعقل والاانجونو ته وويل:«دخپل سهم تيلو څخه مونږ. ته تيل راکړئ!
زمونږ. چراغونو تيل خلاص کړي اومري.»دعقل والا انجونو په ځواب کې ورته وويل:
«نه !تيل دټولو لپاره کافي نه دي.»
ولې عقلمنو جينکو ونشو کولای دخپل سهم تيلو څخه کم عقلو جينکو ته تيل ورکړي؟
عقل  کالي نه دي. چې وکولای شئ، نوروته ئې بخشش ورکړي .

يواځې په تحقيق اوکوښښ کولای شئ، هغه په لاس راوړئ.



---

---

لمړنې ګام دهغه په لاس ته راوړلو لارکې ،معنوي استقلال اوازادي ده، پخپلو سترګو ليدل دي،پخپل فکر اوارادې سره دهغه پيداکول اوپيژندل دي:

**احب الاشياء عندی الانصاف..و انت توفق بذلك ان تشاهدالاشياء بعينك لابعين احد من العباد ...٤٧**
**حضرت بهاءالله**

زما په نزد ترټولو محبوب شی انصاف دی ...اوته به هغه وخت په هغه مؤفقه شې. چې هر شی پخپلو سترګو وګورې. نه دنورو په سترګو ....

هغه شخص ته خطاب چې دعقل اوانصاف د باور په ځای په ګومان باور کوي .دارنګه فرمائي:

**ناليدلي مه وايه. په ناپوهې ليکل مه کوه. ډيرژربه ته ،هغه اوزه ټول خاوروته رجوع کوو. ۴۶**

**حضرت بهاءالله**

ځومره له افسوس نه ډک دی، دهغو خلکو برخليک، چې ټول عمر ددې خيال شاته منډې وهي. هميشنی عزت اوخوښي دمال اوثروت په جمع کولو کې ګوري.داسرګردانه منډې وهونکي چې دباد شاته منډې وهي، دپروردګار دخوښيو اوښکلاګانو نه په دواړو جهانونو کې بې برخې دي:

**وَمَن كَانَ فِي هَذِهِ اعْمَ فَهُوَ فِي الآخِرَةِ اعْمَ .**

**دبنی اسرائيل سورت، ۷۲-ايت**

هرڅوک چې په دې دينا نابينا دی. په بله دنيا کې هم نابينادی.

## دعقل اوايمان رڼا

دقران مجيد په سورة حديد کې داسې ايتونه دي. چې د(عاقلو اوبې عقله جينکودداستان) سره ډير شباهت لري.ددې دوه اسماني کتابونو دمتشابه ايتونو مقايسه اوبررسي اموزنده ده .

**هغه نور چې دنوې ائين دمؤمنينو**
**په څيره کې ځليږي.**

**هُوَ الذِي يُنَزِّلُ عَلَ عَبْدِهِ آيَاتٍ بَيِّنَاتٍ لِيُخْرِجَكُم مِّنَ الظُلُمَاتِ الَ النورِ وَان اللهَ بِكُمْ لَرَؤُوفٌرحِيم .**

**دحديد سورت،۹-ايت**

هغه هغه څوک دی. چې پخپل بنده روښانه ايتونه نازلوي. ترڅو تاسې دتيارې ژوند څخه وژغوري.

رښائي ته منوورسوي .پروردګار په تاسې روف اومهربانه دی .

**يَوْمَ تَرَى الْمُؤْمِنِينَ وَالْمُؤْمِنَاتِ يَسْعَ نُورُهُم بَيْنَ ايْدِيهِمْ وَبِايْمَانِهِم بُشْرَاكُمُ الْيَوْمَ جَنَاتٌ تَجْرِي مِن تَحْتِهَا الْانْهَارُ خَالِدِينَ فِيهَا ذَلِكَ هُوَ الْفَوْزُ الْعَظِيمُ. دحديد سورت،١٢-ايت**

داسې ورځ به راورسي. چې مؤمينين به هغه نور چې ددوې په مخکې ځليږي وګوري. اودهغوې په ښي اړخ کې دابښه خبر دی:ستاسې ځای په هغوباغونواوبڼونوکې دی. چې دهغوې لاندې نهرونه جاري دي. دابخشش اوافتخار «لويه رښتينولي»ده . دپروردګار دائين منکرينو تمنا اوارزو ،وروسته ددې جهان له سفر څخه هغه هميشني جهان ته :

**يَوْمَ يَقُولُ الْمُنَافِقُونَ وَالْمُنَافِقَاتُ لِلذِينَ آمَنُوا انظُرُونَا نَقْتَبِسْ مِن نورِكُمْ قِيلَ ارْجِعُواوَرَاءكُمْ فَالْتَمِسُوا نُورًا . دحديد سورت،١٣-ايت**

هغه ورځ چې (په هميشني جهان کې )منکرين نوي ائين مؤمينينو ته ووائي:

صبروکړئ اومونږ ته فرصت راکړئ. ترڅوستاسې دنور څخه سهم واخلو.هغوې ته به ځواب ورکړل شي :«مخکينی [عالم]ته وګرځئ. ترڅو [پڅپل کوښښ]نور لاس ته راوړئ».

**شباهت**

دقران دایتونو اود(عاقلو اوبې عقله انجونو داستان)ترمنځ شباهت وښائي، چې قران اوانجیل یوه منشاء لري .دواړه کتابونه مونږ ته رازده کوي چې:

- همیشنې جنت ته دداخلیدو لپاره ،دعقل نوراو تیل باید زمونږ رهنما وي. دتقلید په تیاره کې، په تعصب اوناپوهې کې نشی کولای سمه لار پیداکړئ.



---

- هرانسان مسئول دی. چې دعقل اوخرد ارمغان پخپله لاس ته راوړي.

له نورو نشي کولای دابخشش په پور واخلي.

- دالهي رحمت اوسلطنت دروازه دهغو خلکو په وړاندی چې د«حکمت دتيلو»اود«عقل دچراغ دروښنائې»څخه بې برخې دي .دوامداره تړلې ده.

کله چې بې عقلو جينکو دروازه وټکوله چې دالهي سلطنت جشن ته داخلې شي،دخپل موعود مسيح څخه ئې واوريدل چې ئې وويل:«زه په حقيقت سره تاسې نه پيژنم!»نااشنا شرکت په نااشنا جشن کې په کوم رواج اوسنتو سره معمول دی، اوپه کوم سبب سره معقول دی ؟

د«دروازې»نه باندې پاتې کيدل ابدي محروميت اوتياره ده .اوله «دروازی»نه دننه په الهي سلطنت کې ميلمه کيدل دپروردګار په فضل اورحمت سره سرلوړي اوکاميابي ده .

- د«حکمت تيل»اود«عقل روښنائي»بايد په دې جهان کې په لاس راوړئ .له دې دينا نه سفر اوبيرته راګرځيدل دتيروخت جبران ممکن نه ؤاونه دی.

**هغه څه چې نابود شي. ابداً دهغه دراګرزولو قدرت نه ؤ.اونه به هيڅکله داسې قدرت پيداشي.۴۹**

**حضرت بهاءالله**

**دمؤمنینو اومنکرینو ترمنځ خبرې**

**په همیشنې جهان کې**

دحدید سورة ایتونو مطالعې ته ادامه ورکوو:

**يُنَادُونَهُمْ الَمْ نَكُن معَكُمْ قَالُوا بَلَ وَلَكِنكُمْ فَتَنتُمْ انفُسَكُمْ وَتَرَبصْتُمْ وَ ارْتَبْتُمْ وَغَرتْكُمُ الْامَانِي حَت جَاء امْرُ اللّٰهِ وَغَركُم بِاللّٰهِ الْغَرُور .**

**دحدید سورت،۱۴-ایت** هغه وخت به منافقین مؤمنینو ته غږ کوي. اووبه وائي:«ایا مونږ له تاسې سره نه ؤ»

مؤمنین به ئې په ځواب کې ووائي:تاسې خپل ځان ته بازي ورکړه ،دحدنه زیات صبر مووکړ.شک مووکړ ،اوپه خپلو دروغجنو امیدونومو ځان وغولول،د«خدای امر»ظاهر شو او«غولوونکو»تاسې دخدای دظهور په باره کې وغولولی.

توضیح:ددې ائین منکرین ددې جهان له سفر نه وروسته په همیشني جهان کې اود خپل دغمه ډک برخلیک سره ډیر سخت لاس اوګریوان شي .ځکه چې ټول عمر ئې خپل ځان دمؤمنینو دډلې نه حساب کړی دی.

اودخپل ځان لپاره ځای جنت ګڼي .اواوس دغمونو سره سردی .اوهمدا سبب دی. چې له مؤمینانو څخه پوښتنه کوي :«ایا له تاسې سره نه وو؟»مؤمنین اومنکرین په یوښار یومحل اوحتی په یوکور کې اوسیدل ؟اوس څه وشو؟ولې دیوبل نه جدا شوي دي؟ دوزخ چیرته ؟اوجنت چیرته ؟

حضرت مسیح هم همدغه اخطار خپلو پیروانو ته ورکړی دی:

داسې وخت به راورسي . چې دکور صاحبان به دروازه وتړي . هغه وخت به تاسې باندې ولاړ یاستې. دروازه به وټکوئ او غوښتنه به وکړئ . چې دروازه خلاصه کړئ...دروازه راته خلاصه کړئ! اما هغه به ځواب در کړي . چې زه تاسې نه پیژنم ! تاسې به ووائي:«مونږ له تاسره ډوډۍ وخوړه ،تازمونږ دښار په کوڅو کې تعلیم ورکول ولې مونږ نه پیژنې ؟هغه به بیا ورته ووائي: زه په هیڅ وجه تاسې نه پیژنم. اې بدکارانو له دې ځایه لرې شئ!

**هغه وخت به وګورئ. چې ابراهیم ،اسحق ،یعقوب اوټول انبیا دخدای په سلطنت کې دي .اوتاسې دباندې پاتې شوي یاستې ،دډیرې ناارامې په وجه به وژاړئ اوخپلې شونډې به وچیچئ .دټول جهان خلک راغلي دي ،دپروردګار دسلطنت په ضیافت کې به اشتراک اوګډون وکړي ،اما تاسې به محروم اوبې برخې پاتې شئ:**

**لوقا ۱۳فصل،۲۵- ۲۹ ،ایتونه**

هغه ایت چې مونږ بررسي کړ.(دحدید سورة،۱۴- ایت )دخلکو دبې اعتنائې علتونه دخپل موعود ددعوت به وړاندې هم ذکر اوبیانوي .دهغې جملې نه داپنځه (۵)علتونه دهغوې په یاد راوړي:

- «خپل ځان ته مو بازي ورکړه »فَتَنتُمْ انفُسَكُمْ .شاید دپیغمبرانو دانکار لپاره دامعمول ترینه لار په ټولو زمانو کې وه اوي به .انسان په کومو لارو خپل ځان ته فریب ورکوي ؟خپل ځان ته دروغ وائي. دروغ ویل دټولو بلاګانواوبدبختوسرمنشاء ده. دیو ضرب المثل په اساس «هیڅوک نشي کولای دخپل ځان نه مونږ ته بنه فریب راکړي.»

---

---

دایران دمسلمانانو په میلونه هاو نفرو ،دخپلو پیشوایانو څخه اوریدلی دي چې بهائیان «ګمراه کوونکی ضالّه اومضله ډله اوفرقه ده .»دې خلکو بې له کمترین تحقیق اوڅیړنې څخه دادروغ منلي دي. اوخپل ځان ته ئې فریب ورکړی دی.

- «دخپل حده زیات صبرمووکړ»**تَرَ بَّصْتُمْ** .صبر دانسانې لوړو صفتونو څخه دی .ایا دخیرپه کار کې هم صبرجایز دی؟باید په دې پوه شو. چې زمونږ عمر په دې دنیا کې ډیر لنډ اوزمونږ ژوند ډیر ژر تیریدونکی دی. باید هر څومره چې ژروې. خپل همیشنی برخلیک وټاکو .ځکه

چې کله له دې دنیا نه سفروکړو. په هغه دینا کې پښیماني بې ګټې ده .

- «شک مووکړ»**اَرْتَبْتُمْ**.

شک اوتردید د«اختیار اوازادی »هدیه زمونږ دلاسه تختوي اومونږ دپیغمبرانو دپیژندنې څخه لرې ساتي .دپروردګار دنقشې په اساس ،خپله راتلونکې په دې جهان کې وټاکو .که دپروردګار ددعوت په وړاندې ،له تصمیم څخه ډډه وکړو،دپروردګار ترټولو غوره هدیه ازادي اواختیار به له لاسه هسې لاړه شي.

- «په دروغجنو موخپل ځان ته فریب ورکړ»**غَرَتْکُمُ الْاَمَانِّي** .«خپل ځان ته دفریب ورکولو»لارې ډیرې دي. ځکه دقران دایتونو په اساس ،خلک چې دهرې ډلې څخه وي ،« هغه څه چې ورسره دي راضي اوخوښ دي.»هغوې په تیاره کې ژوند کړی دی. دتیارې سره ئې مینه پیداکړې ده. دپوهې اودانائې رڼا دهغوې ارامتیا له منځه وړي .ډیر خلک دثروت په پیداکولو اودقدرت اوشهرت په لاس ته راوړلو سره خوښ دي. اودهمیشنې خوښې په امید په دې جهان کې عمرتیروي،اوله دې غافل

اوبې خبره دي. چې دهغوې توقف  په دې دینا کې لکه یوه ثانیه دهغه ابدیت په برابر دی.

- «غولوونکې تاسې ته دخدای [دظهور]په وړاندې فریب درکړ»**وَغَرَّكُمْ بِااللهِ الْغُرور**.کوم کسان دخلکو داعتماد وړدي.اوکولای شي چې خلکو ته فریب ورکړي؟ په ټولو زمانو کې داډله ،ددین ملایان اوپیشوایان ؤ اودي. که یهودیان



---

---

یا مسیحیان داسلام دحقانیت په باره کې دخپلو پیشوایانو څخه پوښتنه وکړي ،څه به واوري؟ایا هغوې لره به تحقیق ته تشویق کړي ؟ایا مسلمان پیشوایان له دې قانون څخه مستثنا دي؟

- د«خدای امر ظاهر شو»جَاءَ اَمْرُاللهِ .داکلمې په ډیرې روښانتیا زمونږ دعصر ددوه موعودو (حضرت باب اوحضرت بهاءالله )ظهور ته اشاره کوي .په همغه ترتیب چې په کراتو تکرار شوي دي ،د«امر»کلمه دمهمو نښانو څخه د«قران لویه معما»اود هغه اسمانی کتاب دروښان ترینو اشارو څخه «بهائې امر»دی.

داکلمه په کراتو سره دحضرت باب اوحضرت بهاءالله په ایتونو کې زمونږ دعصر ددوه دینونواوائینو په توصیف کې راغلې ده:

**فطوبی لمن اتّبع أمرَ الله .۵۲**

**حضرت بهاءالله**

نیکمرغه دی. هغه څوک چې دامرالله څخه پیروي وکړي.

**قد ظهر امرالله .۵۳**

**حضرت بهاءالله**

امرالله په یقین ظاهر شو.

**ان تتّبعوا امر الله نغفر لکم خطیئاتکم .۵٤**

**حضرت باب**

که دخدای له امره پیروي وکړئ .ستاسې ګناهونه به وبخښم.

**فليبلغنّ امر الله ربّك ال□ كلّ شيء جودًا من عنده .**

**٥٥ حضرت باب**

«الهي امر»خلكو ته ورسوې دادهغه له لورې يو فضل دی.

**ما ننزّل حرفًا من ذلك الكتاب الاّ باذن الله الحقّ اتقوا الله ولا تشكّ وا في امرالله .٥٦**

**حضرت باب**

يو توری دهغه دکتاب څخه نه دی نازل شوی، مګر دخدای په اجازه، له خدايه وويرېږئ اودخدای په امر کې شک مه کوئ.

په دې بيان کې ،پيغمبران د«امرالله هيکل»سره تشبه شوي، چې په مختلفو جامو سره ظاهر شوي دي:

**ټول انبياء د«امرالله هيکل»لري.چې په مختلفو(قمائص) کميسونوظاهرشوي دي.٥٧**

**حضرت بهاءالله**

**دهميشني جهان په باره کې وينا**

**دپروردګار له لورې په دې اخطار سره خاتمه پيداکوي:**

**فَالْيَوْمَ لَا يُؤْخَذُ مِنكُمْ فِدْيَةٌ وَلَا مِنَ الذِينَ كَفَرُوا مَاوَاكُمُ النارُ هِيَ مَوْلَاكُمْ وَبِسَ الْمَصِير .**

**دحديد سورت، ۱۵-ايت**

پس نن ورځ له تاسې اوټولو منکرينو څخه «فديه»نه منل کيږي .ستاسې پناه ګاه (پټن ځاى)اوستاسې حاکم اوسروَرَ «اور»دى .څومره بدسرانجام اوبرخليک! دپروردګار دائين منکرينو ته دمخکېني اخطارنه وروسته چې هميشني جهان ته تللي دي،پروردګار ددې جهان مسلمانان مخاطب کړي دي. له هغوې څخه پوښتنه کوي:

**الَمْ يَانِ لِلذِينَ آمَنُوا ان تَخْشَعَ قُلُوبُهُمْ لِذِكْرِ اللهِ وَمَا نَزَلَ مِنَ الْحَقِّ وَلَا يَكُونُواكَالذِينَ اوتُوا الْكِتَابَ مِن قَبْلُ فَطَالَ عَلَيْهِمُ**

**الْاَمَدُ فَقَسَتْ قُلُوبُهُمْ وَكَثِيرٌ مِّنْهُمْ فَاسِقُونَ .         دحديد سورت، ۱۶-ایت**

ایا هغه وخت نه دی رارسیدلی چې مؤمنین خپل زړونه د«ذکرالله »په وړاندې اوهغه څه چې دالله دلوری نازل شوي دي متواضع کړي ؟[کوښښ وکړئ]ترڅو دهغې ډلې خلکو څخه نه وی. هغوې ته چې اسماني کتاب ورکړل شوی دی ،امّا په تدریج دهغوې زړونه سخت شول؟ډیرداخلک فاسق ،سخت زړي اونافرمانه دي.

توضیح :لازمه ده پوښتنه وکړو. چې مخکېنی ایت مسلمانانو ته خطاب دی. اوکه منکرینو ته ؟ دایت شروع په روښانتیا سره وښائي، چې دهغه مخاطب مسلمین دي، نه منکرین :

**اَلَمْ یَانِ لِلذِینَ آمَنُوا...**

- ایا هغه وخت نه دی رارسیدلی، چې مؤمنین ...

کوم ډول مسلمین ددې وینا مخاطب دي ؟هغه مسلمین چې :

دذکرالله په وړاندې متواضع نه دی.

---

❖ فدیه :هغه چې دګناه دبخښلو لپاره ورکول کیږي.

- دهغه څه په وړاندې چې نازل شوي دي الهي اياتونه، متواضع نه دي.
- دنورو امتونو په شان چې دخپل موعود څخه ئې انکارکړی دی .سخت زړي دي.
- فاسق اونافرمانه پيروان دي.

دانښاني يواځې دهغو مسلمانانو په باره کې صدق کوي،چې دموعود څخه ئې انکار کړی دی ،خپل ځانونه ئې غټ اوهغه ئې وړو کي ګڼلي دي.په دې برسيره ،دايت دقايم موعود ،دحضرت باب لقب يو ځل بيا مونږ ته راکوي .په همغه ترتيب چې مخکې پرې بحث وشو .د«ذکر»او«ذکرالله »کلمې د«قران

دمعما»مهمې نښانې دي. دادوه لقبه دقایم موعود په باره کې دکتاب مجید په ډیرو ایتونو کې راغلي دي. حضرت باب په کراتو سره دپروردګار له لوري په دې دوه لقبونو مخاطب شوي دي .پروردګار په دې ایت کې دنورو ډیرو ایتونو په شان دمسلمانانو څخه غواړي. چې دمخکنیو امتونو په شان چې دخپل موعود څخه ئې انکار کړی دی ،سخت زړي مه اوسئ.

**ټول د هوا اوهوس په پردو کې دبهاء دلمر ددرک کولو څخه پټ پاتې شول.۵۸**

**حضرت بهاءالله**

ددې لپاره چې هیچا ته شک اوشبه پاتې نشي.دحدید سورة په پای کې پروردګار یو ځل بیا مسلمانانو ته یوه بله نښانه ورکوي:

**يَا ايهَا الذِينَ آمَنُوا اتقُوا اللهَ وَآمِنُوا بِرَسُولِهِ يُؤْتِكُمْ كِفْلَيْنِ مِن رحْمَتِهِ وَيَجْعَل لكُمْ نُورًا تَمْشُونَ بِهِ وَيَغْفِرْ لَكُمْ وَاللّٰهُ غَفُورٌرحِيمٌ . دحديد سورت،۲۵-ايت** اې مؤمنانو ! له خدایه وویریږئ. اودهغه په رسول ایمان راوړئ ترڅو تاسې سره دوه ځلې په خپل فضل اوعنایت سره ممتاز او وویاړي : تاسې ته روښنائې وبخښي چې سمه لار

پرې پيداکړئ ،اوستاسې له ګناهونو تير شي
.پروردګار بخښوونکې اومهربان دی.
ښکاره ده ،مخکېنی ايت مؤمنينو ته خطاب دی
.اوفرمائي :«اې مؤمنانو !له خدايه وويرېږي اوپه
رسول ئې ايمان راوړئ.»ايا معقوله ده. چې په اسلام
باندې دمؤمنانو څخه وغواړو. چې دخدايه وويرېږي
اومسلمانان شي ؟که تاسې دخوښې چشن لرلی
اوحاضرينو ته مو ويلی وی:«اې دوستانو!زمونږ بلنه
دخوښې چشن لپاره ومنئ».



حاضرينو به څه فکرکړئ وئ؟هغوې به ډاډه شوي
وئ .چې يوبل دخوښې جشن دی. دامبارک ايت هم
مؤمنينو ته په پوره مهربانې ورزده کوي. چې يوبل
ظهور په مخکې دی .بايد باخبره وي. دادراتلونکې

موعود څخه انکار ونه کړي .اوفرمائې که په هغه ایمان راوړی ،دوه ځلی به دالهي فضل اوعنایت لاندی راشي:

- په دې دنیا کې دخدای نور بهاءالله ستاسې رهنما دی.
- په هغه دنیا کې په دې «لوی پیغمبر»ستاسې دایمان په خاطر ،دپروردګاردلطف اوبخشش لاندې راځې .دحضرت بهاءالله دوعدې په اساس هغه خلک چې دتقلید دبند څخه خلاصون پیداکړې اودائین ومنی ،دالهي دفضل اورحمت په سرچینه دمخکنیو ګناهونو څخه پاک اوسپیڅلي شي.

**پروردګار دهغه دکلام**

**څخه**

**کولی شي وپیژني**

**هذا یوم فیه کشف الجمال و ظهر النور .٥٩**

**حضرت بهاءالله**

داهغه ورځ ده. چې دپروردګار نور اوښکلا ښکاره شوه .

**قد جاء الوعد و ظهر الموعود .طوبی لمن سمع النداء و اجاب مولاه و ویل لکل غافل مرتاب .**

**حضرت بهاءالله**

وعده سرته ورسيده. اوموعود ظاهر شو.څومره نيکمرغه دی هغه څوک، چې دپروردګار غږ ئې واوريد. اودهغه بلنه ئې ومنله .اوواى پرهغه چا چې غفلت ئې وکړ. اوشک هغه منع کړ.

نن دژوندانه دکوثر اوبه ښکاره دي اوحقيقي روح موجود دی. کوښښ وکړئ ترڅو ددې بې منتهى فضل څخه برخه واخلئ.ددې مبارکې ورځې مثال نه واونه به وي.هغه چې له منځه لاړشي. تدارک بندوبست ئې ناشونې دی.

---

---

**دهغه محال تدارکات له منځه ځی .دافاني خادم شپه اوورځ دعا کوي چې حق جل جلاله دې تول مؤفق اوکامیابه کړي .انّه جَواَدٌکَرِیمْ... ۶۱**
**حضرت بهاءالله**
**ال□ مت□ تتبعون الهوی قد اشرقت شمس الهدی ان اقبلوا الیها مقدسین عما ذکر من قبل من علمائکم تالله هذا لظهورالله ...۶۲**
**حضرت بهاءالله**
ترڅو به دهوا اوهوس پیروان یاستئ ؟دهدایت لمر لګیدلی دی!هغه ته مخ واړوئ. اوهغه څه چې تیرشول. دخپلو علماو څخه مواوریدلي دي ،خپل روح پاک کړئ.
په خدای قسم دی !چې دادخدای ظهور دی...
**یا اهل الارض آمنوا بالنور الّذی قد انزل الله مع□ .۶۳**
**حضرت باب**
اې دجهان خلکو!هغه نور چې پروردګار پرمونږ نازل کړی دی. ایمان راوړئ.

**يا ايهاالنّاس لا تشكو فی نورالله ... ٦٤**

**حضرت باب**

اې خلکو! دخدای په نور کې شک مه کوئ...

دالاندې اشعار د مولوي د اوسني حال سره مناسب دي:

**بنمای رخ که باغ و گلستانم آرزوست**

**بگشای لب که**

**قند فراوانم آرزوست**

**زين همرهان سست عناصر دلم گرفت**

**شير خدا و**

**رستم دستانم آرزوست**

**جانم ملول گشت ز فرعون و ظلم او**

**آن نورِ روی**

**موسیِ عمرانم آرزوست**

**دی شيخ با چراغ همی گشت گرد شهر**

**کز ديو و دد**

**ملولم و انسانم آرزوست**

**گفتند« :يافت می نشود، جسته ا يم ما»!**

**گفت« :آنکه يافت**

**می نشود آنم آرزوست»!**

که څه هم شاعرنه يم. اوډيرکم شعرونه مې ويلي دي. اما دمولوي نور ښکلي شعرونه  اې قوم به حج رفته کجائيد ؟زه ئې دې ته رواداره کړم چې لاندې شعر پرژبه راوړم:

**ای قوم به حج رفته کجائید کجائید"**

**هم قائم و هم قبله و هم کعبه همین جاست**

**بیائید بیائید**

**تا چند گرفتار غم و رنج و بلائید**

**هم شادی و هم شاهد و هم شمع همین جاست**

**بیائید بیائید**

**ای امّت سرگشتهٔ اسلام کجائید**

**کجائید**

مقصود دل و جان همه اینجاست بیائید
بیائید
تا چند از این جشن و از این جمع
جدائید
هم ساق□ و هم ساغر و دلبر همه اینجاست
بیائید بیائید

ای مردم جوینده کجائید کجائید
آن یوسف گم گشته همین جاست بیائید
بیائید
تا چند گرفتارِ" من و ما و شمائید"
آن گلشن یکرنگ□ و توحید همین جاست
بیائید بیائید

ای مردم روشن دل و آزاده کجائید
کجائید
هرچه آزادیِ گفتار بخواهید همین جاست
بیائید بیائید
تا چند از این وضع اسفبار بنالید
داروی شفابخش همین جاست بیائید
بیائید

ای مردم آلوده به تقلید کجائید

کجائید

سرمنزل تحقیق همین جاست بیائید

بیائید



---

---

تا چند گرفتار خرافات و

خیالید

آن مهدی موعود همین جاست

بیائید بیائید

ای مردم شهدوست کجائید

کجائید

شاهنشه شاهان و بزرگان همه

اینجاست بیائید بیائید

تا چند به دوران بلند اختر

این خطّه ببالید

آن عقل جهان، فخر زمان، قبلۀ پاکان و بزرگان

همه اینجاست بیائید بیائید

ای قوم دل آزرده و افسرده کجائید

کجائید

جشن طرب انگیز همین جاست

بیائید بیائید

تا چند در این" روز خدا "در

خوابید

خورشید جهانتاب همین جاست

بیائید بیائید

ای مردم لب تشنه کجائید

کجائید

سرچشمه جان بخش همین جاست

بیائید بیائید

تا چند نظر بر خردجّال و ته چاه

نمائید

آن قائم موعود همين جاست بيائيد

بيائيد

# اومه برخه

## دقران مجيد اواحاديثو نورې

نشانې

**په دوه فصل کې :**

**۱.زمونږ دعصر ددوه موعودو القاب اونومونه په قران اواحاديثو کې**

**۲. احاديث څه وائي؟**

**که دابنده ګان ...دقران ايتونو کې وګوري ...دواقعې ټول کارونه به په دې ظهور کې که کلي اوياجزئي دي. دهغه په ايتونو کې ښکاره،کشف اودرک کولی شي.۱حضرت بهاءالله**

**دهغه څه چې له مخکې وويل شو. په دې وخت کې ښکاره دي .۲ټول هغه څه واقع شو چې له مخکې ...خبر ورکړی دی .۳**

**حضرت بهاءالله**

**په مخکنيو کتابونو کې ټول هغه څه چې اوس ظاهردي.ذکر شوي دي.۴حضرت بهاءالله**

**وَكُل شَيْءٍ فَصلْنَاهُ تَفْصِيلاً .**

**دبنی اسرائيل سورت۱۲-ايت**

هر شی موپه پوره توګه تفصيل کړي دي.

**زمونږ دعصر ددوه موعودو القاب اونومونه**

**په قران اواحاديثو کې**

دزخرف سورة څو لمړني ايتونه ،دحضرت باب دظهور څونښانې، ځنې له هغو نښانو څخه به بررسي کړو. اووبه ګورو. چې ايا دهغه موعود دظهور سره موافقې اوبرابرې دي؟

**دزخرف سورة،۱- ايت حمّ**

توضيح:داايت چې يواځې له دوه تورو څخه جوړدی.دحضرت باب دنوم نښانه راکوی.دا ايت «محّمد»ته اشاره کوي،څلورم ايت «علی»ته .

## اب نوم دمحّمد حروف : م، ح، م، د
## رمز: ح، م

**دزخرف سورة،۲- ایت : وَالْکِتَابِ الْمبینَ.**

قسم په قران چې «روښانه اوښکاره »کتا ب دی.
توضیح:داایت دقران لوړ مقام رازده کوي.اومونږ تشویقوي چې دهغه داسراروپه کشف کولو کې کوښښ وکړو.ولی پروردګار قران ته ښکاره اوروښانه کتاب ویلی،اوحال داچې مونږ پوهیږو ،درموز اواسرارو منبع ده ؟دپروردګار دحکم او حکمت په اساس ،ددې اسرارو منبع څخه ،هرڅه چې لازم دي ،په ټاکلی وعده مونږ ته ښکاره اوروښانه شو.زمونږ معنوي رزق دخدای په لاس دی. هرکله چې هغه رزق ته اړتیا لرو. په ټاکلې اندازه نه کم اونه زیات درحمت له اسمانه اودخپل عنایت څخه مونږ ته رابخښي.
دقران ډیر زیری مخکې دحضرت باب ظهور څخه د«متشابهاتو »په قالب کې پټ ؤ اویوائې دهغه

موعود په یاری سره دظهورډگرته راغلل .دې مثال ته توجه وکړئ: قران مجید په کراتو د«ذکر»په کلمې سره حضرت باب ته اشاره کوي. په تیرو «۱۳»پیړیو کې هیڅ یو په دې رمز پوه نشو .دا لیکونکی وائي ،د«۴۰»څلویښت کلونو نه په زیاته موده کې مې قران په دقت سره داول نه تراخره پورې ولوست .امّا هیڅکله د«ذکر»دمعنا «متشابهه»کلمې ته متوجه نشوم ،ترڅو چې هغه لقب مې دحضرت باب په اثارو کې ولید. بل ځل مې چې قران ولوست ،دلمړی ځل لپاره مې د«ذکر»دکلمې راز پیداکړ.اودهغه اړیکه مې دزمان دموعود سره وپیژندله .کله دیو رمز پیژندنه اودیوې معماحل ،په یوازیتوب دحقیقت دکشفولو لار هواروي.دقران داسرارو نورې ډیرې معنی گانې ښکاره کوي.دعلم په عالم کې هم همدارنگه ده :مثلاً داتوم کشف یادجاذبې قوې دطبیعت دډیرو قوانینو له مخ نه پردې لرې کړې.د«متشابه ایتونو»معنی په «گنجینه»کې پټه ده . دزمان اووخت موعود مونږ ته دهغې «گنجینې»کلي اوکونجي په خپلو اثارو کې راکوي.

ددې کونجي په کارولو سره ،په ناڅاپه توګه يوه نوې دنيا زمونږ نظر ته راښکاره کيږي.هغه دنيا چې پرله پسې توګه زمونږ په وړاندې وه ،اما هيڅکله مونږ هغه نه ده ليدلې .

**د زخرف سورت،۳ -آيت: انا جَعَلْنَاهُ قُرْآنًا عَرَبِيا لعَلَكُمْ تَعْقِلُونَ.**

ماقران په عربي نازل کړى دى.شايد چې تاسې دعقل اوفکر څخه کاراخلى.

توضيح:دقران دعربي کيدلو اوتفکر ترمنځ رابطه څه ده ؟دااىت راوښائي چې لمړى نکته اورمز چې په دې ايتونو کې پټ دي ،په عربي ژبې پورې مربوط دى ،اودوهم داچې دهغې نکتې دکشف لپاره بايد عقل اوفکر په کارواچوو.

لکه څنګه چې دموعود نوم اوالقاب په عربي دي ،دهغه معرفي اوپيژندنه په همغه ژبه په مراتبو اسان کاردى.دمسلمانانو ډير دانشمندان په دې فکر دي. چې درسول اکرم نوم (احمد)په انجيل کې په يوناني ژبه

پاراكلتوس وركړ شوی دی.دهغوې استدلال يواځي ددې دوه كلمو دمعنا په شباهت متكي دی ،نه دهغوې په ظاهر . امّا مسيحيان په هيڅ عنوان دمسلمانانو استدلال نه مني.

**د زخرف سورت:۳ ـ ايت : وَانهُ فِي امِّ الْكِتَابِ لَدَيْنَا لَعَلِي حَكِيمٌ.**

په يقين سره «هغه»د«كتابونو په مور كې»«ذكر»شوې دی.(دهغه په باره كې دقران نښانې چې دكتابونو مور ده ،وجود لري)زمونږ په نزد (خدای)،هغه «علی»او«حكيم»دی.

توضيح:داايت په پوره روښانتيا سره دحضرت باب دنوم بله برخه يعنی «علی»مونږ ته راكوي.د«حكيم»كلمه په دې ايت كې د«علی»دنوم دصفت په شكل سره راغلې ده .له دې نښانو څخه كولای شی پيداكړی. چې دموعود نوم مركب دی، له دوه نومونو څخه «علی»او «محمد».

---

☆ فارقليط،parakletos, paraclete, paraklete.
«فارقليط»يعنی شفاعت كوونكې،«احمد»صفت كړی شوی .مسحيان وائي ،فارقليط روح القدس ته اشاره ده. بهائيان دمسلمانانو سره هم عقيده دي .داكلمه درسول اكرم دظهور خبر ګڼي.

بل څوک په غیر دموعود نه ددې لایق دی چې «کتابونو په مور»یعنی قران کې دخدای دلوري د«علّی»په نوم چې دخدای له نومونو څخه دی یادشوې دی؟په غیر دموعود بل څوک ددې شایسته اولایق دی. چې په هغه کتاب کې د«حکیم »په صفت چې دخدای دصفتونو څخه یوصفت دی. صفت کړی شوی دی؟

**علی حکیم** **ح ، ک ،**

**ی ، م**

**علی محمد** **م ، ح ،**

**م ، د**

په دې ایتونو کې «علی حکیم»او«ذکر»دواړو ته اشاره شوې ده :

**بسم الله الرّحمن الرحیم .سبحان الّذی نزّل الکتاب فیه حکم کلّ شیئ□ هدی من عندالله لقوم یسمعون و انّه لتنزیل من لدی" عل□ّ حکیم "بدیع قل و انّ هذا کتاب لا ریب فیه قد فصّلت ایاته من لدن عزیز حکیم قل انّما انا ذکر من ربّکم الرّحمن الّذی لا اله الّا هو ادعوکم الّا تعبدوا الّا ایاه ذلک دین الله القیّم ف□ کتاب حفیظ ۔ ه**

**حضرت باب**

دبخښونکي اومهربانه خدای په نامه .سپیڅلی ،پاک اومقدس دی هغه څوک چې داکتاب ئې نازل کړی دی.هغه کتاب چې دهر حکم لرونکی دی.دخلکو لپاره دهدایت وسیله ده. چې داوریدلو غوږونه لري .اودعلی حکیم اوبدیع له لورې دی.ووایه! په دې کتاب کې شک نشته . دهغه ایتونه دحکیم عزیز پروردګار له لورې نازل شوي دي.ووایه!زه یواځي «ذکریم»ستاسې دیکتا اوبخښوونکي پروردګارله طرفه . په غیر دهغه دعبادت څخه دبل چا عبادت مه کوئ. هغه دخدای حق دین دی. چې دقران په کتاب کې ذکر راغلی دی.

**اعجبتم ان یلق□ الرّوح ال□ نفس من انفسکم یتل□ علیکم آیاتنا لیزّکیکم و یعلّمکم الکتاب والحکمة و کان ف□ امّ**

- دسخن بزرگ فرهنگ په اساس «علی»دخدای دنومونو څخه یونوم دی .دحضرت باب دالقابو څخه یو لقب «رب اعلی»دی دا«علی»(بالاترین)او(لوړمرتبه)یوه ریښه لري.



ایا ستاسې لپاره عجیبه ده. چې «روح»په انسان، لکه ستاسي په شان نازل شي. اوزما ایتونه تاسې ته ووائي .ترڅو تاسې پاک شئ. اوکتاب اوحکمت تاسې ته زده کړي؟ ؟څوک چې دکتابونو په مور (قران )کې زما سره علي اوحکیم دی.
**ذلک دین القیّم ان کنتم فی دین الله لمن الصّادقین .قل هذه سبیلی ادعوکم الی الله وحده فمن شاء فلیؤمن و من**

**شاء فليكفر و انّ حجّة الله بالغة من لدن علىّ حكيم .۷**
**حضرت باب**
هغه دين سم دى. که تاسې پخپل ايمان کې صادق ياستې .ووايه!دازما لاره ده. تاسې يوائځې خداى ته دعوتوم .هرڅوک غواړي ايمان راوړي. اويا هرڅوک غواړي کافر شي .دخداى دليل دعلى حکيم لخوا کافي دى.
**و ان ه لکتاب قد نزل من حکم ربّک من لدن علىّ حکيم .**
**۸ حضرت باب**
داهغه کتاب دې چې ستا د«ربّ»په حکم دعلى حکيم لخوا نازل شوى دى.
**وانّا نحن قد جعلناک..لدى الله العلىّ حکيما .**
**۹ حضرت باب**
په يقين سره ته دخداى په وړاندې «على حکيم»ئې.
**هذا کتاب قد سطرت من يد الذکر هذا علىّ حکيم .**
**۱۰ حضرت باب**
داهغه کتاب دى چې د«ذکر په لاس»چې «على حکيم»دى ليکل شوې دى.
دمکې «شريف»ته خطاب:
**انّ هذا کتاب قد نزّلت باذن ربّک من لدن علىٍّ حکيم...ان اتّبع ما القى اليک من کت ربّک ...۱۱**
**حضرت باب**

داهغه کتاب دی چې ستا دپروردگار په اجازه د«علی حکیم»لخوا نازل شوی دی ...له هغه څه چې ستا درب له کتاب څخه تاته «القا»کیږي پیروي وکړه.
په دې بیان کې پروردگار دحضرت باب په ژبه شهادت ورکوي چې نوم ئې قران کې لیکل شوې دی:

---

❖ د«علی حکیم»لقب دحضرت باب په ایتونو کې په کراتو سره راغلی دی:

**یا عبادالرّحمن فاستبقوا الخیرات من لدی الباب هذا کلمةالله" العلی "الّذی قد کان فی امّ ا لکتاب حکیماً".**
**وانفقوا له فی سبیل ا لله مما تحبّونه لانفسکم فسوف تجدون بالحقّ عندالله من اعمالکم( علی ارض ا لرّضوان ملکاً جمیلاً.)**

**( حضرت باب**
**)قیّوم ا لاسماء، خطی نسخه، ۱۳ مخ**

قران اوبهاءالله

۵۲۰

---

---

**قل ان اسم محمد بعد کلمةالعل ...قد کان ف کتاب الله مسطوراً .١٢**                  **حضرت باب**

وو ایه**!**زما نوم «محمد»وروسته له «علی»دی (علی محمد)...چې په الهي کتاب (قران)کې لیکل شوی دی.

دقران په مقطعه تورو کې، دشورې سورة په شروع کې هم اسرار پټ دي:

**حم عسق كَذَلِكَ يُوحِي الَيْكَ وَالَ الذِينَ مِن قَبْلِكَ اللَّهُ الْعَزِ يزالْحَكِيمُ .**

.

**شوری سورة، ٣- ١ایتونه**

**«ح ، م ، ع ، س ، ق »**دارنگه پروردگار تاته او هغوې چې له تامخکې راغلی دي .وحی رسوی پروردگار حکیم اوعزیز دی.

د«حم عسق»په مقطعه توروکې کوم رمز پټ دی ؟دحدیث په اساس:

**هو حروف من اسم الله الاعظم المقطوع یولفه الرسول والامام ...١٣**

هغه توري دپروردگار دلوی نامه څخه دي. چې یودبل څخه جدا شوي دي.

هغوې ته «رسول »او«امام»یوبل سره پیوند ورکوي...

پورتنې حدیث مونږ ته دوه ټکې رازده کوي:

- «حم عسق »دخدای دنومونو په یونوم پورې مربوط دی .دحضرت باب لقب «ربّ علی»دی.په دې تورو کې دهغه موعودنوم پټ دی.
- دموعود نوم د«رسول »اود«امام»دنومونو څخه مرکب دی «علی محّمد»دې وړاندوینی ته حقیقت وربخښي.

صدرالصدرو،داسلام دلوی علماو څخه یوعالم دی. چې دبهائې ائین سره یو ځای شو،د«حم عسق»مقطعه تورې زمونږ دعصر دموعود دنامه سره اودهغه دظهور دزمان اومقام سره دارنګه رابطه ورکوي:

| | |
|---|---|
| **ح ، م = محمّد** | **ع = علی** |
| **س = ستّین (۶۰)** | **ق = قأیم** |

ایا ممکنه ده د«س»توری د«سیّد»کلمې ته
او«ساعت»ته اشاره ده ؟که د«حم عسق»تورې
دبرعکس په شکل یعنی داخر نه اول ته
ولیکو،دحضرت باب هویت په دقیقه توګه ښکاره
کوي:

| ق | س ع | م ح |
|---|---|---|
| قایم | سید علی | محّمد |

دقایم دنامه په باره کې ډیر احادیث نقل شوي دي. چې
سره سمون لري .دهغې جملې نه پیغمبر اکرم فرمائي:
**اسمه اسم علیّ و انا تحت رجله.١٤**
دهغه نوم «علّی»دی .اوزه دهغه دنامه لاندی یم.
**القائم اسمه علیّ اسمی. ١٥**
دقایم نوم زما په نامه دپاسه دی.
دبحارالانوار دبل حدیث په اساس:
**و هو ذوالاسمین خلف و محمّد یظهر في آخرالزّمان.١٦**
هغه ددوه نومونو درلودونکی دی .یو ئې «علی»اوبل
ئې «محمد».په اخرالزمان کې به ظاهر شي.

ددوه کلمو ترکیب «علی»او«محمد»شاید ددې په خاطر وي. چې حضرت باب هم «امام»او هم «پیغمبر»هغه نوم چې حضرت باب ته خپلې کورنې غوره کړی ؤ. ددواړو مقامونو ښکارندوی دی. ممکنه ده چې داپوښتنه زمونږ په نظر کې پیداشي :ولی په دې ترکیب کې د«حضرت محمد»نوم ولی اول نه دی راغلی؟په همدې ترتیب چې پوهیږو د«محمد علی»ترکیب ډیر معمول دی .دپیغمبر اکرم ددرناوی لپاره مؤمنین دهغه نوم لمړی راولي .اما د«علی محمد»ترکیب ډیر کمیابه دی .داکمیابه ترکیب ،موعود له نورو څخه جلا کوي.



---

کوم رمز په دی ایت کې پروت دی:

**وَلَقَدْ آتَيْنَاكَ سَبْعًا مِّنَ الْمَثَانِي وَالْقُرْآنَ الْعَظِيمَ .**

**د حجرسورة، ۸۷-ایت**

**۱-ترجمه :**په حقیقت کې پروردګار تاته «۷»دوه ځلې درکړی دی،دلوی قران سره.
**۲-ترجمه:**په یقین سره برسیره په لوی قران پروردګار تاته«۷»دوه ځلې درکړی دی.
ددوه «۷»څخه منظور څه شی دی؟دقران دمفسرنیو یوه ډله وائې چې مخکنې ایت دفاتحی سورة ته اشاره ده ،لکه څرنګه چې هغه سورة«۷»ایتونه لري.
داتفسیر په دوه سببه معقول نه دی:

- لمړی داچې دفاتحی سورة«۷»ایتونه لري نه دوه «۷»چې «۱۴»ایتونه کیږي.
  دفاتحي سورة دلوی قران برخه ده نه برسیره پرهغه.
- دهغه مؤمین په ځواب کې چې دمخکني ایت دمعنی پوښتنه کړې وه. چې دوه «۷»تکرار راغلي دي.حضرت عبدالبهاء فرمائي: چې «**سَبْعاًمّنَ الْمثَاَنِیْ**»زمونږ دعصر ددوه موعودو نامه حضرت باب اوحضرت بهاءالله ته اشاره ده .۱۷ ځکه چې دهغوې دهر یوه موعودنوم له «۷»تورو څخه جوړ شوی دی:

| | | |
|---|---|---|
| **حضرت** | **علی** | **ع ، ل ،ی،** |
| **باب** | **محمد** | **م، ح ،م، د** |
| **حضرت** | **حسین** | **ح ، س، ی، ن** |

| بهاءالله | علی | ،ع، ل، ی |
| --- | --- | --- |

حضرت باب کله دخپل نوم «۷»تورو ته په اشارې
سره دااصطلاح کاروي:

**ذات حروف السبع باب ا لله.۱۸**

د«۷»تورو صاحب( باب الله).

---

❖ یو سفعلی ،دقران مفسر اوژباړونکی ،د«سَبْعْامِنَ الْمثانِيَ»په باره کې لیکی:

دهغه عقیده په دې ده. چې داکلمات دقران اول سورة یعنی دفاتحې سورة ته اشاره ده. داسورة دټول قران دتعالیمو خلاصه ده.The Messge of Holy Qur an ,p.

۵۲۳ ۱۶فصل:زمونږ دعصر ددوه موعودو نومونه
اوالقاب په قران او احادیثو کې

له دي وړاندې ،مقطعه توری«حم»«۷»ځلې په قران کې تکرار شوی دی.

دحجرْ سورة په دې ایت سره پای ته رسي:

**وَاعْبُدْ رَبكَ حَتیٰ یَاتِیَكَ الْیَقِینُ .**

**د حجرسورة، ۹۹-ایت**

دپروردګارعبادت وکړه، ترڅو یقین ته ورسې.

دپروردګارعبادت اودهغه په درګاه کې دعا کول، دموعود دپیژندنی لپاره یوه وسیله ده. اودیقین اوډاډمرحلی ته درسیدلو لارده.

**قل ضعوا الاوهام تالله قد اشرق نیّر الایقان .۱۹**

**حضرت بهاءالله**

دګمانونو نه ځانونه خلاص کړئ. په خدای قسم !دیقین اوباور لمر راختلی دی.

## بَقِیةُالله

دمسلمانو دانشمندانو یوې ډلې ،دهغې جملې څخه ډاکټر فریدون صحّافی ،پیداکړې ده چې **دبَقِیّةُ الله** لقب په دې ایت کې صاحب الزمان ته اشاره ده:

**بَقِیةُ ا للهِ خَیْرٌ لکُمْ ان کُنتُم مؤْمِنِینَ وَمَا انَاْ عَلَیْکُم بِحَفِیظٍ.**

**دهود سورت،۸۶-ایت**

که رښتیني مومینان یاستې **بَقِیّةُ الله** ستاسې دخیر منبع ده .امازه ستاسی کوم ولی اومحافظ نه یم.

---

❖ **دیوسفعلی دوینا په اساس:**

The combinations of abbreviated letters that run in a occurs in seven series in consecutive

surahs is حم consecutive surahs from .40 to 634 noticrabl .for

په ډیرو مواردو کې ،دځنې کلماتو کارولو اصلي مقصد یواځې په تحقیق اولټولو سره په ټول قران کې کولی شئ پیداکړئ .مثلاُ دبقیة الله دظهور دخبر نه مخکې پروردګار کم فروشانو ته اشاره کوي. په قران کې یوسورة دی. دمطففین په نامه یعنی کم فروشان. هغه سورة ټول مربوط دی .زمونږ دعصر دموعود په ظهور پورې .دهغه سورة محتوا به روښانه توګه راوښائي. چې دکم فروشې اصلي مقصد دموعود دظهور په وخت

کې دعدالت رعایت دی،یعنی:

**( یَوْمَ یَقُومُ الناسُ لِرَبِّ الْعَالَمِین)**

**دمطففین سورت، ۶-ایت**

هغه ورځ چې دجهان خلک دپروردګار په وړاندې ودریږي.

**بَقِيَةُ الله صاحب الزمان دی. ۲۰**

**حضرت باب**

**دبَقِيَةُ الله** دمعنی څخه کولی شی پیداکړی. چې داکلمه په لمړې درجه پیغمبرانو ته اشاره ده .ځکه هغه دپروردګار «سخن ګویان اوخبرلوڅي»دي. اوپه دې جهان کې دهغه نماینده ګان نښانې اویادګارونه دي.هریو دهغوې څخه **بَقِيَةُ الله** وګڼل شي.دهغوې روح دپروردګار دروح رڼا ده .هغه دحقیقت لمر پخپل ځای کې په ډیر عظمت سره ولاړ دی.اویواځې مونږ ته خپل نور رالیږي .دارڼا کیدلای شی دهغه لمر نښانه« **بَقيَه**»وګڼل شي.دپیغمبرانو نقش هم دارنګه دی .اوکه نه **بَقِيَةُ الله** یعنی څه؟ایا خدای دویش وړ دی.

چې «**بَقِيَةُ**»دې ولري؟

برسیره په دې ،مبارک ایتونه مونږ ته رازده کوي.چې «**بَقِيَةُ الله**»دپیژندنې شرط اودهغو له ګټو برخه مند کیدل رښتینی ایمان دی. یواځې رښتیني مؤمنین دې

حقيقت ته رسي. چې **بَقِيَةُ الله** دانسان لپاره دهر خير منبع ده.
دايت د اخري برخی نه **(وَمَا اَنَا عَلَيْكُمْ بِحَفِيظْ)**زه ستاسې ولی نه يم»هم کولای شی دهغې په معنی پوه شی .ځکه چې قران په کراتو دپيغمبر اکرم نقش ته اشاره کړی ده ،اومونږ ته رازده کوي. چې دهغه يواځينې وظيفه پوهه ورکول دي. پيغمبران دولیّ يامحافظ نقش نه لري .دهغوې دمسئوليت حدود دادي چې دموعود دپيژندنې نښانې مونږ ته وښائي «**بَقِيَةُ الله** »له دې ډول نښانو څخه ده. مونږ مسئوله يو چې دانښانې په خلاص ذهن سره زده کړو اووئې منو .
په همغه توګه چې ومولېدل ،همدا اصطلاح په بل ايت کې هم دهمدې ائين په اړه کارول شوې ده .داايتونه يوتربله پرتله کړئ:
**وَكَذبَ بِهِ قَوْمُكَ وَهُوَ الْحَق قُل لسْتُ عَلَيْكُم بِوَكِيلٍ .**
**دانعام سورت، ۶۶-ايت**
ستا قوم (مسلمانانو)له هغه څخه انکار وکړ، اوحال داچې هغه حق دی .ووايه چې زه ستاسې مسئول نه يم.

**بَقِيةُ اللهِ خَيْرٌ لكُمْ ان كُنتُم موْمِنِينَ وَمَا انَاْ عَلَيْكُم بِحَفِيظٍ .**
**دهودسورة، ۸۶- ايت**
که رښتيني مؤمنان ياستی ،**بَقِيَةُ الله** ستاسې لپاره دخيرمنبع ده زه ستاسې ولی اويا کوم محافظ نه يم .
دارنګه ايتونه درسول اکرم په باره کې هم نازل شوي دي:
**وَلَوْ شَاء اللهُ مَا اشْرَكُواْ وَمَا جَعَلْنَاكَ عَلَيْهِمْ حَفِيظًا وَمَا انتَ عَلَيْهِم بِوَكِيلٍ**

**د انعام سورة،۱۰۷- ايت**
که خدای غوښتي وی هغوې به مشرکان شوي نه وی.
ته دهغوې ساتونکی اومسئول نه ئې:
**وَمَا انَاْ عَلَيْكُم بِحَفِيظٍ .**
**د انعام سورت،۱۰۴ -ايت**

زه ستاسې ساتونکې نه یم.
**منْ یُطِعِ الرسُولَ فَقَدْ اطَاعَ اللهَ وَمَن تَوَلـ فَمَا ارْسَلْنَاكَ عَلَیْهِمْ حَفِیظًا. دنساءسورة ٨٠ -ایت**
دپیغمبر څخه چې هرڅوک اطاعت اوپیروي وکړي دخدای اطاعت ئې کړی دی .ستا دلیږلونه مقصد دهغوی ساتنه اونګهداري نه ده .
**«دبَقِیَةُ اللّه»**لقب په خاصه توګه زمونږ دعصر ددوه موعودو ظهور ته په اشارې سره دنورو بشارتونو څخه ډیر سازګار اوجوړ دی. ځکه هغه دواړه د«خدای په نوم»راغلي دي.په دې بیان کې دپروردګار روح دخپل رالیږل شوي حضرت باب په ژبه خبرې کوي:
**انّني انا وجه الله الّذي لا یموت ونوره الّذي لا یفوت . ٢١ حضرت باب**
په حقیقت سره زه دپروردګار څیره یم. چې هیڅکله نه مري ،اودهغه رڼا هیڅکله نه خاموشیږي.په بهائې اسماني اثارو کې د«**بَقِیَةُ اللّه**»لقب زمونږ دوخت دوه موعودو ته په اشارې سره په کراتو کارول شوی دی.حضرت باب فرمائي:
**قد نزل من لدن بقیّةالله امام حق قدیم . ٢٢ حضرت باب**

(داکتاب )**دبَقِيَةُ الله** لخوا چې پخوانی اوحق امام دې.
نازل شوی دی.

**و انّ الّذين يؤمنون بذكر بقيّةالله حجّة ربّک فاولئک هم العابدون .٢٣          حضرت باب**

هغه کسان چې د«**بَقِيَةُ الله**»په «ذکر»چې دپروردګار ښکاره دلیل دی ،ایمان راوړي. دعبادت کوونکو دډلې څخه دي.



---

**تلک الآيات حجّةً من بقيّةالله .٢٤**

**حضرت باب**

هغه ایاتونه دلیل دی **دبَقِيَةُ الله** له لورې.

**قل ما كنت فـ□ شأن الّا بحكم الرّوح يلقـ□ من بقيّةالله فـ□ صدرى .٢٥          حضرت باب**

ووایه زه کوم مقام نه لرم. په غیر دروح دحکم څخه چې د«**بَقِيَةُ الله** »څخه زما زړه ته القا کیږي .

**ثم اعلم انّ بقيّةالله حجّة ربّک يعلم ما فی السموات و ما فی الارض و انّه باذن ربّک قد کان علی ما يشاء مقتدراً . ٢٦**

**حضرت باب**

پس پوه شه چې «**بَقِيَةُ الله** »ستا دپروردګارد محبت (دليل)دی.هغه څه چې په اسمانونو اوځمکه کې دي، پري پوهيږي، اوهرڅه چې وغواړي، په سرته رسولو ئې قادر دی.

**ان اتّبع حکم بقيّةالله بالعدل فانّ اليوم لا مفرّ لأحد الّا ان يؤمن بايات الله وکان من السّاجدين .٢٧**

**حضرت باب**

**دبَقِيَةُ الله** حکم دعدالت له مخې وکړی.نن ورځ دفراراوتيښتي لار دهيچا لپاره نه ده پاتې شوې،مګر په الهي ايتونو ايمان راوړل اودهغه په درګاه کی دعا او بنده ګي کول دي.

په دې ايت کې دهغه موعود لقب «**بَقَيِةُ الله**»دراتلونکي موعود ته په اشارې سره يعنې حضرت بهاءالله ته کاروي:

**يا بقيّةالله قد فديت بکلّی لک و رضيت السّب فی سبيلک . و ما تمنّيت الاّ القتل فی محبّتک و کفی بالله العلیّ معتصما قديماً .**

**حضرت ۲۸**

**باب**

اې **بَقِیَةُ الله** (اې بهاءالله)ما خپل ځان ستا لپاره فداکړ او هره نادوده مې ستا لپاره ومنله په غیر دخپل ځان دقربانولو څخه ستا سره دمحبت په لاره کې بله کومه طمع اوتوقع نه لرم .په پروردګار علّی (لوړمرتبه)پناه ورکوونکی بسنه کوم.

په دې ایتونو کې ،دوه لقبونه «**بَقِیَةُ الله**»او«علی حکیم»دواړه راغلي دي:

**قل یا ایّها الملأ ان اسمعوا حکم بقیّةالله من لدن عبده علی حکیم .۲۹ حضرت باب**

وواېه!اې خلکو!د«**بَقِیَةُ الله**»حکم چې دهغه دبنده «علی حکیم»له لوري دی، واوري .

**الذین لایعلمون حکم بقیّةالله من لدن عبده علی حکیم .**

**۳۰ حضرت باب**

هغه کسان چې **دبَقِیِةُ الله** حکم دهغه دبنده «علی حکیم»سره نه پرې پوهیږي .

حضرت باب د«قائميت»مقام په تدريج سره اعلان کړ:
**حضرت اعلی (حضرت باب)په بابيت راضی شو،خلکو قبول نه کړ،وئې فرمائيل زه «بَقَيَّةُ اللّه»يم خلکو قبول نه کړ.۳۱**

**حضرت عبدالبهاء**

دخلکو سره دمدارا لپاره حضرت باب په لمړيو کې خپل ځان «**باب بقية اللّه**»او«**عبدبقية اللّه**»ونومول:
**و ما انا الّا عبد بقيّةالله يدعوکم الی دين الله الخالص .**

**۳۲ حضرت باب**

زه يواځې د«**بَقِيَّةُ اللّه**»بنده يم چې تاسې دپروردګار پاک دين ته دعوتوم.
څرنګه چې حضرت باب حضرت بهاءالله «**بَقِيَّةُ اللّه** »ونومول ،کولای شی ووائې چې د«عبد»دکلمې نه مقصد په دې ايت کې هغه ته دبنده ګې اظهارول دي .
حضرت باب په کتاب د«دلائل سبعه»د اوه ګوني دلايلوکتاب کې فرمائي، ددې لپاره چې خلک د«نوی کتاب اونوی امر»څخه مضطرب نشي.هغه نفس چې دپروردګار مظهر دی ،په شروع کې خپل ځان د«باب

قایم موعود»په نوم ظاهر شو .ځنې مؤرخین په دې عقیده دي. چې د«الله»کلمه دلوی بت نوم ؤ. په همدې سبب ،یعنی دبت پرستانو سره په هغه زمان کې په مدارا سره دتللو په خاطر غوره شو.

دحضرت باب داصحابانو دجملې نه یو صحابې دوینا په اساس ،محمد علي زنوز ،مشهور په انیس ،چې دهغه حضرت سره په شهادت ورسید:

**[هغه موعود]دامر په لمړیو کې د«باب»په نوم او«عبد بَقَیَّةُ الله»په نوم خپل ځآن مشهور او معروف کړ...اوفی الحقیقت باب او«عبد من یظهرالله»دی...اووروسته ئې ځان ته د«ذکرالله»لقب ورکړ...اود«بابیت»مرتبه مخصوص د«اوَّل مَنْ امَنَ»یعنی «لمړنی مؤمین»جناب ملاّحسین بشرویه شو. اووروسته له څو مودی دقائمیت اظهار وکړ...۳۴**

**انن□ انا قائم الحق الذی انتم بظهوره توعدون .۳۵ حضرت باب**

په يقين سره زه همغه قائم حق يم. چې دظهور وعده ئې تاسې ته درکړل شوې ده .
زمونږ دعصر ددوه مووعودوپه دې دوه لقبونو کې ډير شباهت دی:
**ظهرالقائم و بشرّ النّاس بالقيّوم . ٣٦**
**حضرت بهاءالله**
قائم ظاهر شو. اودقيوم په ظهور ئې شهادت ورکړ.
«قائم اوقيوم »دواړه په معنی کې ډير شباهت لري.«قائم»يعنی هغه څوک چې په پښو ودريږي،«قيوم»يعنی هغه څوک چې هميشه په پښو ولاړوي.

# ربّ اعلی

دحضرت باب دالقابو څخه يو لقب هم ربّ اعلی دی:
**هذا ما نزّل من...ربّ الاعلى .**
**٣٧**
**حضرت باب**

داایتونه ...«رب اعلی»څخه نازل شوي دي.
دایران بهائیان «حضرت اعلی»او«حضرت رب اعلی»دهغه موعود په باره کې دبل هرلقب ته ډیر زیات کاروي .په قران کې یو سورة دي د«اعلی»په نوم داسورة «۱۹»لنډ ایتونه لري. چې دهغه په اوږدو کې د«ربّ اعلی»نوم دوه ځلې راغلی دی:

**سَبِّحِ اسْمَ رَبِّكَ الْأَعْلَى ...قَدْ أَفْلَحَ مَن تَزَكَّى وَذَكَرَ اسْمَ رَبِّهِ فَصَلَّى .**

**داعلی سورت ۱،۱۴،۱۵-ایت**

د«ربّ اعلی »لوړ مرتبه پروردګار دنوم په صفتونو شروع وکړه ...په رښتینی هرڅوک چې په پاک زړه دخپل پروردګار نوم «ربّ اعلی»په یاد راوړي.
اودهغه عبادت وکړي. رښتینی دی.
مخکنې ایت په «اعلی سورة»کې دوه ځلې دربّ نوم ته اشاره کوي ،نه «پخپله رب» ته په همغه ډول چې مخکې اشاره ورته وشوه ،ددې ورځې دلویوالي له نظره پروردګار خپل «نوم»یعنی «ربّ »زمونږ دعصر دوه موعودو ته بخشش کړ.مقدس کتاب لکه قران هم په دې حقیقت شهادت ورکوي:

**مبارک دی هغه څوک چې د«ربّ په نوم»راځي.**
**مزامير:۱۱۸،سورة،۲۶-ايت**
**تاسې به زما نور ونه ګورئ. ترهغه وخته پورې چې ووائي:مبارک دی هغه څوک چې د«ربّ په نوم»راځي.** **انجيل**
**متی: ۲۳سورت،۳۹-ايت**
**تَبَارَكَ اسْمُ رَبِّكَ ذِي الْجَلَالِ وَا لاكْرَامِ .**
**درحمن سورت،۷۸-ايت**
مبارک دی ستا دربّ نوم،دجلال اواکرام صاحب.
**اقرأ کتاب ذکر اسم ربّک من لدن اِمام حقّ مبين .۳۸**
**حضرت باب**
د«ذکر»کتاب چې ستا درب په نوم دی ووايه.هغه دامام حق له لورې ښکاره کتاب دی(هغه امام چې حقانيت ئې روښانه اوښکاره دی.)

حضرت بهاءالله دهمدې کلماتو ترکیب خپل ځآنته په
اشارې سره کارولی دی:

**حین الّذی حضرت تلقاء العرش و اشرقت عل□ وجهک
انت عرفت جمال ا لقدم شمس“ ذکر اسم ربّک ”.۳۹
حضرت بهاءالله**

اوتاجمال قدم وپیژاند. کله چې دعرش په وړاندې
حاضر شوی. اود«ذکر»لمر چې ستا د«ربّ نوم»دی.
ستا په څیره ئې وړانګې خورې کړې .

حضرت بهاءالله اوحضرت عبدالبهاء هم د«ربّ
اعلی»لقب حضرت باب ته په اشارې سره کارولی
دی:

**ربّ عل□ اعل□ .٤٠
حضرت بهاءالله**

**ټول ددنیا په زخارف اوزرو مشغول شوي دي. اودربّ
اعلی څخه لری پاتې دي.۴۱**

**حضرت بهاءالله**

**ربّ اعلی ...به خاصه توګه ټولو علماو ته په هرښار
اوځای کې چې ؤ. لیکونه ورواستول.۴۲
حضرت بهاءالله**

**درب اعلی غږ واوره . ۴۳
حضرت بهاءالله**

**حضرت اعلی ...شپه اورځ دخدای په لار کې سختې بلاګانې وزغملې ...خپله سینه ئې دهرتیر هدف وګرځوله ،اوغاړه ئې دهرشمشیر لپاره ګرو کړه.۴۴**
**حضرت عبدالبهاء** ــــــــــــــــــــــــــــــ

❖ جمال قدم :دحضرت بهاءالله دالقابو څخه دی.



---

دحضرت باب دوینا په اساس ،پروردګار د«ذکر»په باره کې چې د«ربّ نوم»دی دټولو موجوداتو سره عهد اوپیمان تړلی اوبسته کړی دی:

**و لقد اخذنا عهد ذکر اسم ربّک من کلّ شیئ . ۴۵**

**حضرت باب**

ما دذکرعهد چې ستا دربّ نوم دی. دهر شي سره بسته کړی دی.

د اعلی سورة مؤمینینو ته دوه ځلې تذکر اواخطار ورکوي:

**فَذَكِّرْ ان نفَعَتِ الذِّكْرَى سَيَ ذكرُ مَن يَخْشَ□ .**

**داعلى سورت، ۱۰-۹ ،ايتونه**

ياداوتذكر ورته وكړه ،كه ګټه وكړي. «يواځي» هغه ځوک عبرت اوپند اخلي. چې دخدای څخه ويره لري.

مخكېني ايتونه وښائي چې مؤمينان مهم مسئوليت لري .چې دهغه دسرته رسولو لپاره «تذكر» ته اړ دي،اما يوه ډله دهغوې څخه عبرت نه اخلي .ايا يوه مسئله اويايو مسئوليت دموعود دپيژندنې څخه كيدلاى شي مهمتر تصور كړي ؟

دمسلمانانو ځنې ژباړونكو،دهغې جملې نه دكتور محمد حسن خان اودوكتور محمدتقى الدين ،دوه مخكېني ايتونه داسې ژباړلي دي.

په دې اساس هغوې ته متذكر شه ،كه «ذكر» هغوې ته فايده ولري.

يواځي هغه ځوک «ذكر»مني. چې دخداى نه وويرېږي.

مخكى ترجمه وښائي. چې دواړه ايتونه داعلى دسورة څخه دحضرت اعلى بل لقب يعنى «ذكر»ته هم اشاره كړې ده .

دې ايت هم د«ربّ »نوم كارولى دى.

**فَانِ اسْتَكْبَرُوا فَالذِينَ عِندَ رَبِّكَ يُسَبِّحُونَ .**
**دفصلت سورت،۳۸-ايت**

---

❖ دخدای ټولو پيغمبرانو زمونږ دعصر ددوه موعودو دظهور خبر ورکړی دی .

ددې انګليسی مرجع نه ژباړه :

**Therefore remind (men) in case the reminder profits (them). The reminder will be received by him who fears (Alláh) . The Nobel Qur'án , p. 718**

۵۳۱ ۱۶فصل:زمونږ دعصر ددوه موعودو نومونه اوالقاب په قران اواحاديثو کې

---

---

که دخلکو یوه ډله کبروکړي ،دهغوې په «عوض»کې هغه چې ستا دربّ په وړاندې دي دهغه په لویوالی شهادت ورکوي.
کوم خلک ستا دربّ په وړاندې کیدلای شي وي؟هغه مؤمنان چې دهغه په حضور کې حاضر دي اودهغه لویوالی ستائي .
د«ذکر»منل اودهغه په باره کې تذکر اواخطار دقران په ډیرو سورتونو کې دهغې جملې نه د«مدثر»په سورة کې هم لیدل کیږي:
**كَلا انهُ تَذْكِرَةٌ فَمَن شَاء ذَكَرَهُ وَمَا يَذْكُرُونَ الا ان يَشَاء اللّهُ . دمدثرسورت،۵۶-۵۴،ایتونه**
نه ،دایواځې «تذکر»دی.پس هرڅوک چې وغواړي «ذکر»ئې ومني .څوک به د«ذکروالا»نشي مګر داچې پروردګار وغواړي.
دهغه څه په باره کې چې قران د«خدای دلاسه»د«خدای له صورته»اویا د«خدای له نوره»خبره رامنځ ته کوي،دخدای دقدرت منظور ،دخدای زیبائې اودخدای نورانیت دهغه دپیغمبرانو په روح کې دی. په خاصه توګه زمونږ دعصر ددوه موعودو په روح کې چې د«ربّ»په نوم راغلی دي .به دې باره کې ،هغه الهي مظاهر ،هغه پاکې

اوځلیدونکی ائینې له خپل ځان نه نابودې شي اودخدای سره هستي اوژوند پیداکوي.
**وَمَا لِاحَدٍ عِندَهُ مِن نِّعْمَةٍ تُجْزَی الا ابْتِغَاء وَجْهِ رَبِّهِ الْاعْلَ□ وَلَسَوْفَ یَرْضَ□ .**

**دلیل سورت،١٩ـ٢١،ایتونه**
**١.ترجمه** :هغه څوک چې دخپل ځآن لپاره اجر نه غواړي ،مګر دخپل اعلی ربّ دصورت مشاهده اولیدنه .ژردی چې دارنګه مؤمنین به خوشحاله شي.
**٢.ترجمه** :هغه مؤمينان چې دخیرهر عمل یواځې ددې په خاطر ترسره کوي. چې د«ربّ اعلی»مخ وګوري ،ربنتیني دي.
**کُل شَیْءٍ هَالِكٌ ا لا وَجْهَهُ ...**
**دقصص سورت،٨٨ـایت**
هرڅه نیستې اونابودې ته ځي ،مګر دپروردګار څیره (دپیغمبرانو په ظهور کې )...
**کلّ من علیها فانٍ و هذا وجه ربّکم العزیز المحبوب .٤٦**
**حضرت بهاءالله**
هغه څه چې په جهان کې دی. پناه کیږي .داستاسې دمحبوب اوعزیز خدای څیره ده. (چې دهمیش لپاره به باقي وي).

---

❖ ډير ژباړونکي  چې دقران داسرارو څخه خبرتيا نه لري،کوښښ کوي.دقران دې ايت ته دخپل فکر مفهوم ورکړي .داژباړونکي د«خداى دصورت»په ځاى دخداى«رضايت»ليکي.



---

**انني انا وجه الله الّذي لا يموت ونوره الّذي لا يفوت .٤٧**
**حضرت باب**

زما په حقيقت سره (دپروردګارڅيره)چې هيڅکله نه مري اودهغه نور چې هيڅکله خاموشي نه مني.

**اليوم الّذى تنوّر بانوار وجه ربّه المقتدر العزيز المختار .**
**٤٨ حضرت بهاءالله**

داهغه ورخ ده .چې دپروردګار دڅيرې په رڼا ئي روښنائي پيداکړې ده.

**افبوجه الله تكفرون و انتم تعلمون .٤٩**
**حضرت باب**

ایا دخدای له صورت څخه په پوهاوي سره انکار کوې؟

**لا تحزن من شیئ ان ربک مع الذین اقبلوا ال الوجه سوف یجدون انفسهم ف اعل المقام انه لمقام محمود .**

**۵۰**

**حضرت باب**

له هیڅ شي څخه مه غمجنه کیږئ .ستا پروردګار دهغه چاسره دی .چې دهغه څیرې ته متوجه دی .هغوې به ډیر زر خپل ځانونه په ډیرو لوړومرتبو، مقامونواو په ډیر نیک مقام کې وګوري.

دالاندی ایت د«خدای دڅېرې»اود«خدای دذکره»له دې دواړو څخه خبره کوي:

**وَاصْبِرْ نَفْسَكَ مَعَ الذِينَ يَدْعُونَ رَبهُم بِالْغَدَاةِ وَالْعَشِيِّ يُرِيدُونَ وَجْهَهُ.. وَلَا تُطِعْ مَنْ اغْفَلْنَا قَلْبَهُ عَن ذِكْرِنَا وَاتبَعَ هَوَاهُ وَكَانَ امْرُهُ فُرطا.** **دکهف سورت،۲۸-ایت**

دهغه خلکو سره اوسه. چې په لمر راختلو اولمر لویدلو کې خدای یادوي. اودهغه دڅیرې غوښتونکی وي...دهغه چا پیروي مه کړه. چې دهغه زړه مې دخپل «ذکر»څخه غافل کړی دی .هغه دخپل نفس دهوا پیرو دی. اودخپلو حدونو څخه تجاوز کوي.

**الّذین اعرضوا عن الوجه .**

**۵۱ حضرت**

**بهاءالله**

هغه خلکو چې له دې «ځيرې» څخه مخونه واړول.

**یا قوم لاتحتجبوا عن جمال الله ...۵۲**

**حضرت بهاءالله**

اې خلکو د(خدای دجمال)څخه خپل ځانونه مه محروموئ...

دپروردګار دمخ دلیدلو وعده په «کتاب مقدس »کې هم لیدل کیږي:

**اې پروردګاره!خپل صورت مونږ ته وښایه ترڅو مونږ خلاصون ومومو.**

**مزامیر: ۸۰،سورت،۳-ایت**

اې پروردګاره !خپل ځان مونږته وښایه ...پریږده چې ستا «بهاء»[بهاءالله]په ټول عالم کې وځلیږي.

**مزامیر :۵۷،سورت،۵-ایت**

۵۳۳ ۱۶فصل:زمونږ دعصر ددوه موعودو نومونه اوالقاب په قران اواحادیثو کې

**نن دلیدوورځ ده،ځکه چې[دخدای څیره]دظهوردافق څخه ښکاره ده .۵۳حضرت بهاءالله**

حضرت باب په ډیرو ایتونو کې ،د«ذکر»او«ربّ»دوه لقبونوته دیوبل سره اړیکه ورکوي.

**بسم الله الرحمن الرحیم هذا کتاب من لدنّا ف ذکر اسم ربّک الّذی لا اله الّا هوالعزیز الحکیم هو الّذی قد ایّدک بروح من عنده...یا ایّهاالملاء ان اتّبعوا ذکرالله لتکوننّ لمن المهتدین . ٥٤**

**حضرت باب**

دبخښوونکي اومهربان خدای په نامه .دا زما له لوري کتاب دی. (پروردګار)د«ذکر»په باره کې چې «ستا د رب نوم»دی. ،دهغه خدای «له لوري»چې په غیر دهغه نه بل خدای نشته. عزیز اوحکیم خدای دی .هغه دهغه چاخدای دی. چې تا حضرت باب لره ئې پخپل روح سره مرسته و کړه...اې خلکو،دخدای د«ذکر»څخه پیروي وکړئ. ترڅو هدایت موندونکي شي.

**و کلّ فی ذلک الیوم من عهد ذکر اسم ربّک یسئلون .٥٥**
**حضرت باب**

په هغه ورځ (دقیامت په ورځ) به ټول خلک دعهد اومیثاق په باره کې د«ذکر»په اړه چې ستا دربّ نوم دی. دپوښتنې لاندې راشي.

# عزیز اوحکیم

دا ایتونه دجمعې سورة په شروع کې نازل شوي دي:
**هُوَ الذِي بَعَثَ فِي الْامِّيِّينَ رَسُولًا مِّنْهُمْ يَتْلُو عَلَيْهِمْ آيَاتِهِ وَيُزَكِّيهِمْ وَيُعَلِّمُهُمُ الْكِتَابَ وَالْحِكْمَةَ وَان كَانُوا مِن قَبْلُ لَفِي ضَلَالٍ مبين وَآخَرِينَ مِنْهُمْ لَما يَلْحَقُوا بِهِمْ وَهُوَالْعَزِيزُ الْحَكِيمُ ذَلِكَ فَضْلُ اللهِ يُؤْتِيهِ مَن يَشَاء وَاللهُ ذُو الْفَضْلِ الْعَظِيمِ .** **دجمعه سورت، ٢-۴،ایتونه**

داهغه څوک دی؟ چې د«امّي»خلکو په منځ کې پیغمبر (رسول اکرم)راولیږل. ترڅو خپل ایتونه هغوې ته ووائي.هغوې پاک کړي. اوهغوې ته کتاب اورحمت ورزده کړي. هغه خلک چې په ښکاره ګمراهې کې ؤ .اونور دهغوې له ډلې څخه، [پیغمبران]چې تر اوسه هغوې ته ورغلي نه دي اوهغه عزیز اوحکیم دي.

په مخکني ایت کې ددې جملې مقصد څه دی؟(اونور هغوې له ډلې څخه تراوسه هغوې ته نه دې ورغلې)په بل عبارت:

له همغې ډلې څخه ،نورکسان شته دی. چې تراوسه دخپلې ډلې سره یوځای شوي نه دي.

په دې مبارک ایت کې تامل اوفکر راوښائي. چې داجمله دپیغمبرانو پورې مربوط ده. هغه پیغمبران چې درسول اکرم په زمان کې ترهغه وخته ظاهر شوي نه ؤ .اوهغه پیغمبران چې مخکې راغلي ؤ .اوهغه چې په اینده کې راځي .له یوې ډلې څخه دی.دیوبل سره ئې توپیر په دې کې دی. چې ځینو دهغوې څخه دظهورپه میدان کې پښه نه ده ایښې او دمخکنې ډلې سره نه دي یوځای شوي .په دې اساس ،دا لنډه جمله هم دنورو ډیرو ایتونو په څیر دراتلونکو رسولانو دراتګ خبر راکوي.وروسته درسول اکرم څخه دقران مفسرین اوژباړونکي ،مخکنې جمله څنګه تفسیر وي. دهغوې اکثره وائي د«نورو څخه»منظور

دعربستان نه خارج امتونه دي. چې تراوسه مؤمينينو سره نه دې يوځای شوي ،ايا دارنګه تفسير معقول دی ؟دقران دايت په اساس ،دواړه ډلې چې
د«ديګران»«نورو»او«انها»،«دهغوې»په کلماتو سره معرفي شوي دي.له يوې ډلې څخه دي .فرمائي «نور دهغوې له ډلې څخه»يعنی همغه ډله نه ئې دې فرمايلي «ديګران»«نور»يا نور دبلې ډلې څخه ،که «نور ملتونه»له همغې ډلې څخه وي مسلمانان دي نه غيرې مسلمانان ،که د«هغوې له ډلې څخه»يعنی مسلمانان وي ،نور نوهغوې ته داسلام سره ديوځای کيدلو ضرورت نه ليدل کيږي.
دمخکنيو توضيحاتو برسيره ،درسول اکرم څخه حديث دی.دپورتني ايت رابطه دايران څخه دموعود ظهور تائيدوي .درسول اکرم اصحاب کنجکاوؤ. چې پوه شي «نوردهغوې له ډلې څخه»کومې ډلې ته اشاره ده .په ځواب کې ،دا ډله ئې «سلمان فارسي»ته په اشارې سره مشخص کړې ده.

**قالوا يا رسول الله من هؤلاء الذين ذكر الله في كتابه و كان سلمان إلى جنب رسول الله) صلى الله عليه وآله وسلم (فضرب يده على فخذ سلمان فقال هذا و قومه و الذى نفسي بيده لو كان الايمان منوطا بالثريا لتناوله رجال من فارس...**

«اصحابو »وويل:اې دخداى رسوله ،هغه کسان چې پروردګار د«قران»په کتاب کې دهغوې ذکر کړى دى.داکوم کسان دي؟سلمان فارسي رسول الله ته نږدې ؤ.په هغه وخت کې دالله رسول خپل لاس دسلمان په پښه ووهل اووئې فرمايل:دا دې فرد او دهغه قوم دى.په هغه ذات مې قسم دى. چې زما روح دهغه دقدرت په قبضه کې دى. که په پروردګار ايمان دثرياپه ستاره کې وي،دفارس د جملې

خلک به هغه ځمکې ته راوړي.
دجمعې سورة په مخکنيو ايتونو کې داڅو کلمې خاص اهميت لري:
**وَهُوَ الْعَزِيزُ الْحَكِيمُ .**
**دجمعه سورت ۳-ايت**
هغه عزيز اوحکيم دی.
مخکنې صفت يواځې دخدای په باره کې راځي .دبحث وړ مطلب پيغمبران دي.
نه خدای، پس ددې دنيا منظور وروسته دپيغمبرانو دظهور له «ذکر»څخه څه شی دی؟
په همغه ترتيب چې موولیدل قران مجيد ،حضرت باب دخدای په صفتونو يادوي:
**وَانهُ.. لَدَيْنَا لَعَلِي حَكِيمٌ .**
**دزخرف سورت،۴-ايت**
په يقين سره ...زمونږ په نزد (خدای)هغه علی اوحکيم دی.
په همغه ترتيب چې موولیدل حضرت باب هم همدا لقب په کراتو سره تصديق کړی دی.
**انّه لتنزيل من لدی" عل□ حکيم ".٥٦**
په يقين سره داکتاب د«علی حکيم»له لوري نازل شوی دی.

**قد اتبعت اهواء الّذين لا يعلمون حكم بقيّةالله من لدن عبده علی حکیم.۵۷ حضرت باب**

---

❖ دحدیث مرجع دااسلامي ویب سایټ دی:
**http://dl.islamicdoc.com/Multimedia/fbook/807/00807005.htm**



---

دهغه چا دامیالواوارزوګانو څخه دې پیروي وکړه.
چې د«**بَقِیَّةُ الله** » په حکم کوم چې دهغه دبنده (علی حکیم)لخوا صادر شوی دی. نه پوهیږي.
دجمعی سورة هم زمونږ دعصر موعود دخدای په صفتونو سره صفتوي. په یوتفاوت سره:چې د«علی»دکلمې په ځای د«عزیز»کلمه کاروي.
**هُوَالْعَزِیْزَالْحَکِیْمُ.**
هغه عزیز اوحکیم دی.

دحضرت بهاءالله داثارو بررسي وښائي چې هغوې په كراتو خپل ظهور په همدې صفتونو سره توصيف كړی دی.په لاندې ايتونو كې ،ويناوال الهي اعظم روح دی. چې دحضرت بهاءالله په ژبه خبرې كوي:

**ان يا قلم القدم اذكر ف□ اللّوح ما تفرح به افئدة المخلصين و يوقن كلّ بصير بانّ□ انا المقتدر عل□ ما اشاء لا يمنعن□ عمّا اردت من عل□ الارض كلّها و انا العزيزالحكيم. ٥٨**

اې (قلم قِدمَ ) په دې ليک كې ذكر وكړه. هغه څه چې دپاک نيت والاوخلكو دزړونو دخوښې سبب دي .ترڅو هربينا انسان ورباندې يقين وكړي. هغه څه چې زه ئې غواړم. په هغه قادريم زما لپاره هغه څه چې په عالم كې دي.نشي كولای زما ممانعت اومخنيوی وكړي. زه عزيز اوحكيم يم.

**قل لو تدخلون جنّة الابه□ لتسمعون من حفيف اشجارها انّه انا الله لا اله الّا انا العزيز الحكيم .**
**٥٩**

**حضرت بهاءالله**

ورته ووايه كه د«ابهې جنت»ته داخل شي ،دهغه دونو دپاڼو ښخه به داغږ واوري:
په يقين سره په غير له ما نه بل پروردګار چې عزيز اوحكيم يم. بل خدای نشته دی.

**قد اخذهم سکر الهوی علی شأن لا یرون مولی الوری الّذی ارتفع ندائه من کلّ الجهات لا اله الّا انا العزیز الحکیم.٦٠**
**حضرت بهاءالله**

هغوې لره هوااوهوس اودنفس مستې دارنګه نیولي دي. چې دجهان دخلکومولا نه ګوري. هغه څوک چې دهغه اواز اوغږ دهرلوري پورته دی. په غیر له مابل خدای چې عزیز اوحکیم یم نشته دی.

**هذا کتاب من لدی المظلوم الّذی سمّی...بکلّ الاسماء من اسماءالله الحسنی ...٦١**

**حضرت بهاءالله**

٥٣٧ ١۶فصل:زمونږدعصر ددوه موعودو نومونه اوالقاب په قران اواحادیثو کې

---

داکتاب ددې مظلوم له لوري دی. چې ...دپروردګار په ټولو نیکو نومونو نومول شوی دی...

# دقاف سورت

د«حم عسق »وروستی توری یعنی «ق»دقران دسورتونو دیو سورة نوم دی:

**ق وَالْقُرْآنِ الْمَجِيدِ بَلْ عَجِبُوا ان جَاءهُمْ مُنذِرٌ مِّنْهُمْ فَقَالَ الْكَافِرُونَ هَذَا شَيْءٌ عَجِيبٌ... بَلْ كَذبُوا بِالْحَقِّ لما جَاءهُمْ فَهُمْ فِي امْرٍ مرِيجٍ. دقاف سورت، ۱-۴-ايت**

قاف .په قران مجید قسم دی!په دې چې هشداروركوونكي ئې دخپل منځ څخه راغلي دي،هغوې په تعجب کې دي؟منكرين وائي:داعجيب شی دی...كله چې دحقيقت سره مخامخ شي ،دهغو څخه انكار وكړي.هغوې سرګردانه خلک دي.

- داكوم كسان دي چې هم متعجب دي اوهم سرګردان؟
- هشداروركوونكي چې دهغوې له منځه راځي څوک دي؟
- له كوم حقيقت څخه هغه خلک انكار كوي؟

داتولې نښانې ددې ښكارندوې دي .چې خلک دداسې يواخطار وركوونكي سره يعنى پيغمبر سره مخامخ شوي دي.چې دهغه ظهور دهغوې دانتظاراتو سره په كامله توګه مخالف دی.دهغوې له نظره دايو عجيب

«امر»دی. اونه پوهیږي. چې دهغه پیغمبر په باره کې
څه قضاوت وکړي. سردرګومه اوګیچ دي. لاره ئې
ورکه کړې ده.
په همغه ترتیب چې «ذکر»ئې وشو،دقران مقطعه
توري داسرارو ډک دي. اونشي کولای په یقین سره
دهغې په معنی پوه شي .ددې صفت سره سره ایا
ممکنه ده. چې داسورة دقایم په نوم اودقائم ظهور ته
اشاره وي؟ اوکه نه د«ق»دتوري څخه کومه معنی
ایستلی شئ؟
۲۵کلن ځوان په تجارت مشغول دی.ناڅاپه خپل ځان
ته قائم موعود وائي .ایا له دې کیدلای شي بل
حیرانوونکې امر تصور کړئ ؟حتی د حضرت باب
نږدې خپلوان چې هغه ئې په نیکې پیژندل. اودهغه په
ایمان ،عقل، تقوا ،صداقت اودرایت پوره یقین لرل. په
ډېرې حیرانتیا کې ؤ.

اونه پوهیدل چه څه قضاوت وکړي اوپه دې سبب سرګردانه ؤ.

## دربّ بلنه اودربّ اواز

پروردګار همیشه خپل بنده ګان دپیغمبرانو په ژبه رابللي دي:

**یَا ایهَا النبِي انا ارْسَلْنَاكَ... دَاعِیًا الَ اللهِ بِاذْنِه ... داحزاب سورت، ۳۶- ۴۵ ،ایتونه** اې نبي (خبرورکوونکیه)ماته ولیږلې. چې ...خلکو ته دخدای په اجازه بلنه ورکړې...

دا ایت دخلکو څخه غواړي. چې د(ربّ )بلنه ومني:

**ربنَا اننَا سَمِعْنَا مُنَادِیًا یُنَادِیلِ لایمَانِ انْ آمِنُواْ بِرَبِّكُمْ فَآمَنا رَبنَا فَاغْفِرْ لَنَا ذُنُوبَنَا وَكَفِّرْعَنا سَیِّاتِنَا وَتَوَفنَا مَعَ الأبْرَارِ رَبنَا وَآتِنَا مَا وَعَدتنَا عَلَ رُسُلِك.دآل عمران سورت، ۱۹۳- ۱۹۴ ،ایتونه**

اې پروردګاره !مونږ دداسې یوچا غږ اوریدلی دی .چې مونږ ته دایمان بلنه راکوي.«هغه وائې:»په

«ربّ»ایمان راوړئ.متقي خلک ځواب ورکوي. پروردګاره مونږ ایمان راوړی .زمونږ ګناهونه وبخښه. اوزمونږ دقصور څخه تیرشه. اوزمونږ روح دنیکو خلکو سره ملګری کړه. پروردګار!هغه څه چې پیغمبرانو ته دې وعده ورکړې ده ،مونږ ته ئې بخشش کړه.

هغه څوک دی. چې خلک ورته «ربّ»وائې؟څوک دی هغه چې دخلکو څخه غواړي، چې په«ربّ»ایمان راوړي .اوربنتینې مؤمینین دهغه غږ ته ځواب ورکوي؟

حضرت باب دپروردګار غږ پورته کړ.اومونږ ته دایمان دلارې بلنه راکوي:

**و ان هذا صراط ذکر اسم ربّک فی الکتاب...قل اتقوالله و اتبعوه فی حکمه لعلکم ترحمون .٦٢**

**حضرت باب**

داد«ذکرلار»ده. چې د«قران »په کتاب کې «ربّ»نومول شوی دی .دخدای نه وویرېږئ اودهغه دحکم اطاعت وکړئ ترڅو دبخشش لاندې راشي.

**و انّ هذا صراط ربّک فی السّموات والارض يتلوا عليکم آيات الله .٦٣ حضرت باب**

په ځمکه اواسمانونو کې داستا د«ربّ»لاره ده. ،داهغه ځوک دی. چې الهي ايتونه تاسې ته وائي.

داايت هم د«موعود دغږ»داعلان خبر ورکوي:

**يَوْمَ يُنَادِ الْمُنَادِ مِن مكَانٍ قَرِيبٍ... ذَلِكَ يَوْمُ الْخُرُوجِ .**

**دق سورت، ۴۱- ۴۲ ،ايتونه**

په هغه ورځ چې غږ کوونکی دنږدی محل څخه غږ کوي...هغه د«خروج»ورځ ده .

**قَدْ اتَی الْمِيقاتُ وَظَهَرَ الامْرُ وَنادَی الْمُنادِ وَالناسُ اكْثَرُهُمْ لا يَسْمَعُوْنَ . ٦٤ حضرت بهاءالله**

دموعود زمان راورسيد.«امر»ظاهر شو.غږ کوونکی غږ وکړ.امّا ډير خلک دپروردګار غږ نه اوري.

**قد نادی المناد اذ اتی المیعاد .**

**٦٥ حضرت**

**بهاءالله**

کله چې د«وعدې زمان»راورسید،غږ کوونکی غږ وکړ.

**په مختلفو مقامونو کې غږ لوړ ...اوظاهر شو .هغه څه چې په الهي کتابونو کې له مخکې مسطورؤ.۶۶**

**حضرت بهاءالله**

**حق په ښکاره اوڅرګنده خلکو ته غږ کوي. دایمې اوباقي مقامونو ته بلنه ورکوي.۶۷**

**حضرت بهاءالله**

**نن ورځ ...دالله غږ پورته دی.۶۸**

**حضرت بهاءالله**

په هغه ورځ چې غږ کوي.لمر زیری ورکوي ،سپوږمې ښه خبر وائي .اې دوستانو!اګاه اودانا خدای راغلی ،شاهدي ورکړئ ،پټه روښنائې ښکاره شوه ،دزړه له کومي عجله وکړئ اوبه زیری ورکوي،دریابونه رقص کوي. ځنګلونه خبرتیا ورکوي اې بنده ګانو! ددانائې اوپوهاوي له دریابه ځان مه برخې کوئ .اودبینائې لمر څخه ځان مه محروموئ دخوښي نسیم (وږمه)لږیږي .پژمردګان ئې تازه کړل

ددي کاميابه ورځي دوينا دعهدي څخه نشي وتلای،
اودهغي دتشريح څخه به عاجز وليدل شي.نيکمرغه
دی هغه بنده چي دنن ورځي په منزلت اومقام پوه شو.
اودهغه په مبارک والی ئي شاهدي ورکړه .په هرحال
ديکتا اوبي مثاله دوست څخه غواړو:



---

**چي تول خپل دبخشش له دريابه محروم نه کړي.**
**اودرښتيني لمر دليدلو څخه بي برخي نه کړئ .۶۹**
**حضرت بهاءالله**

حضرت باب په شيراز کي اوحضرت بهاءالله په بغداد
کي دخپل غږ اعلانونه وکړل دواړه ښارونه مکي
اومديني ته نږدي دي .په دي اساس د(مکان
قريب)نږدي ځای او يانږدي محل ددي دواړو ښارونو
لپاره صدق کوي .دعطا ښارهم دعربستان څخه لري

نه دی. **يَوْمَ يُنَادِ الْمُنَادِ مِن مكَانٍ قَرِيبٍ... ذَلِكَ يَوْمُ الْخُرُوجِ.**

**دق سورت، ۴۱- ۴۲ ،ایتونه**

هغه ورخ چې غږ کوونکی دنږدې محل څخه نداوغږ کوي...هغه ورځ د«خروج»ورځ ده.



❖ دروم په سورت کې دايرانيانو لخوا درروميانو شکست دمحل په باره کې دارنګه فرمائی :

**فِيْ اَدْنَي الْاَرْضَ.**

**دروم سورت ۳ - ايت**

په نږدي ترينه ځمکه کې.

۵۴۱ ۱۶فصل:زمونږ دعصر ددوه موعودو نومونه اوالقاب په قران اواحاديثو کې

---

---

دځنې احاديثو څخه د«**يَوْمَ يُنَادِ الْمُنَادِ مِن مكَانٍ قَرِيبٍ**»ايت دقايم دظهور سره اړيکه ورکوي،دهغې جملې نه دالاندې حديث دبخارالانوار :

**ينادالمناد باسم القائم . ۷۰**

«منادي ياغږکوونکی»دقايم په نوم غږ کوي.

دبحث وړ ايت ته ورګرځو:

**يَوْمَ يُنَادِ الْمُنَادِ مِن مكَانٍ قَرِيبٍ يَوْمَ يَسْمَعُونَ الصيْحَةَ بِالْحَقِّ ذَلِكَ يَوْمُ الْخُرُوجِ.**

**دق سورت،۴۲-۴۱،ايتونه**

په هغه ورځ چې نداکوونکي دنړدي محل څخه غږ کوي .په هغه ورځ چې دحقيقت غږ اورې ،هغه دخروج «وتلو»ورځ ده.

د«خروج ورځ»يعنى څه ؟دااصطلاح په احاديثو کې به کراتو کارول شوې ده. اوپه معنى کې مطابق ده «په دې جهان کې دقائم دظهور سره».داحاديثو څو نمونې چې د«خروج»دکلمې په ذکر سره دموعود قائم ظهور ته اشاره کوى:

- **ذالک يوم الخروج** :هغه دخروج ورځ ده .
- **خروج القايم :**دقايم خروج .
- **بعد خروجه يکون قيام الساعة :**وروسته دهغه دخروج څخه قيامت راځي.
- **متى يخرج القايم ؟**:څه وخت قايم خروج کوي؟
- **بخروج القايم :**دقايم په خروج .
- **اذا خرج المهدې** :کله چې مهدي ظاهر شي.
- **خروجه خروج رسول الله** :٧١ دهغه ظهوردرسول الله دظهور په شان دى.

---

❖ **يَوْمَ يَسْمَعُونَ الصيْحَةَ بِالْحَقِّ ذَٰلِكَ يَوْمُ الْخُرُوجِ.**

The day they hear the Cry of Truth, that is the day of rising again

**دمجيد فخري ژباړه .**

د«خروج»په کلمه کې یو بله معنا هم پټه ده .په همغه توګه چې دسورة کهف پورې مربوط فصل کې پرې بحث وشو.هر پیغمبر په خاص کهف (غار)کې ظاهریږی .اودهغه پیروان په هغه غار کې دپروردګار دحمایت اوسیوری لاندې وي .ترهغه وخته پورې چې دهغه ائین دامت اجل راورسي.په هغه زمان کې دپروردګار دنور رڼا په هغه غار کې پای ته ورسي ،اودجهان په یوبل غار کې نور اورڼا وي .دقران په اصطلاح:
«**ذَالِکَ یَوْمُ الْخَرُوجِ**»«هغه ورځ دخروج ورځ ده».داهغه ورځ ده چې دمخکنې ائین پیروان دپخوانی ائین دغار نه دباندې راوځي ،دنوي ائین ترسیوری لاندي منزل (کور)ونیسي.ځکه په هغه ساعت اوتیم

سره نوې ورځ شروع شوې ده .دقيامت وخت دی نه دغفلت اوارامې وخت . داسنت تغير پذير نه دي:

**لاَ تَجِدُ لِسُنَّتِنَا تَحْوِيْلاً.**

**داسرا سورة ،۷۷- ايت**

زمونږ په روند اوسنتو کې تغير نشي پيداکولای .

هميشه دارنګه وه اوهمداسی به وي:

**لَقَدْ ارْسَلْنَا مُوسىٰ بِآيَاتِنَا انْ اخْرِجْ قَوْمَكَ مِنَ الظلُمَاتِ الَى النورِ وَذَكِّرْهُمْ بِايامِ اللهِ.**

**دابراهيم سورت،۵-ايت**

موسی مې دخپلو ايتونو اونښانو سره ولیږل. (اوهغه ته مې حکم وکړ)چې خپل قوم د تيارې نه راوباسي. اورڼآئې ته دې ورسوي. اوهغوې ته يادونه وکړه .چې دخدای ورځې به راشي.

راتلونکې ايت هم وښائي چې خلک يوځل بيا دخدای لارې ته بلل کيږي اودهغوې ځنې ډلې دبلنې ور کونکې غږ ته ځواب وائي.

**يَوْمَئذٍ يَتبِعُونَ الداعِيَ ...**

**دطه سورت،۱۰۸،ايتونه**

په هغه ورځ (رښتينې مؤمنين )دبلنې ورکونکې پيروي کوي...

**قل انّ هذا صراط الله فاتّبعوا لعلّكم ترحمون . ۷۲**
**حضرت باب**

---

✰ د«خدای ورځې»زمونږ دعصر ورځو ته اشاره ده .

۵۴۳ ۱۶فصل:زمونږدعصر ددوه موعودو نومونه اوالقاب په قران اواحاديثو کې

---

---

ووايه !دادخدای لار ده .پيروی ئې وکړئ. ترڅو دخدای دبخشش لاندې راشئ.
دپيغمبرانو دظهور په وخت کې ،ډير خلک،ددې جهان په کارونو بوخت وي. اودګيرو دار اود غوغا نه په ډک ژوند کې ،دپروردګار دغږ اوريدل دهغوې لپاره مشکل کار دی:

**يَوْمَ يَدْعُ الداعِ الَ□ شَيْءٍ نكُرٍ... يَقُولُ الْكَافِرُونَ هَذَا يَوْمٌ عَسِرٍ . دقرم سورت،٨،۶،ايتونه**

په هغه ورځ چې داعي اودعا ويونکی، خلک مشکلو اوسختو کارونو ته رابولي ...منکرين وائي:
داسخته ورځ ده .

دمنکرينو لپاره سخته ورځ ده ،اما مهربانه خدای په بې شماره نښانو په ورکولو سره وفاداره مؤمنانو لپاره کارونه ډير اسانه کړي دي.په همدې سورة کې مونږ ته يادونه کوي.چې دذکر پيژندل ئې زمونږ لپاره اسانه کړي دي:

**لَقَدْ يَسرْنَـا الْقُرْآنَ لِلذِّكْرِ .**
**دقمر سورت،١٧-ايت**

دذکر«دپيژندنې»لپاره مې قران اسانه کړی دی.
ددې لپاره چې خدای مه کړه، دپروردګار «ذکر»له ياده وباسو ،پروردګار همدا مخکينی ايت په همدې سورة کې پنځه (۵)ځلې تکرار کړی دی.
دموعود نه انکار دپروردګار لوی سپکاوی اوتوهين دی .دپروردګار دشاهدې په اساس دغه انکار درد ناکې نتيجي په وړاندې لري:

**انّ الّذين يكفرون بآيات الله بعد ما قد جائهم الذّكر بالايات..فبشّرهم بحكم ربّک من عذاب اليم..قل ان**

**حجّةالله بالغة فی ذلک الکتاب ...۷۳**

**حضرت باب**

هغه څوک چې دالهی ایتونو څخه منکر دي ،وروسته له هغه چې «ذکر»دایتونو سره هغوې ته راغی ...دپروردګار په حکم هغوې ته ددردناک عذاب خبر ورکړه. ...ووایه!دپروردګار محبت اودلیل په هغه کتاب کې کافي دی.

**لن ینفعهم ایمانهم اذا لم یکونوا مؤمنون بذکرالله و اولئک هم المشرکون .۷٤حضرت باب**

که دخدای په «ذکر»ایمان رانه وړي ،دهغوې ایمان هغوې ته کومه ګټه نه رسوي. اود مشرکانو څخه ګڼل کیږي.



**دالهي رحمت «باب»**

د«باب»لقب په دې ایت کې په ډیر ښکلي شکل سره ئې وړاندوینه شوې ده :
**فَضُرِبَ بَيْنَهُم بِسُورٍ لهُ بَابٌ بَاطِنُهُ فِيهِ الرحْمَةُ وَظَاهِرُهُ مِن قِبَلِهِ الْعَذَابُ.**

**دحدید سورت،۱۳-ایت**
دمنکرینو او مؤمینانو ترمنځ دیوال جوړ شو. چې یو «باب»یایوه دروازه لري.دهغه دروازی دننه «رحمت»اودباندې «عذاب»دی.
توضیح:کوم«باب»کیدلی شی هم د«رحمت باب» وي او هم د«عقوبت باب»وي؟
ایا په غیر دهغه «باب»اودروازی چې مونږ دموعود ځآی ته رسولی شي ،بل کوم «باب»او دروازه کیدلی شي؟
**قل انّ ا لذین دخلوا فی ا لباب سجدا...ذلک قائم الذی کل ینتظرون یومه و کل به یو عدون ...۷۵**
**حضرت باب**
ووایه!هغه کسان چې په خضوع اوعاجزې سره په «باب»اودروازی کې داخل شو... دا (هغه باب)قایم دی. چې ټول ئې دظهور دورځې منتظر وی...
په قران مجید کې زمونږ دعصر دموعود دپیژندنې اومعرفي لپاره ډیرې نښانې راغلې دي .د«باب»کلمه

په دې ایت کې یو له هغو نښانو څخه ده. په مخکنې ایت کې پروردګار په ډیر ښکلي شکل سره دموعود قایم لقب حضرت باب مونږ ته رازده کوي. ځکه چې دجهان خلکو لپاره په خاصه توګه دمسلمانانو لپاره دهغه ظهور درحمت دروازه ده ،خلک مختار دي. چې دهغه موعود بلنه ومني. اوپه دې جهان کې دهغه «رحمت دباب»څخه دپروردګار نوي ائین ته داخل شي،اودهمیشنې بخششونو څخه برخه من شي،اویا دهغه درحمت دروازې شاته پاتې شي.اوترابده پورې دغم اوماتم اودپروردګار نه لرې وژاړي. اوفریاد وکړي:

په «مزامیر داود»کې هم دحضرت باب لقب ذکر شوی دی:

---

---

داد«پروردگارباب»دی. (باب الله)چې دهغې څخه به نیکو کاره خلک«الهي ائین»ته داخل شي...مبارک دی هغه څوک چې د«ربّ »په نوم راځي؟داود مزامیر ۱۱۸فصل،۲۶و۲۰

په دې وینا کې ،حضرت باب ،کریم خان کرمانی اودهغه پیروان رابولي چې د«رحمت باب»دځان په وړاندې خلاص کړي:

**ان ادخلواالباب سجّداً لعلّکم تفلحون .۷۶**

**حضرت باب**

د«الهي رحمت»له باب څخه په عاجزۍ اوبنده ګۍ سره داخل شئ. ترڅو
رستګاراووژغورل شئ .

د«باب»کلمه څو ځلې په قران کې دیهودو قوم ته راغلې ده .هغوې هم باید په نهایت خضوع اوبنده ګۍ سره دالهي رحمت دباب څخه داخل شي:

**قُلْنَا لَهُمُ ادْخُلُواْ الْبَابَ سُجدًا .**

**دنساء سورت،۱۵۴-ایت**

ديهودو قوم ته موو‌ويل:په ډېر تعظيم اوعاجزۍ سره دی«باب»ته داخل شی.
ايا ممکنه ده چې په دې ايتونو کې پروردګار نه يواځې له تيرو خبرې کوي ،ديهودو قوم اينده ته هم نظر لري؟ځکه حضرت باب دټولو قومونو اواديانو اودټول جهان دخلکو موعود دی. اودټول جهان خلکو ته دايمان راوړلو بلنه ورکوي:

**فما لکم لا تدخلون هذاالباب سجداً ...٧٧**

**حضرت باب**

په تاسې څه شوي دي؟ولې په خضوع اوعاجزۍ دې «باب»ته نه داخلیږئ؟
حضرت باب په تبريز کې دناصرالدين ميرزا وليعهد اويوه ډله مجتهدين دښار حاکمانو په حضور کې محاکمه شو.ددې محاکمې په ضمن کې،حضرت باب دقران ايت نه «أُدْ خُلُوا الْبَابَ سُجَّدَاً»ته اشاره وکړه .دښار مجتهد ملا محمد ممقاني په دې محاکمه کې شرکت لرل .زوی ئې ملامحمد تقي ددې محاکمې شرح دپلار څخه په کراتو اوريدلې ده. اوپه کتاب کې ديادګار په توګه ليکلې ايښې ده .ددې نوشتې په اساس ،نظام العلما ،دمحاکمې دمجلس رئيس دحضرت باب څخه پوښتنه کوي:

**This is the Gate of the Lord, through which the ☆**
**righteous shall enter…Blessed is**
**He who comes in the name of the Lord!**
**Psalms 118: 20, 26 NIV**

قران اوبهاءالله



---

---

- تاسې دخه شی باب یاستې ؟
- **حضرت باب :انا مدينة العلم وعلّى بابها.**
- **نظام العلما :باب مدينة علمې ؟**
- **حضرت باب :بلى فادخلو االباب سجداً...**

**دمحاکمې دتمامیدو څخه وروسته ،حضرت باب ئې دفتوای داخیستلو لپاره دځو تنو مجتهدینو ته دهغې جملې نه ملا محمد ممقاني ته وړي .ددې مجتهد زوي دملاقات په وخت کې دحضرت باب سره دپلار په خوا**

**کې حاضر ؤ اودهغه دوينا شرح ئې په کتاب کې دیادګار په توګه ايښی ده .ددې کتاب په اساس ،هغه مرحوم [ملا محمد ممقاني]هغه څه چې حکيمانه نصيحتونه اومشفقانه وعظ ؤ په ډير شفقت اوزړه سوی له مخې [حضرت باب]ته وکړ ...[اما]اثر ئې ونه کړ...۷۸**

اوبيائې دحضرت باب خبرې دخپل پلار ،ملا محمد ممقاني ،دښار مجتهد سره دا رنګه توصيفوي:

**مجتهد**:اوس بيا په همغه دعوا کې چې په همايونی مجلس کې زما په وړاندې وکړې. دصاحب الامر دعوې ،دوحی دباب خلاصيدل اودقران نه دمثال راوړل او نور ،ايا په هغو خبرو تراوسه هم ولاړ ئې؟

**مجتهد:**له دې عقيدې څخه وګرځه ،ښه نه ده .خپل ځآن اوخلک په هلاکت کې مه اچوه .

**حضرت باب :**حاشا وکلا [په هيڅ وجه ،ابداً ،اوهيڅکله نه !]

مجتهد پلار مې يو څه نصيحتونه اقای محمد علی ته وکړل ،ولی ګټه ئې نه لرله.

**دخبرو ادامه :**

**حضرت باب** :اوس تاسې زما دمرګ فتوی ورکوې؟

---

❖ زه دعلم ښار يم. اوعلی دهغه «باب» دی.
دادرسول اکرم حديث دی. دامير مؤمنانو په باره کې .
❖ اقای محمد علی «زنوزي»ملقب په انيس سره :هغه ځوان ؤ چې پخپل اختيار او اصرار دحضرت باب سره يوځای په شهادت ورسيد.



---

**مجتهد :**زما فتوی ته حاجت نشته دی ،ستا خبری چې ټولې دارتداداومرتدکيدلو دلايل دي. پخپله ستا فتوی ده .

**حضرت باب:**زه له تاسې پوښتنه کوم.

**مجتهد:**اوس چې ته ډير اصرار کوې ،بلی کله چې ته تراوسه په دې باطله ادعا کې ...باقي ئې. دشرع په حکم ستا قتل واجب دی ،خوسره له دې کله چې دفطري مرتد توبه راته ښه ښکاري ،که له دې عقيدې

څخه وګرځې اوتوبه وباسې زه تاله دې هلاکت څخه خلاصوم.

**حضرت باب: حاشا ،په هیڅ وجه نه ،خبره همغه ده. چې مادرته کړې ده. اودتوبې ځای په کې نشته .۷۹**

کله هم د«باب»کلمه دخلکو د«مستې اوبې خبرې»په رابطه کارول شوې ده . هغه خلک چې دخپل ځانه بې خبره اوداسې ګیچ دي. د«الهي رحمت باب»ئې ونه پیژندل:

**ان المشرکین لف□ سکرة البعد عن هذاالباب لقد کانوا من غیرالحق مبهوتاً ... ۸۰ حضرت باب**

په یقین سره مشرکین دمستې په لریوالی کې له دې «باب » څخه ژوند کوي. په یقین سره هغوې ګیچ دي...

دحضرت باب اصحاب دقران دایت درابطې څخه دپروردګار دنوي موعود دظهور څخه اګاه ؤ .دالاندې وینا دطاهرې قرةالعین ده :

**یتبعون اهوائهم ولا یدخلون الباب سجدا لیکونوا من الفائزین.۸۱**

دخپلو نفساني غوښتنو څخه پیروي کوي ،اوپه عاجزې اوخضوع سره «باب»ته نه داخلیږي. ترڅو نجات اوخلاصُون پیداکړي.

د وحي ژبه حضرت باب ته په خطاب کې دارنګه وائي:

**يا قرةالعين انظر ال□ الناس بالعين الحديدة فهل من نفس تجد فيها غيرالسکرعن السر الاکبر.** ۸۲

**حضرت باب**

---

❖ «**قرّة العين**»زمونږ دعصر ددوه موعودو دمشترک لقب څخه دی. دالقب طاهره قرة العين ته هم بخشش شو.



---

اې دسترګو روښنائې ! خلکو ته په تيز بينو سترګو نظر واچوه .ايا دهغوې په منځ کې داسې څوک پيداکولای شي چې دمستې اوبې خبرې په حالت کې د «لوی سريت» د (حضرت باب په ظهور کې)نه وي؟

دخلکو مستي ،دهغوې بې خبري، دبشر په تاريخ کې د «لوی خبر» څخه ده .داسې ډير خلک دي. چې څاڅکی شراب ئې څکلي نه وی. امّا قيمتي عمر په مستې کې تيروي. اوپه عالم دبې خبرې کې خوشحاله وي:

**وَتَرَی الناسَ سُکَارَی وَمَا هُم بِسُکَارَی .**

**دحج سورت، ۲-ايت**

خلک به مست ګورې، اما هغوې مست نه دي.

**دځمکې ټول خلک په مستې اوغفلت کې دي. ۸۳**

**حضرت بهاءالله**

## پروردګار دهغه کلام څخه پيژندلی شی

**هَذَا صِرَاطُ رَبِّكَ مُسْتَقِيمًا...اَلَمْ يَا تِكُمْ رُسُلٌ مِّنكُمْ يَقُصُّونَ عَلَيْكُمْ آيَاتِي وَيُنذِرُونَكُمْ لِقَاء يَوْمِكُمْ هَذَا...ان مَا تُوعَدُونَ لآتٍ وَمَا انتُم بِمُعْجِزِيْنَد. دانعام سورت،۱۲۶، ۱۳۰، ۱۲۶، ۱۳،ايت** داستا دپروردګار سمه لاره ده ...ايا ستاسې له منځه پيغمبران رانه غلل ؟ايا زما ايتونه ئې تاسې ته ونه ويل ؟اوتاسې ته ئې دداسې يوې ورځې دراتللو اخطار درنه کړ؟...په يقين سره دهغه څه چې تاسې ته ئې وعده درکړل شوې ده. تحقق به وومومی اوتاسې به دهغه دتحقق موندلو ممانعت ونشی کړلای .

انّ هذا لهو الحقّ صراط الله في السّموات والارض فمن شاء اتّخذه الی الله بالحقّ سبيلاً . ٨٤

حضرت باب

په يقين سره داحقيقت دی !داهغه لاره چې پروردګار دځمکې اواسمانونو والاو دپاره ټاکلی ده .پس هرڅوک چې مايل دی ،هغه لاره ونيسې چې پروردګار ته پرې ورسې.

داهغه موعود دی. چې ټولو اسماني الهي کتابونو دهغه بشارت ورکړی دی. سره له دې دځمکې والا له هغه څخه غافل اومحجوب ليدل کيږي.٨٥

حضرت بهاءالله



# احادیث څه وائي؟

داحادیثو اهمیت دقران دایتونو سره په جوړښت کې دی .هغه احادیث چې هم دقران سره یو دي. اوهم ئې په بهائې ائین کې تحقق موندلی دی. دومره ډیر دي. چې کیدلای شي ددې ائین دتاریخ مهمه برخه دهغوې په کمک ولیکله شي .حضرت باب اوحضرت بهاءالله دهغوې دجملې نه ځنیو ته اشاره کړې ده .دهغې جملې په کتاب دایقان کې فرمائي:

**څرنګه چې ټول خلک په یو شان اویو مقام کې نه دي .له دې کبله څو حدیثه ذکر کوم ترڅو دمتزلزله خلکو داستقامت لپاره یو سبب شي. اوپریشانه عقلونو ته اطمنان اوډاډ وګرځي. اوهم دټولو الهي بنده ګانو لپاره دلیل اوبرهان شي. ١ حضرت بهاءالله**

بهائي ليكونكو اودانشمندانو هم د«استدلال او اثبات»په کتابونو کې په تفصييل سره ئې دااحاديث بيان کړي دي .نويسنده اوليکوال داحاديثو اعّلى مراجعو ته په غير د«بحارالا نوار»څخه لاس رسى نه لرل .هغه چې په دې کتاب داحاديثو کې راغلي دي دبهائې ليکوالانو داثارو څخه دي.



---

په دې لحاظ دهغوې دزحمتونو قدرداني کوم .ددې لايق دي. چې ځينې دهغوې څخه اودهغوې داثارو نومونه ذکر شي:

| کتاب | مؤلف |
| --- | --- |

| | |
|---|---|
| فرائد استدلالیه مختصر | ابوالفضل گلپایگانی |
| قاموس ایقان | صدرالصدور |
| بشارات کتب مقدّسه | عبدالحمید اشراق خاوري |
| بشارات | نقبائی |
| جنّات النعیم | مؤلف نامعلوم |
| تبیان و برهان | عبدالحمید اشراق خاوري آل احم |

**حضرت باب (۴۰)تنو اصحابانو ته امر وکړ چې هر یو «داثبات رسالـه»ددې «امر»په اثبات کې ولیکي.۲**

هغه احادیث چې حضرت بهاءالله د«ایقان په کتاب » کې دحضرت باب په باره کې نقل کړي دي .په هغوې کې ډیر مطالب پراته دي.دهغې جملې نه داچې قائم موعود:

- درسول اکرم په شان دنوو احکامو سره راځي.
- ډیر اسرار اوحقیقتونه به بیان کړي.
- دبنی هاشم دنسل نه به وي.
- ځوان به وي.
- ډیر دښمنان به ئې ددین پیشوایان (ملایان)وي.
- داعرابو لپاره به ئې ظهور اوپیژندنه مشکله وي.

وائي؟

---

---

- هغه څه چې مهدي موعود وائي ،دينې علما اوپيشوايان به دهغه ضد حقيقت ګڼي.
- پيروان به ئې دخلکو دظلم سره مخامخ کيږي .ډير ئې په قتل رسيږي.
- دهغه دپيروانو قاتلان به دعجم داولادې څخه وي.
- دهغې زماني فقها اوپيشوايان به ډير خواره خلک وي.

- هغه موعود به په (۶۰) کال کې دخپل امراعلان کوي.

دپورتنیو احادیثو دذکر نه وروسته حضرت بهاءالله فرمائي:

**خلکو ته وګورې چې ددې احادیثو څخه د یوه ذکر هم نه کوي ،اودهغه احادیثو چې صحت ئې معلوم نه دی په هغوې پورې کلک نښتي دي چې ولې ظاهر نشو.۳**

وروسته بیا یادونه کوي. که ځنې دروایاتو څخه په ظاهري توګه تحقق پیدانه کړي ،مؤمنان نه باید مضطرب اوپریشانه شي، «بلکه دخپل نه درک له امله بارومني...اوله اهل څخه ئې پوښتنه وکړي .سمه نه ده چې یوڅوک دمشکوکو روایتونو په اساس خپل ځان دالهي رحمت اوفیض څخه منع کړي .

په همغه ډول چې په کراتو ئې په دې کتاب کې ذکر شوی دی،هیڅکله پیغمبران د خلکو دانتظار په اساس نه دي راغلي .دانکار سبب ، دخبرونو غلط تفسیر اوداسماني کتابونو دبشارت غلط تفسیر ؤ .ددې لپاره چې دغلط تفسیر په نتایجو پوه شو. ښه دی چې یو مثال ذکر شي .دپیغمبرانو ظهور دلمر دوړانګو په څیر دی .ایا دلمر په لیدلو کې کوم مشکل شته دی؟

---

❖ بهائي دانشمندان ،عبدالحمید اشراق خاوري ،دایقان کتاب احادیث، په قاموس دایقان کې، په تفصیل سره تشریح کړي دي.



---

لمر دځمکې نه یو میلون اودرې سوه زره وارې غټ دی .په دې حالت کې یوه ټوټه وریځ کولای شي دلمر مخ پټ کړي .دخلکو ناسم انتظارات دهغې ټوټې وریځې په شان دي .په تمامه معنی دهغوې دبصیرت قوت له کاره اچوي .که یو پیغمبر په زرهاونښانو سره برابر ظاهر شي،هغه یو ناسم انتظار په یواځې توګه

کیدلای شي. خلک دپیژندنې څخه لرې وساتي .مؤمنان هغه انتظار دیوې ټوټې ورځې په شان ګورې ، امّا دلمر د لیدلو څخه کوم چې دپروردګار رالیږل شوې عظمت اوجلال دی. محروم اوعاجز پاتې شي.

دشیعه ګانو لپاره ،داحادیثو مهمترینه مرجع دقایم دظهور په اړه،۱۳جلده «بحارالانوار» دمجلسې تالیف دی .داکتاب دوه ځلې په فارسي ژباړل شوې دی.

ددې لپاره چې د شیعه ګانو دعلماو اوپیشوایانو نقش دبهائې ائین په اړه وپیژنو ،لازمه ده. چې د«بحارالانوار»

مقدمې ته یو لنډ نظر واچوو .په دې دستور چې ایت الله بروجردي هغه کتاب دوهم ژباړوونکي ته ورکړی دی. توجه وکړئ:

هغه وخت ایت الله بروجردي وویل:

تاسې د«بهائیانو » دګمراه فرقې کتابونه مطالعه کړئ .په هرځای کې نوشته دي:

**مجلسی په «۱۳ جلد بحارکې [داسې]وائي...»«تاسې دکتاب په مقدمه کې اویا د پای په پاڼو کې توضیح ورکړئ. چې مطلب داسې نه دی .اوحدیث په دې دلیل اوپه هغه دلیل ضعیف اویامجهول دی ،یائې یوڅه شیان ترې کم کړي دي. اویائې یوڅه په هغه وراضافه کړي دي،یاهغه پخوانې ژباړنې ګنګې**

**اوناسمې دي.اوحديث اصل دا دی ،نه هغه چې بهائيانو وړاندې کړي دي...»۵**

دايت الله بروجردي له دستوراتو څه برداشت اواستنباط کوي؟احاديث د رسول اکرم اوامامانو وينا ده .چې دزروکلونو نه زيات قدامت اوسابقه لري. اوپه مختلفو کتابونو کې له پخوانه ساتل شوي دي

.«بحارالانوار»دقائم موعود په اړه داحاديثو مجموعه ده. چې (۳۰۰) درې سوه کلونه پخوا راټول اوخپاره شوي دي.



وائې:

ډیر مؤمنان یو مطلب وائي. بې له دې چې دهغه په باره کې فکر وکړي.په دې سبب سره قران مجید په کراتو له مونږ پوښتنه کوي:

**افلا تتفکرون؟**

**دانعام سورت، ۵۰-ایت**

ایا «ولې»فکر نه کوې؟

ښه به وي. چې دایت الله ددستور په باره کې یوڅه فکر وکړو. اووګورو. چې کوم مقصدونه په هغه کې پراته دي . ښکاره ده چې هدف ئې دهغو احادیثو خنثې کول دي.چې دبهائې ائین په ظهور کې تحقق پیداکړی دی . دې مقصد ته درسیدو لپاره ،

د«بحارالانوار»ژباړونکي ته پنځه(۵) لارې ورزده کوي. ترڅو دهغو په وسیله د شیعه ګانو اعتماد په دې احادیثو کې کم شي.دوې محترم ژباړونکي ته دستور ورکوي. چې دبهائي ائین داړوندو احادیثو په اړه ولیکي چې :

۱.«په دې دلیل اویاپه هغه دلیل هغه احادیث ضعیف اویا مجهول دي.»

۲.«له هغه حدیث څخه ئې مطالب کم کړی دی.»

۳.«په هغه حدیث ئې ځنې مطالب اضافه کړي دي.»

۴.د«بحارالا نوار مخکینې ژباړه داعتماد وړ نه ده .»

۵.اصلا دااحاديث سم نه دي :«اصل حديث دادى ،نه هغه چې هغوې وړاندې کوي.»
داډول دستورونه کوم کارسرته رسوي؟ايا د«حديث جوړولو»سره شباهت نه لري ؟
هغه کار چې دپخوا نه په مسلمينو کې معمول ؤ؟هغوې وائي. مسلمانانو ته ووايه. چې ددې حديث اصل دادى ،نه هغه چې هغوې ئې وړاندې کوي . بهائيان يواځې د«بحارالانوار»حديثونه وړاندي کوي . که هغه حديثونه اصل نه دي. هغه اصل حديثونه چيرته دي. آيا داحديثونه يواځې دبهائيانو په اختيار کې دي. چې دهغې څخه مطالب راواخلي. اويا په هغو ور اضافه کړي ؟

هغه څه چې دحيرانتيا سبب دي. دادي چې ژباړونکې
بې له دې چې دخپلې نوشتې په معنى پوه
شي،داتاريخي دستور د ايت الله نه د«بحارالانوار»په
مقدمه کې ليکلى دى.په قران مجيد کې څو ځلې
دتحريف خبره رامنځ ته شوې ده ،دهغې جملې نه په
دې لاندې ايت کې:

**يُحَرِّفُونَ الْكَلِمَ مِن بَعْدِ مَوَاضِعِهِ .**

**دمائده سورت، ۴۱-ايت**

دګفتار اووينا معنى دخپل مقصد څخه جوړوي (الهي
کلام په غير له هغه چې دى وښائي)ايا د ايت الله
دستورونه په غير له دې چې درسول اکرم اوامامانو
وينا تحريف کړي بل څه شى دى ؟
په نظر راځي چې مخکينې ژباړونکى
د«بحارالانوار»بې طرفه ؤ.ايت الله بروجردي ددې
کتاب دوهم ژباړونکي ته ورزده کوي .چې داحاديثو
په ژباړه کې احتياط وکړي، ترڅو د امکان ترحده
دهغوې معنا منحرفه کړي. ترڅو دبهائې ائين دپيښو

مطابق نه وي. دقران داايت د دا ډول پنهانکارانو دحال صفت دی:

**يَا اهْلَ الْكِتَابِ قَدْ جَاءكُمْ رَسُولُنَا يُبَيِّنُ لَكُمْ كَثِيرًا مِّما كُنتُمْ تُخْفُونَ مِنَ الْكِتَابِ .**

**دمائده سورت،۱۵-ایت**

اې دکتاب والاو !زما پيغمبر ستاسې خواته راغلی دی. ترڅو ډير هغه حقايق چې تاسې پټول تاسې ته روښانه کړي.

**داسې ورځ به راورسي. چې په هغه کې به دحق اوربښتيا دپټولو نه ،اودناسمو دښکاره کولو نه، اوپه خدای اودهغه په رسول ددرواغو تړلو نه بل څه نه وي.۶**

**حضرت امير**

څرنګه چې دمسلمانانو په منځ کې احاديث مهم نقش لري ،ښه به وي. چې دهغوې تحقق ته په دې ائين کې يو لنډ نظر واچوو .دحضرت بهاءالله دوينا په اساس ددې احاديثو بررسي چې دقران ايتونو سره سمون لري ،زمونږ داډ اوباور نور هم زياتوي.

## ۱

## دخلکو نظر قران ته

**دهغه وخت خلکو په وړاندې ،به بل هيڅ شی دقران نه بې قدره نه وي.کوم چې په حقه اوربنتينولی سره بايد وويل شي...دهغوې نظرونه به دقران پيشوايان وي ،نه داچې قران دهغوې رهنما اوپيشوا وي.۷ حضرت امير**

## ۲

## دخلکو بې ديني

**له دين څخه دباندې وځي ،په هغه ترتيب چې تير دکمان نه بيرون وځي.۸**

**حضرت امیر**

**٣**

## دعلم خپریدل دقائم په عصر کې

**ان المؤمن فی الزمان القائم و هو بالمشرق لیری اخاه الذی فی المغرب و کذا الذی فی المغرب یری اخاه الذی فی المشرق .٩**

**امام صادق**

دقائم په زمانه کې یو مؤمن په مشرق کې دی. بل وروروئې په مغرب کې ګوري. همدارنګه په مغرب کې دی. اوخپل ورور په مشرق کې ګوري.

**٤**

## دمهدي موعود میهن

**الله تبارک و تعالی...یمن بهذالدین علی اولاد الاعاجم .**

**١٠ امام رضا**

پروردګار تبارک وتعالی ...ددې دین په ورکولو سره دعجم اولادې ته په هغوې احسان کوي.

**که دین دثریا په ستاره کې وي ،دعجم باتوران به هغه ته لاس رسې پیداکړي . ١١**

**رسول اکرم**

## ۵

## دقائم موعود نسب

**المهدی من عترت□ من ولد فاطمه .۱۲**

مهدي زما دنسل څخه اودفاطمې اولاد دی.

قران اوبهاءالله

۵۵۶

---

---

**قال رسول ا لله ص القائم من ولدی...۱۳**

دخدای رسول فرمائي : قایم زما داولادونو څخه دی...

## ۶

## دقائم موعود عمر

**و ان من اعظم البلیه ان یخرج الیهم صاحبهم شابا و هم یحسبونه شیخاً کبیرا .۱٤ امام صادق**

لوی مشکل دادی . چې دهغوې قایم دځوانې په عمر کې ظاهر شو ،اوحال داچې خلک ددې منتظر دي. چې زوړ وي.

# ۷

**دقائم دسلطنت موده ۱۹کاله اوڅو میاشتې ده۔۱۵**
**امام صادق**

حضرت باب په ۱۲۶۰ هجری قمری کال په شیراز کې اوحضرت بهاءالله وروسته له (۱۹)کلونو اوڅو میاشتو په ۱۲۸۰ هـ ق کال خپل امر په بغداد کې اعلان کړ.

# ۸

## تور بیرغونه

**اذا رأیتم رأیات السود قد اقبلت من خراسان فائتوها ولوحبوا على الثّلح فانّ فیها خلیفة الله المهدی . ۱۶**
**رسول اکرم**

کله چې وګورئ. چې توربیرغونه دخراسان لخوا په حرکت کې دي ،دهغوې استقبال ته په عجلې سره ورشئ ،حتی که خپل ځانونه د واورو په مخ راکاږی، ځکه چې دهغو بیرغونو لاندې به دخدای جانشین مهدي پیداکړئ.

**دحضرت مهدي عجل الله فرجه اصحاب به۳۱۳ تنه وي،دبدردجنګ دمبارزانو به اندازه.۱۷**
**امام باقر**
مخکيني روايتونو دحضرت باب په دوران کې تحقق وموند .دتاريخي مدارکو په اساس:



وائي؟

---

---

**«جناب ملاحسين په [حضرت باب لمړنې مؤمين]دڅوورځو اقامت څخه وروسته په اردوګاه کې دمشهدبښارته رجوع وکړه... ناڅاپه يو امين قاصد دحضرت باب له ځايه راغی، اوشنه پګړې چې هغه حضرت دملاحسين لپاره ئې راليږلې وه، هغه ته ورکړه. حضرت باب ويلی و.چې ملاحسين دې شنه پګړې په سرکړي. اوله هغه وروسته دې په نوي نوم**

سید علی سره یاد شي.داصحابوسره یوځای دې دتورو بیرغونو په پورته کولو سره دجناب قدوس دملازمت لاندې جزیرة الخضراء ته توجه وکړي، چې دجزیرة الخضراء څخه منظور مازندران اودشیخ طبرسي ښکلې مقبره ده . ملاحسین دحضرت باب مبارکو اوامرو داجرا لپاره ددوه سوه تنو اصحابو سره د۱۲۶۴هجري قمري دشعبان په ۱۹تاریخ مازندران ته ورسید. هغوې دلارې په اوږدو کې چې هرې نقطې ته رسیدل نوې امر ئې دهغه محل خلکو ته ابلاغول. په هره نقطه کې څو تنه داصحابو سره یوځای کیدل . په هرحال دې حالت او سلوک ادامه پیداکړه.ترڅو چې اصحاب دشیخ طبرسي کلي ته ورسیدل. دهغو شمیر ۳۱۳تنه وه. څرنګه چې په دې هکله دنبیل په تاریخ کې داسې راغلي دي:داصحابو شمیره ...درې سوه دیارلس نفره شو. کله چې جناب قدوس داصحابو دشمیرې څخه خبرشو وئې ویل: ټول هغه چې حضرت رسول اکرم (ص)دحضرت قایم موعود په هکله فرمایلی ؤ.ظاهراوښکاره شو. ترڅو دپروردګار دلیل او حجت ددین په پیشوایانو چې خپل ځانونه داسلام ددین دشریعت په تفسیر عالمان ګڼي، اوخپل ځانونو ته داحادیثو مفسرین وائي، کامل اوپوره شي.۱۸

# ۹

## داذربايجان برخليک

حضرت باب داذربايجان دښارونو څخه په دوه ښارونو کې (ماکو اوچهريق)کې دخلکو نه لرې ديوه غره په لمن کې (بندي)شو،په تبريز کې محاکمه شو،اوپه همغه ښار کې په شهادت ورسيد .کله چې دحضرت باب پيروانو غوښتل هغه ددښمنانو څخه خلاص کړي. وئې نه منل .دهغوې په ځواب کې وويل:داذربيجان غرونه هم حق لري .تقدير دارنګه ۀ چې هغه موعود په شهادت ورسيد.



---

هيڅ شي نشو کولای دهغه مخه ونيسې . حضرت صادق داپيښه دارنګه پيشبيني کړه :

**لابد لنا من اذربيجان ما لا يقوم لها شيئ.۱۹**

زما لپاره په اذربیجان کې داسې پیښه واقع کیږي.چې
هیڅ شی دهغې مخ نیوی کولای نشي.مذهبي پیشوا
،کریم خان کرمانی ،دبهائې ائین سرسخت دښمن په
کتاب د(ارشادالعلوم)کې دیوه مجتهد په باره کې کوم
چې دحضرت باب دشهادت حکم امضاء کړی دی. ملا
محمد ممقاني دارنګه لیکي:

**ملا محمد ممقاني وروسته له هغه چې د«باب»کورته ورغی. مخ ئې «باب» ته واړول. اورته ئې وویل: دادکتابونو اوصحیفو مجموعه ستاسې په خط ده اوکه نه؟ «باب»ورته وکتل اووئې ویل: بلی دازما مال دی. اوزماپه خط دی .ممقاني وویل :په دې خبره قانع اوولاړ ئې اوکه نه ؟ایاداسم دي ؟«باب»وویل:بلی په ټولو اعتراف کوم. اوپه خپله خبره ولاړیم. ممقاني بیا ویپوښتل :ایاتاسې دقائمیت په عقیده ولاړ یاستې. اووائې چې همغه موعود یعنی دال محمد معروف اومشهور قائم تاسې یاستې ؟«باب»وویل :بلې زه همغه یم چې تاسې ئې منتظر یاستې .ممقاني وویل :په دې سبب چې په دومره صراحت سره مو اعتراف وکړ .ستاسې قتل واجب دی.۲۰**

# بهائي جهاني مرکز
# په بيت المقدس کې

ځنې ردوونکي ليکوالان ،دبهائي جهاني مرکز جوړيدل په اسرائيلو کې دپرديو هيوادونو په سياستونو پورې تړي ،اما غافل له دې نه چې داپيښه يوه الهي نقشه او سياست دی. ځکه چې يواځينې ځمکه چې په جهان کې په قران کې متبرکه شوې ده ،داقصی مسجد چې په اورشليم ښار کې دی .دبهائي جهاني مرکز دحيفاښار چې داورشليم دښار څخه (۱۵۸) کيلو متره فاصله لري:



---

**سُبْحَانَ الذِي اسْرَی بِعَبْدِهِ لَيْلاً مِّنَ الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ الَ الْمَسْجِدِ الاقْصَ الذِي بَارَكْنَا حَوْلَهُ لِنُرِيَهُ مِنْ آيَاتِنَا انهُ هُوَ**

**السمِيعُ البَصِير.** **دبنی**

**اسرائیل سورت، ۱-ایت**

ثنا اوصفت هغه پروردګار لره چې خپل بنده [رسول اکرم]ئې دمسجد الحرام نه مسجداقصی ته یووړ. هغه مسجد چې اطراف مو متبرک کړي دي. ترڅو خپلې نښانې هغه ته وښایو .پروردګار اوریدونکې اولیدونکې دی.

په هغه جمله کې (خپلې نښانې هغه ته وښایم) پټ راز دی .له دې نه بهتره بله کومه نښانه : په همغه ډول چې داقصی مسجد درسول اکرم په وجود مبارک کړ .دهغې شاوخوا دبل ځل لپاره دیو بل پیغمبر په وسیله مبارک کړل شي. دپروردګارخاص نظر په هغه مبارکه ځمکه په احادیثو کې هم تائید شوې ده ، دهغې جملې نه د«بحارالانوار»په دې حدیث کې:

**خیرالمساکن یومئذ بیت المقدّس لیأتین زمان عل□ النّاس یتمنّ□ احدهم انّه من سکّانه.۲۱**

په هغه موقع[دظهور په زمانه] کې دژوند ترټولو ښه ځای به بیت المقدس وي.

داسې وخت به راشي .چې هر یو دخلکو څخه به ددې ارزو لري. چې په بیت المقدس کې ژوند وکړي.

ډیر مؤمنان ددې ائین دجهانې مرکز دزیارت کولو نه چې دحیفا په ښار کې پروت دی. اوداهل بهاءقبله په

عکّا کې بیا اورشلیم ته ځې او«معراج ته دسفر»په یاد د«اقصی مسجد»ته سفر کوي. اودهغې پاکې خاورې مبارک بادوائې.
ردکوونکي لیکوالان باید پوه شي .دخپل ځان په شان خلکو دقران وړاندوینه تحقق ته ورسوله .ځکه حضرت بهاءالله ددوه مستبدو مسلمانو پادشاهانو په حکم اوهمکارې سلطان عبدالعزیز اوناصرالدین شاه هغه ځمکې ته تبعید شو ،نه په خپل خواست اوغوښتنې سره دزرونو ښارونو په منځ کې ولې یو گمنام اوخرابه ښار د«عکا»په څیر دانبیاو په ژبه راغی.
اودهغوې ستاینې وړوگرځید؟طهران چیرته ؟اوعکا چیرته ؟

---

ابن عربي هم دمكيه په فتحو كې عكا ته دموعود دننوتلو خبروركوي. اووروسته دهغه هدف ته چې په دقيقه توگه دقران دايتونو مطابق دى اشاره كوي:

**...يقيم الدين و ينفخ الروح في الاسلام .يعز الله به الاسلام بعد ذلّه و يحييه بعد موته .۲۲**

...[حقيقت]دين په پخو دروي. اودژوند روح داسلام په كالبد كې اچوي .وروسته له ذلته هغه ته عزت وركوي. اووروسته له مرگه هغه ته ژوند وركوي. دژوند دروح جدا كيدل دټولو امتونو څخه په كراتو سره په قران كې تكرار شوى دى.په څه دليل داسلام امت ددې ابدي قانون څخه مستثنا دى؟

**وَلِكُلِّ ا مّةٍ اجَلٌ .**

**داعراف سورت،۳۴-ايت**

هر امت داجل سره مخامخ دى .

هغه حديثونه چې دعكا دښار ستاينه كوي ډير دى .دهغې جملې نه داحديث چې د«عكا دفضائلو»دجزوې په نوم په چاپ رسيدلى اوحضرت بهاءالله هم نقل كړئ دى:

**طوبیٰ لمن زار عکّاء و طوبیٰ لمن زار زائر عکّ اء .۲۳** نیکمرغه دی هغه څوک، چې دعکا زیارت وکړي. اونیکمرغه دی هغه څوک، چې دعکا زیارت کوونکو زیارت وکړي.

# ۱۱

# دقائم دپیروانو وژل دایرانیانو په لاس

حضرت بهاءالله په ایقان کتاب کې اوپه نورو ډیرو ایتونو کې ددې ائین په مؤمنینو باندې دظلم خبرې کړي دي:

---

❖ دابن عربي په روایت کې دعکا صفت داسې شوی دی:**مرج عکا فی المأدبة الالهیه:**دعکا زراعتي ځمکه ، دخدای میلمستون یا دخدای دضیافت ځای .

په دې ګمنامه ښار کې چې کومو خلکو دهغه نوم اوریدلی دی ،«اسماني طعامونه» یعنی الهي ایتونه دخلکو لپاره نازل اوپه ټول جهان کې خواره شوي دي.

وائي؟

---

**په هر ښار کې هغوې بنديان کړي دي. اوپه ولايتونو اوښارونو ئې ګرځولی دي. اوځنې ئې سوځولي دي.۲۴**

وروسته داحديث شاهد راوړي:

**قُلتُ :مَن يَقتُلُهُمْ؟ قالَ :يَقتُلُهُم اَولادُ العَجَم .۲۵**

ومې ويل چې کوم خلک هغه وژني ؟وئې فرمايل :دعجمو زامن.

# ۱۲

## دقايم په هکله دنظر اختلاف

**وَلَقَدْ آتَيْنَا مُوسَ الْكِتَابَ فَاخْتُلِفَ فِيهِ .**

**دهودسورت، ۱۱۰-ايت** ما موسی ته کتاب ورکړی ؤ .دهغه په هکله خلک په اختلاف کې ولويدل .اما محمد باقر دپورتني ايت په تفسير کې وفرمايل:

**قال اختلفوا كما اختلفت هذه الامه فی الکتاب و سیختلفون فی الکتاب الذی مع القائم الذی یأتیهم به حتی ینکره ناس کثیر .٢٦**

په اختلاف کې ولویدل،په همغه ترتیب چې داامت په اختلاف کې ولویدل ،او همدارنګه به په هغه کتاب چې قایم ئې له ځان سره راوړي. په اختلاف کې به ولویږي. ډیر خلک به له هغه انکار وکړي.

**١٣**

**دقائم په نسبت دخلکو رفتار**

کله چې قائم قیام کوي ،خلک دهغه په مقابل کې ودریږي. چې په جهالت اوناداني کې دجهالت دعصر جاهلانو چې درسول اکرم په وړاندې ولاړ ؤ. څو برابره زیات دي. ...زمونږ قائم هغه وخت قیام کوي. چې خلک د خدای کتاب دخپلو باطلو عقایدو په اساس غلط اوناسم تفسیروي.

**کله چې بې دینه دآل محمد دقائم دظهور خبر واوري ،هغه یوه افسانه ګڼي.۲۸**

**امام صادق**

**۱۴**

**دزمان دفقهااوپیشوایانو رفتار**

**دقائم موعود سره**

کله چې هغه ظهور وکړي ،فقها دهغه قتل ته ملاتړی اوکه دمهدي په لاس شمشیرنه وي د فقهاو په فتوی سره به ووژل شي.

**یظهر من بن□ هاشم صب□ ذو احکام جدیده فیدعو الناس و لم یجبه احد و اکثر اعدائه العلماء فاذا حکم بشی□ لم یطیعوه و یقولون هذا خلاف ما عندنا من ائمة الدین . ۳۰**

دبنی هاشمو څخه به یوځوان دنوواحکامو سره ظاهر شي.دخلکو په دعوتولو به شروع وکړي .اما څوک به

دهغه دعوت نه مني .ډير دښمنان به ئې دپيشوايانو له ډلې ښخه وي اوکله چې حکم وفرمائي اطاعت به ئې نه کيږي. اوپه ځواب کې به ورته ووائې :
دامخالف دي دهغه څه سره چې پيشوايانو مونږ ته ويلي دي.

**ان اکثر ما يرد عليه من المتفقّهون . ۳۱**

ډير هغه څه چې په هغه واردېږي دفقهاو ښخه دي.

**يخالف ف□ غالب احکامه مذاهب العلما . ۳۲**

ډير احکام به ئې دمذهبي علماو درسم رواجونو سره مخالف وي.

احاديث په يواځې توګه نشي کولی يو ائين په اثبات ورسوي .ځکه چې دهغوې په سموالي او ناسموالي نشي کيدلی يقين وشي .امّا که دقران سره سمون ولري ،په همغه ترتيب چې حضرت بهاءالله فرمايلی دي ،زمونږ باور اويقين وربانديې زياتيدلی شي .داحاديثو ذکر په دی فصل کې يواځې په همدې سبب دي.

**پروردګار دهغه دکلام**
**څخه**
**پیژندلی شی**

**ووایه!نن ورځ دبینائي لمر ددانائي له اسمان څخه ښکاري .نیکمرغه دی هغه څوک چې وئې لید اووئې پیژاند.هغه څه چې دمخه ویل شوي ؤ په دې روزګار کې ښکاره دي.۳۳**
**حضرت بهاءالله**

**هغه څه چې په ټولو الهي کتابونو کې ... مسطور اوپېټ ؤ په دې ورځ کې ظاهر دي. او لیدونکي دي .دهیڅ یو لپاره عذر پاتې نه دی. اونه به وي. مګر دهوا نه خبرې اوتکلم وکړي.۳۴**
**حضرت بهاءالله**

**فوالله هذا لم یکن من عندی بل من لدن من ارسلن□ بالحق و جعلن□ رحمة عل□  العالمین .٣٥**

**حضرت بهاءالله**

په خدای قسم دی !داائین زمانه دی.دهغه چاله لورې دی.چې زه ئې په حقه رالیږلی یم. دپروردګاردفضل اورحمت منشاء دعالمیانو لپاره ګرځولی یم.

**دحقیقت دلمرپه نورانیت قسم دی. که په دې ورځ کې چا«امر» ونه پیژاند هیڅ کله به هغه دځه شي په لاس ته راوړلوبری ونه مومي.٣۶**

**حضرت بهاءﷲ**

# اتمه برخه
# دقيامت اوساعت معنى

## په درې فصله کې:

۱ .معنوي ژوند.

۲ ـدقيامت اوساعت معنا.

۳ .دقران ايتونه د«قيامت

»او«ساعت»په باره کې.

**اې بنده ګانو ! بې روحه تن مړ دی. اودپروردګار له ياده خالی زړه پژمرده دی .ددوست په ياد سره ژوندوکړئ. اوله دښمن څخه لرې اوسئ .ستاسې دښمن ستاسې شيان دي. چې پخپل خواهش موهغه پيداکړي دي. اوساتلي مودي. اوځان مو په هغو الوده**

کړی دی. روح دجانان دیاد لپاره دی ،هغه پاک کړئ
،ژبه دپروردګار دشهادت لپاره ده .هغه دګمراهانو په
یادولو مه ککړوئ.۱
حضرت بهاءالله
زه قیامت اوژوندیم !هرڅوک چې په ماایمان راوړي
،ژوند به پیداکړي ...اوهرڅوک چې ژوند پیداکړي.
اوپه ماعقیده ولري ،هیڅکله به مړ نشي.
حضرت مسیح (یوحنا
انجیل ،۱۱فصل ،(۲۶ – ۲۵) ایتونه

۱۸



## معنوي ژوند

اې بنده ګانو !نه هر تن دروح لرونکی دی. اونه هر کالبد روح لري . نن ورځ روح لرونکی هغه څوک دی. چې روح ئې دجانان خواته اراده کړي وي).۲

حضرت بهاءالله

**اې توانا!ضعیفانو ته توانائي اومړو ته ژوند ورکړه،شاید چې تا اوستا دپوهې دریاب ته لارپیداکړي).۳**

**حضرت بهاءالله**

په قران مجید اوپه نورو اسماني اثارو کې ،«متشابه»کلمات ډیر زیات کارول شوي دي. که دهغوې باطني معنا ګانو ته توجه ونه کړو ،دالهي وینا دفهم اوپوهې څخه به عاجزیو. یو مهم سبب دپروردګار دپیغمبرانو څخه انکار،ددې کلماتو ناسم تفسیر ؤ او دی. راتلونکی نمونې ته توجه وکړئ .په دې وینا کې،دژوند منظور،معنوي ژوند دی ،امّا د«معنوي»کلمې څخه کوم خبر نشته دی:

**هغه څوک راغلی چې همیشه ؤ. ترڅو همیشنې ژوند وبخښي. اوهمیشه پاتې شي. اودژوند مائه او واکسین بخشش کړي.۴ حضرت بهاءالله**

دپیغمبرانو اصلي مقصد اوهدف زمونږ دروح بقا سعادت اومعنوي تکامل دی .نه زمونږ دجسم سلامت اوبقا. څه فایده که اوږدعمر ولرو. اودانسانیت نه برخه من نه اوسو؟ څه فایده که «همیشنۍ حیوان اوځناور»اوسو . زمونږ دراتګ سبب دې دنیا ته دځناورو څخه تقلید اویا دهغوې سره رقابت نه دی.ځکه هغوې په «حیوانیت»کې بې له همته اوزحمته بشپړه نمونه ده . زمونږ هدف انساني فضائل اوکمالونو لاسته راوړل دي. نه په مراتبو حیوانیت درجې ته تېتېدل .داسې لوي هدف ته رسیدل ،بې له دې چې دوخت موعود وپیژنو، کوم چې دخدای وېناوال دی ،امکان پزیر نه دی.

**دجهان دخلکو څخه هریو چې دجانان خوږ بوی په دې بامداد اوګهیځ کې پیدانه کړي، دمړو څخه حساب دی.۵**

**حضرت بهاءالله**

په الهي ایتونو کې ،«مړکیدل»«ژوند پیداکول»په معنوی اویاپه «متشابه»معنا په کراتو راغلي دي:

**مَنْ احْيَاهَا فَكَانمَا احْيَا الناسَ جَمِيعًا .**
**دمائده سورت، ۳۲-ایت**

هر څوک چې یو نفس ژوندی کړي. ټول عالم ئې ژوندی کړ.

**ثُم بَعَثْنَاكُم مِّن بَعْدِ مَوْتِ كُمْ لَعَلكُمْ تَشْكُرُونَ .**
**دبقره سورت، ۵۶-ایت**

اوبیا مې تاسې له مرګه وروسته راژوندي کړئ. شاید چې شکر پرځای کړئ .

**كَيْفَ تَكْفُرُونَ بِاللهِ وَكُنتُمْ امْوَاتاً فَاحْيَاكُمْ ثُم يُمِيتُكُمْ ثُم يُحْيِيكُمْ ثُم الَيْهِ تُرْجَعُونَ.**

**د بقرې سورة، ۲۸ -ایت**

څرنګه په خدای کافران کیږئ ؟مړه وی تاسې ئې ژوندي کړی .اوبیا له تاسې څخه ژوند اخلي .اوبیا تاسې ژوندي کوي. اوتاسې بیا هغه ته رجوع کوې .

**انكَ لَا تُسْمِعُ الْمَوْتَ وَلَا تُسْمِعُ الصم الدعَاء اذَا وَلوْا مُدْبِرِينَ وَمَا انتَ بِهَادِي الْعُمْ يِ عَن ضَلَالَتِهِمْ ان تُسْمِعُ الا مَن يُؤْمِنُ بِآيَاتِنَا فَهُم مسْلِمُونَ . دنمل سورت، ۸۱- ۸۰،ایتونه** په یقین سره ته نشې کولای هغه مړه اوکاڼه چې ستا دبلنې دځواب نه سرغړونه کوي. اوریدونکي کړي .مګر هغوې چې

زمونږ ایمان راوړي، اودپروردګار په وړاندې اطاعت کوي.



**لَا يَمُوتُ فِيهَا وَلَا يَحْيَ .**

**داعلی سورت،۱۳-ایت**

په هغه ځای (دوزخ)کې نه به مړشي.(ترڅو په راحت کې شي.)اونه به ژوندي وي. (ترڅو دهمیشنې ژوند څخه برخه من شي).

حضرت مسیح دخپلو پیروانو څخه یو ته وویل: (پرېږده چې مړي، مړي ښخ کړي.یعنې معنوي مړي،جسماني مړي ښخ کړي.)

حمزه ،درسول اکرم تروزوی ؤ. دپروردګار په ائین باندې دایمان په خاطر،همیشنی اوجاوداني ژوند ترلاسه کړ.دالاندې ایت دهغه په باره کې راغلی دی :

**اوَ مَن كَانَ مَيْتًا فَاحْيَيْنَاهُ وَجَعَلْنَا لَهُ نُورًا يَمْشِي بِهِ فِي النَاسِ كَمَن مثَلُهُ فِي الظلُمَاتِ لَيْسَ بِخَارِجٍ مِّنْهَا .**

**دانعام سورت، ۱۲۲-ایت**

ایا هغه څوک چې مړی ؤ. اوماهغه ژوندی کړ. دهغه په وړاندې مې رڼا پیداکړه. ترڅو دهغې په رڼائې دخلکو په منځ کې په لاره لاړ شي ،دهغه چاپه شان دی. چې په تیاره کې وي. اودهغې څخه دوتلو لاره پیدانه کړي؟

په مخکنې ایت کې ،دنوي ژوند پیداکول. په روښانه لار کې دګام اخیستلو سره تشبیه شوی دی ،اوبې ایمانه پاتې کیدل ،په تیاره اوتنګ محیط کې زنداني کیدل دي.دلاندې ایت په اساس ،داسلام دائین منکرینو دمسخرې نه مسلمانانو ته ویل :

**كُنا تُرَابًا انا لَفِي خَلْقٍ جَدِيدٍ اوْلَئكَ الذِينَ كَفَرُواْ بِرَبِّهِمْ ...**

**درعد سورت، ۵-ایت**

ایامونږ خاورې ؤ اونوي پیداشو ؟ داخلک دخدای اودحقیقت څخه منکر دي .

ښکاره ده. چې دخاورې منکرین نه دي. اونوې ژوند ئې نه دی پیداکړی ، به دې حال کې دپروردګار دوینا دتحقیر لپاره ، په داسې مسخره ناکو خبرو به ئې شروع کوله ځکه چې داسلام مؤمنانو نه به ئې

اوريدل، چې هر څوک چې اسلام ومني نوی ژوند به ترلاسه کړي .
دپروردګار دپيغمبرانو په ظهور سره په جهان کې معنوي پسرلې شروع کيږي. اوجهان ته نوی روح ورکوي .دناپوهې اوناکامې په بستر ويده خلک مختاره دي. چې ددې الهي پسرلي راتګ ګرامي وګڼي. په شور او شوق سره راشي ،اويا په همغه تياره اوله غمه ډک ژمي په بستر کې بې خبره پاتې شي. او اير اوژړا وکړي.

قران اوبهاءالله

۵۷۰

---

---

**قل تالله هذا الربيع الذى زين بطرازه الفردوس ولن يعقبه الخريف فی ابد الاَبدي.۶**

**حضرت بهاءالله**

ووایه ! په خدای قسم دی،داهغه پسرلی دی. چې دځمکې په مخ ئې جنت جوړ کړی دی. داسې پسرلی چې همېشنی دی. او هیڅکله به خزان نشي.
دپسرلې فصل وابنه اوګیاګانې شنې کوي. ځناور دخپلو غارونو څخه ګلانو او چمنونو ته راولي .اما معنوي پسرلی، چې دپسرلې دنوو پیغمبرانو په راتګ سره شروع کیږي. دخلکو لپاره مختلفې نتیجې رامنځ ته کوي .ځنې له هغو څخه په پوره شور اوشوق سره دنوي فصل استقبال ته ځي ،اوراتلو ته ئې ښه راغلاست وائي .ځنې نور پسرلی نادیده ګڼي اوپسرلې له یاده وړي. اوپه دې فکر چې ژمی پای ته نه دی رسیدلی.اونوی کال نه دی شروع شوی ، دخلکو یوه بله ډله ،دژمي اویخنې سره داسې عادت شوې ده .چې دپسرلې دراتګ په خبر سره ایره اولړزه وربانديې راځي ،اودیوبل په یاری سره کوښښ کوي. چې دهغه ښکلي فصل ،اودجهان دارائیش ګراوسینګارکوونکي مخنیوی وکړي. دپسرلي دعظمته ډکه څیره دهغه ټول جلال ،ښکلا اوعظمت سره دخپلو خفه کوونکو اوله غمونو ډکو افکارو سره هغه پټ اووپوښوي.
**انا جددنا العالم من نفحات الوحی و اظهرنا ربیع المعانی والقوم اکثرهم لایفقهون.۷**

**حضرت بهاءالله**

مونږ جهان دوحې په ښکلي نسيم سره ژوندی کړ. اوپه معنوي معنا سره پسرلي ته موظهور ورکړ. اما ډير خلک بې خبره دي.

دپيغمبرانو دوينا په اساس هغه خلک چې دمخه پسرلي ته مبارک باد اوښه راغلاست وائي. او خپل روح دهغه په خوښيو اوعظمت ډکوي ، نوی ژوند پيداکوي. اوپه دواړو جهانونو کې له ژونديو څخه شميرل کيږي.

**المؤمن حـ فـ الدارين.٨**

مؤمين په دواړو جهانونو کې ژوندی دی .

**ان الذی آمن بالله فی هذا الظهور الاعظم لایفقده الموت لعمر الله انه حی باق فی ملکوت الله العزیز المنیع .۹**
**حضرت بهاءالله**
هر څوک چې په دې لوی ظهورکې په خدای ایمان راوړي .مرګ په هغه حاکم نه دی. په خدای قسم دی !هغه دپروردګار په سلطنت کې ژوندی اوباقي دی.
هر څوک چې په دې وینا کې دسمې لارې سترګې پټې کړي. اوخپل غوږونه دپروردګار دغږ داوریدو نه کاڼه کړي ، اودهغه درالیږل شوي ستاینه په ژبه ونه کړي. په ورځ دقیامت چې هم په دې دنیا کې اوهم په هغه دنیا کې دی.ړوند ،کوڼ اوګونګی وي.
**وَمَن يَهْدِ اللهُ فَهُوَ الْمُهْتَدِ وَمَن يُضْلِلْ... وَنَحْشُرُهُمْ يَوْمَ الْقِيَامَةِ عَلَى وُجُوهِهِمْ عُمْيًاوَبُكْمًا وَصُما .**

**دبنی اسرائیل سورت،۹۷-ایت** هرچاته چې پروردګار هدایت وکړي ،هدایت به ورته وشي .اوهر څوک چې ګمراه کړي. ...روح به ئې په هغه دنیا کې په ورځ دقیامت ړوند ،کوڼ او ګونګی وي.
**وَمَن كَانَ فِي هَذِهِ اعْمَى فَهُوَ فِي الآخِرَةِ اعْمَى ...**
**دبنی اسرائیل سورت، ۷۲-ایت**

هرڅوک چې په دې دنيا ړوند دی. په هغه دنيا کې به هم ړوند وي...

**يَا ايـهَا الذِينَ آمَنُواْ اسْتَجِيبُواْ لِلّهِ وَلِلرسُولِ اذَا دَعَاكُم لِمَا يُحْيِيكُمْ وَاعْلَمُواْ ان اللـهَ يَحُولُ بَيْنَ الْمَرْءِ وَقَلْبِهِ وَانـهُ الَيْـهِ تُحْشَرُونَ .                دانفال**

**سورت،۲۴-ايت**

اې مؤمنانو!کله چې پروردګار اودهغه پيغمبر تاسې هغه څه ته چې ستاسې د ښه ژوند مائه ده، رابولي. قبول ئې کړئ. په يقين سره پروردګار دانسان اودهغه دزړه ترمنځ قرار لري.[باالاخره]دهغه په وړاندې به راټوليږی.

پروردګار زمونږ په زړونو کې هميشه حاضر اوحائل دی .ترڅو وګوري. چې څوک دايمان لايق دی. دايمان هديه دهغه په لاس کې ده .هغه يواځې هغو کسانو ته بخشش کوي. چې ددې هميشني بخشش په قدر اواحسان وپوهيږي. پروردګار نالايقه خلک له دې افتخار څخه لرې ساتي .

دبهائې ائين دښوونو په اساس ،«جنت»يعنی خدای ته «نږديوالی»اودوزخ يعنی د خدای څخه «لريوالی»دی .په بل عبارت جنت يعنی خوشحاله ژوند کول،

دوزخ يعنى په غمونو کې ،دخوښيو نه لرې ،سوځيدل .د«اور»کلمه زمونږ داخلی احساساتو پورې اړه لري نه زمونږ دجسم سوځيدل .

**پروردګار ته دنږديوالي مقام جنتونه دي...او دهغه مقام نه لريوالی اور او دوزخ دی دحقيقت نفي ده.۱۰**

**حضرت بهاءالله**

دې جهان ته زمونږ دراتګ هدف ، د ايمان لاس ته راوړل اومعنوي ژوند دی.دپروردګار دشهادت په اساس ،هغه خلک چې دوخت قدرونه پيژني. اودژوند دژر تيريدونکي فصل کې ،دهميشني پسرلي دروح ښنوونکي نسيم څخه برخه من نشي ، ګويا هيڅکله دې جهان ته نه دی راغلی ، داسماني بلبلانو اواز ئې نه دی اوريدلی ،اودشنو پاڼو او ميو ډک چمن حيرانوونکی ژوند ئې نه دی ليدلی . دهغوې داستان

اوقصه دهغه وړي قصه ده. چې ستړی اوستومانه په داسې یو باغ کې ناست دی. چې له میو ډک وي.
اوخوږ.و میوته دلیدلو په ځای ځمکې ته ګوري
،اوپخپله غوښتنه ئې ، خپل ځآن دهغه ټولو نعمتونو اومرحمت څخه بې برخې کړی وي .د پسرلي عاشقان دوه ځلي ژوند پیدا کوي : یو ځل په دې جهان کې اویو ځل په هغه جهان کې .اما ژمي غوښتونکي ،مړه پاتې کیږ.ي.    اومړه ، مړه کیږ.ي.
دپروردګار دشهادت په اساس ،دژوندیو ځآی په دواړو جهانونو کې جنت دی. او دمړو ځای په دواړه جهانه کې دوزخ دی. دپروردګار همیشنې اراده داده ،او وی به. چې هر انسان خپل ارمان ته ورسي .هم هغه چې په ژمې پورې ځآنونه تړلي دي. اودبهار دراتلو څخه حیران اوزړه بدي دي. خپلو ارزو ګانو ته و رسي.
او هم هغوې چې دپسرلي عاشقان دي اوپه انتظار کې ساعت شماري کوي.
پروردګار دهر مهربان څخه مهربان تر دی .پسرلی دټولو بنده ګانو لپاره غواړي. اوټول جنت ته غواړي:
**وَاللهُ يَدْعُو الَ دَارِ السلاَمِ.**
**دیونس سورت،۲۵-ایت**
پروردګار خلکولره د«ارامتیا اوښکلا کور» ته بلنه ورکوي.

**یا قوم قد...جاء الوعد بالحق فاسرعوا الی رضوان الذی کان الوجه فیه مضیئا ایاکم ان لا تحرموا انفسکم و عیونکم عن لقاءالله .۱۱**

**حضرت بهاءالله**

اې خلکو دپروردګار وعده ترسره شوې ده ، دهغه جنت خواته چې دپروردګار څیره په هغه کې په ځلیدو ده. عجله وکړئ. داسې نه چې خپل نفسونه اوخپلې سترګې دپروردګار ددیدارنه محرومې کړئ.

**خدای په هر حال کې دخپلو خلکو څخه غني دي، اودهغوې سره مینه لرله اولري.چې ټول په ډیرې**

**مینې سره جنتونه ته ولاړ شي.۱۲**

**حضرت باب**

دانصاف اوعدالت منشور په اساس هغه عدل پالونکي خالق دجنتونو، دباغونو دښکلا ګانو اود ارامتیا دخونې لاره یواځې هغوې ته وښائي. چې په دې اسماني جشن کې ،دموعود بلنې ته دزړه له کومي ځوابونه ووائي:

**وَيَهْدِي مَن يَشَاءُ الَ صِرَاطٍ مسْتَقِيمٍ .**

**دیونس سورت،۲۵-ایت**

هر چاته چې وغواړي سمه لار وښائي.

فرض کړئ. چې ښکلې جشن مو جوړ کړی دی ، اودمهربانې له مخې تاسې دناامیده اوغمجنو خلکو یوه ډله په وړیا توګه دې چشن ته دعوت کړه .اوددعوت شوو له ډلې ځخه یوئې ډلې ستاسې دعوت دزړه له کومي ومنل ،اما بلې ډلې .ستاسې دعوت نامه دتحقیر له مخې په ځمکې واچوله ،ستاسې دازار اواذیت لپاره اوستاسې دجشن دخرابولو لپاره ئې خنډونه جوړ کړل اوحتی ستاسې او دمیلمنو دوژلو کوښښ ئې وکړ .

دداسې خلکو سره به تاسې ځه کړي وی ؟ایا دبل ځل لپاره به تاسې هغه دقدر نه پیژندونکي ظالمان یوبل جشن ته بللي وی ؟یواځې هغه کسان دخلقت د نقشې په اساس دبهار دښکلا اوښایست ځخه برخمن کیدلی شي. چې دپسرلي عاشقان وي نه دپسرلې دښمنان

.خلک داختیار والا دي. هره لار چې دخپل ځان لپاره ټاکي .که ئې داامتیاز نه لرلی ، انسان به نه وی . ټول ځناوران په ناچارۍ سره دنوي کال راتګ ګرامی ګڼي .بلبلان دبهار په راتلو سره خپل اختیار له لاسه ورکوي. دګلانو دغوټو سره دعشق اومیني اسرار رامنځ ته کوي،



---

په ډیر شور اوشوق سره ،شپې اوورځې سندرې وائي. اودهغه ټول ښایست طراح ته درود ورلیږي .
وګورئ. په دې کلام اووینا کې ، مهربانه پروردګار په څومره ښکلې ژبه مونږ ته بلنه راکوي. ترڅو چې فرصت لرو، دغفلت اوبې خبرۍ څخه راووځو.
اودپسرلې په باران تازه اوخرامان شو :

**اې بنده ګانو!لایق هغه چې په دې روح بخښوونکې پسرلی کې دپروردګار په بارانونو تازه اوخرم شو. دلوی لمر وړانګې خپرې دي، اودبخشش وریځې سیوری جوړکړی دی. ګټه هغه چا وکړه چې خپل ځان ئې بې برخې نه کړ. اوپه دې جامه کې ددوست پیژندنه وکړه. ۱۳**

**حضرت بهاءالله**

دپسرلي راتګ تازه ګی نه لري .هر پیغمبر چې دمخ نه پرده لرې کړې ده ،معنوي پسرلې ئې په روحونو کې پیل کړی دی. اوپه جهان کې لوی قیامت راغلی دی .هر پیغمبر چې دعالم په ډګر کې قدمّ ایښی دی ،خلکو ته ئې ازادي ورکړې ده. چې دسرشاره ژوند جام ومنې. اووئې څکي. اویا دخپل روح تنده نادیده وګڼي اودهغه اسماني جام له منلو څخه ډډه وکړي:

**هر څوک چې تږي وي رادې شي. اوهر څوک چې راځي دژوندانه اوبه دې وړیا اورایګان یوسي.**

**حضرت مسیح ،مکاشفات یوحنا ،۲۲فصل ،۱۷- ایت**

بې دینه انسان دپروردګار له نظره مړی دی:

**وَالذِینَ یَدْعُونَ مِن دُونِ اللهِ...امْواتٌ غَیْرُ احْیَاء .**

**دنحل سورت، ۲۱-۲۰ ،ایتونه**

هغه خلک چې په غیر دخدای نه بل معبود مني ...مړدی. اودروحي ژوندڅخه محروم دی.

دحضرت مسيح په وخت کې هم ، دژوند پيداکول دايمان مربوط ؤ:

**زه «قيامت»اوژونديم ،هر څوک چې په مايمان راوړي...هيڅکله به مړنشي.**

**يوحنا انجيل ،۱۱فصل،۲۶-۲۵،ايتونه**

په دې عصر کې هم همدارنګه ده :



---

**ووايه اې مړو!دپروردګار دبخشش لاسونه دژوندی کيدلو اوبه ورکوي ،عجله وکړئ وئې څکئ ،هرڅوک چې نن ژوندی شو .هيڅکله به مړ نشي او هرڅوک چې نن مړشو. هيڅکله به ژوندی نشي.۱۴**
**حضرت بهاءالله**

په همغه توګه چې ومولیدل .هرأُمت داجل سره مخامخ دی ،په دې پیښنه کې په هیڅ شکل استثنا نشته .په هغه اندازه دامرګ حتمي اوځانګړی دی. چې حتی یو ساعت مخکې اوروسته والی په کې نه راځي:
**لِكُلِّ امةٍ اجَلٌ اذَا جَاء اجَلُهُمْ فَلاَ يَسْتَاخِرُونَ سَاعَةً وَلاَ يَسْتَقْدِمُونَ. دیونس سورت،۴۹-ایت** هر امت دمرګ سره مخامخ دی .هر کله چې دهغوې دمرګ وخت راورسي حتی یو ساعت مخکی والی اویا وروسته والی په کې نه راځي.
**اوَلَمْ يَهْدِ لِلذِينَ يَرِثُونَ الارْضَ مِن بَعْدِ اهْلِهَا ان لوْ نَشَاء اصَبْنَاهُم بِذُنُوبِهِمْ وَنَطْبَعُ عَلَ□ قُلُوبِهِمْ فَهُمْ لاَ يَسْمَعُونَ. داعراف سورت،۱۰۰-ایت**
ایا پرهغوې چې ځمکه وروسته دهغوې داهل څخه[دمځکني صاحبانو]څخه په میراث وړي روښانه نه ده. که چیرته وغواړو ،هغوې به دګناهونو په کولو سره هلاک کړو. اوپه زوړنو به ئې مهرونه ولګوو ترڅو نور ئې وانه وري؟
ښکاره ده چې داایت دمعنوی هلاکت پورې مربوط دی .ځمکه چې دجسم دمرګ څخه وروسته ،دمهرلګول په زړه کوم مفهوم نه لري. په هر عصر کې دخلکو یوه ډله ، دپروردګار دفضل اوبخشش وارثان دي .کله چې نوی پیغمبر دظهور په میدان کې قدم ږدي. دمځکښني

ائين مؤمنين دامعنوي ميراث له لاسه ورکوي. اوکه هغه موعود ونه
مني، دپورتنې ايت په اساس په هلاکت رسي.ځکه چې دهغه په روح کې دايمان اثر نه پاتې کيږي .درسول اکرم دظهور په وخت کې داميراث دمسيحيانو په لاس کې ؤ.زمونږ په عصر کې داميراث دمسلمانانو سره دی. که نوی موعود ومني ،دبل ځل لپاره داميراث ددوې په لاس کې دی. اوکه نه نو هغه دلاسه ورکوي.
دخدای دموعود څخه انکار ،ترټولو غټ سپکاوی خدای ته دی .ددارنګه غټ توهين اوسپکاوی جزا څه شی ده ؟ دپروردګار دحکم اوحکمت په اساس ، عادلانه مجازات دمعنوي ژوند څخه محروم کيدل اودالهي مهربانې څخه لرې پاتې کيدل دي.

ايا دتوهين لپاره ،ددې څخه نور عادلانه مجازات
كيدلاى شي تصور كړى ؟
وګورو عدالت يعنى څه ؟عدالت يعنى دخپل توان په
اندازه دبار مسئوليت په غاړه اخيستل دي .هر انسان
بايد دابار پورته كړي .دادخداى محكم حكم دى .ددې
مسئوليت څخه دهيڅ يو معاف كيدل ممكن نه دي .هر
څومره چې دابار زيات وي. په همغه اندازه ئې  دمنلو
پاداش ،اودنه منلو مجازات ئې هم زيات دي .ترټولو
لوى بار دپيشوايانو په غاړه دى .كه په غير له دې
څخه وي ،عدالت په كار كې نه دى شوى .
**لاَ نُكَلِّفُ نَفْسًا الاوُسْعَهَا .**
**داعراف سورت،۴۲-ايت**
زه هيچاته دهغه دتوانائې څخه زياته وظيفه نه وركوم.
مونږ دخپل لنډ ژوندون سره په دې دنيا كې مينه
لرو.اودمرګ اومړو څخه ډيره ويره لرو. اما
د«هميشني مرګ»په عواقبوڅومره چې شايد اوبايد
دي، فكر نه كوو. مونږ ديوانسان وژل جنايت ګڼو. ايا
پوهيږو چې دخلكو د«روح دايمان»دلاسته راوړلو
څخه پاتې كيدل لوي جنايت دى ،حتى دهغو دوژلو
څخه لوى جنايت دى؟ډيرى داسې ښځې اونارينه دي
چې دخپل همسر اوياد خپلو اولادونو دايمان مانع
ګرځي .غافل له دى نه چې په څومره لوى ظلم ئې

لاس پورې کړې دی .څومره ډېر پیشوایان دي. چې خپل پیروان د«لوی خبر»دجستجو څخه لرې ساتي ـغافل له دې نه چې په څومره لویه ګناه ئې خپل ځان ککړ کړې دی .چې دهغې نه دلوی ګناه تصور کیدلای نشي.

**الموت الا یمانیّة اعظم من موت الظّاهریّة..ایضاً اعظم عن قتل الجسدیّة و لذا یجری عل هذا القاتل حکم القصاص .۱۵**

**حضرت بهاءالله**

دایمان دمرګ عواقب دجسماني مرګ څخه خطر ناک دي ...اوهمدارنګه دایمان دقتل عواقب دجسماني قتل دعواقبو څخه خطرناک دي .په دې اساس په دارنګه قاتل دقصاص حکم جاري دی.

دمعنوي قتل یامرګ اهمیت په دې کې دی.چې زمونږ ژوند په دې فاني جهان کې دومره ژر تیریدونکی دی. لکه یوه لحظه دابدیت په وړاندې.

زمونږ خالق زمونږ عاشق دی. اودخپل عشق اومينې په خاطر ئې مونږ ته دژوند جامې راواغوستلې اوپخپل مثال ئې ښکلي کړو .دې پاکې مينې ته ځواب دهغه دپيغمبرمنل دي. .چې مونږ دخپل ديدار لپاره جنت ته غواړي ،اومونږ ته نصيحت کوي. چې ژمي پرېږدو ،اونوي بهار ته راشو ،اوددې زړه وړونکي ګهيځ ځان بخښوونکی نسيم څخه په حرکت اوخوښيو کې راشو:

**خذوا نصيبکم من هذالنسيم الذی به جدد هياکل العالمين و فيه نفخ روح الح□ الحيوان عل□ عظام رميم . ۱٦**

**حضرت بهاءالله**

له دې نسيم څخه چې دعالميانو هيکل تازه ګي پيداکړه. اوپه ورستو شووهډوکو کې دهميشني ژوندون روح پيداشوی، برخه اونصيب واخلي .

داڅو بيتونه چې دطاهره قرّة العين څخه ،، چې بې شانه اوبې مثاله شاعره وه ددې حالت سره مناسب دي:

ای خفته رسید یار برخیز
از خود بنشان غبار برخیز
هین بر سر مهر و لطف آمد
ای عاشقِ زار یار برخیز
امد بر تو طبیب غم خوار
ای خسته دل نزار برخیز
ای آنکه به هجر مبتلائی
هان مژده وصل یار برخیز
ای آنکه خزان فسرده کردت
اینک آمد بهار برخیز
هان سال نو و حیات تازه است
ای مردهٔ لاشِ پار برخیز ۱۷

## پروردګار دهغه دکلام
## څخه پیژندلی شی

نن ورځ د(پوهي)خاوند هغه څوک دی.چې دنړۍ پیدایښت هغه له لیدلو څخه پاتې نه کړ. اووینا هغه له عمل څخه لرې نه کړ.مړ دی هغه څوک چې په دې ځان بخښونکی باد سره په دې سهار کې بیدار نشو .اوبندي هغه څوک دی.چې خلاصوونکی ئې ونه پیژندل ،اوپه زندان کې حریص اوسرګردانه پاتې شو.

**«اې بنده ګانو!هر چا چې له دی چینې  څخه وڅښلې. پاينده ژوند ته ورسید. اوهر چا چې و نه څکلې له مړو څخه وګڼل شو.۱۸**

**حضرت بهاءالله**



---

**اوېول هغه څه چې په عالم دپربښتو او الهي سلطنت کې موجود دي، دالهي پېټو عوالمو عکسونه اوتصويرونه دي. اوغافلان،ښکارچیان ددې عکسونو اوتصويرونو غوښتونکي دي. همدا ده. چې سل زره کاله په عجله کې وي اواخر ما یوسانه خاورو ته رجوع کوي.۱۹**

**حضرت بهاءالله**

**اې دغفلت په فرشونو پرتو مړو! پیړې تیرې شوې. اوخپل قیمتي عمر تاسې پای ته ورساوه،اوستاسې یو پاک نفس زما سپیڅلې لور ته رانغې، دشرک په دریاب کې غرق شوي یاستې، اودتوحید کلمه په ژبه راوړئ.زما مخالف تاسې خپل محبوب ګڼلی او زما**

دښمن تاسې په خپلې دوستې نیولی دی. اوزما په ځمکه په خوښې سره ژوند کوئ، غافل له دې څخه چې زما ځمکه له تاسې څخه بیزاره ده. اودځمکې شیان له تاڅخه په تیښته کې دي. که اوس خپلې سترګې وغړوې، سل زره غمونه به له دې خوښې څخه ښه وګڼې ، اومرګ به له دې ژوند څخه بهتر وګڼې. ۲۰ حضرت بهاءالله

دواحد اولا شریک خدای په نامه! همیشه لیدونکی د صفت او ستاینې وړ دی، چې دخپل بخشش دریاب په یوشبنم دژوند اسمان پورته کړ...اوداشبنم چې دپروردګار لمړنې ګفتار دی. چې کله دژوند داوبو په نامه سره یادیږي. که څه هم دنادانه بیابان مړي ژوندي کوي. ۲۱

حضرت بهاءالله

اې دپروردګار بنده!دپروردګار بخششونو له دریابونو څخه مې شبنم دراستولی دی. که ئې وڅکی. اودجانان دخوږو اوازونو زمزمې مې راوړي دي. که دزړه په غوږونو ئې واورئ. دخوښیو په وزرونو دپروردګار دمحبت په هوا کې پرواز وکړه. خلک مړي وبوله، ژوندي ئې کړه. دجهان دخلکو څخه چې هریوپه دې سهارکې دجانان خوږ بوې پیدا نه کړ دمړو څخه حساب دی . بې نیازه په لوړ اواز سره

وائي: دخوښې جهان راغلې غمګين مه اوسې. پټ راز ښکاره شو. مه خفه کيږی. که ددې ورځې په برى پوه شئ. له دې جهان نه اوڅه چې په دې جهان کې دي تيرشى. اودپروردګار لور ته به عجله وکړئ.۲۲

حضرت بهاءالله

دعالم دغوښتنو غبرګ دزړه په غوږونو واوره، چې مړي ژوندي کوي. اوهميشنى ژوند راته بخشش کوي.۲۳

حضرت بهاءالله



## دقیامت اوساعت معنا

**ان عَلَیْنَا جَمْعَهُ... ثُم ان عَلَیْنَا بَیَانَهُ .**

**دقیامت سورت،۱۹و۱۷،ایتونه**

راتهولول د هغه (قران)پرمادي ...اووروسته دهغه«بیان» هم زما پرغاړه دی.

حضرت باب اوحضرت بهاءالله دقران دډیرو اسرارو څخه پرده پورته کړې ده .دافصل په لنډ ډول دقیامت پورې اړوند کلمات دهغه دوه موعودو دتوضیحاتو په اساس وړاندې کوي.داسماني اثارو څیړنه وښائي. چې قیامت اودهغه مشابه اواړوندې کلمې په دوه معنا ګانو سره کارول شوي دي. کله په ظاهري معنا اودقران په اصطلاح «محکم»اوکله هم په باطني معنی اودقران په اصطلاح «متشابه»:

---

☆ بیان :روښانه اوښکاره کول ،شرح اوتعبیر.

| | |
|---|---|
| | **قیامت** |
| «محکمه»معنا | دپروردګار دعدل دتلې په وړاندې ودریدل په همیشنې جهان کې. |
| «متشابه»معنا | دپروردګاردراليږل شوی دعدل دتلې به وړاندې ودریدل په دې جهان کې. |

| | |
|---|---|
| | **ساعت** |

| | |
|---|---|
| «محکمه»معنا | دخپلې عمل نامې سره مخامخ کيدل په هميشني |
| «متشابه»معنا | دپروردګاردموعود«دغږ»اوبلنې په وخت مخ کې. |

**اذا قام القائم قامت القيامة .۲**
**امام باقر**
کله چې قائم پورته شي قيامت به راشي.
**قيامت دالهي نفسونو ودريدل دي. دخپل موعود پسې.۳ حضرت بهاءالله**
زه قيامت او ژوند يم ...هرڅوک چې په ايمان راوړي هيڅکله نه مري.
حضرت
مسيح(انجيل يوحنا،۱۱فصل،۲۶- ۲۵،ايتونه
**من يظهُره الله دظهور ورځ چې ددې ظهور دقيامت ورځ ده.۴ حضرت باب**
**دقيامت څخه مقصد دهغه مظهر قيام دی دخدای مظهر دهغه دامر لپاره.۵حضرت بهاءالله**
**په هغه ورځ چې هغه (حضرت بهاءالله)خپل ځان ظاهر کړي. دقيامت ورځ ده.۶**

**حضرت باب**

**دظهور ورځ دلوی محشر ورځ ده.۷**
**حضرت بهاءالله**
**و هذه القيمة الّتی فيها قام الله بمظهر نفسه .۸**
**حضرت بهاءالله**
داهغه قيامت دی. چې پروردګارخپل ځان دخپل موعود اومظهرپرځای ودرولی دی.

---

❖ «من يظهر الله »(هغه ځوک چې خدای هغه ظاهروي.)داهغه لقب دی. چې حضرت باب حضرت بهاءالله ته په اشارې سره کارولی دی .



---

---

**اسرار قيامت وشروط ساعت کل مشهود،ولکن عباد غافل ومحجوب.۹ حضرت بهاءالله**
دقيام اسراراو دساعت شرطونه ټول موجود دي. اما بنده ګان په غفلت اوپرده کې دي .
حسرت اوعذاب هم په دوه ډوله کارول شوی دی:

| | |
|---|---|
| | **حسرت** |
| «محکمه»معنی | د روح افسوس کول په همېشني جهان کې ددې په خاطر چې په دې جهان کې دحقيقت څخه انکار کړی دی. |
| «متشابه»معنی | د روح ناڭاهانه افسوس کول دحقيقت څخه محروميدلو لپاره په دې عالم کې. |

| | |
|---|---|
| | **عذاب** |
| «محکمه»معنی | دروح عذاب په هميشنې جهان کې. |
| «متشابه»معنی | دروح ناڭاهانه عذاب په دې جهان کې دالهي مرحمت اوالطاف څخه محروميدل. |

ولې دپروردګار دموعود دمنکرينو لپاره «عذاب»او«افسوس»په دې جهان کې«ناڭاهانه»دی ؟ دامطلب د ډير اهميت وړ دي .ځکه چې دمنکرينو بې خبري د«عذاب»او«حسرت»څخه چې ددوې په وجود کې ده. هغوې ئې دغفلت په خوب او راحت کې ساتلي دي، هغوې ته دامن اودخوښی احساس ورکوي .دااحساس دامنيت اوخوښې دهغوې په روح کې مستي پيداکوي .اوهغوې له هغه خطرونو څخه چې ددوې

ټول وجود ئې نيولى دى. لرې ساتي .داغافلان نه پوهيږي .اوله دې مهمه داچې نه پوهيږي، چې نه پوهيږي، داډول ناداني ، له بل هر ډول نادانې څخه رايجه اونتيجي ئې ډيرې وخيمې دي.

داسې ډير كسان دي. چې خپل ځآن مؤحد اويكتاپرست ګڼي. اوهيڅكله ئې په فكر كې نه راګرځي. چې ددوې معبود يواځې پيسې،هوا اوهوس دى.اومقصد ئې ددنيا سره مينه ده، نه دخداى سره مينه.



---

**قل تالله سيفتنون في هذه الفتنه و يلقون في النار عباد الذين ما خطرت ببالهم باقل من ذرة انهم غيرالله يعبدون . ١٠**

**حضرت بهاءالله**

ووایه !په خدای قسم دی !داسې خلک به په دې امتحان
کې ازمایش شي. اوددوزخ اورته به ولویږي. چې
دیوې ذرې په اندازه ئې په زړه کې نه وي
راګرځیدلي، چې په غیر دخدای نه ئې بل معبود لرل.
**هرملت ته چې نظروکړئ ، دهغه اهل وائي : زه
دخدای لپاره کوم .اوحال داچې دخدای په ضد ئې
کوي.۱۱**

**حضرت باب**

**په هغه ورځ به پخپله ګومان کوي، چې دجنت والا
دی ، خوپه اصل کې دوزخ دهغه ځای دی پخپله نه
پوهیږي.۱۲**

**حضرت باب**

هر یو دلاندې مثالونو څخه په خاصې طریقې سره
وښائې. چې دانسان بې خبري دخطر څخه ،د انسان
لپاره دخلاصون په معنا نه دی:

- څومره ډیر خلک دي. چې خپل ځان روغ
اوسالم ګڼي. اوداوږد عمر په انتظار خپل ژوند
تیروي ،غافل له دې چې خطر ناکې ناروغې ئې
ټول وجود نیولی دی. کله چې معاینه ترسره
کړي. اودازمایش نتیجه ئې واوري ،په وحشت
اوحیرانتیا کې ولویږي .ځکه حقیقت ددوې
دخیالونو سره په مغایرت کې وي.

- ځنې خلک دصحت اوسلامتیا قوانینو ته توجه نه کوي .نصیحت اواندرز ،تهدید اواخطار ، اوددلیل ذکر اودهغوې لپاره آماراوشمیره لکه دهوا یو حرکت دی. داخلک دګومان اوتصور په کمک اوقوت ،هغه خطرونه چې ددوې په انتظار کې دي ،له خپل ځان څخه پټوي.
- ځنې خلک په فکري تشویش اخته دي ،اما په سبب ئې نه پوهیږي .دهغوې دناراحتی ریښي پیژندل اوپیداکول دهغوې دښه والي لپاره لمړني ګام دی .

په عالم ددین اوایمان کې هم دارنګه قوانین اواړیکي حکم فرما دي .ډیر خلک دخدای نه اودهغه دوخت دموعود دلریوالی څخه په سخت درد اخته دي.دهغوې یوه ډله د درد له وجود څخه باخبره ده .اوپوهیږي چې په کار کې مشکل دی. اما ددرد په سبب نه پوهیږي اونه ئې پیژني.

یوه بله ډله ،هم په درد پوهیږي. اوهم ددرد په سبب ،اما دګومان په قوت اوتصور هغه خطرونه چې ددوې په انتظار کې دي. له خپله ځانه پټوي .

یوې بلې ډلې دنا امیدې دتیاری سره ئې خوی اوعادت پیداکړی دی ،او دهغې غلبه اوحکومت ئې پخپل روح منلی دی ،تردې حده پورې چې ژوند کول «بې له اسمانی خوښی»څخه دژوند له لوازمو څخه ګڼي .وائې به چې دی خلکو هیڅکله دپسرلي څیره نه ده لیدلی اودمرغانو خواږه اوازونه ئې دونو په څانګو اوریدلی نه دي.

**دبېده خلکواوبې خبرانوبیدارول اوپوهول څه اسانه کار نه دی ، هغه څوک چې په خوب کې دی اوپوهېدلی چې په خوب کې دی کاربه اسانه وی.اماڅوک چې په خوب کې دی.له کومه ځایه پوه شي چې په خوب کې دی؟ دقران دایتونو په اساس ،ډیر خلک دارنګه غافل دي. اودارنګه دپروردګار دموعود نه دانکار لپاره اصرار کوي. ترڅو دهمیشني عالم «عذاب»ئې نه وي لیدلی ،بیدار به نشي .حضرت بهاءالله فرمائي چې دپروردګار دائین منکرین په خوب کې پاتې کیږي. ترهغه وخته پورې**

**چې له دې جهان څخه لاړ شي.دهغې دنیا په ټیټو درجو کې چې دهغوې ځای دی وګورې .(۱۳)**

دکار مشکل په دې کې دی : که پروردګار دخپلې معجزې په قدرت سره خلک دخوب نه راویښ کړي اود«ایمان هدیه»په هغو قبوله کړي .باید د«ازادی اواختیار هدیه»چې دانسانیت کیدلو لپاره لویه نښه اولازمه ده.له هغو څخه واخلي.ټول مؤمنین دجنت په امید خوشحاله دي ،اوهغه دزړه پورې ځای خپل اینده اوهمیشنی ځای ګڼي.اما دپروردګار د ارادې په اساس ، یواځې هغه کسان هغه ښایسته اوزړه وړونکي ځای ته لار پیداکوي. اوپه هغه زړه خوښونکي ګلزاز کې ځای نیسي. چې خپله لار دلته وټاکي .دازادی اواختیار دارمغان دساتلو لپاره ددې دنیا اوسیدونکو نه باید درفتار په نتایجو یعنی هغه مکافات اومجازات چې په انتظار کې دي. کاملاً اشنا شي. دپروردګار دارادې په اساس ، دسفر په ورځ په هغه بله دینا اودیار کې له دې «لوی رمز»څخه باخبره شي .یواځې په هغه «ساعت»کې به همیشني جهان ته نوي راغلي خپل همېشنی مسکن ووینې.

یواځې په هغه ورځ به دپروردګار دموعود منکرین هغه د«قضاوت ورځ»وپیژني چې په دې دنیا ئې څومره خوښې دلاسه تللې دي ،اوڅومره نعمتونه اوبخششونه ئې په هغه جهان کې له لاسه ورکړي دي .بلې ،ځآن غلووني وخت پای ته رسیدلی دی. او هغه ورځ رارسیدلی ده. چې نور نشي کولای، دخپل ځان څخه څه شی پټ کړي :

**بَلْ بَدَا لَهُم ما كَانُواْ يُخْفُونَ مِن قَبْلُ .**

**دانعام سورت،۲۸-ایت**

بلې (په هغه وخت کې)هغه څه چې مخکې له ځان څخه پټول ،دهغوې لپاره ښکاره شي. دپروردګار دحکمت درسونه اواسرار په عالم دپیدایښت کې پټ اوښکاره دي .درشد اوپرورش لپاره ،باید دځمکې لاندې دانه پټه شي.

**پټول دهغې حکمتونه دي ،ښکاره کیدل ئې رمزونه دي .په غیر دپاکو زړونو څخه ئې بل څه شی درک**

**کولای نشي.۱۴**
**حضرت بهاءالله**

**ن پنهان شود سِر آن سر سبزی بستان شود**

دانسان په تکامل کې هم دارنګه نقشه کارول شوی ده .یواځې وروسته له تولده دعالم جنین څخه دې دنیا ته ،زمونږ په جسم کې پرتې قواوې دظهور میدان ته راوځي .یواځې دې عالم ته دراتللو نه وروسته ،پوهیږو. لیدل یا اوریدل یعنی څه .یواځې دلته درک کوو چې سترګې اویاغوږونه لرل یا نه لرل کومې نتیجې لري .داجهان هم دهمیشني جهان لپاره داماده ګې ځآی دی .یواځې وروسته ددې دنیا له سفر څخه هغه بلې دنیا ته داسرار پرده له منځه ځي .یواځې په هغه دنیا کې لکه څنګه چې یو خپل ځان ګورو اوپیژنو. یواځې په هغه ځای کې خپل ځآن ته ددروغ ویلواودخپل ځان دغلولواودخپل«ذات»دپټولو دهنر قواوې له خپل ځان نه اوله نورو څخه دلاسه ورکوو. .یواځې په هغه همیشني میدان کې دهغو قواو په ارزش چې په دې دینا کې پالنه کوو پوهیدلی شو. یواځې په هغه عالم کې ،دخپل روح په پاکې اویا ناپاکي په هغه ترتیب چې دی، ګورو. اوپه خپل معنوي مقام خبریږو. یواځې ددې وطن څخه دسفر نه

وروسته په هغه بل وطن کې دپروردګار دانکاراو اقرار دنتایجو څخه خبریږو.



---

هغه څوک چې په دې سرای کې خپل نقش په سمه توګه نه اجرا کوي ،وروسته ددې جهان له سفره همیشني جهان ته ،څه ارزو لري ؟هغوې وائي:

**رَبنَا ابْصَرْنَا وَسَمِعْنَا فَارْجِعْنَا نَعْمَلْ صَالِحًا انا مُوقِنُونَ .**

**دسجدې سورة،۱۲-ایت**

اې ربه ![هغه څه چې زمونږ نه پټ و]اوس ئې وینو اواوروئي .مونږ مخکښني عالم ته بیرته وګرځووه، ترڅو نیک عملونه وکړو .اوس مونږ ستا په وینا یقین وکړ.

**حضرت بهاءالله فرمائي: ډیر بنده ګان داسې دي. چې دخدای عبادت ئې کړی وي. اوخلکو ته به ئې الهي**

**امر تبليغ کړی وي. خلک به ئې دښنو اوبدو نه خبر کړي وي. اودکربلا په غمجنه کې به ئې ژړا اوفریاد کړی وي .اما کله چې خپل موعود حضرت باب له ځيرې نه نقاب لرې کړ ،له هغه ئې مخ واړول. اوترهغې ارام ونه کړ. ترڅو ئې هغه په مرميو سورې سورې نه کړ ،اوبيا ئې په خوشحاليو پيل وکړ ، چې پخپل ژوند کې داسې يو غټ مهم ثوابي کار ترسره کړ!۱۵**

که دجهان خلکو ديوبل په مرسته خپل فکري قوت ئې يو انسان ته ورکړی وی. نشو ئې کولای هغه ظالمان په دې قانع کړي. چې دوې

د«يزيد»او«شمر»همکاران شوي دي!

دپروردګار دموعود دمنکرينو دناپوهې عذاب چې ټول وجود ئې ورته نيولی دی .په هيڅ وجه هغوې په عذاب کې نه دي. ځکه چې له هغوې دناپوهې عذاب پرده نه ده لرې شوې. دامطلب لکه فکر اوتاکيد ته ضرورت لري .دپروردګار دشهادت په اساس خلک چې هر عقيده لري. او په دې جهان کې هربرخليک دخپل ځان لپاره وټاکي. ترراضي به وي .په دې لاندې ايت کې ډير فکر وکړئ ،ځکه چې په هغه کې يوه دنيا معنا پرته ده :

**كُل حِزْبٍ بِمَا لَدَيْهِمْ فَرِحُونَ .**

**دمؤمنون سورت،۵۳-ايت**

خلک چې دهرې ډلې اومسلک څخه وي ،په هغه څه چې په هغه باور لري. ترې راضي دي .

سعدي دابيت څومره ښکلی ويلی دی :

**منهدم گردد به خود گمان نبرد هيچ کس که نادانم**



---

په همغه ډول چې داصحاب کهف په قصه کې موولیدل ،دغار اوسیدونکي ،یعنی دجهان مسلمانان ،دموعود دظهور په وخت کې ،بیدار په نظر رسي ، اما په حقیقت کې ویده وي:

**وَتَحْسَبُهُمْ ايْقَاظًا وَهُمْ رُقُودٌ ...**

**دكهف سورت، ۱۹- ۱۸ ،ايتونه**

تصور به كوي. چې هغوې بيدار دي .امّا (په حقيقت كې)ويده دي...

**قد اتى يوم القيام والغافلون فى نوم عجيب .۱٦**

**حضرت بهاءالله**

دپورته كيدلو ورځ رارسيدلې ده ،امّا غافل خلک په حيرانوونكي خوب ويده دي.

د«قيامت »پورې اړونده كلمې چې زمونږ دعصر دپيغمبر دظهور خبر په هغوې كې پټ شوى دى. ډير دي .ښه به وي ددې كلمو څو نورې نمونې ترنظر لاندې ونيسو. څرنګه چې دهغوې «محكمې»او«متداولې»معنا ګانې معلومې دي،يوازې دهغوې په «متشابه»معنا په ذكرولو بسنه كيږي.

**دقيامت پورې داړونده ځنې كلمو**

**«متشابه»معنا ګانې**

| | |
|---|---|
| **جنت:** | دپروردګار دنوي (ټاكوونكي)پيغمبر دمنلو په خاطر اودهغه داحكامو سرته رسول دپروردګار درضا په خاطر . |
| **دوزخ:** | دپروردګار دنوي ټاكوونكي څخه دانكار په خاطر ،خپل ځان دالهي |

| | |
|---|---|
| | غضب لاندې راوستل. دخدای څخه لريوالی ،اودخوښيو دسرچينې څخه لريوالی، ځان سوځول . |
| **په شپیلۍ کې پوکې کول:** | دپروردګار دغږ اعلان .«لوی خبر»خلکو ته رسول. |
| **حشر (راټولول)** | دناامیده ،خفه اوويدو خلکو راويښول ،خوشحالول اواميدواره کول. |

| | |
|---|---|
| محشر (دخلکو دجمع کیدلوځای): | دتیتوپرکو خلکو راټولول دیوبیرغ لاندې. |
| نشر ،نشور (ژوندی کول) | دایمان روح په خلکو کې پیداکول اونوی ژوند ،نوومؤمینانو ته وربخښل . |
| یوم النشر (دمړو دژوندی کیدلو ورځ): | دبیدارې ،پوهې اوخوښی وخت .دنوي معنوي ژوند دلاسته راوړلو وخت. |
| دقبرونو څخه پورته کیدل: | دغفلت دتیارې نه خلاصون ،دپروردګار دنوي اوتازه لمر یعنی د موعود دروښنائې اوبخشش څخه برخه مند کیدل. |
| دخدای په وړاندې ودریدل: | دخدای دموعود په وړاندې ودریدل چې دخدای په نوم راځي. |
| دپل صراط څخه تیریدل دصراط څخه | دانکار دمیدان څخه تیریدل اودپروردګار په نوي موعود ایمان راوړل ددوزخ دشک اوغفلت اوعذاب څخه تیریدل اودجنت دخوښیو ،داډ اوپوهاوی ته رسیدل. |

| | |
|---|---|
| تيريدل: | |
| ميزان : | دوخت دموعود قضاوت دخلكو په باره كې. |
| ملائكې: ________ ______ دجدائې ورځ: ________ ______ دبعثت ورځ | رښتينې مؤمينان له دې جهان نه دعشق اوايمان په وزرونو دوخت موعود ته په هميشني عزت اوخوښيو كې پرواز كوي. __________________________ ________________ دمؤمينانو دجدائې ورځ دنورو خلكو څخه . __________________________ ________________ دموعود دقيام ورځ اودژوندى كيدلو وخت(معنوى مړي) |

| | |
|---|---|
| هغه ورځ (یومئذ): | دموعود دظهور ورځ. |
| ددین ورځ (یوم الدین) | هغه ورځ چې پروردګار نوې دین جهان ته بخښي ،دجزاورځ دجدائې ورځ ، دازمایش ورځ. |

که څه هم دجهان ډیر خلک ددې «لوې خبر»څخه بې خبره دی. اماپه دې ساعت کې ،په دې دنیا کې قیامت دی .دالهي شپیلې غږ پورته کیږي. اومعنوي مړي دپورته کیدواودنوي ژوندپیداکیدلو په حالت کې دي .په دې قیامت کې ،ددې غږ اوریدونکي ازاد دي. چې دپروردګار دعوت ومني ،دغفلت دقبر څخه پورته شي اونوی ژوند پیداکړي ، اویا په تیارې ،ناپوهې اوبې خبرې کې دالهي دنور څخه پاتې شي. اوخوبونو وکړي.

دپروردګار دحکم اوارادې په اساس هر څوک چې دوخت اوزمان دپیغمبر دظهور «خبر»واوري ، غواړي اوکه نه غواړي:

- دالهي دعدل تلې ته به ودرېږي.
- دپروردګار موعود مني اوکه انکار ترې کوي.
- دهغه قضاوت په اساس به خپل مجازات اومکافات اخلي اوخپل ابدي برخليک ته به رسيږي. يابه جنت ته ځي اويا به دوزخ ته ځي.

دانتظار شيبي پای ته رسيدلی دي دخدای ورځ رارسيدلې ده ،اولوي قيامت رارسيدلی دی. دکوښښ اوخيږنو وخت دی ،نه دارامش اوانتظار وخت.
دالاندې شعر زمونږ دعصر خلکو ته دفروغی بسطامي خطاب دی:

**ت توان نشست　　　برخيز تاهزار قيامت بر پاکنيم**

## پروردګار دهغه کلام

## څخه

## پیژندلی شی

[دپروردګار دټاکونکو]په ظهور سره قیامت راځي ،اودهغه دعدل په محضر کې «خلاق حساب»سرته رسي .اوهر څوک دخپل عمل په جزا رسي. یابه جنت ته ځي. اویابه په دوزخ کې پاتي کیږي.»۱۷
حضرت بهاءالله

په اول مقام کې ...دپروردګار رضا ،جنت دی .۱۸
حضرت بهاءالله

له خوبه پورته شئ. اوله بې هوشې څخه په هوش راشئ ،دبې نیازه اواز دزړه په غوږونو واورئ .اوهغه څه چې دپروردګار دورځې سزا اوراز دی، رفتار وکړئ نن مهتر (لوی )هغه څوک دی. چې وئې لید اوپوه شو. اونن کهتر( وړو کی) هغه څوک دی. چې ددانا وینا ئې پیدانه کړه. اونوی دوست ئې په نوې جامه کې ونه پیژندل .(۲۰)

**حضرت بهاءالله**

**هب علی الممکنات ما و هبك الله بجوده ليقومن عن قبور اجسادهم و يستشعرون علی الامر الذی کان بالحق ماتيا ثمّ ارسل عليهم من نسمات المسکية المعطره التی اعطاك الله فی ذرالبقا لعل يحرك بها عظائم الرميمة و لئلا يحرم الناس انفسهم عن هذا الروح الذی نفخ من هذا القلم القدمی الازلی الابدی و يکونن فی هذه الارض الطيبة المبارکة بين يدی الله علی احسن الجمال محشوراً. ٢١**

**حضرت بهاءالله**

له هغه څه چې پروردګاردخپل لطف اوکرم له مخې تاته بخشش کړي دي نورو ته ئې وبخښه ،ترڅو چې دقبرونو څخه قدم دباندې کيږدي. اودهغه امر اوائين څخه چې دپروردګار له لورې راغلي خبرتيا پيداکړئ .وريسې هغه خوشبويه نسيم چې پروردګار په عالم دبقا کې تاته بخشش کړی دی. پرهغوې په لږيدلو کړه ،ترڅو هغه وراسته هډوکې په حرکت راشي.

---

☆ بلی = آری،مثبت ځواب د«اَلَستَ»غږ ته .**اَلَسْتَ بِرَبِّكُمْ** ؟ايا زه ستاسې خدای نه يم. (اعراف ١٧٢،)

اوخلک له دې روح څخه چې له دې پخواني اوابدي قلم نه پوه کيږي، محروم پاتې نشي اوپه دې پاکه اومبارکه ځمکه کې دپروردګار په وړاندې په ډير زيات ښکلا اوجلال سره ژوند وکړي .

**اې دپروردګار بنده !دپروردګار دمحبت په هوا کې الوتنه وکړه .هغه مړو ته ژوند وروښايه .دجهان دخلکو څخه هريو چې دجانان ښکلې بوې په دې سهار کې پيدانه کړي دمړو څخه حساب شو.۲۲**

**حضرت بهاءالله**

**فاني او کم وختونه په لړه توګه  په ساعت ليدل کيږى اودبرق په څير په تيزې سره تيريږي ...۲۳**

**حضرت بهاءالله**

**دنيا ته اوګه چې په دنيا کې دي ناظرمه اوسئ ،ځکه چې ټول فاني دي.۲۴**

حضرت بهاءالله
ووایه وختونه لاړل اوځي . په هغه څه کې کوښښ وکړئ. چې  په دنیا اواخرت کې دژغورنې سبب دي شاید بري ته ورسئ.۲۵
حضرت بهاءالله
ورځ دقیامت داسې یوه ورځ ده. لکه دنن په څیر .لمر دراختلواولویدلوپه حال کې دی. زیاتره کله چې قیامت راځي.او په هغه ځای کې چې قیامت کیږي. پخپله هغه خلک ناخبره وي.۲۶
حضرت باب
دعیسی امت ته نظر وکړئ چې تر اوسه ... منتظر دي. اودهغه لپاره شپه اوورځ متضرع دی .اوحال داچې راغی اویو زردوه سوه اواویا کلونو تیر شو. اوهغه قیامت راغی اوتر اوسه هغوې په انتظار کې دي.۲۷ حضرت باب

# ۲۰



## دقران ایتونه

## دقیامت

## اوساعت په باره کې

دهغو ایتونو شماره چې دبهائې ائین دظهور رابطه دقیامت اوساعت سره جوړوي. حیرانوونکی ده. په دې فصل کې ځنې هغه ایتونه وړاندې کیږي:

**دوخت په قدر پوه شئ ...داوخت چې په قران کې په ساعت سره تعبیر شوی اوپه قیامت یادشوی دی،عالم**

**ته روح وربخښي.۱**

**حضرت بهاءالله**

**قیامت په قیام سره حقیقت ومومند.۲**

**حضرت بهاءالله**

دقران په ایتونو کې فکر اوتامل وښائي. چې قیامت معنادمړو پورته کیدل دقبر څخه ،امر دی غیر معقول اودپروردګار دحکمت اوسنتو سره جوړښت نه لري . اما دقیامت معنی د«معنوي مړو پورته کیدل دغفلت اوناپوهې دقبر څخه»نه یواځې دالهي حکمت اوسنتو سره سمون لري. بلکه دقراني ایتونو اودانساني فکر اوعقل داصولو سره هم موافق ده .

راتلونکي ایتونه په نظر کې ونیسئ .ددې ایتونو په اساس ،«ساعت»رارسي خلک د«قبرونو »څخه پورته کیږي .اما دهغوې یوه ډله بې له دې چې کوم دلیل ولري. اویاد اصل موضوع څخه خبر اوسي ،دخدای په باره کې په مجادله شروع کوي:

**ان الساعَةَ آتِيَةٌ لا رَيْبَ فِيهَا وَان اللهَ يَبْعَثُ مَن فِي الْقُبُورِ وَمِنَ الناسِ مَن يجَادِلُ فِي اللهِ بِغَيْرِ عِلْمٍ وَلَا هُدًى وَلَا كِتَابٍ منِيرٍ .** **دحج**

**سورت،۸ـ۷،ایتونه**

البته چې هغه ساعت به راشي .په راتلو کې شک نشته .هغه وخت به دقبر اوسیدونکی پروردګارراپورته کړي .(په هغه وخت کې)به دخلکو څخه ځنې دخدای دامر په باره کې مجادله وکړي. بې له دې چې په څه شی پوه شي ،اویا دهغه دلورې هدایت شوي وي. اویاکوم«کتاب»چې دنور منبع ده ولري.

پوښتنه :ایا ممکنه ده چې مړي ،وروسته دقبر څخه راپورته کیدلو ،دخدای اویا دهغه دامر په باره کې په مجادله شروع وکړي ؟ **يُجَادِلُ فَيِ الله** ؟ ایا هغوې چې

دقبر څخه پورته شوي دي. دداسې يو کار دجسارت جرائت لري؟اما د«معنوي مړو»لخوا دداسې يوې مجادلې سرته رسول يو عادي اومروج کار دي .دارفتار په ټولو وختونو اوزمانو کې دلنډ فکره خلکو پخواني طريقه وه، اووي به . څکه هغوې دامر ظاهر ته نظر کوونکي دي. اوله باطن څخه لرې اوبې خبره دي .اوهم دپروردګار دقدرت اوعظمت څخه چې دپيغمبرانو شاته وجود لري. اودهغوې انسانې نقاب لاندې پټ دي. بې خبره دي. خپل ځان ته جرئت ورکوي. چې دخداى دموعود په مخالفت کې پورته شي. اودهغه پيروانو سره په مجادله کې کوښښ وکړي.

دې وړاندوينې هم دقران دنورو وړاندوينو په شان تحقق موندلی دی .څکه ډير دخلکو ،په خاصه توګه مسلمانان اومسيحيان ،بې له سمې اګاهې نه دپروردګار دنوي ائين ،دظهور دابتدا څخه ترننه پورې دهغه داسماني منشاء اوحقانيت په باره کې دبهائيانو سره په مجادله مشغول وه اودي.

---

**تالله هذالظهورالله...و لا يعرف بما عندكم من كلمات اهل الجدال تقربوا اليه بعيون نوراء...كذلك امرتم...من لدى الله المقتدر العليم الخبير .۳ حضرت بهاءالله**

په خدای قسم دی !دادخدای ظهور دی ...هغه ائين دی. چې د«اهل جدال»دکلماتو اوتصوراتو سره باید ونه پيژندل شي .په خلاصو اوروښانه سترګو دې ائين ته نظر واچوئ ...دارنګه توانا اودانا پروردګار له لورې تاسې ته حکم شوی دی .

احاديث هم داحقيقت تائيدوي .د«امام محمد باقر»دروايت په اساس :

**سيختلفون في الكتاب الذى مع القائم الذى يأتيهم به حتى ينكره ناس كثير .۴**

دهغه کتاب په باره کې چې قائم ئې هغوې ته راوړي دنظر اختلاف ولري،اوډیر خلک به دهغه څخه انکار وکړي.
مخکنې ایت دحج په سورة کې ،په ډیر لطافت سره مونږ ته رازده کوي. چې دپروردګار دنوي ائین مؤمنین دیو لوي خوند څخه برخه من دي :هغوې دالهي هدایت اوپوهې سرچینې ته لاس رسی پیداکړی دی ،اوله هغه څخه برخمند دي .هغه سرچینه ،نوي اسماني کتاب دی .چې د"**لِكُلِّ اجَلٍ كِتَابٌايت** " ايت په اساس (درعد سورة ۳۸-ايت)په هر عصر اوزمان کې خلکو ته بخشش کیږي. اوداڅه ډول «یوکتاب»دی.
چې د«مجادلې»والا ئې په اختیار کې نه لري «**وَلَاَكِتَابٌ مُنِير**»؟ قران مجيد هم مسلمانان لري اوهم دپروردګار دنوي ائين مؤمينان.پس کوم خلک د«**كتابٌ مُنِيْر**» یعنی هغه کتاب چې مسایل روښانوي بې برخې دي؟
ښکاره ده چې یواځې دهغه کتاب منکرین له هغه کتاب څخه بې برخې دي .یواځې هغه ډله ده. چې دنوي قیامت څخه سم پوهاوي نه لري .«**بِغَيْرِ عِلْمٍ**»یواځې هغه ډله ده. چې دپروردګار دهدایت دلمر دراختلو څخه په دې زمان کې برخه اونصیب نه دی اخیستي .«**وَلاَ هُدًى**»؟

**ما من خير الاّ و هو فى كتاب مبين .٥**
**حضرت بهاءالله**

هيڅ يوښه شى به پيدانه کړئ. چې په دې کتاب کې روښانه اوښکاره نه وي.

پس «اهل جدال» «**مَنْ يُجَادِلُ فِى اللهِ**»درې مشکله لري:

- دعلم دسرچينې څخه برخه مند نه دي (**بِغَيْرِ عِلْمٍ**).
- دهدايت دنور څخه برخه من نه دى (**وَلاَ هُدىً**).
- کتاب په اختيار کې نه لري. چې مهم مسائل روښانه کړي.(**وَلاَکِتَابٌ مُنِيْرٍ**).



---

---

دډيرې حيرانتيا ځاى دي. چې جنجال کوونکي داسې دحقيقت څخه لري دي. دتعصب تصور اوخيال په دام کې بند اوګرفتار دي. چې ددې ټولې ناپوهې اوضعيف والي سره دپروردګار دامر په وړاندې ودريږي.

اود«کتاب منير»په ردولو کې د«ردّيه کتاب»ليکي!

په دې بل ایت کې فکر وکړئ .په دې ایت کې
،پروردګار مونږ ته رازده کوي .چې هغه
«ساعت»رارسیږي .اما خلک نه پوهیږي:
**هَلْ يَنظُرُونَ الا الساعَةَ ان تَاتِيَهُم بَغْتَةً وَهُمْ لَا يَشْعُرُونَ .**
**دزخرف سورت، ۶۶-ایت** ایا په غیر له دې بل
کوم انتظار لري. چې په هغوې ناڅاپه
«ساعت»راشي. اوهغوې په هیڅ پوه نشي؟
هغه «ساعت»دقیامت دوعدې دسرته رسیدلو وخت
دی .څنګه ممکنه ده. دقیامت ساعت راورسي ،مړي
دقبرونو څخه پورته شي ،اما خلک پوه نشي؟دارنګه
قیامت به عالم چپه اونسکور کړي .دمړو پورته کیدل
ددنیا په زرهاو ښارونو اوقریه جاتو کې دبلې هرې
حادثې اوپیښې څخه چې تراوسه په عالم کې پیښ
شوي دي. ایروونکي دي.
ښه به وي دجسماني قیامت امکان دعقل په تله هم
وتلو. اوسنجش ئې کړو .که دمړو تعداد دپیدایښت
دشروع څخه تراوسه پورې، دژوند یو سل برابره
حساب کړو ،دقبر څخه دهغوې په پورته کیدلو
،دځمکې جمعیت سل مرتبې زیاتوالی پیداکوي مثلاً یو
۱۲میلوني ښار به ۱۲۰۰ میلونوته رسي .ایا دځمکې
کره به ددارنګه زیاتوالي ګنجایش ولري؟ بایدپوه اوسو
چې نني ډیر کورونه اوښارونه په پخوانیو قبرونو

جوړ شوي دي..مخکینې ډېر مړي باید داوسنیو کورونو اوښارونو څخه راپورته شي. اوڅومره ډېرې سترګې مغزونه ،زړونه اوهډوکي چې څومره صاحبان به لري اود قیامت په ورځ باید دیوبل سره په رقابت شروع وکړي .ځکه اتمونه همیشه په حرکت اودوران کې وي اوپه هرعصر کې تازه اونوي صاحبان لري!



۲۰فصل:د«قیامت»او«ساعت»په باره کې دقران ایتونه

---

دخلکو بې خبره پاتې کیدل، دقیامت دتحقق څخه «**وَهُمْ لاَيَشْعُرُونَ** »هغه وخت امکان پذیره دي. چې هغه لویه

پیښنه دعالم په فکر اوروح کې رامنځ ته شي .دقران دامتشابه وړاندوینه هم لکه دهغه بل مجید کتاب وړاندوینه دبهائې ائین په ظهور سره تحقق پیداکړی دی .ځکه چې دې ائین دظهور له شروع څخه تر اوسه پورې میلون هاو خلکو په ژوند کې په ټوله دینا کې اسماني قیامت راوستی دی .په دې حال کې دعالم ډیر اوسیدونکي ددې لوې واقعي څخه بې خبره دي. اونه ورباندې پوهیږي. «وَهُمْ لاَیَشْعُرُوْنَ»چې په دې روزګار کې دیو قیامت پرځای دوه لوې قیامته رامنځ ته شوي دي : یو ځل دحضرت باب الله په ظهور سره اوبل ځل دحضرت بهاءالله په ظهور سره .

**هیڅ یوهغه ونه پیژندل،اوهغه ټول وپیژندل.۶**

**حضرت باب**

**د«خدای ورځ»به د«شپې دغله»په شان راشي.**

**دپطرس دوهمه رساله ،۳فصل،۱۰-ایت**

**زه پوهیږم چې په ظاهر کې دکلیسا فعال اوژوندی غړی ئې ،اما په حقیقت کې مړئې. پس بیدارشه، اوپه هوش راشه. اومه پریږده، هغه څه چې باقي پاتې دي ،له منځه ولاړل شي. څرنګه چې هغه هم دنابودې په حالت کې دي ،ځکه چې رفتار دې دخدای له نظره دنقص اوعیب څخه ډک دی. دهغه پیام په لورې چې په ابتداء کې دی واورید، اوایمان دې**

**راوړ. بیرته وګرځه اوهغه ته پابند اوسه.زما لورته راوګرزه، اوکه نه دغله په شان به راشم ...(۷) یوحنا مکاشفات ،۳فصل،۳-۱،ایتونه**
**انا جددناالعالم من نفحات الوحی واظهرنا ربیع المعانی والقوم اکثرهم لایفقهون**.۸

**حضرت بهاءالله**

(ماعالم دوحې په نفحاتواو وږمو نوی کړ. اودمعنی پسرلې مې ظاهر کړ. ډیر خلک له دې پیښې څخه اګاه اوباخبره نه دي).

**اکثره دماشومانو په څیر دخیالونو په نمجنو خاورو مشغول یو. اودورځو له نورانیت نه غافل یو.۹**

**حضرت بهاءالله**

هغه ایتونه چې دقیامت دظاهري معنی سره، یعنی پورته کیدل اودزړو هډوکو دمتفرقو اتمونو نه دجهان دزړو اوپخوانیو قبرونو څخه دانسان جوړول، مغایرت لري. ډیر دي :

---

**وَانذِرْهُمْ يَوْمَ الْحَسْرَةِ اذْ قُضِيَ الْامْر وَهُمْ فِي غَفْلَةٍ وَهُمْ لَا يُؤْمِنُونَ . دمريم سورت، ۳۹-ايت**

هغوې ته د«افسوس دورځې»سره دمخامخ کيدلو نه دويرې اخطار ورکړه .هغه ورځ ده. چې دپروردګار «امر»راځي ،اما خلک دخپلې وظيفې په سرته رسولو کې غفلت کوي. اوپه موعود ايمان نه راوړي.

په پاسني ايت کې «دقران دلوې معما»ډير اسرار پټ دي :

- «**وَاَنْذِرْهُمْ**»«هغوې ته ويره اواخطار ورکړه»ويره اواخطار دڅه لپاره ؟ ويره اواخطار په هغه وخت کې لازم دی .چې يوه مهمه پيښه راروانه وي. چې ډير خلک دهغې سرته رسولو ته متوجه نشي اوهغه دلاسه ورکړي.
- «**يَوْمَ الْحَسْرَةَ**»«هغه ورځ دافسوس ده».افسوس دڅه لپاره ؟ ددې لپاره چې دنظر وړ پيښه تحقق

پیداکوي ،اما ډیر خلک بې پروائې کوي. اوخپل مسئولیت نادیده ګڼي.

ښکاره ده که دوخت موعود ونه منو ،زمونږ روح په دواړه جهانونو کې له دې لوې غفلت اوبې نظیره محرومیت څخه په افسوس کې وي. دا«افسوس»په دې جهان کې هغومره چې لازم دی مونږ ته روښانه نه دی .کله چې زمونږ دروح دروني افسوس او«حسرت»ښکاره شي .داسرار پرده لرې شي. اوخپل روح په هغه بل جهان کې په هغه ترتیب چې دی، په ښکاره وګورو.

**ژر دې چې وئې ګوري، هغه څه چې اوس ترې منکر دي. ۱۰ حضرت بهاءالله**

- «**قَضُیَ الْاَمْرُ**»د«پروردګار امر پر ځای کیږي.»د«قضی»او«امر »کلمې دواړه د «لوی خبر»اود«خدای دذکر»ظهور ته په اشارې سره څو ځلې په قران کې راغلې دي.

دقران مجید دې څو نمونو ته اودحضرت باب اثارو ته توجه وکړئ:

**فَتَرَبصُواْ حَتیٰ یَاتِیَ اللهُ بِامْرِهِ .**

**دتوبه سورت،۲۴-ایت** صبر وکړئ. ترڅو دپروردګار «امر»او«ائین»راشي.

**انّه جاء بالحقّ و اقض□ الله امره کیف شاء. ۱۱**

**حضرت باب**

په حقیقت سره موعود ظاهر شو.اوپروردګار په هغه ترتیب چې غوښتل «امر»ئې ځای ته ورسول.



---

---

**اتَ□ امْرُ اللهِ فَلاَ تَسْتَعْجِلُوهُ.**

**دنحل سورت، ۱-ایت**

دپروردګار «ائین»او«امر»په خپل وخت کې راځي. په راتلو کې عجله مه کړئ.

**قد قض□ الامر و کان الحکم ف□ امّ الکتاب مقضیاً. ۱۲**

**حضرت باب**

«امر»راغی. او هغه حکم چې دکتابونو په سرچینه (قرآن) کې دی. سرته ورسید.

- **«وَهُمْ فِي غَفْلَةٍ»**خلک په غفلت کې غرق دی. که قیامت په ظاهري شکل سره وي. او مړي دقبرو څخه راپورته شي ، قصور اوغفلت معنا

نه لري .په هغه صورت کې به خلک دداسې
وحشت سره مخامخ شي. چې ژبه به ئې له بيان
څخه عاجزه وي. دخلکو له طرفه غفلت
اوناپوهي په هغه صورت کې دمنلو ده. چې
دپروردګار عظمت اوجلال ديو مظلوم انسان په
وجود کې پټ وي.

- «وَهُمْ لاَ يُؤ مِنُوْنَ »«خلک ايمان نه راوړي»

وګورې څرنګه مهربانه پروردګار په وضاحت او
ښکاره ډول د«قران دلوی معما»کونجي په دوه کلمو
«**لاَيُؤْمِنُونَ**»په دې ايت کې زمونږ په لاس
راکوي.ولې خلک ايمان نه راوړي ددې لپاره چې
معنوي قيامت راغلی دی.او«لوی خبر»اعلان شوی
دی. امّا خلک دارنګه په دنيا سرګرم اودزړوکلنو
خيالونو اوتعصباتو بنديان دي. چې دهغه «معنوي
قيامت»اوهغه «لوی خبر»څخه بې خبره پاتې دي .
هغه ويده اوپه خوب پراته خلک هر ساعت پخپل حال
افسوس وکړي. کوم چې په خوب ويده دي،اوژر
دخوب دبستر څخه نه دي پورته شوي .اما دپروردګار
دحکم په اساس ترڅو بيدار نشي. پخپل حال دافسوس
کولو اودپروردګار دموعود دحقيقت په بې خبرې
اوحکمت افسوس کول به ئې حتمي وي .که پروردګار
مړي له قبرونو څخه راپورته کړي. اوهغوې ته نوی

ژوند ورپه برخه کړي .څنګه ممکنه ده. هغه بيدار شوي دجهان دپروردګار دقدرت ،عظمت اوجلال د بنده ګې څخه سرغړونه وکړي. اودبنده ګې سر ورته په ځمکه کښې نږدي ، اودهميشني ژوند تاج ونه غواړي .دپروردګار ترټولو لويه هديه دايمان ارمغان دي. دزړه له کومي ونه مني ؟ايمان نه راوړل **(لاَيُوْمِنوَنَ)**دظاهري قيامت سره څه رابطه لري؟



---

**فلما جاء اليوم واتت الساعة و قض□ الامر و استوت انوارالجمال ف□ قطب الزوال اذا قاموا الكل بالنفاق لهذا النور المشرق من شطرالافاق ثم احتجبوا بحجبات كفر غليظا.١٣**

**حضرت بهاءالله**

کله چې دموعود «ورځ»اومقرر«ساعت»راورسيد. اودپروردګار «امر»اجرأ اوسرته ورسيد.اودپرودګاردښکلااوعظمت په بې شانه روښنائي کې وځلېده.خلک دنفاق له مخې ،ددې نورپه په وړاندې چې دجهان دافق څخه روښانه اوطلوع کوونکی دی. پورته شو. اودکفر په پردې خپل روح له نور څخه محروم کړ.

وروسته ايتونه داوښائې چې دخدای دوعدې دسرته رسولو په وخت کې ،دخيالونو پردې دارنګه دمسلمانانو بينائي وپوښوي. اوخام تصور داسې په هغوې غلبه پيداکړي. چې دهغوې ډيرې دخپل موعود دقدرت اوعظمت دليدلو څخه عاجز شي .دهغوې غفلت داسې حد ته رسي. چې يوه ډله خلک دهغوې څخه دبنده ګې داظهار په ځای دپروردګار دهغه ټاکلې عظمت اوشکوه په وړاندې ،دهغه په مخالفت کې پورته کيږي. ترڅو دهغه د ائين دخپريدلو خنډ وګرځي ،اما ددې کار څخه به عاجز وي:

**وَيَقُولُونَ مَتَى هَذَا الْوَعْدُ ان كُنتُمْ صَادِقِينَ... بَلْ تَاتِيهِم بَغْتَةً فَتَبْهَتُهُ مْ فَلَا يَسْتَطِيعُونَ رَدهَا وَلَا هُمْ يُنظَرُونَ .**

**دانبياء سورت،۳۸و ۴۰ ،ايتونه**

وائې به ، که رښتیا وائي ،ددې «وعدې»سرته رسیدل به کله وي؟....ناڅاپه به هغه په هغوې راشي اوهغوې به ګیچ کړي .خلک به دهغه دظهور مخ نیوی ونشي کړی، اونه به هغوې ته مهلت ورکړل شي.

وګورې مهربان پروردګار په دې لاندې ایت کې مونږ ته څرنګه په روښانتیا اوښکاره سره رازده کوي چې خلک :

**فَلاَ يَسْتَطِيْعَونَ رَدَّها.**

د«وعدې»دسرته رسیدلو دمخنیوي اوردولو قدرت اوورټیا نه لري.

که دا«وعده »دبل جهان مربوط وي ، ایا ممکن ده. چې خلک دخپل خالق په وړاندې ودریږی. اوکوښښ وکړي. چې هغه دخپل کار دسرته رسولو څخه منع کړي؟ ایا مړي چې دقبرونو څخه پورته شوي وي. داسې یو جرئت ولري؟یواځې «معنوي مړي».

چې خپل روح دغفلت ،ناپوهې اودتعصب په تیارو کې ښخ کړی وي. دداسې یو زړه ورتوب دځرګندولوجرئت لري اوکه نه. دارنګه خلکو په هر عصر اوزمان کې کوښښ کړی دی. چې دپروردګار دنورانیت اوروښانتیا څخه مخنیوی وکړي .دجهالت په دور کې دې غافلانو داسلام دپیغمبر سره په جنګ اومبارزه اخته ؤ. اوپه خپل خام خیال سره ئې فکر کړی دی. چې کولای شي. هغه چې دخدای له لوري رالیږل شوی دی. دپروردګار ارادې سرته رسولو ته پرې نږدي .دهر پیغمبر په ظهور سره داغم انګیزه داستان په کراتو تکرار شوی دی. زما عصر اوزمان هم استثنا نه دی .

دایت اخره جمله هم د«معنوي مړو»مقاومت دپروردګار دنوي موعود ددعوت په وړاندې په روښنائې سره تائیدوي .ځکه چې فرمائې:

**وَلاَهُمْ يُنْظَرُوْنَ.**

هغوې یعنی دوعدې مخالفانو ته به فرصت ورنکړل شي.

دمخکېني ایت نه وروسته فرمائې:

**وَلَقَدِ اسْتُهْزِئَ بِرُسُلٍ مِّن قَبْلِكَ فَحَاقَ بِالذِينَ سَخِرُوا مِنْهُم ما كَانُوا بِهِ يَسْتَهْزِؤُون...بَلْ هُمْ عَن ذِكْرِ رَبِّهِم معْرِضُونَ .**
**دانبياء سورت، ۴۲- ۴۱ ،ایتونه**
له تاځخه مخکې هم نور رسولان استهزاء شوي دي
.اما دهغوې استهزاء د خپل ځان ګرېوانګیره
شوه...هغوې[زمونږدعصر خلک]هم دپروردګار دذکر
څخه مخ اړونکي دي.
په دې لاندې ایتونو کې هم فکر وکړئ:
**اثُم اذَا مَا وَقَعَ آمَنْتُم بِهِ... وَيَسْتَنبِونَكَ احَق هُوَ قُلْ اي وَرَبِّي انهُ لَحَق وَمَا انتُمْ بِمُعْجِزِينَ... الاَ ان وَعْدَ اللهِ حَق وَلَكِن اكْثَرَهُمْ لاَ يَعْلَمُونَ.** **ديونس سورت، ۵۵، ۵۳، ۵۱ ،ایتونه**
ایا وروسته له هغې
چې«وعدې»تحقق پیداکړ .په هغه ایمان راوړي ؟
(ایا وروسته دخدای دوعدې داجراء څخه به خلک
مؤمینان شي ؟)...هغوې پوښتنه کوي:
ایا هغه (موعود)حق دی ؟ ووایه!بلې!په پروردګار قسم
دی. چې هغه حق دي .اوتاسې نشې کولی دهغه مخه
ونیسئ ...ایا دپروردګار وعده حقیقت نه ده ؟البته چې
حقیقت ده امّا ډیر خلک (دخدای دوعدې دتحقق څخه
)بې خبره دي.

مخکېني ایتونه داحقایق مونږ ته رازده کوي:

- وعده (واقعه)په کار کې ده .چې سرته رسیدل ئې دخدای په لاس کې دي. (اَثُمَّ اِذَامَاوَقَعَ).ایا وروسته له هغې چې «واقعه»سرته ورسیده ...؟)
- دخلکو وظیفه دوعدې منل اوپه هغه«واقعه»ایمان راوړل دي .(**اَمَنْتُمْ بِهِ** )په هغه واقعه ایمان راوړئ؟
- خلک دپروردګار دموعود په باره کې چې دخدای دلوري رالیږونکی اودوعدې اجراکوونکی دی ،شک لري.(**وَیَسْتَنْبِؤونَکَ اَحَقٌ**)هغوې پوښتنه کوي:ایا هغه دی ؟
- دخلکو دډاډ لپاره دپروردګار دحکم په اساس داسلام پیغمبر دتاکید لپاره قسم خوري چې هغه حق دی. یعنی دخدای دلوري دی .(**قُلْ ای وَرَبِیّ**

**اِنَّهُ لَحَقٌ.)**وو ايه!بلې په پرووردګار قسم دى !البته چې هغه حق دى .)

- ځنې کوښښ کوي. چې دموعود مخه ونيسي اما عاجز به وي (**وَمَا اَنْتُمْ بِمُعْجِزِيْنَ)**.تاسې دهغه دمخنيوي نه عاجز ياستى).
- دکلام په پاى کې پرووردګار يوځل بيا دوعدې سرته رسيدل تائيدوي. (**اِلاَّ اِنَّ وَعْدَ اللهِ حَقٌّ**؟ايا دخداى وعده حق نه ده ؟)
- اوروسته دانا پرووردګار مونږ ته خبر راکوي. چې ډير خلک ددې وعدې په معنى نه پوهيږي. اودسرته رسيدلو څخه ئې ناخبره پاتې کيږي .(**وَلٰكِنْ اَكَثْرَهُمْ لاَيَعْلَمُونَ.)**اما ډيرخلک بې خبره پاتې کيږي.

که په قران کې هيڅ کوم بل ايت نه وي همدا څو کلمې کافي دي چې «دقران دلوى معما»اسرار ئې دخفا ء څخه ظهور ته راوښکل .دا ايتونه په روښنائې سره وښائي. چې انسانان خلک دهغې «واقعي » سره دمخامخ کيدلو په وخت کې خپله ازادي له لاسه نه ورکوي .هغوې کولاى شي هغه «واقعه »وګوري. اودهغې له حقيقت څخه انکار وکړي.

---

---

دخلکو ازادي په داسې حد کې ده. چې دهغوې یوه ډله
کوښښ کوي. چې دخدای دموعود مخه ونیسي.
دقران داسرارو څخه یو لوی راز دادی. چې
دضمیرونو استعمال «**هو**»«هغه» په هغو مواردو کې
وي. چې کله خبره د«وعدې »اویا د«واقعې»په سر
وي ، نه دیو خاص شخص ظهور په باره کې
.د«هغه»دکلمې استعمال په مخکښې ایت کې وښائي.
چې دوعدې سرته رسیدل د«هغه »«موعود»دراتګ
پورې مربوط ده. اوکه نه نو خبره ولې
د«هغه»دحقانیت څخه وشوه .(**اَحَقٌّ هُوَ....اِنَّهُ لَحَقٌّ**
.ایا«هغه »حق دی ؟
په یقین سره «هغه »حق دی.

ډېر خلک ،امنیت په اکثریت کې ګوري .اما مخکښني ایتونه ،ددې تصوراتو ضد په اثبات رسوي .ځکه فرمائي : ډیر خلک نه پوهیږي.( **اَكْثَرَوَهُمْ لاَيَعْلَمُونَ)**.څو ایتونه وروسته فرمائي:

**وَمَا ظَنُ الذِينَ يَفْتَرُونَ عَلَ اللهِ الْكَذِبَ يَوْمَ الْقِيَامَةِ ان اللهَ لَذُو فَضْلٍ عَلَ الناسِ وَلَكِن اكْثَرَهُمْ لاَ يَشْكُرُونَ .**

**دیونس سورت، ۶۰-ایت**

هغه خلک چې په ورځ دقیامت په خدای پورې تهمت تړي. څه ګومان کوي؟دپروردګار فضل په بنده ګانو زیات دی.اما دهغوې ډیری قدر پیژندونکي نه دي . څنګه کیدلای شي په خدای پورې تهمت وتړي ؟ددې کار یواځنې لار دهغه دپیغمبرد دروغو ګڼل دي .که دهغه پیغمبر دروغ وګڼو ،هغه وخت مو په خدای ددروغو تهمت تړلی دی .

وروسته بیا وائي :

**الا ان اوْلِيَاء اللهِ لاَ خَوْفٌ عَلَيْهِمْ وَلاَ هُمْ يَحْزَنُونَ الذِينَ آمَنُواْ وَكَانُواْ يَتقُونَ لَهُمُ الْبُشْرَى فِي الْحَياةِ الدنْيَا وَفِي الآخِرَةِ لاَ تَبْدِيلَ لِكَلِمَاتِ اللهِ ذَلِكَ هُوَ الْفَوْزُ الْعَظِيمُ.**

**دیونس سورت،۶۴- ۶۲ ،ایتونه**

په یقین سره پوه شئ. چې دپروردګار دوستانو سره به نه غمونه وی. اونه هم ویره وي. هغوې داسې کسان

دي. چې په نوي ائین ایمان راوړي. اوداپرهیزګاره خلک دي .دهغوې لپاره هم ددې دنیا په ژوند کې او هم دهغې دنیا په ژوند کې دخوښیو ډک خبر دی .



---

دپروردګاره خبره نه بدلیږی. هغه (دپروردګاردنوي ائین پیژندنه) لویه ژغورنه ده.
دیونس په سورة کې پاسني ایتونه ،دایمان اوانکار خبره رامنځ ته کوي.په چاایمان راوړل ؟په هغه چاچې په همدې ایت کې دهغه په باره کې خبره وشوه :

**احَق هُوَ قُلْ اي وَرَبِّي انهُ لَحَق .**

**دیونس سورت،۵۳-ایت**

ایا هغه حق دی. (دخدای له لورې دی؟)بلې!په پروردګار قسم دی !هغه حق دی. په مخکېنیو ایتونو کې ،دیونس په سورة کې ،«دالله داولیاء»ذکر یعنی دخدای ددوستانو ذکر راغلی دی .دااصطلاح کومو

کسانو ته اشاره ده ؟په ډېرو ايتونو کې حضرت بهاءالله خپل پيروان «الهي احباء»،«الهي اولياء»ياد(خدای دوستان)ګڼلي دي:

**الهی الهی لک الحمد بما فتحتَ علی وجوه أوليائک أبوابَ الحکمة و العرفان و هديتَهم الی صراطک و نورتَ قلوبَهم بنور معرفتک و عرّفتهم ما يقرّبهم الی ساحة قدسک. ١٤**

**حضرت بهاءالله**

اې پروردګاره !ای پرورګاره !ستا شکر دی. چې دحکمت اوعرفان دروازې دې ددوستانو په مخ خلاصې کړې دي ،خپله لاردې هغوی ته وښوده ،دهغوې زړونه د ې دخپل ځان دپيژندنې په رڼا روښانه کړل ،اوهغوې ته دې داوښوده چې ځرنګه ستا مقدسې درګاه ته ورنږدې شي!

**اې دحق دوستانو !...ټول يودبل سره متحد شی. په حسنه اخلاقو ځانونه سمبال کړئ. ...اميدواريم چې په پوره دوستي ،محبت ،الفت کې ديوبل سره رفتار وکړئ ،په داسې يو شان سره چې ستاسې له اتحادڅخه دتوحيد بيرغ پورته شي. او دشرک بيرغ له منځه لاړ شي. ١٠**

**حضرت بهاءالله**

**باید الهي احبا دمحبت په لحاظ خلکو ته نظر وکړي. اوپه مشفقانه نصیحتونو اوپاکو عملونو ټول دهدایت افق ته کش کړي.۱۶**

**حضرت بهاءالله**

د«دوستان»کلمه کله دحقیقت پلویانو اولټونکو ته په خطاب کې کارول کیږي:

۶۰۳ ۲۰فصل: دقران اینونه دقیامت اوساعت په باره کې

---

---

**اې دپروردګار دوستانو!دبې نیازه اویکتا خدای اواز دزړه په غوږونو واورئ.ترڅو تاسې دبند اوتیاروڅخه وژغورې.اوهمیشنې روښنائې ته مووړسوي.۱۷حضرت بهاءالله**

هغه ایتونه چې دموعود په وړاندې مخالفت ته اشاره کوي. ډیر دي. دهغې جملې نه دالاندې ایتونه:
**وَيْلٌ يَوْمَئِذٍ لِّلْمُكَذِّبِينَ الذِينَ يُكَذِّبُونَ بِيَوْمِ الدِّين وَمَا يُكَذِّبُ بِهِ ا لا كَل مُعْتَدٍ اثِيمٍ . اذَاتُتْلَ□ عَلَيْهِ آيَاتُنَا قَالَ اسَاطِيرُ الْاولِينَ . كَلا بَلْ رَانَ عَلَ□ قُلُوبِهِم ما كَانُوا يَكْسِبُونَ . كَلاانهُمْ عَن ربِّهِمْ يَوْمَ ئِذٍ لمَحْجُوبُونَ ثُم انهُمْ لَصَالُوا الْجَحِيمِ . ثُم يُقَالُ هَذَا الذِي كُنتُم بِهِ تُكَذِّبُونَ... ان الْابْرَارَ لَفِي نَعِيمٍ .**

**دمطففين سورت،۱۷- ۱۰و۲۲،ایتونه**

په هغه ورځ کې وای په دروغ ویونکو خلکو ،په هغو کسانو چې د«ظهور»ورځ دروغ ګڼي .یواځې ګناهکار خلک چې دخپلې پوهې دحدودو څخه دباندې قدم ږدي ،دغه دروغو سره یوځای کیږي .داافراد کله چې زما ایتونه اوري ،وائي :داپخوانی افسانې دي .البته چې داسې نه ده : ( دهغوې دانکار علت)دهغوې ناسم رفتار اودزړونو الوده ګي ده ،په یقین سره په هغه ورځ داخلک دخپل پروردګار ددیدار څخه بې برخې پاتي کیږي. اوددغه محرومیت په وجه دوزخیان شي .هغه وخت به هغوې ته وویل شي : دامجازات تاسې ته ددې له کبله درکړل شو. چې دخدای وعدې مودروغ ګڼلې اوانکارمووکړ...اما

دهغوې خلکو ځای چې نیکو کاره ؤ.(حقیقت څخه ئې انکارونه کړ.)اوچته جنت دی .
مخکېني ایتونه دبهائي ائین په ظهور سره تړول تحقق ته رسیدلي دي:
**وَيْلٌ يَوْمَ ئِذٍ لِّلْمُكَذِّبِينَ الذِينَ يُكَذِّبُونَ بِيَوْمِ الدِّين .**
**دمطففین سورت،۱۱- ۱۰،ایتونه** وای په هغه خلکو چې په هغه ورځ دروغ ووائي :هغوې داسې خلک دي!چې ددین دظهور ورځ دروغ ګڼي.
بهائیان وائي :دمخکېني ائین زرکلنه «ورځ»پای ته رسیدلې اودنوی «دین ورځ»شروع شوې ده .اما ډیر مسلمانان د«خاتم النبین»لقب په ځواب کې وائي:

د«دین ورځ»داسلام په ظهور سره پای ته ورسیده.
اونور به هیڅکله نوی دین رانشي.
دارنګه خلکو ته اشاره ده. چې پروردګار په بل سورة کې فرمائي:
**فَوَيْلٌ لِّلذِينَ كَفَرُوا مِن مشْهَدِ يَوْمٍ عَظِيمٍ .**
**دمريم سورت،۳۷-ايت** وای
پرهغو کسانو چې د«لوی ورځې»دظهور څخه انکارو کړي !
داايت هم شهادت ورکوي چې په دې مبارکه ورځ ،پروردګار مونږ دنوي دين په ظهور سره مفتخروي (له افتخاراتو مو برخه من کوي):
**يَوْمَذٍ يُوَفِّيهِمُ اللّهُ دِينَهُمُ الْحَق .**
**دنور سورت،۲۵-ايت**
په هغه ورځ پروردګار دهغوې ربښتينې دين هغوې ته ورکوي.
ولې هغه کسان چې د«دين دورځې»دراتګ نه منکر دي .دروغجن نومول شوي دي؟ ددې لپاره چې دقران ايتونه دابتدا څخه ترانتهاپورې دنوي ائين په راتګ سره دپروردګار دلورې شهادت ورکوي .څنګه ممکنه ده څوک چې قران ومني اودهغه کتاب شهادت چې دده دميل اوخيال مخالف دی ناديده وګڼي؟
دې خلکو ته په اشارې سره فرمائي:

**اذَا تُتْلَ□ عَلَيْهِ آيَاتُنَا قَالَ اسَاطِيرُ الْاولِينَ .**

**دمطففين سورت،۱۳-ايت**

داافراد هغه کسان دي. کله چې زما ايتونه اوري ،وائي : داپخوانې افسانې دي.

**په راتلونکي ظهورکې[دحضرت بهاءالله ظهور]صادقان يعنې په موعودايمان راوړنکي او غيرصادقان يوله بله جلا کيږي.۱۸**

**حضرت باب**

دجهان دقبرونو څخه دمړو راپورته کيدل ،وحشتنا که پيښه ده. چې دجهان څخه دانکار اوبې ايمانې طريقه ختمه کړي .دپروردګار دايتونو څخه انکار اودهغو ايتونو افسانه ګڼل يواځې له «معنوي مړو»لخوا ممکنه ده .

دالاندې ايتونه هم دخلکو انکار تائيدوي:

۲۰فصل:د«قیامت»او«ساعت»په باره کې دقران ایتونه

---

---

**يَوْمَ يَدْعُ الداعِ الَ شَيْءٍ نكُرٍ.**

**دقمر سورت، ۶-ایت**

داهغه ورځ ده. چې دعوت کوونکی (موعود)،خلک دیوځه شې لپاره دعوت کړي. چې هغوې انکار ورځخه وکړي.(اویائې بدوګڼي).

لاندې ایت وښائي چې دحساب په ورځ خلک دخدای دپیغمبر ویناواوري اومسخره کوي :

**اقْتَرَبَ لِلناسِ حِسَابُهُمْ وَ هُمْ فِي غَفْلَةٍ معْرِضُونَ مَا يَاتِيهِم مِّن ذِكْرٍ من ربِّهِم محْدَثٍ لا اسْتَمَعُوهُ وَهُمْ يَلْعَبُونَ .**

**دانبیاء سورت، ۲-۱،ایتونه**

دخلکو د(حساب بیرته ورکولو)وخت نږدې شوی دی. امّا هغوې په غفلت کې غرق دي. اوله هغه ځخه (مخ اړونکي دي).نوی «ذکر»(پیغمبر)دالله له لورې راځي ،مګر هغه چې خبرې ئې واوري اومسخره ئې کړي .

دبل ځل لپاره ښه به وي چې پوښتنه وکړو:که د«بیا ورکولو حساب»دقبرونو ځخه دمړو پورته کولو په

وخت کې وي ،خلکو په څنګه دخپل
«موعود»دسپکولو اومسخره کولو جرئت لرلی ؟
د«بیا ورکولو حساب»په وخت کې به خلک ویرې
اوترس نیولي وي ،ځکه دخپل همیشني برخلیک
څخه نګرانه دي .په هغه وخت کې تمسخر ،غفلت
اوانکار دڅه لپاره ؟
د«ذکر»کلمه هم دحضرت باب دظهور سره جوړښت
لري .ځکه چې دی پخپله دپروردګار له لورې څخه
نوی «ذکر»ؤ:

**یا اهل الارض !من اطاع ذکرالله و کتابه فقد اطاع الله ...**

**١٩ حضرت باب**

اې دځمکې اوسیدونکو !هرڅوک چې دخدای
د«ذکر»اودهغه له کتاب څخه پیروي وکړي.
دپروردګار څخه پیروي کړې ده ...
په همغه ډول چې مونږ ولیدل ،قران مجید په کراتو
سره زمونږ دعصر د«موعود»ظهور اصطلاح
(دخدای سره ملاقات)یادوي .وروستي ایت (٣)دری
مطلبه لري :

---

❖ د **نُکُر** بله معنی :هغه څه چې خلکو دهغه مثل
نه وي لیدلی. اوله هغه څه چې وحشت لري
.ډیر خلک دنوي ائین دمنلو څخه وحشت لري

دمقدس کتاب په اساس دزمري غړمبار ئي.
لیدلی دی .

قران اوبهاءالله



---

---

- دخدای دملاقات وعده .
- دخلکو لخوا دهغې وعدې څخه انکار.
- د«ساعت»راتګ چې دوعدې دظهور وخت دی
:

**قَدْ خَسِرَ الذِينَ كَذبُواْ بِلِقَاء اللهِ حَتى اذَا جَاءتْهُمُ الساعَةُ بَغْتَةً** . **دانعام سورت، ۳۱-ایت** زیان
کوونکي خلک هغه څوک دی. چې دخدای سره
دملاقات د وعدې څخه انکار کوي. ترهغه پورې چې
دساعت دظهور وعده ناڅاپه راورسیده .
ښکاره ده. چې د«خدای سره دملاقات»وعده
اود«ساعت»راتګ سره تړلې دي. اودهغوې دهر یو
څخه انکار دبل دانکار سبب دی .

زمونږ دعصر ددوه موعودو په سل هاو کرته شاهدې ورکړې ده. چې هغه ساعت رارسیدلي دی ،قیامت دی ،دپروردګار ملایکی دخلکو سره دهغوې دعملونو په سنجش اومیزان مشغولې دي.

**قد اتت السّاعة و نفخ فی الصور والمیزان ینادی انا الممي ز العلیم ابین واظهر امام وجه العالم اعمال الامم و انا الشّاهد الخبیر لم یبق من ذرّة الاّ وقد اظهرتها و اناالعادل المستقیم قد جعلتنی مستویاً ید العدل فی ایام الله ربّ العالمین . ۲۰ حضرت بهاءالله**

هغه «ساعت»راورسید. شپیلې ووهل شوه. اودمیزان (تله) چغې وهي : زه هغه پوه تله یم. چې دخلکو رفتار اوعملونه دعالمیانو په وړاندې ښکاره کوم .زه یم لیدونکې شاهده . یوه «ذره»به رانه پاتي نشي. چې خلکو ته ئې ونه ښایم .زه عادله اودسمې لارې ملتیا کوونکې یم .زه دعدالت په لاس دعالمیانو دپروردګار په ورځ ،دجهان په کرسې ناسته یم .

**والّذی ظهر انه لمظهر القیمة و مبعث السّ اعه...به انار افق العالم و ظهر الاسم الاعظم . ۲۱**
**حضرت بهاءالله**

هغه څوک چې ظاهر شوی دی. د«قیامت »ظاهروونکی دی. اود«ساعت»راوړونکی دی ...په

ظهور سره ئې دعالم افق روښانه شوې دی.
اودپروردګار «لوی نوم»ښکاره شوی دی.
**نن ورځ دجزاء ورځ ده. دعطا اوبخښش ورځ ده**
**۲۲. حضرت بهاءالله**


د«قیامت»اوساعت په باره کې

---

---

یوه مهمه اصطلاح چې په قران کې زمونږ دعصر ته په اشارې سره کارول شوې ده. «**یوَمْ الِدَّیْنِ**»یعنی د«دین ورځ» ده. د«دین»معنا په (تازي)او(پارسي)کې یوه ده .اما د«دین ورځ»هغه اصطلاح ده. چې په قران کې په دوه شکله کارول شوې ده ، «محکم »او«متشابه»:
محکم:هغه ورځ چې پروردګار په هغه کې «نوې ائین»خلکو ته وربخښي.
متشابه:دجزاء ورځ یا دقضاوت ورځ چې همغه دقیامت ورځ ده .

دالاندې ایت د«دین»دواړو معنا ګانو ته اشاره کوي:
**انمَا تُوعَدُونَ لَصَادِقٌ وَا ن الدِّینَ لَوَاقِعٌ... انكُمْ لَفِي قَوْلٍ مخْتَلِفٍ... يَسْالُونَ ايانَ يَوْمُ الدِّين يَوْمَ هُمْ عَلَ□ النارِ يُفْتَنُونَ ذُوقُوا فِتْنَتَكُمْ هَذَا الذِي كُنتُم بِهِ تَسْتَعْجِلُونَ ان الْمُتقِينَ فِي جَنَاتٍ وَعُيُونٍ .**

**دذاریات سورت، ۲۵- ۵،ایتونه**

په یقین سره دهغه څه چې تاسې ته ئې وعده درکړل شوې ده سمه ده .د«دین »دراتلو وعده به تحقق ومومي ...تاسې په دې باره کې داختلاف نظر لرى ...پوښتنه کوې: چې د«دین ورځ»څه وخت رارسي ؟ داهغه ورځ ده. چې هغوې په اور باندې ازمایش کیږي .پس خپل عذاب به وګوري .داهمغه څه دي. چې تاسى ئې رارسیدو ته عجله لرله .دنیکو خلکو ځاى په جنت کې په بې شانه چینو کې دى .

مخکېني ایتونه :

- په ابتداء کې دنوي ائین دظهور خبر ورکوي .داروښانه معنا ده .
- وروسته داایتونه مونږ ته رازده کوي. چې مؤمینان په دې باره کې دنظر اختلاف لري.دې وړاندوینې هم تحقق پیداکړى دى .ډیر مسلمانان

دبهائيانو دعقيدې برخلاف ددين په نويوالي ايمان نه لري .

- پس له دې مقدمې ،د«دين ورځې»اصطلاح منځ ته راځي. ددې ورځې په صفت کې «دوه رمزه »راغلي دي :
- دسختې ورځ چې په هغه کې به خلک امتحان کېل شي .
- هغه ورځ چې خلک ئې راتلو ته عجله لري.



---

دادوه نښانې دبهائي ائين دظهور په نسبت په قران کې څو وارې تکرار شوي دي .اوپه مخکېني فصلونو کې دهغوې په باره کې مطالعه شوې ده .جسماني قيامت دامتحان سره جوړښت نه لري.امتحان هغه وخت امکان لري. چې

خلک وکولی شي. په ازادۍ سره خپل برخلیک وټاکي .دموعود دقیامت وخت هغه ورځ ده. چې خلک په (بو ته یعنی زرګري ظرف کې )ازمایش کیږي .ترڅو پاکي اولیاقت ناپاکي اوعدم لیاقت وښائې. دهغې ورځ سختي له دې کبله ده. چې خلک دمهم تصمیم سره مخامخ کیږي :دنوی ائین سره یوځای کیدل اسانه کارنه دی .

یوله احادیثو څخه د«دین دورځې»معنا په همغه ډول چې دی کتاب کې راغلې ده. تائیدوي .دامام محمد باقر نه ئې ددې ایت دمعناپوښتنه وکړه :

**وَکُنا نُکَذِّبُ بِیَوْمِ الدِّین حَتیٰ اتَانَا الْیَقِینُ .**

**دمدثر سورت،۴۷- ۴۶،ایتونه**

مونږ د«دین له ورځې»څخه انکار وکړ ترڅو یقین ته ورسیدو .

په ځواب کې وویل :«ایام القائم»یعنی داایت دقایم دورځو پورې مربوط دی.

ډیر مسلمانان دنوې ورځې دراتګ اودنوي پیغمبر دظهور څخه منکر دي .وروسته له پوهاوي دقران دبشارتونو څخه ددوه لوی پیغمبرانو په ظهور سره ،دانکار شک اوګمان څخه یقین اواطمنان ته رسي .

څو ایتونو وروسته ،دذاریات سورة په روښانتیا سره دموعود دظهور خبر ورکوي:

**فَوَرَبِّ السمَاء وَالْارْضِ انهُ لَحَق مِّثْلَ مَا انكُمْ تَنطِقُونَ .**
**دذاريات سورت،۲۳-ایت**

دځمکې اواسمانونو په پروردګار قسم دی. چې هغه حق دی .په همغه ډول چې خپله وینا اوري (دهغه وینا به هم واوري ).په همغه توګه چې دخپلې وینا په باره کې شک نه کوئ. دهغه په باره کې هم شک مه کوئ.
داایتونه هم له (دین ورځې )څخه خبر ورکوي:
**وَالذِينَ يُصَدِّقُونَ بِيَوْمِ الدِّين...ذَلِكَ الْيَوْمُ الذِي كَانُوا يُوعَدُونَ.**

**دمعارج سورت،۲۶و ۴۴،ایتونه**

هغه څوک چې «ددین په ورځې»عقیده لري ... هغه دموعود ورځ ده .

**وَقَالُوا يَا وَيْلَنَا هَذَا يَوْمُ الدِّينِ هَذَا يَوْمُ الْفَصْلِ الذِي كُنتُمْ بِهِ تُكَذِّبُونَ.**

**دصافات سورت، ۲۱- ۲۰ ،ایتونه**

هغوې وائي :وای پرمونږه !داد(دین ورځ)ده ! داد جداکیدلو ورځ ده .هغه ورځ چې تاسې ورڅخه انکار کول.

مخکېنی ایتونه مونږ ته څو نکتې رازده کوي:

- دخلکو یوه ډله د«دین په ورځ»اعتقاد لري **.«یُصَدِّقُوْنَ»**،بله ډله د«دین ورځ»دروغ ګڼي **،«تکُذِّبُونَ»**.څه ورځې لره مسلمانان دروغ ګڼي؟هغوې جسماني قیامت مني .دهغوې څخه ډیری هغه قیامت چې دحضرت باب په ظهورسره راغلی دي ترې انکار کوي.
- دموعود ظهور دخلکو دجداکیدلو وسیله کیږي .مؤمنین په یو طرف کې اومنکرین په بل طرف کې. **(یَوْمُ الفصل).**

**سلطان علّی اعلی (پروردګار)دخپل ځآن لپاره یوه تله ،میزان اویو محک جوړ کړ. ترڅومعلوم کړي. چې کوم خلک دحق په پیژندنه کامیاب شو. اوکوم پاتې**

**اومحروم شو. اوهغه ورځ چې داالهي محک ئې ظاهر شي ،هغه ورځ په «یوم الفصل»نوموي .ځکه چې صادق له دروغجن او«مُحِبّ له مُغِل»څخه فاصله اوتفصیل پیداکړي.۲۴**

**حضرت بهاءالله**

د«جدائي دورځې »اصطلاح د«دین دورځې»په شان دموعود په ورځ دخلکو دجداکیدلو په معنا، په نورو ایتونو کې هم راغلې ده ،دهغو دجملې نه دنبأ سورة په ایتونو کې :

**ان یَوْمَ الْفَصْلِ کَانَ مِیقَاتًا.**

**دنباء سورت،۱۷-ایت**

دجدائې ورځ په یو ټاکلی او«معین»وخت کې ده .

**یَوْمَ یُنفَخُ فِي الصورِ .**

**دنباء سورت ۱۸-ایت**

په هغه ورځ چې شپیلې ووهل شي.

**وَکَذبُوا بِآیَاتِنَا کِذابًا .**

**دنباء سورت،۲۸-ایت**

زما دایتونو څخه ئې انکار وکړ.

**یَوْمَ یَقُومُ الروحُ وَالْمَلَاکَةُ صَفا .**

**دنباء سورت،۳۸-ایت**

په هغه ورځ چې روح راپورته کیږي. دملایکو دصفونو سره به یوځای وي.
**ذَلِكَ الْيَوْمُ الْحَق فَمَن شَاء اتخَذَ الَ رَبِّهِ مَآبًا .**
**دنباء سورت، ۳۹-ایت** هغه ورځ دحق ورځ ده.( په ربنتینی به راشي) .پس هرڅوک چې غواړي. دخپل پروردګار لور ته دتګ لاره ولټوي.
مخکېني ایتونه څو نکتو ته اشاره کوي:

- دموعود په ورځ شپیلې وهل کیږي.د«شپلې وهل»هغه اصطلاح ده. چې څو ځلې په قران کې دموعود دظهور په باره کې راغلې ده. په دې اصطلاح دمتشابهاتو دایتونو په فصل کې بحث شوی دی .
- یوځل بیا داایتونه دانکار خبرې کوي .په همغه ترتیب چې په کراتوئې ذکر شوی دی ،ظاهري قیامت څخه مسلمانان انکار نه کوي .انکار

دقیامت پورې تړلې دی چې دقایم په ظهور سره راځي.

- د«روح»ظهور اوملایکې دحضرت مسیح یعنی روح الله رجعت ته اشاره ده. د«روح»دراتلو خبر دملایکو سره په عین توګه په انجیل کې مسیحیانو ته ورکړل شوی دی .
- په هغه ورځ خلک داختیار والا دي .چې پخپله اراده (فمن شاء)دپروردګار دموعود بلنه مني اوکه ئې ردوي.

دالاندې ایت هم د«جدائې ورځې»اود«جمع کیدلو ورځې»دواړو ته اشاره کوي:

**ان یَوْمَ الْفَصْلِ مِیقَاتُهُمْ اجْمَعِینَ .**

**دخان سورت، ۴۰-ایت**

دجدائې ورځ په یقین سره دهغوې لپاره ټاکلې ورځ ده .چې په «هغه ورځ»ټول راټولیږي (هرڅوک دخپلې ډلې سره یوځای کیږي).

په همغه ترتیب چې وموليدل د«دین ورځ»همغه دجدائې ورځ ده .داایت هم مونږ ته دامعنی رازده کوي:

**وَقَالُوا يَا وَيْلَنَا هَذَا يَوْمُ الدِّين هَذَا يَوْمُ الْفَصْلِ الذِي كُنتُمْ بِهِ تُكَذِّبُونَ.**

**دصفات سورت، ۲۱- ۲۰،ایتونه**

هغوې وائې:وای پرمونږه !داد«دین ورځ»ده .داد«جدائې ورځ»ده هغه ورځ چې دهغې نه موانکار کول.

دموعود ورځ هم د«جدائې ورځ»ده. اوهم د«اجتماع ورځ»ده .خلک په دوه ډلو، مؤمینانو او منکرینو ویشل شوي دي ،هریوه له هغو څخه دخپلې ډلې پورې تړل کیږي. یا هره یوه خپلې ډلی ته ځي .اودهغې غړیتوب ترلاسه کوي.

**هذا یوم الفصل الاکبر و هذا یوم الجمع .۲۵**
**حضرت بهاءالله**
داورځ د«لوی جدائې»ورځ ده .اودا د«جمع کیدلواویووالي »ورځ ده .
**یوم الطلاق...دبیلوالي ورځ ده. یوم التلاقي هغه ورځ ده.چې په هغه کې مختلف ګوندونه په یومقام کې جمع کیږي. اویوې ټاکلي سرچینې ته توجه کوي.۲۶**
**حضرت بهاءالله**
**یَوْمَ الْجَمْعِ لَا رَیْبَ فِیهِ فَرِیقٌ فِي الْجَنةِ وَفَرِیقٌ فِي السعِیرِ .**
**دشورا سورت،۷-ایت**
د«جمع کیدلو ورځ»په هغه کې شک نشته دی .یوه ډله په جنت کې ،اوبله ډله په جنت کې.په همغه ترتیب چې یادونه ئې وشوه ،دقیامت مربوط ډیرایتونه ،هم«محکم»او هم «متشابه»معنا ګانې لري .پورتنې ایت دهغو ایتونو دجملې څخه دی .هم په دې عالم کې اوهم په هغه عالم کې،خلک دخپلو ډلو سره یوځای کیږي.دالهي نقشې په اساس ،منکرین په دواړو عالمونو کې په دوزخ کې دي. اومؤمنین په دواړو عالمونو کې په جنت کې دي.

## یوم الحسرت
## دافسوس ورځ

دموعود دظهور دورځې يوبل لقب دافسوس ورځ ده :
**وَانذِرْهُمْ يَوْمَ الْحَسْرَةِ اذْ قُضِيَ الامْرُ وَهُمْ فِي غَفْلَةٍ وَهُمْ لَا يُؤْمِنُونَ . دمريم سورت،۳۹-ايت** د«افسوس دورځې»درسيدلو اخطار هغوې ته ورکړه .داهغه وخت دی. چې«امر»اجراکيږي (دخدای امر راځي)امّا خلک غافل دي اوايمان نه راوړي.



---

---

مخکېنې ايت مونږ ته څو نښانې راکوي:

- «امر»اجراء ته رسي .په همغه ترتيب چې وموليدل د«امر»کلمه دموعود ظهور ته په اشارې سره دقران ترټولو مهمه کلمه ده .

- خلک د«افسوس دورځې»درارسیدلو څخه غافل دي .غفلت په هغه صورت کې ممکن دی چې معنوی قیامت راشي. نه جسماني.
- خلک دایمان څخه سرغړونه کوي.داتکي مونږ ته په پوره روښنائې سره رازده کوي. چې دنظر وړمسئله دایمان اوانکار ده .وروسته «دامر داجراء»څخه څنګه ممکنه ده. خلک ایمان رانه وړي؟په جسمانی قیامت کې دایمان مسئله مطرح نه ده. په هغه زمان کې خلک باید دخپل ایمان اویا دبې ایمانې نتیجه ترلاسه کړي.

# عذاب ورځ

دموعود ورځې ته په اشارې سره ،هم دمسیحیانو په مقدس کتاب کې اوهم په قران کې د«عذاب»کلمه راغلې ده .دالاندې ایت دخلکو عجلې ته د«عذاب دورځې»راتللو اودهغوې بې خبرې ته دهغې ورځې دراتلوڅخه اشاره کوي :

**وَيَسْتَعْجِلُونَكَ بِالْعَذَابِ وَلَوْلَا اجَل ٌمسَم لَجَاءهُمُ الْعَذَابُ وَلَيَاتِيَنـهُم بَغْتَةً وَهُمْ لَايَشْعُرُونَ .**

**دعنکبوت سورت،۵۳-ایت**

دعذاب رارسیدلو  ته عجله لري .که ئې تاکلې وخت نه لرلی .همدا اوس به هغوې دې عذاب نیولې وی .پرهغوې به ناڅاپه عذاب راشي ،اما هغوې به  دهغه د«راتګ اووقوع»څخه بې خبره وي .
دموعود ورځ هم د«عذاب اوجزاء»ورځ ده ،اوهم د«بخشش اودعطا»ورځ ده .هم دمجازاتو ورځ ده اوهم دمکافاتو ورځ ده .

**نن ورځ دجزا اودعطا ورځ ده ـ۲۷**

**حضرت بهاءالله**

**نن ورځ دمجازاتو اومکافاتو ورځ ده ـ۲۸**

**حضرت بهاءالله**

**په دیارلسوه سنه کې یاحق وویل، اووروسته ئې ددښمنیو په توروواوچړو شهید کړ.داوه دجزاء دورځې جزاء.۲۹**
**حضرت بهاءﷲ**

## دظاهري قیامت نتیجې

ظاهري قیامت یعنی دمړو پورته کول دقبرونو څخه دالهي سنتو اوروش سره جوړ نه راځي.په اسماني اثارو کې ډیر شواهد دي. که پروردګار اراده وکړي. په یوه لحظه کې به ټول کافر مؤمینان کړي :
**الَمْ تَرَ ان اللهَ خَلَقَ السمَاوَاتِ وَالارْضَ بِالْحقِّ ان یَشَایُذْهِبْکُمْ وَیَاتِ بِخَلْقٍ جَدِیدٍوَمَا ذَلِكَ علَ اللهِ بِعَزِیزٍ .**
**دابراهیم سورت، ۲۰- ۱۹ ،ایتونه**
په دې نه پوهیږي. چې پروردګار اسمانونه اوځمکه کامل اوسم پیداکړي دي .که وغواړي تاسې ټول به له منځه یوسي. اونوي خلک به پیداکړي .داکار پروردګار ته مشکل نه دی.
دپورتني ایت په اساس ،دخدای په خلقت اوپیدایښت کې نقص نشته دی. که دپروردګار دبې منتها علم اوحکمت مطابق وی،داجهان به ئې نابود کړی وی.اونوې جهان به ئې جوړ کړی وی .اما دارنګه کاردهغه دخلقت

دنقشې سره جوړ نه دی .ځکه دادنقشې دنقص نښانه ده
.لاندې ایت هم الهي سنت اوطریقه راوښائي:
**لوْ یَشَاء اللهُ لَهَدَی الناسَ جَمِیعًا .**
**درعد سورت، ۳۱-ایت**
که خدای غوښتي وی .ټولو خلکو ته به ئې هدایت
کړی وی .
پاسنې ایت په پوره لطافت سره دپروردګار نقشه
راښکاره کوي .د«که »ځواب پخپله په ایت کې ور
کړل شوی دی .ښکاره ده چې دارنګه کار(چې ټولو
خلکو ته هدایت په اجباري)ډول دپروردګار دارادې
سره جوړ نه دی .
ولې رسول اکرم ،دپروردګار داسماني قدرت اوحمایت
باوجود ،هغه ټولې بلاګانې اورنځونه وزغمل ؟ ایا
هغه دپروردګار ټاکلي اوبرګزیده نشو کولی چې په
یوې کلمې سره ئې پاکو خلکو ته ایمان اودښمنانو ته
ئې نابودي اوهلاکت غوښتی وی ؟

په بهائې اسماني اثارو کې هم دانقشه اوالهي حکمت په کراتو تائيد شوی دی:
**داسې ئې مه بوله چې حق عاجز دی .په اسم اعظم قسم دی. که وغواړي دټولو خلکو اوامتونو روح به په يوې کلمې سره واخلي.۳۰**
**حضرت بهاءالله**
دپروردګار طريقه هميشه داسې وه او وي به چې بنده ګانو ته ازادي اواختيار  ورکړي.ترڅو خپل نيت اوخوې وښائې .ترس اوايره به هغه له دې کار څخه منع کړي. اودازادې اواختيارهديه به دهغوې نه واخلي .زمونږ ايمان په هغه صورت کې زمونږ دخالق لايق دی. چې زمونږ دروح څخه دمينې اوعشق په قوت سره پورته شوی وي.اودپروردګار روح سره يوځای شي .جبر اواکراه دپروردګار درګاه ته لارنه لري.
حضرت بهاءالله په يوليک کې فرمائي، چې هغوې په هغه څه چې دخلکو په زړونو کې پټ دي

پو هیږي،اوقادر دی. چې عالم په یوه کلمه مسخراوتابع کړي .اما که داسې کارونه ظاهر ه شي. ټول خلک به، که غواړي اویائې نه غواړي. دپروردگار دائین په وړاندې به سرونه ټیټ کړي. اودایمان ارمغان اوهدیه به ونه مني .اما دارنگه اقرار ته اعتبار نشته دی.

**حضرت باب هم داحقیقت تائیدوي:**

**انّا نحن لو نشاء لهدینا الارض و من علیها علی حرفٍ من الامر اقرب من لمح العین جمیعاً .۳۲**

که وغواړو دپروردگار دامر په یوحرف سره دسترگو د«رپ »څخه په کم وخت کې به دټول جهان خلکو ته هدایت وکړو.

دپروردگار تغیر نه منونکي سنت اوطریقه همیشه دارنگه وه، اووي به. چې ټول کارونه ئې د«اسبابو »په کومک سره دظهور میدان ته راوځي:

**ټول کارونه په اسبابو سره ظاهر اوښکاره دي.۳۳**

**حضرت بهاءالله**

«اسباب »دسمې لارې پیداکول ،کوښښ اوپلټنه ده .په دواړو جهانونو کې دسعات او ایمان دلاسته راوړلو وسیله ،دمهربانه ،توانا پروردگار په درگاه کې دعا اوزاري ده .

---

---

پیغمبران هیڅکله بې له «اسبابو»مونږ ایمان راوړلو ته نه واداره کوي .دهغوې وظیفه ویل ، اودسمې لارې ښودل دي. زمونږ وظیفه غوښتل دي. اوپه پاک زړه لټول اوپیداکول دي:

**لاَ اكْرَاهَ فِي الدِين قَد تبَينَ الرشْدُ مِنَ الْغَيِّ فَمَنْ يَكْفُرْ بِالطاغُوتِ وَيُؤْمِن بِاللهِ فَقَدِين اسْتَمْسَكَ بِالْعُرْوَةِ الْوُثْقَ لاَ انفِصَامَ لَهَا . دبقره سورت،۲۵۶-ایت**

په دين كې اجبار نشته .دحقيقت اوګمراهی فرق روښانه دی .هرڅوک دی دشیطان څخه منکرشي. اوپه خدای دې ایمان راوړي ،په قوي پړو پورې دې ځان ونښلوي. هغه پړې چې شکیدل نه لري.یعنی دغوڅولو قابل نه وي.

**وَمَا عَلَيْنَا الاالْبَلاَغُ الْمُبِينُ .**

**یاسین سورت ،۱۷-ایت**

بله وظیفه نه لرو په غیر له دې نه چې دپروردګار پیام په روښانتیا سره اعلان کړو .
**فَانمَا عَلَيْكَ الْبَلاَغُ وَعَلَيْنَا الْحِسَابُ .**
**درعد سورت، ۴۰-ایت**
ستا وظیفه دپروردګار دپیام ابلاغ دی ،زما کار دخلکو حساب ته رسیدل دي.
عدل راوستونکی ،پروردګار دخپل جمال ښکلا همیشه دنامحرمانو اوقدرنه پیژندونکو څخه پټه کړې ده، اوپټوې. یواځی پلټونکو ته دخپلې درګاه لاره وښائي. چې خپل روان دالودګې څخه پاک کړي. او به عذر اودعا دبنده ګې اظهار وکړي. په ډیرې عاجزې سره داسمان دبخشش اوعنایت څخه دایمان ارمغان ارزو وکړي. یواځې ددیدار غوښتونکي اوبې قراره عاشقان ،بې مثاله وصال ته اجازه پیداکوي .حجاب پرستان اونقاب پوشان چې دحقیقت درنړا څخه بیزاره دي. اودایمان دارمغان څخه لرې دي. هیڅکله به دهغه ځلیدونکی لمر څخه برخه من نشي.

# پروردګار دهغه

# دکلام

# څخه پیژندلی شی

**اې زما حبيبه ! بايد کوښښ وکړو ...ترڅو په ټول استقامت سره مړاوي روحونه د محبوب په نوې لاره کې قربان کړو. اوپه سلهاو زره نيازاو عاجزي سره ځانونه وښايو ترڅوهغه پيروزي ترلاسه کړو.۳۴**
**حضرت بهاءالله**



---

**ذَلِكَ الْكِتَابُ... هُدًى لِّلْمُتقِينَ .**
**دبقره سورت، ۲-ايت**
داکتاب د پرهيزګارانولپاره لاربنود اورهنمادی .
**پروردګاربه د«قضاوت په ورځ»خاضعانواوعاجزانوته هدايت وکړي. اوخپله لاره به متواضع اوعاجزانوته وښايي.**
**داود مزامير، ۲۵فص، ۹-ايت**

پروردگارد«قضاوت»لپاره قیام وکړ. ترڅو
ټولومتواضع اوعاجزو ته خلاصون ورکړي.
**اې تږو مخکې راشئ. او د ژوندانه اوبه ومنئ.**
**دادغوښتونکولپاره یوه هدیه ده .**

**یوحنا مکاشفات ،۲۲فصل،۱۷-ایت**
**دپروردگار دهدایت لاره ،محبت اودوستی ده ،نه جبر**
**اوزور .دپروردگار په مخکښني روزگارکې داطریقه**
**وه، اوپه اینده کې به همدا طریقه وي.۳۵**
**حضرت باب**
**قُلْ اهْتَدَى فَانمَا يَهْتَدِي لِنَفْسِهِ وَمَن يَا ايهَا الناسُ قَدْ**
**جَاءكُمُ الْحَق مِن ربِّكُمْ فَمَن ضَل فَانمَا يَضِل عَلَيْهَا .**
**دیونس سورت،۱۰۸-ایت**
ووایه !اې خلکو :داحقیقت ستاسي درب لخوا دی
.هرچاچې لاره پیداکړه. دهغه په گټه ده. اوهرچاچې
لارورکه کړه. (گمراه شو. )دهغه په تاوان ده .
**تالله ان احسنتم احسنتم لانفسکم و ان تکفروا بالله و**
**بآیاته لکنّا بالله عن الخلق والملك علی الحقّ غنیا .۳۶**
**حضرت باب**
په خدای قسم دی !که نیکي وکړئ. دخپل ځان سره
مونیکي کړې ده .اوکه دپروردگار ایتونو نه منکر

شی،مونږ دپروردګار په لرلو سره ددې جهان څخه اودهغه دخلکو څخه بې نیازه یو.
**قُلِ الْحَق مِن ربِّکُمْ فَمَن شَاء فَلْیُؤْمِن وَمَن شَاء فَلْیَکْفُرْ .**
**دکهف سورت، ۲۹-ایت** وو ایه!داحقیقت
ستا درب دلورې دی .هرڅوک چې غواړی ایمان راوړي. اوڅوک چې نه غواړی منکر دې شي.
**تالله ان ه ما اراد لکم الاّ ما یقر بکم الیه و یدخلکم ف□ ملکوت البقا و ان ه لهو الغفور الر حیم .**
**۳۷**
**حضرت بهاءالله**
په خدای قسم دی !یواځې دهغه غوښتنه ستاسې نږدیکت خدای ته، اوستاسې داخلیدل الهي سلطنت ته دي. پروردګار بخښوونکی اومهربانه دی .

---

❖ دانګلیسي له ژباړې څخه .

# نهمه برخه
# د رمز ژبه

## په دوه فصله کې:
## ۱.پېته نقشه

## ۲ ـ«محکم»او«متشابه»ایتونه

**که یوڅوک په ذکرشوو ظاهري شرایطو، دظاهر په حساب ،نیوکه وکړي. هیڅکله به دایمان په نور فائزاوبریالی نشي.۱**

**حضرت بهاءالله**

**ان الساعَةَ ءاَتِيَةٌ اكَادُ اخْفِيهَا لِتُجْزَى كُل نَفْسٍ بِمَا تَسْعَ .**

**دطه سورت،۱۵-ایت** دهغه

«ساعت»نیټه اوزمان به په یقین سره راورسي .زه به هغه پټ کړم. ترڅو هرچاته دهغه دکوښښ په اندازه پاداش ورکړم.

**انهُ لَقُرْآنٌ كَرِيمٌ فِي كِتَابٍ مكْنُونٍ لا يَمَسهُ الا الْمُ طَهرُونَ تَنزِيلٌ مِّن ربِّ الْعَالَمِينَ .**

**دواقعه سورت، ۸۰- ۷۷،ایتونه** قران کریم یوه پټه لیکنه ده. دجهانیانو دپروردګار له لورې، چې په غیر دپاک زړو خلکو نه بل څوک هغه لمس نه کړي. اونه به هغه ته لاس رسی پیداکړي.



# پټه نقشه

دافصل دپروردګار داړيکو يواصل دانسان سره روښانه کوي. اودې پوښتنې ته ځواب وائي :ولی دپيغمبرانو دظهور نښانې درمز اواشارې په زړه کې پټ دي؟

**مخکښني کتابونو ته نظر وکړئ. چې دهر راتلونکی نبی خبر دمخکښني نبی په بيان پورې مربوط ؤ .اوټول به ئې په اشارې سره په پټه پوهول.۲**
**حضرت بهاءالله**

دقران بررسي راوښائي. چې پروردګار زمونږ دعصردموعوددظهور نښانې په مختلفو جامو اوپردو کې په ډيرې ښکلا اومهارت سره پټې کړې دي.يوله هغو جامو څخه «ساعت»او«قيامت»دی .دپټوالي اواختفاء حالت اودرجه په داډول ده. چې که الهي ايتونه په سل هاوکرته ووايو،

❖ تلويح :په اشارې سره په معنا پوهول.



دمعنا داره دردانو اوهغه اسرار چې دکلماتو په صدف
کې پټ دي.ښانه به ئې ونه ګورو .اما
د«رمزدکلي»په استمعال اولرلو سره چې موعود مونږ
ته بخشش کړې ده. په ناڅاپه توګه زمونږ دسترګو

څخه داسرار پرده لرې کيږي ،اوپه روښانتيا سره ګورو. چې دوه «قيامته»اودوه قضاوته کارکوي:
اول دموعود د«قيام»په خاطر زمونږ ودرول دهغه د قضاوت دترازو په وړاندې په دې عالم کې. دوم زمونږ قيام دهغه د«قضاوت»دترازوپه وړاندې په هغه عالم کې.
د«رمزدکلي»په لرلو سره «دوه قيامته»اودوه «قضاوته»دارنګه زمونږ په نظر ښکاره کيږي چې په ډير حيرت سره پوښتنه کوو:چې دقران نښانې ئې څومره روښانه اوواضع دي ،ولې داټول علما اوعرفا،په دې تيرو ټولو قرنونو کې دهغو دليدلو څخه عاجز ؤ؟
دانسان سترګې په نظر کې راوړئ. دخلقت دنقشې په اساس داغړی ،هرشکل سم ګوري.په همدې حالت کې کله ددې کار دسرته رسولو څخه عاجزې دي. لاندې طرح ددوه تصويرولرونکې ده .اما طراح هغه دواړه په ډيرمهارت سره داسې يوځای کړي دي. چې په ابتداکې سترګې يواځې دهغوې څخه يو تصوير ګوري .تاسې خپلې سترګې وازمائې:

## ددې دوه تصويرونو څخه په هريوه کې

ددې جهان دقيامت پټ رمز ،دهميشنې جهان دقيامت سره دهغوې په حيرانوونكي شباهت كې دى
.دروزګار طراح ددې دوه واقعواوپيښنو نقش په دارنګه يومهارت سره يوشان جوړ كړى دى. چې بې له توجه، هغوې ديوبل څخه جدا نشو ليدلاى .اما په يوكم تامل اوتعمق سره پوهيږو. چې دوه قيامته اويادوه واقعې اوپيښې په كاركې دي : يوه په دې عالم كې اوبله په هغه عالم كې .هغه څه چې په هغه قيامت كې پيښيږي په دې كې هم پيښيږي .ته به وائې دادوه واقعې ديوبل تمام نماآينې دي .دهغوې دشباهت نقش په داسى يوحد كې دى. چې كله نشى كولاى هغوې يوله بله سره جداكړئ .
ځنې له دى ايتونو څخه ،ددواړو قيامتونو سره مرتبط اواړيكي لري. اوددواړو صفت كوي. دهميشنې عالم اړونده اصطلاحات كارول، زمونږ دعصر دلوي خبر دپټ ساتلو لپاره دقران اونورو اسماني كتابونو يوترټولو ښكلى هنر دى. يورمز په دى يكتا هنر اوسحراسا طرح كې دادى. چې نښانې هم پټې دي، اوهم ښكاره. ته به وائې چې لمر په هغه واحد كې هم ځليدونكى دى. اوهم تياره دى . ددارنګه نقشې تنظيمول ،يواځې دروزګار دطراح په لاس جوړيدلى

شي . په پوره کمال اوښکلا سره دایوسحراوجادودی. اودپروردګار دقدرت اوحکمت ښکاره نښانې دي . داښکاره ځلیدونکی اوپټ لمر داسې پیداشوی دی. چې حتی دهغه څخه دپردې په لرې کولو سره دوخت دموعود په وسیله ،اودهغه دځلا اوعظمت په ښودلو ،بیاهم ډیر خلک دهغه په سحرآسا اودښکلې رڼا په لیدلو قادر نه دي!ایا ددې څخه بله لویه معجزه تصور کیدلی شي؟

قران اوبهاءالله

۶۲۲

---

---

## دهرښکاره څخه ښکاره تر

## اودهرپټ څخه پټ تر

فرض کړئ. تاسې غواړی. خپل دوست ته په یولرې دیار کې خبروروليږئ ،په داسې یوترتیب سره چې نور څوک خبر نشي .ځکه چې دخبر افشاء اوخپریدل دخطر سبب دی.خپل هدف ته درسیدو لپاره کومه لار انتخابوی ؟ دخپل ځان سره وائې په لیک اوخبر کې

داسې جملې ،اوکلمات کاروم چې دوست مې دهغه په معنا پوه شي ،امانور خلک پرې پوه نشي. اوله هغه څخه یوبل تصور وکړي . په دقت اوتوجه سره ددې کار سرته رسول دومره مشکل نه دی .اوس فرض کړئ. یوخبر غواړی، په یوکتاب کې په کراتو سره تکرار کړی. اوپه پوهیږی. چې ستاسې لیکنه اونوشته په میلون هاو انسانان دزروکلونو څخه په زیاته موده کې په پوره دقت سره په کراتو ووائي .وګورئ دداسې یوخبر پټول ددې ټولو کنجکاوه انسانانو اومتفکره خلکولپاره په داسې یوه اوږده موده کې څومره مشکل دی .

ایا دپروردګار نقشه بالاخره پای ته ورسیده ؟ ایا زمونږ دموعود دراتلو خبر چې په کراتو په قران کې تکرار شوی دی ،دټولو کنجکاوه اومتفکره خلکو څخه دظهور تروخته پټ پاتې شوی دی ؟ داسلام دلوی علماو اوعرفاو افکارو بررسې وښائي. چې هغوې په هغه ډول چې لازم ،باید اوشاید وي. له دې پټ خبر څخه پوهاوی نه دی ترلاسه کړی ، ترڅو چې زمونږ دعصر دموعود قیام راورسید،اودهغه په قوې لاسونو ،ناڅاپه داسرارو پرده دهغوې له مخ څخه لرې شوه.ددې لوې معجزې دعجایبو څخه یو داچې، ځنې خلک تراوسه هم دلیدلونه ئې عاجز دي.

ن به من است     وین عجب ترکه من ازوی دورم
سعدی

❖ حضرت بهاءالله ،دخداې له لورې دارنګه توصیف شوی دی .



داځنګه لمر دی. چې هم تابان او«ځلیدونکی»دی. اوهم پنهان او«پټ»دی ؟ داڅه معجزه ده. چې ځنې دخلکو ئې په لیدلو سره افتخار کوي.اوپه حقیقت ئې ځان قربانوي ،اوځنې نور ،دمعجزې دشوکت اوعظمت څخه داسې په ایره اوترس کې وي. چې خپل امنیت په خطر کې ګوري. اودهغې لیدونکي وژني!

**سبحان الله یو غږ هم مستي راوړه.اوهم عقل بخشش کړ.هم ئې فراموشي او هېرجنتوب راوړ،اوهم ئې دټولو شیانو علم بخشش کړ. ۳**

**حضرت بهاءالله**

ولی پروردگار دزمان اووخت دموعود په باره کې درمز ژبه کاروي ؟په دې کار کې ډیر اسرار اوحکمتونه پراته دي .یوه لویه هدیه دپروردګار له لورې مونږ ته ،دازادې اواختیار ارمغان او هدیه ده .زمونږ ژوند ددې بې شانه ګوهر څخه پیداشوی دی .زمونږ انسان کیدل دهغه مربوط دي ،زمونږ روح دهغه څخه منشاء اخیستې اوزمونږ وجود دهغه څه جوړ دی .

**وانه تعالی لویمسک عباده من فعل ویجبرهم علی فعل آخر لیکون ظلما من عنده ...۴**

**حضرت بهاءالله**

که پروردګار خپل بنده ګان دیوکار څخه منع کړي. اودبل کار په کولو ئې مجبور کړي،دادهغه له لورې یوظلم دی ...

پروردګار هیڅکله نقاب پوشان اوشب پرستان په جبر سره دلمر خواته نه دي نږدې کړي ،په دې طریقه اوسنتو کې هیڅکله تغیر نه ؤاونه به راشي.

**لعمری لو اخرق الحجاب فی هذا المقام لتطيرنّ الارواح الی ساحة ربّك ... ٥حضرت بهاءالله**
په خدای قسم دی !كه داسرارو پرده وشكوم. ټول روحونه به دپروردگار درگاه ته الوتنه وكړي....
**لو يعرف نفسه عباده علی ما هو عليه لينقطعن به كلّ عن كلّشيئی و يسكنن فی جواره بحيث تجدالملوك يفتخرون بمملوكية انفسهم ... ٦**
**حضرت بهاءالله**

---

**كُلُّ شَئٍ** :ټول شيان.

قران اوبهاءالله



---

---

كه هغه خپل ځان په هغه ډول چې دی. خپلو بنده گانو ته وښائي. هغوی چې هرڅه لري هغه به پريږدی.
اودهغه لورته به په ډيره عجله ورشي. ترڅودهغه په

خوا کې ځای شي پاشادهان به  دهغه ددرگاه په بنده
گې سره افتخار وکړي...
دازادې دارمغان دساتلو ،دانا اوحکیم خدای دخپل
موعود نښانې په متشابه کلماتو کې پټوې .ترڅو یواځې
دژوند داوبو تږي دمعانې سرچینې ته لاره پیداکړي ،
اودپوهې درنړا عاشقان لمر ته ورسي ،نه نقاب پوشان
اوحجاب پرستان چې دنور په ځلاسره په غمونو اخته
شي. اودفرار اوتیښتي لاره ونیسي.
اسماني طراح د«متشابه»کلمو نازکې پردې دمعنا په
مخ اچوي. هغه نازکي پردې په سحر امیزه شکل سره
،دپروردگار دغوره شوي ظهور دنښانو په روښانتیا
اورڼا سره دخودپرستانو اودوه مخو څخه پټوي . دانا
اومهربان پروردگار هیڅکله په جبر اوزور سره په
خوارږه خوب ویده له خوبه نه پورته کوي.اوکوردلان
اونامحرمان دخپل یارد رخ په دیدار نه واداره کوي:
**وَلَوْ شَاء رَبكَ لآمَنَ مَن فِي الارْضِ كُلهُمْ جَمِيعًا افَانتَ تُكْرِهُ النَاسَ حَتى يَكُونُواْمُؤْمِنِينَ ؟**

**دیونس سورت، ۹۹-ایت**
که پروردگار اراده کړې وی ، دځمکې دمخ ټول
اوسیدونکي به مؤمینان شوي وی .

ایا جائزه ده. چې خلک په جبر سره ایمان راوړلو ته واداره شي؟

**ا ن هَذِهِ تَذْكِرَةٌ فَمَن شَاء اتخَذَ الَ□ رَبِّهِ سَبِيلًا .**

**دمزمل سورت، ۱۹-ایت** دایواځې

ستاسې لپاره یوه یاداوري ده .هرڅوک غواړي دخدای لار ونیسی .

**لاَ اكْرَاهَ فِي الدِّين .**

**دبقره سورت، ۲۵۶-ایت**

په دین کې جبر نشته .

دکردګار دکلام اسرار لکه دناوې دځیرې په شکل په نازکه اوظریفه پرده کې پټ اونه ښکاري .اودپروردګار نوی موعود دا د اسرارو پرده لرې کوي. اوهغه ددلربا ښکلی مخ د هغې دعاشقانو په وړاندې ددیدار لپاره ښکاره کوي:

**دمعنا ناوې هغه چې دبيان په نازکو پردو کې پټه وه.په الهي عنايت اوبخشش سره ښکاره شوه. اې دوستانوشاهدي ورکوم. چې نعمتونه پوره دي. دلايل بشپړ شوي، او علتونه ظاهر دي. دليل ثابت راغلی دی. نورستاسې دهمت پورې اړه لري.چې انقطاع اودپروردګارسره دمينې درجې ظاهرې کړئ.۷**

**حضرت بهاءالله**

که د«ساعت»ظهور دظاهري قدرت اوغلبې سره يوځای وی .اويا نښانی اوايتونه په «محکمه»ژبه په ډير وضاحت اوروښنائي سره بيان شي .ټول خلک به دويرې اوترس څخه داميد اوعزت لپاره خواه ناخواه دپروردګار دارادې په وړاندې دبنده ګې سرونه ټيټ کړي. اودايمان اوتصديق اظهار به وکړي . په هغه صورت کې به اراده ،ازادي ،کوښښ اوپلټنه ټول خپل ارزش د لاسه ورکړي .په نتيجه کې ،به هرهغه فرد چې قدر نه پيژندونکی ،دنيا پرست او خودخواه ،بې بصير ته ،بی له کوښښ اوزحمت څخه دايمان ځليدونکي تاج ته، چې دهغه لاس ته راوړل دانسان لپاره ترټولو اوچته افتخاردی ،لاس رسی پيداکولی .

په همغه ترتيب چې په اول جلد کې ولې دی جهان ته راغلي يو بحث وشو. دانسان ازمايش په دې جهان کې«دپيدايښت دپنځو حلقو څخه »يوه ده ،شايد دمؤمينانو دايمان دازمايش ترټولو مهمه لاره دهغو ايتونو لار وي. چې درمز په ژبه نازل شوي وي .دې ايتونو په ټولو عصرونو کې ،باطن بينه مؤمينان دظاهر بينو خلکو سره جدا کړي دي.حضرت بهاءالله دايقان په کتاب کې دپروردګار کلام په دوه برخو ويشي:

- لمړی برخه : بيان په ظاهري لويوالې ،بې پردې ،بې رمزه اوبې نقابه دی.اوفرمائي ترڅو چراغ وي، دهدايت کوونکي ،دلارې د ليدو رڼا وي،ترڅو ددې لارې سالکين سپيڅلو معارجو ته ورسوي. اوددې لارې غوښتونکي د محبت ميدان ته راکاږي.۸

---

- ❖ انقطاع : ددينا سره دمينې په ځای دخدای سره مينه

سراج :چراغ

**•دوهمه برخه: بیان پټ اوپرده کې دی.اوفرمائي ترڅو دوه مخې خلک هغه څه چې په زړه کې پټ کړي دي. ظاهر شي اوحقیقت ئې ښکاره شي.۹**
ولی دقران دوعدې په اساس ،یواځې «زحمت کش خلک»دپروردګار دهدایت څخه برخمن کیږي؟
**وَالذِینَ جَاهَدُوا فِینَا لَنَهْدِیَنـهُمْ سُبُلَنَا .**
**دعنکبوت سورت،۶۹-ایت**
هغه څوک چې زمونږدلارو په پیداکولو کې کوښښ کوي .البته چې زمونږ لاروته ئې هدایت کیږي.
ولی دتامل اوتفکر دستوراوامرونه ،هغه ټول په قران کې تکرار شوي دي؟
**وَقَالُوا لَوْ كنا نَسْمَعُ اوْ نَعْقِلُ مَا كُنا فِي اصْحَابِ السعِيرِ .**
**دملک سورت،۱۰-ایت** [ددوزخ اوسیدونکو]وویل : که مونږ غوږ نیولی وی. اویا په عقل اوخرد متکي وی. اوس به مونږ په دوزخ کې نه اوسیدلی .

دراتلونکي ايت په معنی کې تامل اوتفکر وکړئ .په دې ايت کې زمونږ خالق په پوره روښانتيا سره مونږ ته خبر راکوي چې دهغه «ساعت»ظهور په پټ ډول رارسي .ترڅو هر څوک د کوښښ، طينت اوخوی په اساس خپل پاداش واخلي:

**ا ن الساعَةَ ءاَتِيَةٌ اکَادُ اخْفِيهَا لِتُجْزَی کُل نَفْسٍ بِمَا تَسْعَ□ .**

**دطه سورت، ۱۵-ايت** البته هغه «ساعت»راځي .غواړم چې هغه پټ وساتم. ترڅو هرکس دخپل کوښښ په اساس بايد سزاوګوري .

دمخکېني ايت د معنا رمز پخپله په ايت کې پټ اوښکاره دی. په ميلونهاو مؤمينانو مخکېنی ايت ويلی دی. اما دخپل ځان څخه ئې پوښتنه کړې ده. چې :

- ولی پروردګار د«ساعت»راتلل پټوي ؟
- د«پټولو »او«کوښښ»ترمنځ څه اړيکه وجود لري؟

دې دوه پوښتنو ته ځواب پيداکول،دايت«رمز»لکه دورځې په شان ښکاره کوي.

---

مغلّبين:هغه کسان چې په زړونو کې دبغض کينې اوحسد پالنه کوي .دوه مخي خلک .

---

داسلام نه مخکې ادیانوپه اثارو کې د«خدای دورځې»
او دخدای دموعود راتګ په پټه توګه تائید شوی دی:
**په نظر کې ولرئ. زه دغله په شان راځم. نیکمرغه دي هغه څوک چې بیداره وي.**
**حضرت**
**مسیح(یوحنا مکاشفات ،۱۶فصل،۱۵-ایت**
دخدای ورځ د«غله په شان په شپه کې»رارسي. **نامه اول تسالونیکیان،۵فصل،۲-ایت**
ددانیال دکتاب ۱۲ فصل،دابتداء نه ترانتهاپورې زمونږ دعصر ددوه موعودو دظهور په اړه دی .په هغه فصل کې حتی دهغوې دهر یوه دظهور نیټه په رمز سره ئې وړاندوینه شوې ده .دایوه نمونه ددانیال دوړاندوینو څخه ده :
**په هغه زمان کې میکائیل، لوی شاهزاده چې ستا دپیروانو محافظ وي ،پورته شي. داهغه زمان دی. چې درنج اوبلاګانونه ډک دی. چې دهغې مثال به**

**دروزګار دابتداء نه ترهغه وخته پورې ليدل شوى نه وي .په هغه وخت کې دهرچا نوم چې په کتاب کې ليکل شوى وي...امّا ته اى دانيال ،کلام پټ کړه. اوکتاب تراخره وخته پورې مهر کړه ...[په هغه زمان کې]ډير خلک به سفر وکړي. اودعلم دايره به وسعت اوپراخوالى پيداکړي .**

**دانيال،۱۲فصل،۱-۴،ايتونه**

دموعود دظهور د«ساعت»پټ ساتل دمتشابه کلماتو شاته برسيره پردې چې خلک ازمايش شي اودبصيرت والا خلک دکوتاه نظره خلکو څخه جداشي،يوبل سبب هم لري. حضرت باب په نظر کې راوړئ. دى يوځوان ؤ. په ډيرې عاجزې اومظلوميت کې چې ددښمنانو دجسارت اوتوهين په وړاندى په پوره سکون اوډاډ سره ودريدل. اودخپل ځان به دفاع کې به ئې يوه خبرنه کوله.

---

**اوس توجه وکړئ. چې عيسى مسيح څه وائې: دغله په شان په داسې وخت کې چې منتظر نه ياستى راځم !نيکمرغه دي هغه څوک چې زما راتګ ته اماده دي او[خپل معنوى]کالي اولباس ساتي .خداى مه کړه په لاره لوڅ لغړ ولاړ وي. اورسوا شي.**

دمزامیر نوی

عهد،تفسیری ژباړه ،۳۴۹ مخ.

«میکائیل :یعنی هغه څوک چې د«خدای په مثل دی.»دا واژه اوکلمه حضرت بهاءالله ته اشاره ده. چې دخدای دشکوه عظمت ځلاده .د«شاهزاده»کلمې اطلاق اومنسوبول له دې نظره ده، چې دده نسبت سامانیانو سلسلې ته رسیدل . دیوحنا په مکاشفاتو کې حضرت بهاءالله د«شاهانو شاه»نومول شوی دی.



---

داځوان یواځی اوبې له ملاتړه یو طرف ته ،اوپه زرهاو مکاراوستم کاره خلک بل طرف ته .هغو خلکو دده په باره کې څه اوریدل اوپه څه پوهیدل ؟هغوې له نورو اوریدل اوکله به ئې پخپلو سترګو لیدل چې داارامه ځوان دسحره ډک رفتار او دوینا دنفوذ سره خپل دوستان ،خپل خپلوان اویا هم خپل پیروان ډلې ډلې داجدادو له دین څخه بهر کول .هغو خلکو خپل امنیت اوخپله هستي په سخت خطر کې لیدل .دهغو ستمګرانو په نظر ،دهغه ځوان نابودول دعقل ،دین

اوايمان  فيصله وه اوداكارد ثوابه ډک و .اوبې له کومې  ويرې اوترس څخه ئې کولاى شو. چې هغه تکه تکه کړي .له خپل ځان څخه پوښتنه وکړي. که داتول خيال پرسته اوستمکاره خلک دهغه ځوان په سرانجام چې ارام اوپه ظاهر کې بې پناه ؤ پوهيدلى وى، څه به ئې کول ؟ايا يوه روځ به ئې هغه ته فرصت ورکړى وى. چې دپروردګار پيغام خلکو ته ورسوي؟

ايا دمقام اومنصب والا حاضرؤ چې حتى يوه لحظه خپل امنيت اواسايش په خطر کې واچوي ؟هغه ظالمان چې قران دهغوې لپاره يودوکان ؤ. اوايمان دډوډئ ترلاسه کولو لپاره يوه وسيله ده ،که ددې په خطره چې دادوکان دلاسه ورکوي اوډوډې ئې دلاسه ځي پوه شوي وى. څه به ئې کړي وى ؟ په لمړنى  فرصت کې به ئې هغه ځوان اوپيروان دځمکې له مخى لرى کول.امّا دهغه موعود راتګ  دشپې دغله په څير هغه ته دافرصت اوموقع ورکړه. ترڅودا«لوى خبر»په هغه اندازه چې شايد اوبايد وي. خلکو ته ورسوي . که حضرت باب له همغه پيل څخه دخپلې څيرې نه نقاب لرې کړى وى. اوخپل ځان ئې موعود مهدي معرفي کړى وى ،وضع به په بل مخ اغوښتې وى.

اودپروردګار نقشه به عملي شوى نه وى .

دهغه ځوان ساتل په هغو ستمکاره ټولو دښمنانو په منځ کې اسانه کار نه ؤ.که هغوې دهغه ټاکلي موعود اودهغه ځوان د«دروني قدرت»څخه اګاه اوپوه شوي وی ،دهغه دژوندانه داستان به یوبل پای لرلی .اما وروسته دوعدې ترسره کیدلو اودنقشې له تمامیدلو دهغه پروردګار رالیږل شوي لپاره فداکیدل کومه پروااومانع نه لرله بلکه دهغه لویه ارزو وه :



---

**قد فديت بكلّ□ لك...و ما تمنيت الاّ القتل ف□ محبّتك . ١٠**
**حضرت باب**

ماستا په خاطر خپل ځان قرباني کړ ... اوپه غیر دشهادت نه له تا سره دمینې په لار کې بله ارزو نه لرم.

ددې پوښتنې په باره کې فکر وکړی: که
دموعوددظهور کال په پوره روښانتیا سره ،بې له
متشابهاتو دپردې څخه بیان  شوی وی. څه نتیجې به
ئې لرلی ؟دظهور دکال ښکاره کیدل، به
دروغجنواودنیا پرستانو لپاره یوه دعوتنامه اوبلنه وی.
چې خپل ځانونه به ئې په هغه کال کې  موعود ګڼلی.
په هغه صورت کې به دپروردګار دپیغمبر پیژندنه
دهغو دروغجنو مسخره کوونکو اودپروردګار
ددښمنانو په منځ کې به ډیر زیات مشکل شوي وی .
دپروردګاروړاندوینه ،دباایمانه خلکو دهدایت په ځای
ددوه مخو اومکارانو لپاره د سؤاستفادې وسیله شوې
وی . پروردګار دا«لوی رمز»دهغوې څخه
دمتشابهاتو په پرده کې پټ کړ،اودسؤاستفادې څخه ئې
وساتل. یواځې یو۲۵کلن ځوان دشیراز دسیمې څخه
دپروردګار دارادې په اساس په مقررې وعدې سره په
۱۲۶۰ هجري قمري کې قیام وکړ اوخپل ځان ئې
موعود قائم معرفي کړ. وروسته دهغه کال په تیریدو
سره نور نوخبره اهسته شوې وه. اوکه چا ددې رمز
څخه معلومات ترلاسه کول .نشوکولای د پروردګار
هدایت دخلکو دضلالت اوبې لارې کولو وسیله وګڼي.
دډیرو دلایلو باوجود دهغه ځوان په حقانیت سره
تراوسه هم ډیر خلک په شک اوشبهه کې دي .اوس

که دحضرت باب په ځای په هغه کال کې په سل هاو کسانو په ټول جهان کې ځانونه موعود نومولي وی.د باایمانه خلکو لپاره به تحقیق څومره سخت شوی وی .په هغه صورت کې به زمونږ درهنما لپاره
دپروردګار وړاندوینې څه فایده لرلی ؟
اسماني کتابونه مونږ همیشه لپاره فکر اوسوچ ته رابولي.زمونږ انسانیت زمونږ دعقل اوفکر په کارولو متکي دي .دظهور دنښانو پېژ ساتل مونږ دې ته رابولي چې فکر اوسوچ وکړو اودعقل اوخرد ارمغان چې زمونږ دانسانیت لویه نښه ده. وکاروو.داده چې فرمائې:
**زه هغه پېژ ساتم ترڅو هرنفس ته دهغوې دکوښښ په اندازه پاداش ورکړم.**

**دطه سورت ۱۵ ـ ایت.**

که هر بې فکره انسان دایمان قیمتي ګوهر بې له کوښښه اوزحمت څخه پیداکولی هغوجواهرو به څه قدر اوقیمت لرلې؟
دپروردګار اراده داسې ده. چې یواځې بافکره اوپاک زړي خلک دده درګاه ته لارپیداکړي. ددې مقصد دتحقق ښه وسیله دنښانوپېټول دمتشابهاتو په پرده کې دي .داښکلې پرده په ټولو عصرونو اوزمانو کې وفاداره مؤمینان له نورو څخه جداکړي دي .همدا وجه ده. چې هغه ئې د «جدای ورځ»په نوم نومولې ده . نه یواځې دقران خبرونه ددې ائین په باره کې بلکه دټولو اسماني کتابونو خبرونه زمونږ دعصرددوه موعودو ظهور ته په اشارې سره په دې اصل متکي دي .یواځې په دې لیداونظر اچولو سره چې باید داسماني کتابونو خبرونه ددې ائین اودبل هرائین په باره کې دعقل اوخرد له مخې وسنجوو اوقضاوت وکړو.
دقران اودنورو اسماني کتابونو ډیر اسرار دغیبو په میدان کې پټ دي .دالهي لمر طلوع اودپوهې دنور ځلا ،دا رمز لکه دښکاره ورځې په شان ښکاره کړل .په راتلونکی فصل کې ددې مطلب داهمیت په خاطر چې لري ئې «متشابه ایتونه»په یوبل شکل سره دبحث لاندې نیول شوي دي.

**وَمَا انزَلْنَا عَلَيْكَ الْكِتَابَ الالِتُبَيِّنَ لَهُمُ الذِي اخْتَلَفُواْ فِيهِ .**
**دنحل سورت،۶۴-ایت**
ماداکتاب په تانازل کړ. ترڅو هغه څه چې په هغه کې اختلاف لري ،دهغوې لپاره توضیح کړې.
**په هر چا لازم او واجب ده. چې الهي مشکل مسایل اوستونزي دروښانه زړونو صاحبانو اوپیغمبرانو په سپیڅلو زده کړو اواشارو سره څرګند کړي. ترڅو په الهي تائیداتو اوښیګڼو مسایل حل شي. نه د اکتسابي علومو په تائیداتو. "فَاسْئَلُواْ اهْلَ الذِّكْرِ ان كُنتُمْ لاَ تَعْلَمُونَ ۱۱."**
**حضرت بهاءالله**

---

**❖ که نه پوهیږی. دذکردپیروانو، دموعود دپیروانوڅخه پوښتنه وکړئ.**

**دنحل سورة،۴۳-۱،ایتونه**

## پروردګار دهغه دکلام ځخه

## پیژندلی شی

**قل قد جاء الحق من عندالله بالحق الخالص فمن شاءالله قد شاءک و من ادبر عن الحق والکتاب فان الله قد کان عن العالمین غنیاً .١٢**

**حضرت باب**

ووایه!دپروردګار دلورې حقیقت ښکاره شوی دی .هرڅوک چې دخدای غوښتونکی دی هغه ستاغوښتونکی دی .اوهرڅوک چې دحق اودخدای دکتاب ځخه مخ اړوي. په یقین سره پوه شي چې پروردګار بې نیازه دی.

**هذا دین الله من قبل و من بعد من اراد فلیقبل و من لم یرد فانّ الله لغنيّ عن العالمین .١٣**

**حضرت بهاءالله**

دادخدای ائین دی. څه له مخکی اویاله وروسته . هرڅوک چې غواړي وئې مني او یائی ردکړي .پروردګار دجهان دخلکو ځخه بې نیازه دی.

وګوري!ماستاسی په وړاندې دروازه خلاصه کړې ده.
چې هیڅوک ئې په بسته کولو اوتړلو قادر نه دی.
حضرت مسیح: یوحنا مکاشفات،۳فصل،۸-ایت

# ۲۲



## «متشابه»او«محکم»ایتونه

دقران دشهادت په اساس دپروردګار کلام په دوه ډوله دی:

«محکمات»او«متشابهات».

**مِنْهُ آيَاتٌ محْكَمَاتٌ... وَاخَرُ مُتَشَابِهَاتٌ .**

**دآل عمران سورت،۷-ایت**

ځنې ایتونه له «محکماتو»څخه دي...اوځنې له «متشابهاتو»څخه دي .

هرکله چې دکلام اووينا مقصد دهغه ظاهري معنا وي
،هغه وينالهٔ«محکماتو»څخه ده .
**«محکم»ايتونه هغه ايتونه دي. چې دالهي مقصد دايت دنفس څخه معلوم اوښکاره شي. اودهغه داثبات لپاره بل ذکر اوبرهان ته ضرورت اواختياج نه وي.۱**
**حضرت بهاءالله**

هغه ایتونه چې احکام اواخلاقي فضلیتونه توضیح کوي. دمحکماتو څخه ګڼل کیږي .ددې ایتونو درک اوفهم مشکل نه دی . هرکله چې دوینا څخه مقصد په غیر د ظاهري معنا وي .هغه وینا دمتشابهاتو څخه ده .داډول وینا ،ډیر اسرار لري. اودهمیش لپاره ظاهر بین خلک دپیغمبرانو دپیژندلو څخه منع کوي.

> ص آدمی است که نقوشش ظاهر وجانش خفی است
> مولوی

دقران اونورو اسماني کتابونو بشارتونه ،داحادیثو برخلاف یواځې ،راتلونکې ظهور ته په اشارې سره خبرورکړي .هغه هم په داسې اشاراتو سره چې درک کول ئې مشکل دي. هغه نښانو چې دتشبیهاتو جامې اغوستې دي ،اوهغه علامې چې دپردې شاته ئې اسرار پټ او مستور دي:

**دهغه قوم [مسلمانانو]په کتابونو کې ستونزوته اشارې اوپه پرده کې ایتونه په مستورو اوپټو اشارو سره په غیر دوضاحت څخه دهغه ظهور ذکر شوی دی .۲**

**حضرت بهاءالله**

يواځې وروسته له هغه چې راتلونکی ظهور دوعدې له تحقق څخه«معضله اشارې او مقنعه ايتونه»دعالم څخه پټ رابنکاره شي .جائزنه ده. چې مؤمينان مخکې له ټاکلې وعدې،ددې ايتونو په معنا پوه شي.
تأويل په دوه ډوله ممکن دی :مجاز اوغير مجاز
.د«متشابه»ايتونو تاؤيل مجاز اولازم دی ،اما
د«محکمو»ايتونو تاؤيل اوتفسير مجاز نه دي.

**دتاؤيل اوتفسير لپاره بې نهايته مرتبې دي .يوتفسير دحق درضالپاره دی. اويو تفسير دحق په خلاف دی.۳**

**حضرت بهاءالله**

**دټولو تأويلاتو اوتفاسيرود ايتونو اوکلماتو دمعنا ګانو مقصد داؤ. چې دحق معرفت حاصل شي.۴**

**حضرت بهاءالله**

---

❖ مقنع:په پرده کې.

دپیړیو اوزمانو په تیریدو سره ،خلکو دالهي کلماتو مقصد ته څه محکم اوڅه متشابه تغیرورکړی دی
.دادی چې فرمائي :

**ایّاکم یا قوم اَن تُحرفوا کلمات الله عن مواضعها .۵**

**حضرت بهاءالله**

**اې خلکو !خدای مه کړه. چې الهي کلمات له خپل مقصد څخه منحرف** کړئ .

**زمونږ دهریوه درک دالهي ایتونو دمعنا څخه پیل دی .په غیر له دی نشو کولای چې انتظار ولرو .مشکل هغه وخت پیل شو. چې دخپلې رای دصحت لپاره اصرار اوټینګار کوو، اودنورو عقایدو اوافکار ته دحقارت په سترګه ګورو ،داطرز فکر همیشه دمخکېنو ادیانو دتفرقې اوتقسیم موجب شوی دی .حضرت بهاءالله بهائیان له دې کار څخه منع کوي:خدای مه کړه چې دالهي احباو ترمنځ دکلماتو دمعنا په سراختلاف پیداشي.۶**

**حضرت بهاءالله**

د«تاؤيل»كلمه معمولاً په داسې مواردو کې کارول کيږي چې د«محکم »کلمی څخه ددهغې دظاهر نه په غير معنا استنباط کړو.دتاريخ په اوږدو کې ،نافرمانه خلکو تاؤيل دپيغمبرانو دنصيحتونودنه منلو لپاره وسيله ګرځولې ده .

دقران دنزول نه وروسته ، امامان چې دالهي الهام نه برخه من ؤ اوپه «علم کې راسخ»ؤدې کتاب کې راغلي دي.

تاريخ شاهدي ورکوي. چې ترټولو لوی علما اوپيشوايان دمتشابه ايتونو دمعناددرک کولو څخه عاجزؤ اودي . اما دپيغمبرانو دپيداکيدلو سره يوځای دپروردګار په اجازه ځنې باايمانه باتقوا علما ددې کلماتو څخه دځنيو په معنا پوه شوي دي.شيخ احمداحسائي اوسيدکاظم رشتي،داسلام دوه لوي دانشمندان ددې ډلې علما ؤ څخه ؤ .دې دوه عالمانو دموعود دظهور نښانې پيداکړی . خپلو شاګردانو ته ئې وښودل اوهغوې د«خدای دورځې»اود«لوی خبر»دمخامخ کيدلو لپاره اماده کړل.

**د[شیخ]احمد ویاړپه دې کې دی. چې دنبوت په ځنې اسراراوورازونو پوه شو. اوامانت ئې انتقال کړ.۷**

**حضرت بهاءالله**

کله چې حضرت باب دپروردګار امر اظهار کړ ،ددې دوه عالمانو ډیرو شاګردانو دهغه پیام ومنل ،د«لوی خبر»بیرغ ئې پورته کړ اودائین په خپرولو کې کوښښ وکړ .اما دالهي پیغمبرانو په وړاندې دروښان بینه علماو پوهه اودانش د«متشابه»کلماتو دمعنوي معنی څخه لکه دلمر په وړاندی یوې ذرې په شان ده .

**حضرت بهاءالله فرمائي دعالم ټول علوم دهغوې د«دانش اوپوهې»ددریاب په نزد دیو څاڅکې نه زیات څه شی نه دی .له دې مقایسې وروسته دخپل پروردګار څخه عفواوبخشش غواړي .۸**

دپروردګار سنت داډول دي. چې دخپل کلام اسرار
لکه دناوې ښکلې خیره دپردې شاته پټه او نه
ښکاري. په هرعصر کې دپیغمبرانو په ظهور سره
ښکاره کړي . دقران دوړاندوینې په اساس ،زمونږ
دعصر دوه موعودو دلمړی ځل لپاره دابهام پرده
دقران دډیرو اسرارو له مخ څخه پورته کړه.
اودمتشابه کلماتو معنائې ښکاره کړه.

**به ظهر کل امر و برز کل سرّ و لاح کل مکتوم .۹**

**حضرت بهاءالله**

په ظهور سره ئې هر امر ظاهر شو ،هررمز ښکاره
شو ،اودهرپټ شي دمخ پرده لرې شوه.

**ترڅو دالهي ښوونو دظرف مهُر دپروردګار په لاس
خلاص نشي. هیڅوک به په هغه نه پوه شوې وي
اونه به پرې پوه شي...لکه څنګه چې، ترڅو
دپروردګار په لاس دمخکښني ظهور (دحضرت باب
ظهور)دقران دعلومو دخزانو مهر خلاص نه کړ.
هیڅوک ورباندې پوه نشو.۱۰**

**حضرت بهاءالله**

ددې دوه موعودو دوینا په رڼا کې دنوي ائین مؤمنینو
دځنې نورو ایتونو دمعنا په کشفولو بری اوتوفیق
پیداکړ .اما داکار هیڅکله پای ته نه رسي ،ځکه چې
دپروردګار دکلام اسرار بې شماره دي.

**ختم :مهر**
**اِناء :ظرف**



قران په صراحت سره وائي چې دهغه تفسير تراوسه نه دی راغلی :

**بَلْ کَذبُواْ بِمَا لَمْ يُحِيطُواْ بِعِلْمِهِ وَلما يَاتِهِمْ تَاوِيلُهُ .**

**ديونس سورت، ۳۹-ايت**

نه ،هغوې په هغه څه چې دقران څخه نه پوهيږي، انکارکوي.اوحال داچې دهغه تاؤيل (دهغه دروني معنا)تراوسه هغوې ته نه ده راغلې.

**وَلَقَدْ جِنَاهُم بِکِتَابٍ... هَلْ يَنظُرُونَ الا تَاوِيلَهُ يَوْمَ يَاتِي تَاوِيلُهُ... ؟**

**داعراف سورت، ۵۳- ۵۲ ،ایتونه** مادخلکو لپاره کتاب راوړی دی ...ایا په غیر له «ده»بل کوم انتظار لري. چې دتوضیح په «ورځ»هغه هم راځي ...؟

**ان عَلَیْنَا جَمْعَهُ... ثُم ا ن عَلَیْنَا بَیَانَهُ .**

**دقیامت سورت۱۷ ـ ۱۹ ،ایتونه**

دهغه (دقران )جمع کول له مونږ سره دي ...پس دهغه توضیح کول هم له مونږ سره دي.

**وَلَیُبَیِّنَن لَکُمْ یَوْمَ الْقِیَامَةِ مَا کُنتُمْ فِیهِ تَخْتَلِفُونَ .**

**دنحل سورت، ۹۲-ایت**

دقیامت ورځ (زمونږ په عصر)کې چې کوم اختلاف لري،په یقین سره به تاسې ته توضیح درکړل شي.

پورتني ایتونه دالاندې ټکي مونږ ته رازده کوي:

- په قران کریم کې داسې ایتونه شته دي. چې توضیح ته اړتیا لري .داایتونه «متشابه»ایتونه دی .د«متشابه»ایتونو په نوم یادیږي.
- پروردګار مونږ ته وعده راکوي. چې په یوه ځانګړې اوخاصه«ورځ»کې ددې ایتونو معنا مونږ ته روښانه کړي.هغه «ورځ»په غیر دوخت دموعود دظهور نه بله کومه «ورځ»کیدلی شي.

- (انکار دهغه څه نه چې نه پرې پوهيږي.)هغه ايتونو ته اشاره ده. چې دموعود دظهور خبرورکوي. که مؤمينان هغو ايتونو معنا ته تغير ورکړي،څنګه کيدلای شي خپل موعود وپيژني؟

کوم کسان په غير دپروردګار دموعود نه دمتشابه ايتونو په تفسير اوتوضيح قادر دي؟که دعالم ټول علما سره راټول شي،ددې کار دسرته رسولو څخه عاجز دي .پس دمتشابه ايتونو دتوضيح وعده ، برابره ده، درالیږل شوي دراتلو دوعدې سره چې علم ئې دپروردګار دلورې دی،نه دخلکو له لوري.



---

سره له وړاندوينې (بَلْ كَذَّبُو...)اود(هَلْ يَنْظُرُونَ...؟)وعده، علما اومفسرين څنګه کولی شي يقين وکړي. چې دپروردګار دکلام داسرارو څخه اګاه دي؟ که دمتشابه ايتونو په معنا پوهيږي ،دبل توضيح کوونکي دراتلو وعدې ته څه اړتيا ده ؟

الهي سنت دارنګه دي. چې هر نوی پیغمبردمخکنیو اسماني کتابونو مشکلات خلکو ته توضیح کړي:

**يَا اهْلَ الْكِتَابِ قَدْ جَاءكُمْ رَسُولُنَا يُبَيِّنُ لَكُمْ عَلَ فَتْرَةٍ مِّنَ الرسُلِ. دمائده سورت، ١٩-ايت**

اې دکتاب والاو!زمونږ پیغمبر راغلی. ترڅو د دوه رسولانوترمنځ دفترت او فاصلې د دوران (مشکلات )تاسي ته توضیح کړي.

**اوَلَمْ تَاتِهِم بَيِّنَةُ مَا فِي الصحُفِ الْاولَ .**

**دطه سورت، ١٣٣-ايت**

ایا دمخکنیو کتابونو توضیح هغوې لپاره نه ده راغلې؟

**يَا اهْلَ الْكِتَابِ قَدْ جَاءكُمْ رَسُولُنَا يُبَيِّنُ لَكُمْ كَثِيرًا مِّما كُنتُمْ تُخْفُ ونَ مِنَ الْكِتَابِ.**

**دمائده سورت، ١٥-ايت** اې دکتاب والاو!زمونږ رسول راغلی ترڅو ډیر هغه حقایق چې تاسې پټول ،تاسې ته توضیح کړي.

دادیانو علماو څه رنګه دپیغمبرانو دظهور خبرونه پټول اوپټوي؟ دهغوې معمول ترینه طریقه او روش دادی. چي مطلب داصلي مقصد څخه منحرف اوبې لارې کړي:

**فَبدلَ الذِينَ ظَلَمُواْ مِنْهُمْ قَوْلاً غَيْرَ الذِي قِيلَ لَهُمْ .**

**داعراف سورة ١٦٢-ايت**

پس ستمکارانو ،هغه خبره چي دوي ته شوې وه .په بله خبره ئي واړوله .

**يُحَرِّفُونَ الْكَلِمَ عَن موَاضِعِهِ** .

**دنساء سورت،۴۶-ايت**

---

❖ فترت : د رسولانو تر منځ فاصله (ديوى ورځى پاي او دبلى ورځى پيل )

۶۳۹ ۲۲فصل:

«محکم»او«متشابه »ايتونه

---

---

د کلام ځای ته تغيرورکوي.(دکلام وينا ځای په ځای کوي.)

ځرنګه کولی شي. دپروردګار کلام معنا ته تغیر ورکوي؟دنظر وړکلمي لپاره بله معنا پیداکوي. ترټولو ښه نمونه ئې ددوه کلمو «خاتم»او«وسط»معنا ته تغیر ورکول دي.

## دمسلمانانو سؤتفسیر

| |
|---|
| خاتَم:مهر خاتِم :پایان ورکوونکی |
| دخاتَم معنی ئې دخاتِم سره عوض کړې ده. |
| امت وسط امت عادل |
| دوسط معنائې دعادل معنی سره عوض کړې ده . |

## دمسیحیانو ناسم تفسیر

| |
|---|
| روح راستي روح القدس |
| دروح راستي معنا ئې دروح القدس دمعنا سره عوض کړې ده. |

حضرت مسیح (عیسی)،رسول اکرم ته په اشارې سره دهغه دراتګ بشارت ئې په (رښتینې روح)سره ورکړی ؤ.مسیح علما وائي.رښتینی روح یعنی تجلّی روح القدس په یو خاص زمان کې دمسیحیانو یوه ډله !مسیحي پیشوایان ددوه کلمو (رښتینی روح)په

تغیراوتحریف سره دانجیل  مهمترین خبر درسول اکرم دظهور په باره کې پېښ ساتلی اوساتي.ددې لپاره چې ددې دوو کلمو دتحریف په تاثیراتو دجهان په برخلیک اګاه اوپوه شو،ښه ده وګورو، مسیحیان څرنګه دابښه خبر ،



---

اودخپل پیغمبر دا وړاندوینه دهغه دربښتینې معنا اومقصد څخه منحرفه اوبې لارې کړې  ده .

**حضرت مسیح فرمائي:**

**نور ډېر شيان دي. چې تاسې ته ئې ووايم .امّا تاسې دهغو داوريدلو تحمل نه لرى.امّا کله چې هغه رښتينى روح راځي ،تاسى به ټول حقيقت ته هدايت کړي .اودخپل ځان څخه به تاسې ته خبره ونه کړي.اوهغه څه چې د[خداى]څخه اوري،تاسې ته ووائي. هغه به داينده څخه خبردرکړي:له دې لارې به زما لويوالى اوجلال تاسې ته وښائي. هغه څه چې زما دي، واخلي اوتاسى ته به ئې دروپيژني.**

**حضرت مسيح(يوحنا انجيل،۱۶فصل،۱۲- ۱۴،ايتونه**

- «نور ډېر شيان دي. چې وئې وايم،اما تاسې دهغه داوريدلو تحمل نه لرى .هغه به تاسې ټول حقيقت ته هدايت کړي ».قران کريم دې وړاندوينې ته په پوره توګه تحقق ورکوي .هغه کتاب ډېر معنوي حقايق لري.چې په انجيل کې نه پيداکيږي دنوي عهد ډېرمطالب دحضرت مسيح دپيروانو اوحواريونو توضيحات اونظريات دي،نه دهغه پيغمبروينا. قران کريم په هغه اندازه غني دى. چې کيدلى شي. هغه د«معنوي علومو دايرة المعارف»ونومول شي.دپروردګار دشاهدې په اساس،هر «لوند اووچ»په دې کې شته دى.

- «هغه دخپل ځآن نه خبری نه کوي».پروردګار په کراتو شاهدي ورکوي. چې قران مجید دهغه دی ،نه درسول اکرم.
- «هغه به داینده خبرورکړي.»ددوه لوی پیغمبرانو دظهوربشارت ترټولومهم خبرښخه، بل کوم خبرکیدلی شي .دقران ایتونو ددې لوی خبردظهور زیری اومژده دپیل نه ترپای پورې ورکړې ده .

**I have much more to Say to you, more than you can now bear . But when he. The Spirit of truth, comes, he will guide you into all truth. He will not speak on his own; he will speak only what he hears, and he will .tell you what is yet to come**

**He will bring glory to me by taking from what is mine and making it known to you.**

**Christ (John 16:12-14 NIV**

ټولې نښانې چې حضرت مسیح ئې وړاندوینې کړې دي ،دحضرت بهاءالله دظهور په وخت کې هم تحقق پیداکړ. په حقیقت کې ټول پیغمبران ریښتینی روح نومولی شی.

- «هغه به له دې لارې ، زما جلال اوعظمت وښائي: هغه څه چې زما دي، هغه اخيستي، [نقل کړي دي]تاسې ته به ئې دروپيژني.»رسول اکرم حضرت مسيح ته ترټولو لوی اوباشکوه لقب ورکړ.هغه لوی پيغمبر ته ئې «روح الله»وويل .ايا تردې بل لوی لقب کولی شی تصور کړی ؟مسيحيان د«خدای دځوی»په لقب وياړ کوي اووائي :«مسيح يواځې دخدای زوی دی ».حال داچې ،دالقب په کراتو په مقدس کتاب کې ټولو مؤمينانو ته اطلاق شوی دی .اما دخلکو څخه هيڅ يو د«روح الله»په لقب وياړل شوی نه دی.

په قران مجيد کې پروردګار ټولو پيغمبرانو ته واحد مقام وربخښلی دی .دادوه پيغمبران ئې ديوبل همتا اومثل ګڼلي دي .حضرت مسيح ته ئې په عظمت سره برسيره قران مجيد د مسيحيانو بې اساسه خيالونه په ګوته کړي دي ،اوددې لارې ئې حضرت مسيح

عظمت ورزيات کړی دی .مثلاً «ټول مسيحيان دخپل
پيغمبر دوينا په ناسم تفسير سره وائي:خدای يودی. اما
درې شخصه دي. اويو له هغو درې شخصو څخه
زمونږ پيغمبر دی ! قران مجيد ،په ډيرتاکيد سره دا بې
اعتباره عقيده دپروردګار دکلام تحريف ګڼي.
مسيحيان دمخکېني خبرونو تحقق درسول اکرم په
ظهور سره نه مني .هغوې په دې عقده دي چې
حضرت مسيح يواځې خلکو ته دګمراهې څخه نجات
ورکوونکی دی ،اوبل هر پيغمبر چې په هرنوم سره
ظاهر شي باطل دی .مسيحی پيشوايان وائي ،مخکيني
زيري د « رښتينی روح دراتللو»په باره کې اړيکه
لري د«روح القدس دراتلو سره»په يوه ځانګړې ورځ
کې اودهغه روح ظاهريدل دمسيحيانو په يوه ډله کې.
دهغوې دتصور په اساس ،دالويه واقعه په هغه وخت
پيښه شويده چې هغه مؤمينان دګل ريزان .pentecose
په يوجشن کې سره يوځای شوي ؤ!په همدومره اسانې
سره ئې د ددې نښانو اووړاندوينو معنا ته تغير
ورکړی دی ، ددې له خوښي بخښوونکی زيري مقصد
ئې

---

❖ ليکونکي يو مکمل فصل ددې باور ردولو لپاره
ليکلی دی. دې کتاب ته مراجعه وکړئ.

---

---

دخپلو پیروانو څخه پټ کړی اوپټوي .که خبره دارنګه وي. باید مسیحي پیشوایان دې پوښتنو ته ځواب ووائي:

- روح القدس دهغه جشن په اوږدو کې کوم حقایق په هغه محل کې هغو میلمنو ته ورزده کړل چې حضرت مسیح په درې کلونو کې خپلو پیروانو ته ورزده نه کړل؟
- دکومې فرقې یاډلې پیروان ،دزرهاو مسیحي ډلو څخه په هغو حقایقو پوهیږي؟
- روح القدس کومې «وړاندوینی»دمسیحیانو هغې ډلې ته اظهار کړل؟
- ایا روح القدس تګ اوراتګ لري؟

- ایا روح القدس دحضرت مسیح په زمان کې حاضر نه و چې وروسته راشي؟
- روح القدس په هغه څو ورځو یاڅو ساعتو کې کوم شیان هغو مسحیانو ته وښودل چې دخپل پیغمبر څخه ئې داوریدلو تحمل نه لرل؟
- ایا روح القدس  دحضرت مسیح په زمان کې حاضر نه و چې وروسته راشي؟
- روح القدس دانسان په څیر ژبه لري. اوخبرې کوي؟

له پورتنیو شرطونو څخه هیڅ یوپه هیڅ وجه په هغه ورځ په هغه جشن کې تحقق ونه موند.دمسیحی پیشوایانوناسم تفسیردمسلمانانولپاره دعبرت درس دی. دهغوې پیشوایانو  هم د«خاتم النبیّن»ددوه کلمو دمعنا په تحریف اوتغیرولوسره دمسیحی پیشوایانو په همغه لارقدم پورته کړ.هغوې هم ددوه کلمو دمعنا په تغیرولو سره ،مسلمانان ئې د خپل موعود دپیژندنې څخه محروم کړل.دحیرانتیا ځای دی! ددوه کلمو څخه ناسمه ګټه تر کومه حده دعالم انسان په برخلیک کې اثر لرل. اوخلک ئې دسمي لارى نه وګرځول!
په هغه ترتیب چې مخکی بحث وشو ،دقران مجید په ژباړه کې ولی شیعه ژباړونکو ایرانی لقب «خاتم

النبّين»چې داسلام دائين اساس اوپايه ګڼي .په فارسي نه ترجمه کوي؟





---

ولې حداقل دهغه لقب معنا په داخل ديو قوس(  )يعنی «پرانتز»کې نه نيسي. چې ويونکي ددې لوی رمز څخه اګاه نشي؟که د«خاتَم»په ځای «خاتِم»په قران کې راغلی وي.ايا دهغه معنا ئې(پايان دهنده)ولې نه ليکله ؟که دسلو ايرانيانوڅخه ،د«خاتَم النبين»تحت

اللفظي معنا پوښتنه وکړو ،ځونفره به ئې
ووائي:د«پيغمبرانومهُر»؟د«پيغمبرانودمهر»
اصطلاح اصلاً په ايرانيانو کې نه اوريدل
کيږ.ي.د«خاتَم»او«خاتِم»ترمنځ توپير لکه د(اَخَر)ديګر
بل او(اَخِر)پايان، ختم دتوپير په شان دی .لږ تغير په
تلفظ کې معنى بيخي بدلولې شي.
پيغمبر دخپل ظهور په وخت کې دمخکېنيو کتابونو
مشکلات هميشه توضيح کړي دي.هميشه داسې ؤاو
وي به .دامونږ پورې اړه لري. چې دتاريخ له درسونو
ځخه عبرت واخلو .
**وَلَما جَاء عِيسَ بِالْبَيِّنَاتِ قَالَ قَدْ جِئْتُكُم بِالْحِكْمَةِ وَلِابَيِّنَ لَكُم بَعْضَ الذِي تَخْتَلِفُونَ... فَاخْتَلَفَ الْاحْزَابُ مِن بَيْنِهِمْ فَوَيْلٌ لِّلذِينَ ظَلَمُوا مِنْ عَذَابِيَوْمٍالِيمٍ.**

**دزخرف سورت،۶۵- ۶۳،ايتونه**

ځرنګه چې عيسى روښانه دلايل راوړل،وويل:ماتاسې
ته حکمت راوړی دی. اوراغلې يم، په هغه څه کې
چې تاسې دنظر اختلاف لرې. هغه توضيح کړم
...امادهغوې په منځ کې يعنى د مسيحيانو په منځ کې
مختلف حزبونه پيداشول .وای پرستمکارانو !چې
پرلويه ورځ به دځه عذاب سره مخامخ شي!

# د«متشابه»کلماتو

# څخه

# څونمونې

دذخيره  کلمو شکل اوبڼه حق ده. اوپه هغو کې پرته معنا دپوهې غمي دي. دقدرت لاس خلک دهغو دخبرتياو څخه منع کوي. اوکله چې دالله اراده وشوه. دقدرت لاسونو هغه مهُر خلاص کړ،وروسته له هغې خلک متوجه کيږي.



---

مثلاً دقران په کلماتو کې وګورئ. چې دټولو علمي خزانو «خزانه»جمال قدم جل اوعزّ وه.اوټولو علماو په ټولو وختو کې دقران قرائت کول اوتفسيرونه به

**ئې نوشته کول.له دي سره سره په دې قادر نه و چې یوه کلمه دپټو غمیو دکلماتو دزخیرې څخه ظاهره کړي.وَاِذُجاَءَالوَعْدَ دقدرت لاس مخکښني ظهور[دحضرت باب ظهور]دهغو خزانو مُهر ته دخلکو په وړاندې دهغه استعداد ته حرکت ورکړ.١١ حضرت بهاءالله**

دنمونې لپاره ،دې څو «متشابه»کلمو ته چې زمونږ دعصر موعود دظهور پورې اړه لري توجه وکړئ .ځنې داکلمې مختلفې معنا ګانې لري.دلته یواځې دځنیو په ذکر اکتفاء او بسنه شوې ده:

| | |
|---|---|
| **متشابه وینا.** | دوینا معنوي معنا. |
| **اسمان:** | دپروردګار ائین. |
| **لمر:** | دپروردګار رالیږونکیې اودهغه وینا. |
| **ستارګان:** | مذهبي پیشوایان. |
| **غرونه:** | قدرتمندخلک،لوړپایه موسسات،مذهبي تأسیسات. |
| **طعام،ډوډۍ:** | روحاني کمالات ،معنوي غذا. |
| **باران:** | دپروردګار فضل اومرحمت. |
| **دجهنم اور:** | دخدای نه دلریوالي درد. دعزیزانو نه لریوالی لکه په دوزخ کې ژوندکول دي . په فارسي کې کله وایو : ازدوری اومی سوزم ومی |

| | |
|---|---|
| | سازم. |



| متشابه وینا | دوینا<br>معنوي معنا |
|---|---|
| **دژوندون اوبه:**<br>**ځمکه:**<br>**دځمکي خوځیدل(زلزله):** | معنوي ژوند.<br>دانسان زړه ،پیژندنه،علم.<br>په افکارو کې زلزله ،اجتماعی نظم ګډوډیدل. |

| | |
|---|---|
| **په شپیلۍ کې پوکې:** | دموعود دامراعلان. |
| **باد:** | دخلکو دایمان ازمایش ،شک اوتردید. |
| **وریځ اوغبار:** | دپیغمبرانو دپیژندنې خنډونه اوموانع. |
| **دریاب:** | دمتلاطمې اوموج وهونکې دنیا |
| **حوریات:** | خیالونه ،اوګومانونه. |
| **غلمان:** | حقیقتونه او د بیکرد اسراروبښکلا. |
| **شیطان:** | هغوې چې دپروردګار مینه کې قوي اوپه ایمان کې ثابت اواستوار دي ،دخدای خدمتګاران او فرمان وړونکي. |
| **مستی ،سُکر:** | مکارنفس. معنوي ناپوهي. |

**څه وشوچې ټول د معنوي ناپوهې غفلت راګیرکړل؟۱۲**            **حضرت بهاءالله**

---

دالاندې دمولوي شعر دناپوه اونادانو خلکو په باره کې ویل شوی دی. چې د جنت دحورو دلاسته راوړلو په امید دنورو فکرونو والاوژني. اوهمدارنګه دهغو کوتا

نظرانولپاره چې حورى اوغلمان ئې په ظاهري معنا نیولي دي.اوقران مسخره کوي.

داشتیم        پوست را بهرِ خران بگذاشتیم



---

---

**اې بنده ګانو!دلوى اوبې شانه بحر دغمیو صدف مې درباني حکمت اودلوى علم په خدائي قوه او روحاني قدرت سره دباندې را وایستل.دپَردُو اودسَتر په کوډلو کې مې حورې ددې محکمو کلماتو په مظاهرو کې راپورته کړى.۱۳        حضرت بهاءالله**

**ټول غوږونه دپټو رازونو داوریدلو لایق نه ؤ. اوټولې سترګې دکور دننه دعلم اوپوهې والا حورو دلیدو وړ نه دي.۱۴**

**حضرت بهاءالله**

**ايّاکم ان لا تعر وا اجسادکم عن خلع الهدی ثمّ اشربوا عن کأس الّتی یحرّکهاغلمان الظّهور فوق رؤوسکم و کذلک امرکم الّذی کان ارحم بکم من انفسکم و لن یطلب منکم اجرا و لا جزاء .۱۵**

**حضرت بهاءالله**

خدای مه کړه چې دایمان جامې له تن نه وباسي.اووروسته له هغه جامه چې د«ظهور غلمان»(دپروردګار دائین خدمتګاران)په تاسې ګرزوي ،وڅکی ،دارنګه تاسې ته امر کوي .څوک چې له تاسې څخه په تاسې ډیر مهربانه دی ،اوله تاسې څخه اجراوپاداش نه غواړي .

په دې بیان کې ،د«بکر اونوین»معنا اوفکر د«ناوې»سره تشبیه شوي دي:

**دنوې معنا ناوې چې دبیان په پردو کې پټې اومستوري دي. په الهي بخشش او رباني لطف سره لکه ځلیدلې وړانګې ددوست د جماله ظاهرې اوښکاره شوې.شهادت ورکوم اې دوستانوچې نعمتونه پوره دي،دلایل سم دي،ثبوتونه ظاهردي،**

**اوپه دلیل ثابت راغی. نور نوستاسې په همت پورې اړه لري. چې دخدای سره دمینې درجې ښکاره کړئ.۱۶**

**حضرت بهاءالله**

دنمونې لپاره ،مناسبه ده. د«اسمان»او«ځمکې»دوه کلمو په باره کې مطالعه وکړو.اووګورو چې د«اسمان اودین»ترمنځ څه متشابه وجه ده. او هم وګورو چې د«انسان دزړه»اود«ځمکې»ترمنځ څه متشابه وجه موجوده ده:

| | |
|---|---|
| **دجهان میدان** | **دانسان دروح اودین میدان** |
| **اسمان** | **ددین مقام ډیر لوړ دی ،اوداسمان په شان زمونږ روح په غیږ کې نیسي.** |

| دجهان په عرصه کې | دانسان دروح اودین په عرصه اوډګر کې |
|---|---|
| لمر | زمونږ دروح ژوند دپروردګار دپیغمبر درڼا څخه دی. زمونږ معنوي وجود اوزمونږ باطني خوښې زمونږ دزړه په اړه دپروردګار له لوري په رااستول شوي پورې اړوند دي. |
| سپوږمې | دپیغمبرانو ځای ناستې دهغو رااستول شوو درڼا څخه برخه من کیږي. اونورو ته ئې بخښي. |
| ورځ | دپروردګار دپیغمبرانو دظهور ورځ |
| نور | دپروردګار کلام زمونږ دلارې چراغ دی. |
| باران | دپروردګار فیض اوعنایت دهغه دامر داسمان څخه پرمونږ راوریږي. |
| ځمکه | دانسان په زړه کې دایمان زړي کرل کیږي. |
| ستوري | مذهبي علما اوپیشوایان دستورو په شان ددین په اسمان کې ځلیږي.کله |

| | |
|---|---|
| | چې سبائي راورسي. اودنوې ورځ لمر په ځليدو وي، دپخوانې ائين علما خپله رڼا له لاسه ورکوي. اوله «اسمان څخه رالوېږي»دهغوې دزړه ځمکه په تياره بدليږي. |
| وريځې | په دين کې خنډونه وي. چې بايد هغه لرې شي. اوياپرې غالب شي، ديوانسان په وجود کې دپروردگار دروح دمنلو په څير،زمونږ په زړه کې خنډونه اوموانع پيداکيږي. چې مونږ دپروردگار دنور دليدلو څخه دهغه دپيغمبرانو په وجود کې محروموي. |
| رعدوبرق | دايمان دراوړلوڅخه وروسته دازمايش لاندې نيول کيږو. ازمايش زمونږ دباطنې استعداد دظهوروسيله ده. هرڅه چې په زړه کې وي، هغه کوو. |
| دلمر دهرې ورځې راختل | په هرعصر کې نوې پيغمبر دامر داسمان څخه راخيژي اومونږته نور راکوي اودخلکو روح دتيارى څخه خلاصون مومي. |

| دجهان په عرصه کې | دانسادروح اودين په عرصه |
|---|---|
| **دلمر دراختلو دځاى تغير (تغير طلوع گاه)** | الهي پيغمبر په هرعصر کې دنوي ځاى څخه راپورته کيږي.په هرعصر کې يوځانګړې امت په ظاهري صورت سره دالهي پيغمبر دنږديوالي افتخارلري. |
| **دلمر پريوتل (غروب)** | دمخکنې دين وخت پاى ته رسي.دمخکنې ائين رڼا دهغې منشاء اوراليږونکي ته ،خداى ورګرځي.دخلکو زړونه تياره کيږي. اودنوي پيغمبر دطلوع وخت رارسي. |

داسماني اثارو داسرارو دګنج کلي يواځې دپروردګار رااستوونکو په لاس کې ده. دهغو الهي رااستونکو په ياري ،زمونږ پوهه اواګاهي دهغه قيمتي ګنج څخه سل چنده بلکه زرچنده کيږي.

هغه څه چې له وړاندې څخه مشکل اوپټ ؤ ،په ناڅاپه توګه ښکاره اوظاهر شي.په تياره غار کې داسرارو کشفول ممکن نه دي .دپروردګاردنوي لمر ځلا ،هغه څه چې زمونږ دارتيا وړ دي، لکه دورځې په څير واضح اوښکاره شي.

**قد ظهر ما کان مکنونا في علم الله و مسطوراً في کتبه .**

**١٧ حضرت بهاءالله**

هغه څه چې دپروردګار دعلم اودهغه په اثارو کې پټ ؤ ښکاره شو.

**يا اهل العلم اتقواالله في الذّکر يعلّمکم الله من لسان الذّکر تأويل الکتاب .١٨ حضرت باب**

اې دعلم والا!دخدای له لورې د«ذکر»(حضرت باب)په وسيله له تاسې سره خبرې کوي.

**په هرنفس لازم اوواجب ده. چې الهي مشکل مسايل...درښا زړونو صاحبانو ته اودپروردګار درازونو وړونکو ته وړاندې کړې. ترڅوپه رباني تائيداتو اوالهي ښيګڼو سره مسايل حل شي، نه داکتسابي علومو په تائيداتو سره "فَاسْئَلُوا اَهلَ الذِّکْرِ إن**

**كُنْتُمْ لا تَعْلَمونَ ".١٩**
**حضرت بهاءالله**

۶۴۹

۲۲فصل: «محکم»او «متشابه»ایتونه

---

---

**دپروردګار دشهادت په اساس ،دموعود دظهور څخه وروسته ،دالهي علم اوپوهې دلمر دځلااوروښانتیا په خاطر دنوي ائین پیروان دارنګه دپوهې اواګاهې درنا څخه روښنائي اخلي. چې دمخکنیو دینونو دعلماو اوفقهاو وینا اوتفاسیرو ته اړتیا نه لري .حضرت بهاءالله دخپلو اسماني لیکنو نه په یولیک کې فرمائي. چې ددې ائین مؤمنین په داسې علومو اوحکمتونو ګویا شوي دي (چې نوردهغوې په**

**یوتوري ...نه دي پوه شوي اونه به هم پوه شي)حتی که زرکاله په ښوونه او روزنه (تعلیم او تعلم)مشغول شي. ۲۰**

**فرمائي ددې ائین مؤمنین په دې قادر دي. چې داسې مقام ته ورسي،چې دعلم اوحکمت چېنې دزړه څخه بې له توقفه اوتاخیر څخه جاري وساتل شي.(۲۱)**

قران مجید مسلمانان تشویقوي. که دهغه کتاب ددرک لپاره مشکل لرى. د«ذکر»داهل څخه یعنی دپروردگار دنوي ائین دپیروانو څخه پوښتنه وکړئ:

**فَاسْاَلُوا اهْلَ الذِّکْرِ ان کُنتُمْ لاَ تَعْلَمُونَ .**

**دانبیاء سورت،۷-ایت** که نه پوهیږي

د«ذکر»له پیروانو څخه پوښتنه وکړئ.

په همغه توګه چې ذکر ئې وشو ،دپیغمبرانو څخه انکار دهغوې دظهور په لمړیو کې او دجهان دادیانو دپیروانوو ترمنځ اختلاف په ټولو وختونو کې همیشه دمتشابه کلماتو دناسم درک څخه ؤ.

ددې لپاره چې وګورو دې مشکل کوم نتایج رامنځ ته کړي دي ښه ده. چې پوښتنه وکړو. چې ولې مسیحیانو اسلام ونه منل ؟ددې لپاره چې عقیده من ؤ چې دهغوې داسماني کتاب وړاندوینې اونښانې دحضرت مسیح درجوع په باره کې دحضرت محمد په ظهور کې تحقق ونه موند. غافل له دې نه چې داد هغوې دفهم

مشکل ؤ. اومتشابه کلماتو دناسم درک څخه ؤ دبهائي ائين داسماني اثارو په اساس ، درسول اکرم دظهور سره دمسيح درجوع وعده اجراشوه ،ځکه چې په هغه دوه پيغمبرانو کې يو اسماني روح ځليدوونکې اوروښانه ونکي وه.دهغوې تفاوت په افق کې وه. چې له هغه څخه وځليدل ،نه په هغه رڼا کې چې جهان ته ئې ورکړه .مناسبه ده. چې څو نمونې دحضرت مسيح په رجوع کولو کې بررسي اومطالعه کړو. يعنى دانجيل دوړاندوينو اونښانو څخه دمتشابه کلماتو په اساس وڅيړو.



**دحضرت مسيح بيرته راتګ نښانې**

| متشابه وينا | دوينا معنوي معنا |
|---|---|
| | |

| | |
|---|---|
| له اسمانه راځم: | دپروردګار دعلم ،رحمت اوارادي له اس<br>اوائين له اسمان نه . |
| دوريځو په مخ: | دخلکو دګومانونو ،تعصباتو اوتصورسر<br>خنډ دى. |
| زماهره سترګه به وګورئ: | هرڅوک چې دبصيرت سترګې لري وب |
| ستوري به راوليږي: | په همغه ترتيب چې دلمر دراختلو په وخ<br>او پټ شي،دزمان علما او پيشوايان به ه<br>دطلوع په وخت کې دخپل معنوي مقام ا<br>کوي ،يعنى دخداى له نظره نور کوم مق<br>،مګر تر څو نوې ائين ته ولاړشي. |
| دخداى ښاربه له اسمان څخه راښکته شي: | دنوي تمدن نقشه دوحې داسمان څخه دپ<br>خلکو ته بخشش کړل شي، |
| غرونه به اوار شي: | زاړه تاسيسات اوپرقدرت مستبد حاکمان<br>ورکوي . |
| نوى اسمان به رامنځ ته شي: | نوې ائين به جهان دخپل نفوذ ترسيوري |
| نوى ځمکه به رامنځ ته شي: | دخلکو زړونه به تازه اوژوندي شي. |

درسول اکرم په ظهور سره داتولې نښانې سرته ورسیدې .اما ډیر مسیحیان ددې متشابه کلماتو دمعنوي معنا څخه په کلي توګه بې خبره دي ،اودهغه لوی موعود دمنلو څخه مخ اړولی دی ،امّا دمسیحیانو په منځ کې ،هغو چې باطنې دیدلرل.دپروردګار رڼا دهغه خدای له لوري په رااستول شوي کې لکه ځلیدونکي لمر په شان پیداکړه. اودپروانې په شان هغه لورته په عجله ولاړل. داسماني اثارو ترمنځ ډیر ورته والی اوشباهت دی. مناسبه ده چې دقران دمتشابه کلماتو څو نمونې هم مطالعه اووڅیړو:

**لمر**

**وَتَرَی الشمْسَ اذَا طَلَعَت .**
**دکهف سورت،۱۷-ایت**
دلمر راختنه ګوری.
څه یولمر؟دپروردګارپه رااستول شوکي دشکوه اوعظت لمر،دیقین اوحقیقت لمر:
**دحقیقت لمر داسمان له څنډو لمرخاته څخه یقیني اوښکاره دی.۲۲ ؛ نن دیقین لمر راختلی.۲۳ ؛ نن ورځ دالهي بخشش دلمنې څخه لمرروښانه شوی دی.**

**حضرت بهاءالله**
**لمر به داسمان نه پرمونږ راوخیژي. ترڅو پرهغو چې په تیاره اودمرګ د سیوري لاندې دي ولږیږي. اوهغوې ارامتیا اوصفاته سوق کړي.**
**. حضرت مسیح،**
**لوقا انجیل ،۱فصل،۷۹- ۷۸،ایتونه**
اې پروردګاره**!**هغه لمر چې ستا دتقدیر اوفضل دافق څخه راوختل. بنده ګانو ته وروپیژنه ،اوهغوې له هغه جنت نه چې تا دخپل عظمت او شکوه په روښانتیا کې پیداکړي. مه محروموې.
په عربي کې داشعارو دمجموعې څخه دورقائیه قصیده حضرت بهاءالله فرمائي:

**لظهورها كلّ الشّموس تخفّت .٢٦**

په ظهور سره ئې ټول لمرونه پټ شول.

## لمر،ستوري

## ،غرونه

**اِ ذَا الشمْسُ كُوِّرَتْ وَاذَا النجُومُ انكَدَرَتْ وَاذَا الْجِبَالُ سُيِّرَتْ . دتكوير سورت،٣- ١ ،ايتونه** كله چې لمر تياره کې شي،ستوري په تياره کې شي، اوغرونه ورک شي.

- كوم لمر په تياره كې كيږي؟دمخكني ائين لمر چې رڼا ئې دزرو كلونو په اوږدو كې كم كم دپروردګار لورته رجوع كوي.
- كوم ستوري په تياره كې كيږي؟هغه ستوري چې دمخكنې ائين په اسمان كې ځليدل هغه علما اوپيشوايان چې په هغه ائين كې خلكو ته سمه لاره ښودله.
- كوم غرونه به ناپديد اوورک كيږي؟ هغه موسسات لكه دغرونو په څير چې ثابت اوپخپل ځای ؤ.هغه كسان چې په مخكښني ائين كې داعتماد وړ خلک ؤ.

دطه سورة ايتونه د(١)څخه تر(٩٨) پورې دحضرت موسى دظهور اړوند دي.                    په٩٩-ايت سره زمان له ماضي نه حال اواينده ته بدليږي.مناسبه ده. چې داايتونه مطالعه اووڅيړو:

**كَذَلِكَ نَقُص عَلَيْكَ مِنْ انبَاء مَا قَدْ سَبَقَ .**

**دطه سورت، ٩٩-ايت**

په دې ډول دمخكښنيو خبرونه  تاته وايم.

**وَيَسْالُونَكَ عَن الْجِبَالِ فَقُلْ يَنسِفُهَا رَبِّي نَسْفًا.**

**دطه سورت، ١٠٥-ايت**

دغرونو په باره کې له تاڅخه پوښتنه کوي. ووایه!زما پروردګار به هغوې له ایښه ورک کړي. اودګرد په شان به ئې خواره واره کړي.

مستبدو اوغضبناکو زمامدارانو اومذهبي پیشوایانو دمخکېنیو عصرونو اوپیړیو په اوږدو کې چې دډیر قدرت اونفوذ صاحبان ؤ .دبهائې ائین په ظهور سره دپیشوا لرلو رسم بیخي له منځه ځي.





---

په تدریج سره مستبد حاکمان اوقدرتمند لوړپایه مذهبي مشران اورئیسان لکه پاپ، اسقف ،کشیش ،مجتهد،

ملاّاومؤبد لکه دغره په خير ثابت اوکلک ولاړۀ.لکه دګردپه ځير دتند باد په وړاندې له منځه ولاړ شي.
اويواځې به دتاريخ په پاڼو کې دهغوې ذکر پاتي شي.
**لَا تَرَى فِيهَا عِوَجًا وَلَا امْتًا** .
**دطه سورت،۱۰۷-ايت**
دهغوې (غرونو) ځای به هيڅ يو کوږ اوستونزمن ځه شی ونه وينې.
دپروردګار د وعدې په اساس، دپيشوايانو اوحاکمانو دقدرت ديکتا تورې په ځای به يوعادلانه سيستم دموکراسي تاسيس شي.داسيستم به ،دپروردګار دنقشې په اساس له هر ډول سواستفادې څخه مخنيوې وکړي.
**يَوْمَئِذٍ يَتبِعُونَ الداعِيَ لَا عِوَجَ لَهُ** .
**دطه سورت،۱۰۸-ايت**
په هغه ورځ به ددعوت کوونکي حکم اواراده سرته ورسوي.(هغه دعوت کوونکې چې دهغه په دعوت کې)کوږوالی اوستونزې نشته. (خلک به رښتيني لارې ته رابولي).
«دعوت کوونکی»دزمان موعود ته اشاره ده. په همغه ترتيب چې ومولېدل ،خدای خلک بغداد ته دعوتوي:
**وَاللهُ يَدْعُو الَ دَارِ السلاَمِ** .
**ديونس سورت،۲۵-ايت**
پروردګار خلک دارالسلام (بغدا) ته دعوتوي.

مناسبه ده. چې طه سورة څو ایتونه چې زمونږ
دعصر ددوه موعودو پورې اړیکه لري دڅیړنې
اومطالعې لاندې ونیسو:
**وَخَشَعَت الْاصْوَاتُ لِلرحْمَن تَسْمَعُ ا لا هَمْسًا .**
**دطه سورت،۱۰۸-ایت**
ټول غږونه دپروردګار په وړاندې عاجزشي. یواځې د
مردانودپښو غږ اوریدل کیږي.
ددې ائین مؤمنین دهغه موعود په وړاندې چې دخدای
په نوم راځي. په پوره بنده ګې اوعاجزې کې
ودریږي. اودهغه حکم بې له کوم چون اوچرا څخه
سرته رسوي.

**يَوْمَذَ لا تَنفَعُ الشفَاعَةُ الا مَنْ اذِنَ لَهُ الرحْمَنُ وَرَضِيَ لَهُ قَوْلًا . دطه سورت،۱۰۹-ايت**

په هغه ورځ دچا لپاره واسطه ممکن نه ده .مګردموعود په اجازه ،دهغه چالپاره چې دهغه دقبول وړ دی.

**يَعْلَمُ مَا بَيْنَ ايْدِيهِمْ وَمَا خَلْفَهُمْ وَلَا يُحِيطُونَ بِهِ عِلْمًا . دطه سورت،۱۱۰-ايت**

هغه په ټولو شيانو چې بنده ګان ئې ورسره مخامخ ؤ اودي. اوپه هغه څه چې نه پوهيږي دانا اواګاه دی. هغه مؤمنان چې دحضرت باب اوحضرت بهاءالله حضور ته رسيدل ،اکثرو شهادت ورکړی دی.چې هغه دوه موعوده دهغوې په ټولو اسرارو باخبره ؤه.

**وَعَنَتِ الْوُجُوهُ لِلْحَيِّ الْقَيومِ وَقَدْ خَابَ مَنْ حَمَلَ ظُلْمًا . دطه سورت،۱۱۱-ايت** **هغه**

صورتونه چې ددوې په وړاندې پايداره اوژوندي دي.عاجز شي. دظالمانوبرخليک په غير له نااميدې بل څه نه دی.

يوځل بيا د(بل ځل لپاره)دالهي ائين دغلبې خبرې دي . دپروردګار د را استوونکي په وړاندې دخلکو عاجزي اودظالمانو شوم برخليک.

## دلمراو سپوږمې يوځاى

## کيدل

دقران ايتونه ،دظهور دنماينده ګانو په شکل (ماه ولايت )يعنی حضرت عبدالبهاء اوحضرت ولي امرالله ته هم زيرې ورکوي:

**فَاذَا...جُمِعَ ال شمْسُ وَالْقَمَر يَقُولُ الانسَانُ يَوْمَذٍ ايْنَ الْمَفَر کَلا لَا وَزَرَ الَ رَبِّكَ يَوْمَذٍ الْمُسْتَقَر .**

**دقيامة سورت،١٢- ٧،ايتونه**

کله چې «لمر اوسپوږمې »يوځاى ظاهر شي .انسان (هر انسان)پوښتنه کوي:

پناه ګاه به چيرته وي؟په هيڅ وجه !پناګاه نه پيداکيږي .په هغه ورځ يواځنې پناه ګاه پروردګار وي.

دامتشابه ايت هم د«لمراوسپوږمې يوځاى کيدلو ته»اشاره کوي:

---

**وَالشمْسِ وَضُحَاهَا وَالْقَمَرِ اذَا تَلَاهَا .**

**دشمس سورت، ۲-۱ ،ایتونه** په

لمر اودهغه په روښنائي قسم دى.اوقسم په هغه سپوږمي چې له هغه نه وروسته راځي.

په دې بيان کې ،رسول اکرم خپل ځان دلمر سره اوحضرت امير دسپوږمي سره تشبه کوي:

**انا کالشمس وعلى کالقمر .۲۷**

**رسول اکرم**

زه په شان دلمر يم اوعلى په شان دسپوږمي دی.

حضرت بهاءالله په تفسير د«**وَالْقَّمِرَاِذَا تَلاَهاَ**»کې«قسم په هغه سپوږمي چې وروسته له ده نه راځي»فرمائي:

**و القمر رتبة الولاية الّذی تلا شمسَ النّبوّة أی يظهر بعده ليقوم على أمر النبيِّ بين العباد .۲۸**

**حضرت بهاءالله**

(ماه ولايت)هغه ځوک دى. چې وروسته دنبوت لمر څخه راځي يعنې له هغه څخه وروسته ظهور ته رسي. ترڅو دپيغمبرائين دخلکو په منځ کې ودروي.

دقران په ايتونو کې فرمائي:

**وَالشمْسِ وَضُحَاهَا وَالْقَمَرِ اذَا تَلَاهَا .**

**دشمس سورت، ۲-۱ ،ایتونه**

کله چې لمراوسپوږمې یوله بله سره راښکاره شي. مخکېنی ایت د«نبوت دلمر»اود«ولایت دسپوږمې»دیوځای کیدلو خبرورکوي. درسول اکرم په عصر کې (ماه ولایت)یعنی دولایت سپوږمې حضرت امیر ؤ.په دې عصر کې حضرت عبدالبهاء اوحضرت ولي امرالله دامقام اودا نقش په غاړه لرل.حضرت عبدالبهاء همیشه دپلار حضرت بهاءالله سره یوځای ؤاوله هغه وروسته ئې دپروردګار رڼا ټول جهان ته رسوله اوروسته ئې دا مسئولیت حضرت ولي امرالله ته وسپارل.

ځرنګه چې داایتونه دراتلونکې پورې ارتباط لري .په اوله درجه کې زمونږ دعصر«دوه سپوږميو»ته اشاره کوي.چې ديو روح په شان ديوبل پسي دولايت مسئوليت سرته ورسول.

## اسمان،ځمکه

**وَمَا قَدَرُوا اللهَ حَق قَدْرِهِ وَالْارْضُ جَمِيعًا قَبْضَتُهُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ وَالسماوَاتُ مَطْوِياتٌ بِيَمِينِهِ .**

**دزمر سورت،۶۷-ايت**

خلک دپروردګار په قدر هغسې چې شايداو بايد وي نه پوهيږي.دقيامت په ورځ د ځمکې ټوله ساحه دهغه دقدرت په قبضه کې وي. اواسمانونه دهغه په ښي لاس کې ښکته شوي وي.

کومه ځمکه دهغه دقدرت په قبضه کې وي؟دخلکو دزړونو اودروح ځمکه، په کومه ورځ داپيښه رامنځ ته کيږي؟ په ورځ دقيامت چې دزمان دموعود دقيام

ورځ ده .کوم اسمانونه راښکته کيږي؟دمخکنيو اديانو اسمانونه.

**«اِذَاالسمَاءُ انفَطَرَتُ »داديانود اسمان څخه مقصد دی. چې په هر ظهور کې پورته کيږي اودبل ظهور لپاره څيرې کيږي.۲۹**

**حضرت بهاءالله**

په ايقان کتاب کې ،حضرت بهاءالله داسمان دکلمې په هکله مختلفې معنا ګانې ذکر کړي دي.

**داسمان لفظ اوکلمه دپيغمبرانو په بيانونو کې دمختلفو پوړيو لپاره راغلې ده.مثلاً دامر اسمان،دمشيت اسمان دارادې اسمان دعرفان اسمان،ديقين او ايقان اسمان اودتبيان اسمان... ۳۰**

**حضرت بهاءالله**

## روښنائې،اسمانونه،ځمکه

**اللهُ نُورُ السمَاوَاتِ وَالْاَرْضِ .**

**دنورسورت، ۳۰-ايت**

---

❖ دلمر دسپوږمې ديوځای کيدلو بله معنا:حضرت باب هم پيغمبرؤ، (محمد)اوهم امام (علی) .

❖ کله چې اسمان څيرې شي.

پروردګاردځمکې اواسمانونو روښنائې اونور دی.
پروردګارد «کومو اسمانونو»رڼا ده ؟دادیانو داسمان.
پرورګار دکومې«ځمکې رڼا ده ؟دخلکو دزړونو اوروحونو دځمکې.

**وَيُنَزِّلُ عَلَيْكُم مِّن السمَاء مَاء ل يُطَهِّرَكُم بِهِ وَيُذْهِبَ عَنكُمْ رِجْزَ الشيْطَانِ وَلِيَرْبِطَ عَلَ قُلُوبِكُمْ وَيُثَبِّتَ بِهِ الاقْدَامَ .**

**دانفال سورت، ۱۱-ایت**

پروردګار پرتاسې داسمان څخه اوبه راوروي. ترڅو تاسې پاک کړي. اودشیطان داغ له تاسې څخه پورته کړي. ترڅو ستاسې زړونه ثابت شي. اوهم ستاسې قدمونه محکم اوپایداره شي.

- له کوم اسمان څخه اوبه راوروي ؟ دالهي دامر اوارادې داسمان څخه .

- په کومو اوبو سره بنده ګان پاکوي؟ دژوند په اوبو. (اب حيات).
- دکوم «شيطان»توړداغ له منځه وړي؟ دنفس او،هوا دشيطان تور داغ .
- کوم قدم ثابت اومحکموي؟په خدای باندې دايمان قدم.۳

**يُرِيدُونَ ان يُطْفِؤُواْ نُورَ اللهِ بِافْوَاهِهِمْ وَيَابَ اللهُ الاان يُتِمِ نُورَهُ. دتوبه سورت،۳۲-ايت** هغوې غواړي دخدای روښنائې په خوله باندې خاموشه کړي. اما پروردګار ئې روښنائې لاځلوي. اوخپله نقشه سرته رسوي.

کومه روښنائي خلک غواړي خاموشه کړي؟هغه رڼا او روښنائې چې دپروردګار دارادې داسمان دلمر نه يعنی دزمان دموعود څخه په جهان ځليږي. په کومه خوله ؟دتهمت اوددروغو نه په ډکه خوله.

# اسمان ،دود

**بَلْ هُمْ فِي شَكٍّ يَلْعَبُونَ فَارْتَقِبْ يَوْمَ تَاتِي السمَاء بِدُخَانٍ مبِين يَغْشَ الناسَ هَذَا عَذَابٌ الِيمٌ رَبنَا اكْشِفْ عَنا الْعَذَابَ انا مُؤْمِنُونَ ان لَهُمُ الذِّكْرَى وَقَدْ جَاءهُمْ رَسُولٌ مبِينٌ ثُم تَوَلوْا عَنْهُ وَقَالُوا مُعَلمٌ مجْنُونٌ .**

**دخان سورت،۱۴-۹،ايتونه**

بلې هغوې (په هغه ورځ)په شک اوشبهې گرفتاره وي. اوپه خپلو سرگرميو کې مشغول وي ،دهغې ورځې په انتظار اوسه. چې په اسمان کې دود پيداشي. او خلک سره ورک کړي دا دردناک عذاب دی .



---

---

خلک به وائې داعذاب رانه لرې کړه ،مونږ ايمان راوړو.(پروردگار دهغوې په ځواب کې وائې)څه گټه ئې لرله کله مې چې خپل «ذکر»هغوې ته ورولیږل ؟ ايامتذکرشول؟ برسيره پر هغه حضرت بهاء الله پيغمبر دښکاره نښو سره ورغی .دهغه نه ئې هم مخ واړول ،اوهغه ته ئې ليونـې معلم وويل.

مناسبه ده. چې مخکښني ايتونه بررسي کړو:

**۹-ايت: بَلْ هُمْ فِي شَكٍّ يَلْعَبُونَ.**

خلک په شک اوشبه کې دي. اوپخپلو سرگرميو کې مشغول دي.

داصفت په پوره توګه زمونږ. دروزګار دخلکو په وجود کې دی .کله چې دموعود دظهور «خبر»واوري.شک اوشبهې په سترګه ورته ګوري.باور ئې نه راځي. چې په دي «خبر» کې به حقیقت وي اوکه نه. زمونږ دعصر خلک په دنیا ئې کارونو اخته دي.

**۱۱ــ ۱۰ ۱یتونه: فَارْتَقِبْ يَوْمَ تَاتِي ال سمَاء بِدُخَانٍ مبِين يَغْشَ□ الناسَ هَذَا عَذَابٌ الِيمٌ.**

دهغې ورځې په انتظار کې اوسه. چې په اسمان کې دود پیداشي اوخلک سره ورک کړي . دادرد ناک عذاب دی .

«دود»دوریځې په شان یو خنډ دی. دپروردګار اوزمونږ ترمنځ. دپرورګار څخه لریوالی اودخدای اودزمان دموعود دپیژندنې څخه محروم پاتې کیدل، دانسان دروح لپاره په دواړو جهانونو کې لوی عذاب دی .

**۱۲-ایت:رَبنَا اكْشِفْ عَنا الْعَذَابَ انا مُؤْمِنُونَ.“**

(کله چې خلک وروسته له دې سرای دسفر څخه په عذاب ګرفتاره شي. وائي چې
اې پروردګاره زمونږ څخه عذاب لرې کړه. مونږ په تاايمان راوړو.

**۱۳-۱۴ ایتونه: ان لَهُمُ الذِّكْرَى وَقَدْ جَاءهُمْ رَسُولٌ مبِينٌ ثُم تَوَلوْا عَنْهُ وَقَالُوا مُعَلمٌ مجْنُونٌ.**



---

«ذکر»هغوې ته څه ګټه وکړه ؟ (ایا متذکر شو؟)پيغمبر دښکاره نښانو سره راغی .دهغه څخه ئې مخ واړول .اوهغه ته ئې لیونې معلم وويل.

په همغه ترتیب چې په کراتو مولیدلی
دی،د«ذکر»کلمه دحضرت باب له القابو څخه ده. هغه
حضرت په خپلو اثارو کې دالقب اوهغه ته ورته
جوړښتونه دبل هرلقب څخه زیات کارولي دي.داایت
په روښانتیا سره وښائي چې«ذکر»یواځې قران ته
اشاره نه ده، «ذکر»هغه شخص دی. چې پروردګار
دهغه راتګ ته اشاره کوي .اوداشخص درسول سره
مقایسه شوی دی ،هغه رسول چې خلکو هغه ته لیونې
وویل.

**هذا ذکر من عندالله لمن شاء اتخذ ال□ ذکرالله سبیلا .۳۱**

**حضرت باب**

دا«ذکر»دخدای له جانبه دی .هرڅوک غواړي دخدای
د«ذکر»لاره وټاکي.

**انّ الّذین یکفرون بایات الله فاولئک هم ف□ ضلال بعید لن یقبل عملهم حرف و اولئک هم اصحاب الجحیم و انّ الّذین یحکمون بین النّاس بالباطل بعد قد سمعوا ایات الله و یعرضون حکم الذّکر فاولئک هم المشرکون .۳۲**

**حضرت باب**

هغه چې دخدای دایتونو څخه منکر دي. دګمراهانو
څخه دي .دهغوې هیڅ عمل په زړه پورې نه دی
.هغوې ددوزخ اوسیدونکي دي.څوک چې الهي ایتونه

اوري.اود«ذكر»دحكم څخه سرغړونه كوي.اوپه باطلو حكم كوي.له مشركانو څخه دي.
داسلام علماو په دې حقيقت چې«ذكر»شخص ته اشاره ده،نه واقعې ياكتاب ته، اقراركړى دى.اما دهغه دپيژندلو څخه عاجز دي .په دې باره كې مختلف افكاردي.يوسفعلى عقيده مند دى. چې «ذكر»شخص ته اشاره ده. د«الامين»په نوم چې دقريشو په طايفه كې دحضرت محمد دظهور څخه دمخه ظاهر شو.)

## داسمان لوله كيدل

**يَوْمَ نَطْوِي السمَاء كَطَيِّ السِّجِلِّ لِلْكُتُبِ كَمَا بَدَانَا اولَ خَلْقٍ نعِيدُهُ. دانبياء سورت،۱۰۴-ايت** هغه ورځ چې اسمان دكاغذ په څير لوله كوم .په همغه ترتيب چې عالم مې له پيل نه پيداكړې.نوى عالم پيداكوم.

کوم «اسمان »لوله کيږي؟دمخکېنې ائين اسمان. کوم عالم نوی پيداکوي؟معنوي اوروحاني عالم ،دنوي ائين په سيوري کې دنوي اسمان ،نوي لمر، دنوې سپوږمې اونوو ستورو سره.

## اوه اسمانه،ورځ،

## چراغونه

**فَوَاوْحَ□ فِي كُلِّ سَمَاء امْرَهَا وَزَينا السمَاء الدنْيَا قَضَاهُن سَبْعَ سَمَاوَاتٍ فِي يَوْمَيْن بِمَصَابِيحَ وَحِفْظًا ذَلِكَ تَقْدِيرُ الْعَزِيزِ الْعَلِيمِ .**

**دفصلت سورت،۱۲-ایت** هغه اوه اسمانه مې په دوه ورځو کې پوره کړل .اوپه هراسمان کې ئې د«امر»وحې راغله .اوددې دنيا اسمان مې ستاسې دساتنې لپاره په چراغونو بنکلې کړ.دادتواناااودانا پروردګار نقشه ده .

- **«سَبْعَ سَمَوَاتٍ»**:اوه اسمانه ،اوه اسماني ائينواوادیانو ته اشاره ده. اويا دبشر دتکامل اوه مرحلې دي.
- **«فِیْ يَوْمَيَنْ»**:ددوه ورځو په اوږدو کې. دبشر په معنوي تکامل کې دوه مرحلی یاپړاوونه

وجود لري.د«پیدایښت اوروزنې
مرحله»اود«کمال یا بلوغ مرحله».مخکنیو
ادیانو هریوه زمونږ په معنوي رشد اوپالنه کې
ځانګړې برخه لرله .دبهائي ائین په ظهور سره
دبشر په تاریخ کې نوې مرحله پیل شوه.
دپروردګار دحکومت په تاسیس په تدریج سره
بشر خپل داخلي استعدادونه په پوره کمال سره
ښکاره کړي.

ددې دوه ورځوڅخه لمړې ورځ، د«رشد ورځې»ته اشاره ده.اوهغه دوهمه ورځ د«کمال ورځې»ته اشاره ده . دبشر تاریخ ،دبهائي ائین دظهور څخه دمخه د«نبوت عصر»اودبهائي ائین دظهور څخه وروسته ،د«تحقق عصر»نومول شوی دی.«نبوت»یعنی خبر ورکول .ټولو ادیانو او ائینونو دبهائې ائین دظهور خبر ورکړی دی.مژده اوزیری ورکړی دی. چې باالاخره د«خدای ورځ»رارسیږي ، دخدای وعده تحقق پیداکوي ،اوعالم به دبلوغ اوکمال مرحلې ته رسیږي.

- «"**وَاوْحَ فِي كُلِّ سَمَاء أَمْرَهَا**:" اوداسمانونو څخه هريوه ته دهغه دامر «وحې» وشوه.دهغه داديانو دهريوه څخه دپروردګار ائين اويا «امر»دهغه اسماني ائين پيغمبر ته ئې وحې وشوه.
دبل ځل لپاره ګورو چې ددوه کلمو استعمال دلاندې ايت سره مطابق ده:

**يُدَبِّرُ الْامْرَ مِنَ السمَاء الَ الْارْضِ .**

**دسجده سورت،۵-ايت ۱.ترجمه**

:پروردګار دځمکې «امر»د«اسمان»څخه اداره کوي.دځمکې دکارونو ترتيب دخدای په لاس کې دی.)

**۲.ترجمه**:پروردګار خپل«امر» داسمان نه ځمکې ته ليږي.

مخکښنی ايت دفصلت په سورة کې په پوره روښانتيا سره د«امر»دکلمې معنا مونږ ته رازده کوي. دکومې

لارې پروړګار مونږ ته خپل«امر»رالیږي؟دوحې له لارې:

**وَاوْحَ فِي كُلِّ سَمَاء امْرَهَا .**

**دفصلت سورت،۱۲-ایت**

۱ **.ترجمه:**په هرائین کې خپل امر دوحې له لارې مونږ ته رالیږي.

۲ **.ترجمه:**دهرائین اسمان دوحې په زیوراتو ښکلی کوي.

**وَزَينا السمَاء الدنْيَا بِمَصَابِيحَ**:ددې دنیا اسمان مې په چراغونو ښکلی کړی دی.په همغه ترتیب چې اسمان په ستورو ښایسته کیږي،باتقوا علما اودانشمندان هم الهي ائین اسمان ته ښکلا اوښایست ورکوي.

**قُلْ مَن رّبُّ السمَاوَاتِ السبْعِ .**

**دمؤمنون سورت،۸۶-ایت**

ووایه!داوو اسمانونو پروردګار څوک دی؟

دکومو«اسمانونو»پروردګار؟داوو لویو ائینونو داسمانونو پروردګار .

ددې ایت په باره کې دبل ځل لپاره چې دموعود دظهور تاریخ په هغه کې پټ دی ،فکر او کتنه وکړئ:

**يُدَبِّرُ الْامْرَ مِنَ السمَاء الَ الْارْضِ .**

**دسجده سورت،۵-ایت**

په مخکېني ايت کې د«اسمان »څخه مقصد څه شی دی؟ايا دخدای «امر»دځمکې په شان په اسمان کې هم معلق اوځوړند دی ؟ايا خدای په «اسمان »کې دی.
اودهغه ځايه څخه مونږ ته څه شی راليږي. اويا هم كوم تصميم نيسي؟ښکاره ده چې«اسمان»په مخکېني ايت کې معنوي معنا لري،نه ظاهري.
دانجيل اصطلاح د (حضرت مسيح درجعت)په باره کې له«اسمانه»هم برابره ده، دقران داصطلاح سره د اسمانه څخه دپروردګار دائين او«امر»دراتلو په باره کې .ځکه چې هرپيغمبر دپروردګار دائين او«امر» اودايمان هديه راوړلو لپاره دالهي ارادې له اسمان څخه دې جهان ته قدم ږدي .
وروسته له هغه چې دپروردګار «امر»له اسمان نه ځمکې ته راځي ،څه کيږي؟

**ثُم يَعْرُجُ الَيْهِ فِي يَوْمٍ كَانَ مِقْدَارُهُ الْفَ سَنَةٍ مِّما تَعُدونَ .**
**دسجده سورت،۵-ایت** وروسته (هغه امر)دیوې زرکلنې ورځې په موده کې اسمان ته بیرته ګرځي.
دپیام راوړونکی اوپیام راتلل ،که څه هم یوځل دخدای له لورې مونږ ته اودپیام راوړنکی اودپیام بیرته ګرځیدل دخدای لورې ته ،دلمر په څیر ئې راختل اوپریوتل قانوني دي. ثابت او تغیر ناپذیر:



دبهائي ائين بيرته ګرځيدل هم دخداى لورته ،لکه دنوروائينونو بيرته ګرځيدلو په شان په يو مقرر وخت کې پاى ته ورسي .په بهائي ايتونو کې په روښانتيا سره وړاندوينه شوې ده. چې داائين هم پاى لري .يوځل بيا وروسته دزرو کلونو يازيات يوبل پيغمبردبشر دهدايت لپاره ظهور وکړي.

**وَيَوْمَ يُنفَخُ فِي الصورِ فَفَزِعَ مَن فِي السمَاوَاتِ وَمَن فِي الْارْضِ الا مَن شَاء اللّٰهُ.**

**دنمل سورت ،۸۷-ايت** په کومه ورځ چې شپيلې ووهل شي .وروسته له هغه به ، دځمکې اواسمانونو اوسيدونکي په فرياد اوچغو سر شي .مګرهغوې چې دپروردګار په اراده له دې فرياد څخه خلاصون پيداکړي اووساتل شي.

- څه اوازونه اوغږونه پورته کیږي؟داسماني موعود غږونه اواوازونه. څه شی راټوکول اوپوکول کیږي؟الهي روح هغه روح چې مړو ته همیشنی ژوند وربخښي.
- ولی خلک په فریادکې لویږی؟په دې سبب چې ددې «لوی خبر»اواسماني غږ داوریدلو تحمل نه لري .
- کوم کسان په اسمانونو کې دي؟مذهبي علما اوپیشوایان لکه د مخکنیو ائینونو داسمانونو دستورو په څیر ځلیږي.
- کوم کسان په ځمکه کې دي؟دهغو پیشوایان پیروان چې هغو ستورو ته هدایت شوي دي.
- کوم کسان ساتل شوي دي؟هغه کسان چې دنیت په خلوص اوبنده ګې سره دنوي ائین او«لوی خبر»غږ ته غوږ ونیسي.

**وَنُفِخَ فِي الصورِ فَصَعِقَ مَن فِي ا لسمَاوَاتِ وَمَن فِي ا لْارْضِ اِلا مَن شَاء اللّهُ ثُم نُفِخَ فِيهِ اخْرَى فَاذَا هُم قِيَامٌ يَنظُرُونَ وَاشْرَقَتِ ا لارْضُ بِنُورِ رَبِّهَا... دزمر سورت، ۶۹-۶۸،ایتونه**

په شپیلې کې پوکې کیږي اووروسته هرڅوک چې په اسمانونو کې دی اوهرڅوک چې په ځمکه کې دی بیهوشه کیږي،مګرهغه څوک چې خدای ئې وغواړي (هغه به وښائي) د بل ځل لپاره په هغه شپیلې کې پوکې کیږي اوهغوې په پښوودریږي او ګوري. اوهغه وخت ئې د پروردګار په روښنائې ځمکه روښانه شي...

- ولې د«ځمکې اواسمان»اوسیدونکي ددې شپیلې په پوکولو سره بې هوشه کیږي؟ددې لپاره چې ددې غږ داوریدلو تحمل اوزغم نه لري.

- ولی دوه ځلې شپیلې وهل کیږی؟ددې لپاره چې اسماني کتابونه ددوه موعودو دظهور وعده ورکړې ده .
- کوم کسان په پښو ودریږي اوګوري؟هغه چې دغلفت دقبر څخه پورته کیږي. اودالویه پیښه پخپلو سترګو ګوري.
- ځمکه په کومه روښنائي روښانه کیږي؟«**بِنُورْ رَبُّهاَ**»دپروردګار په نور. «بهاءالله»په معنا کې برابر دی دربّ د«نور»سره .

داایتونه هم ددوه موعودو ظهور ته ، اویا دوه قیامته ته اشاره کوي:

**يَوْمَ تَرْجُفُ الراجِفَةُ تَتْبَعُهَا الرادِفَةُ .**

**دنازعات سورت،۷-۶،ایتونه** په هغه ورځ چې لړزه کوونکی په لړزه راشي ،اوبله لړزه دهغې پسې راځي.

وروسته ددې ائین دظهور څخه ،،نوی عصر دانسان په ژوند کې پیل شي اومخکېنی نظام متزلزل شي.

**قد اضطرب النّظم من هذا النّظم الاعظم...الّذی ما شهدت عين الأبداع شبهه .۳۳**

**حضرت بهاءالله**

دجهان نظم له دې «لوی نظم»څخه ګډوډ شي...دهغه نظم نه چې عالم ئې شبيه اوورته نظم نه دی ليدلی.



## دالـهي کلام
## نـاسم تفسير اوتـعبير

په دې کې شک نشته چې دخلکو دګمراهې يوموجب، دمتشابه ايتونو په معنا نه پوهيدل دي .ددې په ځای چې مؤمينان ددې کلماتو معنا دزمان دموعود څخه پوښتنه وکړي، دپيشوايانو څخه ئې پوښتنه کړې ده

.هغوې هم دخپل مقام دساتلو لپاره دناسم تفسير له لارې خلک ګمراه کړې دي .که دکلمې ظاهری معنی ئې خوښه نه وي ،يعنی هغه معنا ئې دخپلو شخصي منافعو سره په مغايرت کې وليده .هغې کلمې ته ئې ظاهري معنی ورکړه.

يوځل بيا د«خاتَم»اود «وسط»دکلمو په تفسير فکر وکړئ .په همغه ترتيب چې ومو ليدل ، داسلام ډير علمااوپيشوايان د«خاتم»دکلمې معنا چې د«مهُر»په معنا ده ،داخرين معنی اخيستې ده . په څه دليل؟ ددې لپاره چې «مهُر»دليک په اخر کې لګول کيږي.داډول تفسير ددې په شان دی. چې د«سلام»دکلمې څخه«اولين»او د«وداع اومخه ښې »د کلمې څخه داخرين معنا واخلو ولی؟ددې لپاره چې «سلام»دليدلو په اول کې راځي او «مخه ښه»دليدو په اخر کې راځي. اوياداچې د«سبائې»څخه د«اولين»معنا اود «ماسپښين»څخه د«وسط»معنا اود«شپې څخه داخرين»معنا واخلو ولې؟ددې لپاره چې سبائې دورځې اول دی ،ماسپښين دورځې وسط دی اوشپه دورځې اخر دی .

وګورئ چې دانا پرورګار په څومره واضح اوښکاره توګه دخپل کلام دناسم تفسير اوناسمې استفادې څخه مونږته له مخکی خبر راکړی دی:

**هُوَ الذِيَ انزَلَ عَلَيْكَ الْكِتَابَ مِنْهُ آيَاتٌ محْكَمَاتٌ هُن أَمُّ الْكِتَابِ وَاخَرُ مُتَشَابِهَاتٌ فَاما الذِينَ في قُلُوبِهِمْ زَيْغٌ فَيَتبِعُونَ مَا تَشَابَهَ مِنْهُ ابْتِغَاء الْفِتْنَةِ وَابْتِغَاء تَاوِيلِهِ.. دال عمران سورت،۷-ایت**

قران اوبهاءالله



---

داکتاب دپروردګار له لوری په تانازل شوی دی .دهغه ځنې ایتونه د«محکماتو»څخه دي. هغه ایتونه دکتاب اساس اوپایه جوړوي.اوځنې نور ئې له «متشابهاتو»څخه دي. دهغه چاپه زړه کې چې دکږوالي اوانحراف خواته میل لري. له متشابه معنا څخه د(محکم ایت)پیروي کوي.په دې وسیله دخدای

مقصد ته تغير ورکول دخلکو په منځ کې دفتنې موجب کيږي.
ښکاره ده ،کله چې فرمائي :دهغه«متشابه معنا څخه پيروي کوي.»منظور دادی چې د «متشابه »وينا معنا چې له «محکماتو»څخه ده پيروي کوي. اوکه نه دمتشابه معنی څخه پيروي کول چې د«متشابهاتو»څخه دی. خطانه ده ،بلکه لازم اومعقول ده.
«وسط»داسې يوه کلمه ده. چې هيڅکله تفسير ته اړتيا نه لري.تاسې وائي«زه د جمعيت په وسط کې وم»په دې جمله کې هيڅ تشبه ته ضرورت نشته .ستاسې دوينا باطن اوظاهر يو دی. اما که موويلی وی «جمعيت زيات ؤ،غوغا وه ،زړه ئې راته ونيو»مونږ پوهيدلو چې ستاسې منظور د«زړه دنيولو څخه»يوبله غيرې ظاهري معنا لري،هغه صورت کې ستاسې وينا له متشابهاتو څخه ده.اما که ستاسې اوله جمله تفسير کړو. او ووايو ستاسې منظور(دوسط جمعيت څخه وم)دادی چې د«قداو هيکل څخه متوسط وم»څنګه چې «وسط»دمتوسط معنی هم ورکوي،ستاسی وينا چې د «محکماتو»څخه ده. يعنی ظاهري معنا لري،په «متشابهاتو»چې دظاهري معنا څخه بله معنا لري تبديله کړې ده.په همغه توګه چې ذکر ئې وشو،داعيناً

همغه کار دی. چې داسلام علما اوپیشوایانو یوې ډلې د«وسط»اود«خاتَم»دکلمو سره کړی دی.دهغې کلمې چې اصلي معنا ئې «اخر»نه ده. د«اخر»معنا ئې ورکړې ده.اوهغه کلمې ته چې اصلي معنا ئې«وسط»ده .«دمیانه رو»معنی ورکړې ده :

**دتحریف اولاس وهنې مقصد همدا دی. چې نن ورځ دقران ټول علما په هغه مشغول دي، اودادکتاب هغه تفسیر اومعنا ده. چې پخپل میل او خوښه ئې سرته رسوي.۳۴**

**حضرت بهاءالله**

**يُحَرِّفُونَ الْكَلِمَ عَن موَاضِعِهِ ـدنساء سورت، ۴۶ـايت**
دکلماتو معنا ته تغيرورکوي.




دقران ايتونه يوځل بيا ووائې. اووگورئ. چې دپروردگار وړاندوينه د هغه دکلام دناسمې ګټې څخه دکلماتو په تفسير کې لکه د«وسط»او«خاتَم» دکلماتو په باره کې ترکومه حده تحقق موندلی دی .ددې ايت په باره کې ناسمه ګټه له همدې دوه کلماتو څخه نازل شوې ده:

**فَاما الذِينَ في قُلُوبِهِمْ زَيْغٌ فَيَتبِعُونَ مَا تَشَابَهَ مِنْهُ ابْتِغَاء الْفِتْنَةِ وَابْتِغَاء تَاوِيلِهِ.**

**دال عمران سورت،۷-ایت** اما دهغه کسانو چې په زړونو کې کږوالی اوانحراف دی. دهغه دمتشابه معنی څخه د «محکم ایت»پیروي کوي.په دې وسیله دخدای مقصد ته تغیر ورکول، دخلکو په منځ کې دفتني سبب شوی دی.
که دکلماتو دمشخصې اوروښانه معنا څخه دناسمې ګټې امکان وي. لکه د«وسط»کلمې څخه وګورئ دمتشابه کلماتو دناسمې استفادې لپاره څومره ډیر امکانات دي.

د«متشابهاتو»په باره کې دانسان ذهن پوره ازادي لري .چې هرې خواته تمايل لري پرواز وکړي.هيڅ ډول خنډ به په دې لار کې ونهويني.
پروردګار مونږ دمختلفو لارو ازمائي .دمتشابه کلماتو کارول يوه دهغو لارو څخه ده :
**داټول مرموز کلمات اومشکل اشارات چې دپيغمبرانو په امر کې صادر او ظاهريږي. مقصد ئې دبنده ګانو ازمايش اوامتحان دی.۳۵**
**حضرت بهاءالله**
**اما الذِينَ كَفَرُواْ فَيَقُولُونَ مَاذَا ارَادَ اللّهُ بِهَذَا مَثَلاً يُضِل بِهِ كَثِيراً وَيَهْدِي بِهِ كَثِيراً وَمَا يُضل بَهِ الاالْفَاسِقِينَ .**
**دبقره سورت،۲۶-ايت**
هغه کسان چې کافران شوي دي وائي:پروردګار ددې مثال[متشابه وينا]څخه څه غواړي؟ هغه په دې ډير ګمراه او ډيرو ته هدايت کوي. يواځې فاسق خلک به په هغه ګمراه کړي.
حضرت مسيح هم ځنې اسراراومعنوي حقايق دمثالونو اوداستانونو له لارې خلکو ته زده کول:
وروسته له هغه کله چې هغه (۱۲)تنه اوټول پيروان ئې دهغه سره يواځې ؤ ،له هغه پوښتنه وکړه :

**«چې ددې داستان نه منظور څه ؤ؟»عیسی ځواب ورکړ:خدای تاسې ته دااجازه درکړه. چې دهغه دسلطنت اوملکوت په اسرارو پوه شی.ولې دهغوې لپاره چې له ما څخه پیروي نه کوي ،باید هرڅه ورته دمثال اومعما په شکل بیان شي.لکه څنګه چې یودپیغمبرانو څخه ویلي دي :ګوري اواوري،اما په څه نه پوهیږي. اودخدای لورې ته نه ورګرځي. ترڅو ګناهونه ئې وبخښي،وروسته ئې هغوې ته وویل:«که ددې مثال نه منظوردرک نه کړي.هغه نورمثالونه چې وایم په هغه به څه پوه شي؟**

**مرقس انجیل ۴فصل،۱۳-۱۰،ایتونه**

دموعود دظهور نښانو ناسم تفسیر یواځې د مسلمانانوخصوصیت نه دی. بلکه دنورو ادیانو پیروانو هم دالاره وهلې ده .دې نمونې ته توجه وکړئ .حضرت مسیح فرمائي:

زما راګرځیدل اورجعت د«غله»په شان دی . اوددې له پاره چې په هغه وخت کې وپیژندل شي.

---

---

خپلو پیروانو ته توصیه وکړه ،چې همیشه بیدار اواګاه اوسئ. خدای مه کړه چې د غفلت په خوب ویده شی.
اودخپل موعود دپیژندنې څخه پاتې شي.
کله چې مسیحیانو ته دعوت وشي.چې دبهائي ائین په تحقق شروع وکړئ.په ځواب کې وائې:دراتګ منظور دغله په شان دادی. چې موعود دیو عادې انسان په څیر راځي. اودهغه هویت دغله په شان دبې استعداده خلکو لپاره پټ پاتې کیږي.بلکه مقصد دادی. چې مسیح «ناڅاپه »راځي. دغله په شان له مخکې خبر نه ورکوي او«ناڅاپه»راځي.
وګورئ څومره په اسانې سره د«غله»اصلي معنا ته تغیر ورکول دحضرت مسیح دوینا اصلي مقصد څخه لرې کوي.
د«غله مثال»راوړلو اصطلاح له «محکماتو »څخه ده .داهغه اصطلاح ده. چې توضیح او تفسیر ته اړتیا نه لري. په داسې حال کې چې دمسیحیانو دمیل مطابق نه

ده. دهغې اصلي معنا ته تغير وركوي.كه د«محكمې وينا»تغير اوتحريف دومره اسانه وي.نور نوښكاره ده، چې د«متشابه وينا»تغير اوتحريف څومره اسانه كار دى.

ايا دمخكېنيو اديانو علما اوپيشوايان چې پخپلو شخصې ګټو هم نه پوهيدل. اوحتى ددين په اصولو كې هم په اختلاف كې دي،د«متشابه كلماتو»دمعنا په دركولو قادر دي؟دقران دحكم په اساس هيڅ يوانسان په غير دزمان دموعود څخه دمتشابه كلماتو دتفسير اجازه نه لري. ټول خلك حتى هغه چې دعلم والا دى.

دګناهونواواشتباه په درياب كې غوټې وهي. يواځې موعود د خداى ويناكونكى دى. اويواځې هغه قادردى. هرڅه چې وغواړي ووائي اوهرڅه چې وغواړي وئې كړي.دهغوې علم په داسې يوحد كې دى. چې كولاى شي، له يوې وينا څخه (٧١)معنا ګانې ښكاره كړي.كه څه هغه د«محكماتو»څخه وي. اويا هغه دمتشابهاتو څخه وي.دهغه حديث په اساس چې دحضرت باب اوحضرت بهاءالله په اثارو كې تائيد شوى دى.

**نحن نتكلم بكلمة و نريد منها احدى و سبعين وجهاً و لنا لكل منها المخرج .٣٦**

مونږیوه کلمه وایو. اودهغې یوې کلمې څخه که د(۷۱)معنا ګانو اراده وکړو. اوهره یوه ئې له هغو څخه کولی شو توضیح ورکړو.
دپروردګار دشهادت په اساس ،هرڅوک چې دزمان دموعود دتفسیره مخالفت وکړي. له دروغجنو څخه دی .ځکه دمسلمان کیدلو لپاره لازم دي، چې دقران حکم ومني. نه ردول اونه دکتاب دحکم نه انکار کول: **لِيُبَيِّنَ لَهُمُ الذِي يَخْتَلِفُونَ فِيهِ وَلِيَعْلَمَ الذِينَ كَفَرُواْ انهُمْ كَانُواْ كَاذِبِينَ. دنحل سورت،۳۹-ایت** البته پروردګار دهغه کس «حقانیت»چې دهغه په باره کې دنظر اختلاف لري. روښانه کوي، اوهغه څوک چې دهغه دامر څخه انکار کوي،باالاخره پخپلو دروغو به پوه شي.

حضرت باب هم دامطلب تائيدوي اوفرمائي :
**په راتلونکي ظهورکې،صادقان له غيروصادقانوڅخه دموعود په منلوسره ممتازاو جدا کيږي.۳۷**
کوم څوک دی. چې خلک دهغه په باره کې دنظر اختلاف لري؟معلومه ده. چې داهغه دزمان موعود دی. چې دخپلو اثارو اسرار ښکاره او دروغجن دربنتينو څخه جدا کړي.
**وَمَا انزَلْنَا عَلَيْكَ الْكِتَابَ الا لِتُبَيِّنَ لَهُمُ الذِي اخْتَلَفُواْ فِيهِ وَهُدًى وَرَحْمَةً لِّقَوْمٍ يُؤْمِنُونَ .**

**دنحل سورت،۶۴-ايت**

مادقران کتاب پرتا نازل کړ. ترڅو دهغه «چاپيژندنه يعنې»«دموعود پيژندنې »په باره کې چې کوم دنظر اختلاف دی. هغوې ته روښانه کړي. څوک چې دمؤمنينو لپاره درحمت اوهدايت سرچينه ده.
پاسنی ايت مونږ ته رازده کوي چې:

- دخدای دوعدې دسرته رسولو په وخت کې به مسلمانان دموعود په باره کې دنظر اختلاف ولري.
- دقران هدف دلارې روښانول اودهغه مؤمينانو سره کومک کول دي.

---

- دهغه مسلمانانو په منځ کې چې دنظر اختلاف لري، هغوې چې په رښتيني مؤمينان دي دموعود هدايت به ومني.

دټولو نصيحتونو اودقران داخطارونو سره داسلام اکثره علماو دخدای حکم ناديده اونه ليدونکی ګڼلی. دخيالونو اوتصورونو په بنده ګې بوخت وه اودي:

**لمّا جاء الوعد و ظهر الموعود اختلف النّاس و تمسّك كلّ حزب بما عنده من الظنون والاوهام .**

**۳۸**

**حضرت بهاءالله**

ځرنګه چې دپروردګار دوعدې دسرته رسيدلو وخت راورسيد. اوموعود ظاهره شو،خلک په اختلاف کې

شول. اوهرې ډلې اوفرقې پخپلو خامو خيالونو اوتصورونو خپل زړونه وتړل .

**بشّرت العباد بظهورك الاعظم و امرك الاتمّ فلمّا ظهر اختلفت الامم و ظهرالانقلاب فی الارض و السماء .۳۹ حضرت بهاءالله**

«خلكو»ته دې دلوی ظهور اوخپل كامل ائين زيری وركړ. اماستا ظهور دخلكو په منځ كې داختلاف سبب شول. اوپه ځمكه اواسمان كې انقلاب جوړكړ.

وروستي ايتونه هم وښائي چې دنظر اختلاف په باره كې ،مسلمانان نه بايد پخپلو تفاسيرو متكي شي ، بلكه دموعود منتظر پاتي شي. ترڅو دقيام اوظهور په وخت كې(دقيامت په ورځ) دپروردگار حكم اوقضاوت ښكاره كړي:

**وَنَزَلْنَا عَلَيْكَ الْكِتَابَ تِبْيَانًا لِّكُلِّ شَيْءٍ وَهُدًى وَرَحْمَةً وَبُشْرَى لِلْمُسْلِمِينَ... لَيُبَيِّنَن ,لَكُمْ يَوْمَ الْقِيَامَةِ مَا كُنتُمْ فِيهِ تَخْتَلِفُونَ . دنحل**

**سورت،۹۲- ۹۶،ايتونه**

ما پرتا كتاب نازل كړ. چې هرڅه په هغه كې بيان شوي دي.(دهرڅه توضيح په هغه كې شته دی).

داكتاب دالهي هدايت اورحمت نښانه ده. اودمسلمانانو لپاره ښه خبر لري...دقيامت دورځې په اړه چې كوم اختلاف لری. هغه به روښانه كړو.

پيغمبران دالهي اسرارو منبع دي. اوداسماني ايتونو درمزونو اومعناګانو څخه اګاه دي:

**انا نحن قد نزلنا علی عبدنا هذاالكتاب من عند الله بالحق...فاسئلوا الذّكر تأويله فانّه قد كان بفضل الله علی آياته بحكم الكتاب عليماً.** ٤٠

**حضرت باب**



---

ما(پروردګار)په حقيقت سره دااسماني كتاب پخپل بنده نازل كړ...پس دهغه تفسير(دهغه باطني معنا )له هغه څخه چې«ذكر»دی. پوښتنه وكړئ. ځكه چې هغه دحق دفضل له مخې په دې ايتونو علم لري.

**فَاسْئَلُوا اهْلَ الذِّكْرِ ان كُنتُمْ لاَ تَعْلَمُونَ.**

**دانبياء سورت، ٧-ايت**

كه په موضوع نه پوهيږی د«ذكر»دپيروانو څخه پوښتنه وكړئ.

**اللّهُ يَحْكُمُ بَيْنَكُمْ يَوْ مَ الْقِيَامَةِ فِيمَا كُنتُمْ فِيهِ تَخْتَلِفُونَ .**

**دحج سورت، ۶۹-ايت**

البته چې پروردګاربه په ورځ دقيامت، په هغه څه کې چې اختلاف لرى. ستاسې په منځ کې قضاوت وکړي.

**ان رَبكَ يَقْضِي بَيْنَهُمْ يَوْمَ الْقِيَامَةِ فِيمَا كَانُواْ فِيهِ يَخْتَلِفُونَ .**

**ديونس سورت،۹۳-ايت** البته ستا

پروردګار به دقيامت په ورځ دهغه څه په باره کې چې اختلاف لري. دهغو په منځ کې به قضاوت وکړي.

په راتلونکې ايت کې حضرت بهاءالله دجهان خلک دعوتوي. چې دهر اختلاف لپاره دپروردګار دکلام په ميزان اواساس سنجش وکړي:

**قل هذالقسطاس الهدى لمن فى السموات والارض والبرهان الاعظم لو انتم تعرفون .قل...اياكم ان تختلفوا فيه ... ٤١**

**حضرت بهاءالله**

ووايه !دالوى دليل دى. دځمکې اواسمانونو دهدايت اوميزان لپاره ، که ئې وپيژنئ.

ووايه ...مبادا چې په هغه کې اختلاف وکړئ .

دپروردګار دشهادت په اساس ،دقران اسراردنامحرمو څخه پټ دي. يواځې نيکان اوپاک زړي، هغه اسرارو ته دلاس رسي اجازه لري:

**انهُ لَقُرْآنٌ كَرِيمٌ فِي كِتَابٍ مكْنُونٍ لا يَمَسهُ ا لا الْمُطَهرُونَ .**
**دواقعه سورت، ۸۹-۸۷ ،ایتونه** په یقین سره قران په ډیرو فضیلتونو سره اراسته اوښکلی شوی دی. پټ فضایل چې په غیر دپاک زړو څخه نور څوک هغه لمس اوپیدا نه کړي.
دپروردګار اراده همیشه داسې وه اوي به، چې بنده ګان به ئې په خلاصو سترګو او په ازاد فکر، دخلکو دفکرونو څخه ، دخپلو غوښتنو اوتمایلاتو څخه په پاک زړه دحقیقت دګوهر پلټنه وکړي.



---

**حضرت بهاءالله فرمائي: دموعود په سترګو موعود وګورئ ،اوکه دغیروپه سترګو ئې ملاحظه کړئ،هیڅکله به په عرفان اوایمان کامیابه نشئ.۴۲**
**حضرت بهاءالله** **همدارنګه**

مونږ ته نصيحت کوي. چې په پوره زيرکتيا اوپاکو غوږونو دنوروفکرونوڅخه، دپروردګار افق ته توجه وکړو .ترڅو ربښتينې (رڼا)ووينو اواسماني غږ واورو.۴۳
که يوڅوک نن ورځ په غير دخداى اودهغه دبيان ناظروي.البته هغه د لارې څخه وګرځيد . اودهغه ځاى به دوزخ وي.۴۴
حضرت بهاءالله
نن ورځ په پوره شفقت اوعنايت سره غږ کوي. اوفرمائي: اې زما اصحابانو دغيبو اوظاهرو مالک دظهور پرتخت ناست دى. په ګومانونو سره خپل ځانونه په هغه لوى شخص ديقين څخه مه محروموې.۴۵ حضرت بهاءالله

**په درې فصله کې:**

۱.دنوو خلکو پیداکیدل

۲.دنورو رسولانو پیداکیدل

۳.دخدای ذکر

**ژر دی چې دعالم ټغر جمع شي اوبل ټغر وغوړول شي.۱ حضرت بهاءالله**

**په دې شیبه اومهال دالهي مقام ځای اواز کوونکي غږ وکړ. هغه خلک چې ددې تجلي اوروښنائي قابل او وړ شي نه ښکاري.امر نوو خلکو او نوي جوړښت ته وګرځیده.۲**

**حضرت بهاءالله**

**داسې بنده ګان به پیداشي. چې دکوثرمعنا دالهي کلماتودټکوري څخه وچښي.۳**

**حضرت بهاءالله**

**دنوو خلکو پیداکیدل**

قران مجید په کراتو سره دنوو خلکو اودنوي قوم دراتګ خبرورکوي.داکوم خلک اوکوم «قوم»دی؟ د«نوو خلکو پیداکول»اويا،یو«قوم دبل قوم په ځای راوستل»دپیغمبرانو ظهور ته ، دهغو نوو پیروانو ته اشاره ده. اودخلکو انکارد هغو پیغمبرانو ته اشارده. داهغه سنت دي. چې په ټولو عصرونواوزمانو کې تکرار شوي اوتکرار به شي. په قران کریم کې دحضرت هود له قوله دارنګه وايو:

**فَان تَوَلوْاْ فَقَدْ ابْلَغْتُکُم ما ارْسِلْتُ بِهِ الَيْ کُمْ وَيَسْتَخْلِفُ رَبِّي قَوْمًا غَيْرَکُمْ. دهود سورت،۵۷-ایت**

ما دپروردګار پیام تاسي ته رسولی دی .که مخ تري واړوې ، پروردګار به مې یو بل قوم ستاسې په ځای راولي.

دبهائې ائین په اسماني اثاروکې د«نوو خلکو»په باره کې ډیرې مراجع لیدل کیږي:

**داول نه ئې تراوله پیدایښت وکړ.اوالی داخر نه تراخره پورې به پیدایښت وکړي اوپه هر دور کې ددورنوڅخه ...دخپل نوي طبیعت دظهوراتو دتجلیاتو څخه نوې پیدایښت کړی دی.۴**
**حضرت بهاءالله**
**دخپل پروردګار څخه وغواړه چې پخپل کامل قدرت سره داسې خلک رامنځ ته اومبعوث کړي.۵**
**حضرت بهاءالله**
**انشاء الله نوي خلک ...به ظاهر اوراښکاره شي...۶**
**حضرت بهاءالله**
**داسې بنده ګان به پیداشي. چې دکوثرمعانی څخه الهي کلمات په کاسو وڅښي.۷**

**حضرت بهاءالله**

**په دې شيبه اومهال دالهي مقام ځای اواز کوونکي ...غږ وکړ. هغه خلک چې ددې تجلي اوروښنائي قابل او وړشي نه ښکاري.امر نوو خلکو اونوې جوړښت ته وګرځيده.۸**

**حضرت بهاءالله يبعثهم الله من مراقد انفسهم و يخلقهم بمثل ما قد خلقهم اول مرة انه كان علی كلشيئ قديرا .۹**
**حضرت بهاءالله**
هغوې لره دنفسونو دقبرونو څخه پورته کوي ،اوپه همغه ترتيب چې په لمړې ځل سره پيداشوي ؤ. هغوې پيداکوي .پروردګار په هر کار توانا دی.
**دروحاني ايجاد څخه مقصد ...نوی خلک ...درحماني کمالاتو په مراتبو کې ترقي دانساني حقايقو روزنه ،اود الهي انوارو روښانه کيدل دي. ۱۰ حضرت عبدالبهاء**
ديوحنا مکاشفات خبر ورکوي. چې دموعود دظهور په وخت کې ټول شيان نوي جوړيږي. لکه څنګه چې دهغه اسماني اثر ځنې ايتونه دمتشابهاتو څخه ګڼل کيږي ، مناسبه ده. چې ددې څو ټکو په پيل سره تعبير شي:

- اورشلیم ،هغه ښار چې له اسمان نه راځي :نوی دنیا اوتمدن ته اشاره ده. چې بهائي ائین ئې جهان ته راوړي.



- «نوی اسمان»نوي ائین ته اشاره ده ،او«نوې ځمکه»نوې دنیا ته اشاره ده. اونوو زړونو جوړیدلو ته اشاره ده .
- «دریاب»دې بې ثباته اودهرج ومرج اوګډوډې څخه ډکې دنیا ته اشاره ده. لکه څنګه چې ددریاب موجونه په حرکت کې دی.
- د«خدای راتلل»دخدای دموعود راتللو ته اشاره ده. چې د«ربّ»په نوم راځي.

- «اوّل»او«اخر»کيدل ،دپيغمبرانو وحدت ته اشاره ده .دهغوې ټول هم اول اوهم اخر دي.دا«خاتميّت»په کلمه کې يو پټه معنا ده .
- دخداى جلال اوشکوه ، معنا په پوره توگه مطابق ده د«بهاءالله»سره لکه «بهاء»يعنې د«خداى نور اوعظمت»:

**وروسته مې نوې ځمکه اواسمان وليد،ځکه چې اولنې ځمکه اواسمان ورک شوي ؤ.له دريابه (دموجونو ډکې دنيا ) نه هم نور کوم خبر نه ؤ .او«ما»د«يوحنا»داورشليم مقدس ښاروليد چې له اسمان څخه دخداى له لورې راښکته شو .څه يوه ښکلې اوبا عظمته منظره وه : داورشليم ښار ديوې ناوې په څير ښکلا لرله. چې خپل ځان ئې د داماد لپاره تياراوښکلى کړى ؤ !...هغه وخت څوک چې په تخت ناست ؤ.[موعود]وويل :وگوره !اوس هرڅه له سره اوله نوي جوړوم!...زه**

**«الف»او«يا»يم«اول»او «اخر»يم .زه هرهغه چا ته چې تږى وي. دژوندون دچينې څخه وړيا اوبه ورکوم. تر څو وئې څکي .هرڅوک چې پر«خپل نفس»کاميابه شي، داټول نعمتونه به په ميراث کې يوسي، اوزه به دهغه خداى اوهغه به زما فرزند(زوى)وي ،ولى بزدله اوترسو(محتاط)خلک به**

**زماله پیروۍ څخه مخونه واړوي،اوهغه څوک چې په مااېمان نه لري...ددې ټولو خلکو ځای په هغه درياچه کې دی. چې په اور اوګوګرد سره سوځي...اووروسته ئې دسترګو په رپ سره ،زه دغره یوې لوړې څوکې ته یووړم. اوله هغه ځای مې داورشلیم مقدس ښار ولید چې دخدای له لورې له اسمان نه راښکته کیدل.هغه ښار دخدای په جلال اوعظمت (بهاءالله) کې غرق ؤ .اودیو ټوکر په څیر چې په قیمتي غمیو اوشفافه بلورونو جواهرو کې دبرق غوندې پرقیدل روښنائي کوله.۱۱**

**یوحنا مکاشفات،۲۱فصل،۱۱-۱۱،ایتونه**

د«جهان نوی کیدل»دزردشتیانو په اسماني اثارو کې هم وړاندوینه شوې ده:

**په هغه اخرو وختونو کې به موعود ظهور وکړي ،دجهان تازه ګي اوپاکي به تکمیل او پوره کړي. د بدیواودښمنیو اساس به دبیخه له منځه یوسي.۱۲**
په قران مجید کې په کراتو سره دااخطار تکرار شوی دی:
**ان یَشَا یُذْهِبْکُمْ ایهَا الناسُ وَیَاتِ بِآخَرِینَ وَکَانَ اللهُ عَلَ□ ذَلِكَ قَدِیرًا. دنساء سورت،۱۳۳-ایت** اې خلکو!که خدای وغواړي. تاسې له منځه وړي. اوستاسې ځای نورو ته ورکوي.پروردګار په دې کار قادر دی.
**یَا ایهَا الناسُ انتُمُ الْفُقَرَاء الَ□ اللهِ وَاللّهُ هُوَ الْغَنِي الْحَمِیدُ ان یَشَا یُذْهِبْکُمْ وَیَاتِ بِخَلْقٍ جَدِیدٍ .**

**دفاطر سورت،۱۶- ۱۵،ایتونه**
اې خلکو!تاسې پروردګار ته اړتیا لرۍ. پروردګار تاسې ته کومه اړتیا نه لري. اود ستاینې وړ دی. که وغواړي. تاسې به لرې کړي. اونور نوي خلک به راولي.
**الَمْ تَرَ ا ن اللهَ خَلَقَ السمَاوَاتِ وَالارْضَ بِالْحقّ ان یَشَایُذْهِبْکُمْ وَیَاتِ بِخَلْقٍ جَدِیدٍ وَمَا ذَلِكَ عَلَ□ اللهِ بِعَزِیزٍ .**
**دابراهیم سورت،۲۰- ۱۹،ایتونه**
ایاومونه لیدل. چې پروردګار ځمکه اواسمانونه دیو[ځانګړې هدف]لپاره پیداکړل؟

که وغواړي تاسې به له منځه يوسي اونوي خلک به راولي.داکار پروردګار ته مشکل نه دی.
مناسبه ده. چې دنوو خلکو دظهور په اړه ځنې ايتونه بررسي اومطالعه کړو. او وګورو چې زمونږ دعصر دپيښنو سره څه اړيکه لري .دالاندې ايت زمونږ دخلکو دروزګار حال بيانوي:
**کُل كَذبَ الرسُلَ فَحَق وَعِيدِ افَعَيِينَا بِالْخَلْقِ الْاولِ بَلْ هُمْ فِي لَبْسٍ مِّنْ خَلْقٍ جَدِيدٍ.**

**دقاف سورت،۱۵-۱۴،ايتونه**
هغو ټولو دپيغمبرانو څخه انکار کړی دی . په دې اساس ،زما اخطار تحقق ومونډ.ايازه دمخکېني پيدايښت څخه ستړی شوی یم؟ نه دارنګه نه ده ،هغوې دنوي پيدايښت په باره کې شک لري.

«لمړني پيدايښت»او«نوى پيدايښت»دبشر دتكامل دوه مهمو مرحلو ته اشاره ده:
دطفوليت (درشد اويادولو)مرحله اودتكامل اوبلوغ مرحله.مونږ اوس دژوندپه دوهمه مرحله كې ژوند كوو .دنوي تمدن تخم كرل شوى دى.اما دهغو مزه دارې ميوې د رشد اوپرورش په حال كې دي.دشيخ احمد احسائي په اثارو كې ، دادوه مرحلې د«جنين»او«تولد»مرحلې نومولي دي.
دقران ډير ايتونه زمونږ دعصر دخلكو دنااميدې اودشک او شبهې څخه خبرې كوي. هغه خلک چې دپيغمبر راتګ ته اميد نه لري. اوپه دې معتقد دي. عقيده من دي. چې پروردګار داخري ځل لپاره په عربستان كې پيغمبر راوليږل اونور به هيڅكله دخپلو بنده ګانو سره خبرې نه كوي. په غير دنااميدي نه نور څه احساس ولري؟انسان په اميدژوندې دى. ايا دپيغمبرانو دظهور څخه خبر اوزيري نه بل كوم خبر، ښه اومهمتر كيدلى شي؟
دالاندې ايتونه ډير اموزنده اوزده كوونكي دي.ځكه چې هم ئې دخاتم النّبين معنى توضيح كوي.اوهم دنوى امت ظهور ته اشاره كوي:

**اوَلَمْ يَرَوْاْ ان اللهَ الذِي خَلَقَ السمَاوَاتِ وَالارْضَ قَادِرٌ عَلَ ان يَخْلُقَ مِثْلَهُمْ وَجَعَلَ لَهُمْ اجَلاً لا رَيْبَ فِيهِ فَابَ الظالِمُونَ إَلاكُفُورًا قُل لوْ انتُمْ تَمْلِكُونَ خَزَآنَ رَحْمَةِ رَبِّي اذاًالامْسَكْتُمْ خَشْيَةَ الانفاقِ وَكَانَ الإنسَانُ قَتُورًا .**

**دبنی اسرائيل سورت، ۱۰۰-۹۹،ايتونه ايا**

داحقيقت دزړه په سترګو نه ګورئ :هغه پروردګار چې ځمکه اواسمانونه ئې پيداکړل. په دې قادر دی. چې دهغوې په شان قوم له سره پيداکړي؟دهغوې (مسلمانانو)لپاره ئې يو محدود وخت ټاکلی دی .په دې حقيقت کې شک نشته .ظالمان په غيرد ناشکرې له لارې ددې خبر څخه انکار نه کوي.ووايه:که دپروردګار دلطف اومرحمت ګنج له تاسې سره وي.دتنګدستې له ويرې به مو دهغې غذا خوړلو څخه ډډه کړې وی . انسان څومره يو خسيس موجود دی! داايتونه په روښانه توګه وښائي چې داسلام دامت نه وروسته به يو امت او قوم چې په قران کې دوسط امت په نامه يادشوی دی. ظهور وکړي . دا ايتونه په صراحت اوتاکيد سره دقران نور ايتونه لکه «وَلِكُلِّ أمَّةٍ اَجَلً »«هر امت محدود عمر لري»تائيدوي.

اومونږ ته رازده کوي. چې داسلام دامت عصر په يوه ټاکلې موده کې پای ته رسي. زمونږ خالق په دې ایتونو کې له مونږ څخه غواړي. چې په دې باره کې شک ونه کړو.اودوینا په پای کې ،زمونږ خسیس والی په یاد راوړي . که مونږ خسیس نه وی. په جهان کې به فقرنه وی؟دخلکوخسیسوالی په دین اوایمان کې هم ګورو.ځکه دمخکېنیو دینونو څخه هریو دراتلونکو دینونو دمنلو څخه انکار کړی دی، په دې ګومان چې دخدای دبخشش خزانې خالي شوي دي. اووروسته دهغوې دپیغمبر دظهور څخه به بل پیغمبر جهان ته نه راځي.دابې اساسه تصور همیشه دخلکو په منځ کې رایج ؤ. اوداسلام په عالم کې دقدرت اوج ته ورسیده .داسې يو حد ته چې دقران وړاندوینې په اساس ، مسلمانان د پروردګار دبې پایانه جواهرو اوخزانو دلیدلو څخه چې په دې عصر کې هغوې ته اوټولو امتونو ته بخشش شوې وې محروم شو.

دالاندې ايتونه نه يواځې دنوي امت دظهور خبر مونږ. ته راکوي ،دخداى دنوي موعود دلقب ذکر هم کوي:
**يَوْمَ نَطْوِي السمَاء كَطَيِّ السِّجِلِّ لِلْكُتُبِ كَمَا بَدَانَا اولَ خَلْقٍ نعِيدُهُ وَعْدًا عَلَيْنَا انا كُنا فَاعِ لِينَ وَلَقَدْ كَتَبْنَا فِي الزبُورِ مِن بَعْدِ الذِّكْرِ ان الْارْضَ يَرِثُهَا عِبَادِيَ الصالِحُونَ آَن فِي هَذَا لَبَلَاغًا لِّقَوْمٍ عَابِدِينَ .**
**دانبياء سورت،۱۰۶-۱۰۴،ايتونه**
په هغه ورځ چې اسمان ديو اوږد کاغذ په څير رالوله کړم!په همغه ډول چې مې لمړنې پيدايښت پيل کړ. هغوې بيرته ګرځوم. (هغوې له سره نيسم).داوعده مې ورکړې ده.اوالبته هغه وعده به سرته رسوم .په مزامير کې مې وعده ورکړې ده. چې وروسته دذکر د«ظهور»څخه زما صالح بنده ګان به دځمکې وارثان شي.په دې ايتونو کې د خداى پرسته خلکو لپاره خبر دى.
دمزامير وعده په دې ايت کې ده:
**عاجزاوخاکسار خلک به دځمکې «وارثان»شي...هغه خلک چې خداى هغوې مبارک کړي دي. دځمکې ميراث به يوسي.**
**مزامير:۲۷فصل،(۱۴-۱۱)ايتونه**

په همغه ډول چې په مخکې فصل کې پرې بحث وشو،د«اسمان څخه منظور دپروردګار «ائین»دی .د«ذکر»په ظهور سره حضرت باب نوی عصر دبشر په تاريخ کې پیل کړ. مخکینې دینونه ټول راټول شو،يعنی دهغوې عمر اووخت پای ته ورسیدل. نوی اسمان يعنی نوی ائین راظاهره شو. دپروردګار صالح بنده ګان دځمکې وارثان دي.
دپیغمبرانو په ظهور سره ځمکه هم تازه کيږي .«ځمکه»دالهي بخششونو دهغو جملې څخه «نوي زړه»ته نوي روح ته اشاره ده. چې دپروردګار دنوي ائین پیروانو ته بخشش شوی دی.
دمخکېني ايتونو په اساس يواځنې هغه مؤمينان چې په رښتيا سره دپروردګار بنده ګي کوي. ددې له خوښې ډک خبر په معنا پوهيدلی شي:

**ان فِي هَذَا لَبَلَاغًا لِّقَوْمٍ عَابِدِينَ.**
په دې ايتونو کې دخداى پرستو خلکو لپاره «خبر»دی.
دالاندې ايتونه هم د«ذکر»لقب ته اشاره کوي:
**اوْلَئكَ الذِينَ آتَيْنَاهُمُ الْكِتَابَ وَالْحُكْمَ وَالنبوةَ فَان يَكْفُرْ بِهَا هَؤُلاء فَقَدْ وَكلْنَا بِهَ اقَوْمًا ليْسُواْ بِهَا بِكَافِرِينَ اوْلَئكَ الذِينَ هَدَى اللهُ فَبِهُدَاهُمُ اقْتَدِهْ قُل لااسْالُكُمْ عَلَيْهِ اجْرًا انْ هُوَ الاذِكْرَى لِلْعَالَمِينَ .**

**دانعام سورت، ۹۰- ۸۹،ايتونه** هغوې ته[زمونږ دعصر دوه موعودو ته]مې کتاب ، حکم اونبوت بخشش کړی دی. پس که کومه ډله دخلکو څخه دهغوې دائين څخه انکار وکړي. يوبل قوم دهغوې دائين دمنلو لپاره پيداکوم چې دهغه څخه انکار ونه کړي.هغوې(مؤمين قوم) ته خداى هدايت کړی دی. پس دهغوې پسې اقتداء وکړئ. (دهغوې له رهنما ئې څخه ګټه واخلئ)زه له تاسې څخه پاداش نه غواړم .هغه زما«ذکر» دجهان دخلکو لپاره دی.
په غير دپيغمبرانو څخه نور کومو کسانو ته «اسمانې کتاب ،(احکام)اودنبوت مقام »ورکول کيږي ؟ داايتونه دنورو ايتونو په شان دبل قوم ټاکل زمونږ دعصر ددوه موعودو دانکار سره اړيکه ورکوي.په مخکنيو

ایتونو کې زمونږ دوه موعودو ته په اشارې سره هغوې دجمع ضمیر کارول شوی دی، اووروسته «ذکر»ته اشاره شوې ده.



---

---

دالاندې ایت هم په روښانتیا سره په اینده کې دقوم راتللو خبر ورکوي:

**یَا ایهَا الذِینَ آمَنُواْ مَن یَرْتَد مِنکُمْ عَن دِینِهِ فَسَوْفَ یَاتِي اللهُ بِقَوْمٍ یُحِبهُمْ وَیُحِبونَهُ.. یُجَاهِدُونَ فِي سَبِیلِ اللهِ وَلاَ یَخَافُونَ لَوْمَةَ لآمٍذَلِكَ فَضْلُ اللهِ یُؤْتِیهِ مَن یَشَاء... دمائده سورت،۵۴-ایت** اې مؤمینانو! هرڅوک چې غواړي دخپل دین څخه وګرزي.ډیرزر به خدای یوبل قوم چې دخدای سره مینه لري. اوخدای هم دهغوې سره مینه کوي راولي...هغه قوم چې دخدای په لاره

کې کوښښ کوي. اودهیچا دملامتولو اونیکوهش پروا
ونه لري.دایمان دا درجه
دخدای دفضل څخه ده .هرچاته ئې چې وغواړي
وربخښي.
«هرڅوک چې غواړي. دخپل دین څخه وګرزي
»هغو مسلمانانو ته اشارده. چې دپروردګارپه وعده
ایمان نه لري .ربښتینې مسلمان هغه څوک دی. چې په
قران اودهغه په وعدو ایمان لري .هغه څوک چې
دپروردګار نوی موعود ونه مني. دخپل دین څخه
ګرځیدلی دی. او د پرورګار له نظره مسلمان نه ګڼل
کیږي.
دپروردګار سنت اودهغه ابدي نقشه په دې بنسټ او
پایه ولاړه ده: دهرپیغمبر دظهورپه وخت کې ،دهغه
پیروان دمخکښي ائین دپیروانو جانشین اوځای ناستي
کیږي.له دې نظره ټول امتونه د«وسط»امتونه دي.
داایت مسلمانان دمخکښي امت ځای ناستي
ګڼي.وروسته د انکار خبره رامنځ ته کوي:
**هُوَ الذِي جَعَلَكُمْ خَلَا ٔفَ فِي الْارْضِ فَمَن كَفَرَ فَعَلَيْهِ كُفْرُه ...**
**دفاطر سورت، ۳۹-ایت** هغه
(خدای)تاسې سره په ځمکه د(مخکنیو امتونو)ځای
ناستي وګرځول پس هرڅوک چې انکار وکړي،دهغه
په تاوان دی...

ښکاره ده. چې مسلمانان دخپل پيغمبر منکرين نه دي. پس په غير دموعود څخه دبل کوم پيغمبر څخه ممکنه ده. انکار وکړي؟

دالاندې ايت(دنوو خلکو)وعده دپروردګار د«ديدار وعده»چې زمونږ موعود ظهورته اشاره ده. اړيکه ورکوي:

**وَقَالُوا اذَا ضَلَلْنَا فِي الْارْضِ ائَنا لَفِي خَلْقٍ جَدِيدٍ بَلْ هُم بِلِقَاء رَبِّهِمْ كَافِرُونَ.**

**دسجده سورت،۱۰-ايت**



---

خلکو په «تمسخر»سره وويل:ايا که مونږ ګمراهان شو،نوي خلک به شو؟

په ربښتيني هغوې دپروردګار دديدار د[امکان]څخه انکار کوي.
مخکېنی ايت د«ايمان راوړلو»اود«نورو خلکو»ترمنځ اړيکه وښائي ،اودنورو ډيرو ايتونو په شان ،مونږ ته رازده کوي. چې اکثره مسلمانان دقران په وعدو شک لري.
دالاندې ايت هم د«ربّ»څخه انکارد«نوو خلکو»دظهور سره ربط ورکوي:
**مثَلُ الذِينَ كَفَرُواْ بِرَبِّهِمْ اعْمَالُهُمْ كَرَمَادٍ اشْتَدتْ بِهِ الرِّيحُ فِي يَوْمٍ عَاصِفٍ... الَمْ تَرَ ان اللهَ خَلَقَ السمَاوَاتِ وَالارْضَ بِالْحقِّ ان يَشَا يُذْهِبْكُمْ وَيَاتِ بِخَلْقٍ جَدِيدٍ.**

**دابراهيم سورت،۱۹-۱۸،ايتونه**
دهغو کسانو اعمال چې دخپل پروردګار د«ديدار»څخه انکار کوي، لکه يوخاکستردی. چې دطوفان په ورځ ئې باد له ځان سره فنا کړي...ايا ومو نه ليدل چې خدای ځمکه اواسمانونه په حق سره [ديوخاص هدف لپاره]پيداکړل. اوکه وغواړي تاسې له منځه وړي اونوي خلک به راولي؟
له هغو کسانو چې دپيغمبر دظهور انتظار نه لري ، په غير دموعود دانکار څخه نور څه انتظار کيدلای شي

ولري؟دمخکنيو ايتونو په اساس اودنورو ايتونو ،دهغه خلکو اعمال چې دخپل موعود څخه انکار کوي په باد سره پناه شي.»

راتلونکي ايتونه هم دنوو خلکو ظهورته دپروردګاردظهور سره اړيکه ورکوي .برسيره پر دې ددې لوې ورځې دراتللو منکرينوته اخطارورکوي. چې دانکار څخه باخبره اوسي. ځکه چې پروردګار انتقام اخيستونکی قهاردی .وروسته مسلمانانو ته «تذکر»ورکوي. چې په دې ايت کې پيغام دی. چې يواځي دعقل خاوندان له هغه څخه پنداخلي:

**فَلاَ تَحْسَبَنَ اللهَ مُخْلِفَ وَعْدِهِ رُسُلَهُ ا ن اللهَ عَزِيزٌ ذُو انْتِقَامٍ يَوْمَ تُبَدلُ الارْضُ غَيْرَ الارْضِ وَالسمَاوَاتُ وَبَرَزُواْ للهِ الْوَاحِدِ الْقَهارِ... هَذَا بَلاَغٌ لِّلناسِ وَلِيُنذَرُواْ بِهِ وَلِيَعْلَمُواْانمَا هُوَ الَهٌ وَاحِدٌ وَلِيَذ كرَ اوْلُواْ الالْبَابِ .**

**دابراهيم سورت،۵۲، ۴۸، ۴۷،ايتونه**

ګومان مه کوئ. چې خدای خپله وعده خپلو رالیږونکو ته نه ساتي .خدای دقدرت اوانتقام صاحب دی .په هغه ورځ ځمکه په بله ځمکه اواسمانونه به بل ډول تبديل شي. اوهغوې دقهار اوواحد پروردګار په وړاندې حاضریږي ...دادخلکو لپاره پيغام دی. ترڅو په هغه سره ويره ورته پيداشي.

---

اوپوه شي. چې هغه بې مثاله اويکتا معبود دی .اوپه دې وسيله دعقل خاوندانو ته يوه يادونه وشي.
دجهان دکيهان بدلون دبهائې ائين په اثارو کې هم تائيد شوی دی:
**نن ورځ يوبل لمر راختلی دی.اويوبل اسمان په سيارو ښکلی شوی دی.داجهان يوبل جهان دی، اودا امر يوبل امر دی.۱۳**
**حضرت بهاءالله**
په لاندې ايتونو کې هم پند اوذکر دی:
**نَحْنُ خَلَقْنَاهُمْ.. وَاذَا شِئنَا بَدلْنَا امْثَالَهُمْ تَبْدِيلًا ان هَذِهِ تَذْكِرَةٌ فَمَن شَاء اتخَذَ الَ رَبِّهِ سَبِيلًا... يُدْخِلُ مَن يَشَاء فِي رَحْمَتِهِ وَالظالِمِينَ اعَد لَهُمْ عَذَابًا الِيمًا.دانسان سورت، ۳۱- ۲۸،ايتونه**
ما هغوې پيداکړي دي...اوهرکله چې وغواړم دهغوې ځآی بلې ډلې ته ورکوم. داستاسې لپاره يوتذکر دی .پس هرڅوک چې غواړي دخدای لاره ونيسي.
...اوپروردګار چې هرڅوک وغواړی دخپل رحمت

لاندې ئې راولي اودظالمانو لپاره یعنی( دموعود دمنکرینو لپاره)ئې درد ناک عذاب اماده کړی دی.
په ایتونو کې دقت اوتفکر دهغو ایتونو اسراراو رازونه ښکاره کوي:

- ولی فرمائي:دایو«تذکر»دی؟ تذکر وخت لازم دی. چې په کار کې غفلت وي ددې نه بل کوم لوی غفلت کیدلی شي. چې دپروردګار دموعود په پیژندنه کې بې پروائي وکړي؟
- ولی فرمائي :«هرڅوک چې غواړي دخدای لاره ونیسي»دانکته وښائي چې خلک اختیار لري. دپروردګار دنوي موعود څخه انکاروکړي، اویائې ومني.

راتلونکي ایتونه ،دپروردګار ټوله نقشه دپیغمبرانو په رالیږلو کې اودنوو خلکو په پیداکولو کې مونږ ته وښائي اووروسته زمونږ دعصر دموعود خبر راکوي .داایتونه په ظاهر کې دقیامت ورځې ته اشاره کوي،اما دخلقت پیلول په مختلفو عصرونو کې، دنوو خلکو دسره پیداکول دایمان اوبخشش له لارې هغوې ته معنوي ژوند دی، نه مادي ژوند:

**وَان تُكَذِّبُوا فَقَدْ كَذبَ امَمٌ مِّن قَبْلِكُمْ وَمَا عَلَ الرسُولِ الا الْبَلَاغُ الْ مُبِينُ اوَلَمْ يَرَوْا كَيْفَ يُبْدِى اللّهُ الْخَلْقَ ثُم يُعِيدُهُ ا ن ذَلِكَ عَلَ اللهِ يَسِير قُلْ سِيرُوا فِي الْارْضِ فَانظُرُوا كَيْفَ بَدَاالْخَلْقَ ثُم اللهُ يُنشِ النشْاةَ الْآخِرَةَ ا ن اللهَ عَلَ كُلِّ شَيْءٍ قَدِير... وَمَا انتُم بِمُعْجِزِينَ فِي الْارْضِ وَلَا فِي السمَاء وَمَا لَكُم مِّن دُونِ اللهِ مِن وَلِيٍّ وَلَانَصِيرٍ وَالذِينَ كَفَرُوا بِآيَاتِ اللهِ وَلِقَاهِ اوْلَئكَ يَسُوا مِن رحْمَتِي وَاوْلَئكَ لَهُمْ عَذَابٌ الِيمٌ .**

**دعنکبوت سورت،۲۳- ۱۸ ،ایتونه**

که انکار وکړئ. لکه څنګه چې له تاسې مخکې امتونو هم انکار کړی ؤ. دپیغمبر وظیفه په غیر دښکاره ابلاغ څخه بل څه نه ده. ایانه مو دي لیدلی چې پروردګار پیدایښت څرنګه شروع کوي. او وروسته هغه بیرته ګرځوي؟داکار دپروردګار لپاره اسانه دی. ووایه!په ځمکه کې وګرځئ. اووګورئ. چې څرنګه

پیدایښت اوخلقت پیل شو ،اووروسته پروردګار بل ژوند راپیدا کړی، اوپیداکوي. پروردګار دهرکار په سرته رسولو قادر دی. ...تاسې نشئ کولای، څه په ځمکه اوڅه په اسمانونوکې دپروردګار په وړاندې ودرېږی. تاسې یاراومددګار نه لرئ .هغه څوک چې دخدای ایتونه اودهغه ددیدار وعدې څخه انکار وکړي،زما درحمت څخه ناامیده دی .دهغوې لپاره دردناک عذاب دی.

مخکېني ایتونه دانسان دروحاني پیدایښت پورې اړه لري. هر ائین چې ظاهر شوی، اوظاهرېږي ،هدف ئې خلکو ته دابدي ژوندانه بخشش کول دي. چې داجل سره مخامخ شوي دي .هرائین دپروردګار دلورې راځي ، اوبیرته په یوې ټاکلې موده کې دهغه لوري ته ورګرځي. ددینونو دتاریخ مطالعه دا راوښائي. چې په کراتو دخلکو معنوي پیدایښت پیل شوی، اوپای ته رسیدلی دی. په کراتو امتونه راغلي دي. اوپه ټاکلې موده کې دهغوې اجل راغلی دی . په هغه وخت کې دنوي پیغمبر دظهور سره ،هغوې ته نوی ژوند بخشش شوی دی.

مخکېني ایتونه هم دنورو ډیرو ایتونو په شان مونږ ته رازده کوي. چې د «اخر الزمان»خلک دپروردګار«دیدار» ته امید نه لري .هغوې دپروردګار

دائين دبري په وړاندې پورته کيږي ،اما مقصد ته نشي رسيدلی .حضرت مسيح هم دقران مجيد خبر دداستان له لارې خپلو پيروانو ته ښودلی دی:



---

# دظالمو باغوانانو

## داستان

دې داستان ته غوږ ونيسئ: يو مالک دانګورو باغ کښينول ،دباغ ګرد چاپيره ئې ديوال جوړ کړ ،دانګورو داوبولو لپاره ئې تالاو جوړ کړ اودباغ ساتنې لپاره ئې يو برج هم جوړ کړ .هغه وخت ئې خپل باغ څو تنو باغوانانو ته په اجاره ورکړ .اوپخپله سفر ته ولاړ.

دانګورو دراتولولو په وخت کې ،دباغ مالک څو تنه
وروليږل ترڅو دباغوانانو څخه خپل سهم اوبرخه
واخلي .ولی باغوانانو په هغو حمله وکړه، يو ئې ونيو
اوئې وهل ،يو ئې وژل اوبل ئې سنګسار کړ .مالک
نور وروليږل. ترڅو خپل سهم ځنې واخلي ،ولی بيا
هم همغه کارورسره وشو.بالاخره خپل زوی ئې
وروليږل شايد دهغه احترام وساتي.
اما باغوانانو کله چې دمالک په زوي سترګي ولګيدې
،يوبل ته ئې وويل:دباغ وارث راغلی ؛راځئ، هغه
ووژنو. اومونږبه پخپله دباغ صاحبان شو.پس هغه ئې
دباغ نه بيرون کړ اووئې وژل .ستاسې په نظر ،که
دباغ مالک راشي دباغوانانو سره به څه وکړي؟
قوميانو ئې ځواب ورکړ:حتمابه دهغوې څخه سخت
انتقام واخلي اوباغ به نورو باغوانانو ته په اجاره
ورکړي. ترڅووکولای شي. خپل سهم په موقع له
هغوې څخه واخلي «هغه وخت عيسی له هغوې څخه
پوښتنه وکړه»ايا تاسې هيڅکله داايت په اسماني کتاب
کې نه ده ويلی، چې همغه تيږه چې سنګ کارانو لرې
ګوزار کړه ،دساختمان اصلي تيږه شوه؟ څومره عالي
دی. هغه کار چې خدای کړی دی! منظور مې دادی.
چې پروردګار دخپل سلطنت برکتونه له تاسې څخه
اخيستي دي ،داسې يو قوم ته به ئې ورکړي. چې دهغه

محصول څخه ،دخدای سهم هغه ته ورکړي .که څوک په دې تيږی ولويږي.هغه به تکه تکه  شي. اوکه داتيږه پرچا ولويږی. هغه به چنړيت کړي.»

**کله چې لوی کاهنان اومذهبي مشران متوجه شو.چې عيسی دهغوې په باره کې خبرې کوي. اودباغوانانو په داستان کې دهغه منظور ،پخپله هغوې دي ،تصميم ئې ونيو. هغه ووژني ،اما له خلکو وايريدل لکه ټولو(حاضرينو)عيسی پيغمبر ګڼل .۱۴**

**دمتی**

**انجيل :۲۱فصل،(۴۶-۳۳)ايتونه**



---

لازمه ده دمخکنی داستان ځنې نکتې «ټکې»روښانه شي:

- د«انګورو دباغ مالک»پروردګار ته اشاره ده. یا«الهی اعظم روح»ته اشاره ده. چې په پیغمبر کې ظهور کوي.
- «باغ»الهي ائين ته اشاره ده .
- «باغبان»مذهبي پيشوايان اوملايان دي چې دباغ اداره کوي.
- «سهم»مخکنيو دينونو پيروانو ته اشاره ده. هرکله چې پيغمبران غواړي. چې خپل سهم دباغوانانو څخه واخلي. يعنی دمخکېني ائين پيروان نوي ائين ته راولي. مذهبي پيشوايان د هغوې مانع شو.
- د«باغ دمالک زوی»حضرت مسيح ته اشاره ده. اودمالک اشاره حضرت باب اوحضرت بهاءالله ته ده .حضرت مسيح خپل ځان «زوی»اوحضرت بهاءالله ئې(الهي اعظم روح او«پلار»نومولی دی:

**«دانسان زوی به دپلار په جلال (بهاء)کې راشي.**

**متي انجيل:۱۶فصل.۲۷- ايت**

**قل قد جآء الأب و کمل ما وعدتم به فی ملکوت الله هذه کلمة الّتی سترهاالأبن اذ قال لمن حوله انتم اليوم لا تحملونها .۱۵**

**حضرت بهاءالله**

ووایه!پلار راغلی دی. اوهغه څه چې دالهي سلطنت دتاسیس وعده تاسې ته درکړل شوې وه .تحقق موندلی دی .داهغه کلمه ده. چې دحضرت مسیح «زوی»پټه وساتله.

کله چې خپلو اطرافیانو ته وفرمائیل:اوس ئې داوریدلو زغم اوتحمل نه لري.

**قد اتی المالک الملک والملکوت...لله مولی الوریٰ .١٦**

**حضرت بهاءالله**

په یقین سره مالک راغلی دی .ملک اوسلطنت ... دخدای دی، دخلکو مولا دی.

دحضرت باب دظهور په وخت کې هغو پیشوایانو چې هغو ئې ونه منل ،د باغوانې مقام ئې دلاسه ورکړ.داافتخار نوي قوم ته دخدای نوی ائین پیروانو ته ورسید.

- «هغه تيږه ئې چې لرې غورځولې وه»په اوله درجه کې هغه خلکو ته اشاره ده. چې دمقام اومنصب څخه کومه ګټه نه لري. اودضعيفانو دډلې څخه ګڼل کيږي. دا ډول ډيرو«خلکو»بهائي ائين منلی. او دپروردګار دبنسټ اصلي ډبرې شوي دي. قران مجيد هم داخبر تائيد کړی دی:

**وَنُرِيدُ ان نمُن عَلَ□ الذِينَ اسْتُضْعِفُوا فِي الْارْضِ وَنَجْعَلَهُمْ ا مةً وَنَجْعَلَهُمُ الْوَ ارِثِينَ .**

**دقصص سورت، ۵-ايت**

مااراده کړی. هغه خلک چې خپل ځانونه ضعيف ګڼي(عاجز خلک)په هغوې احسان وکړم. اوهغوې دخپلو رحمتونو پيشوايان اووارثان کړم.

دعدالت دقانون په اساس ، پروردګار دخپل سلطنت برکتونه د مغروره پيشوايانو څخه ، چې له

«دعوو»ډک اوخودنما دي اخلي. اوعاجزو خلکو ته چې نوي خلک دي وروبخښي.
دمسیحیت اواسلام دظهور په پیل کې هم منکرینو مؤمنانو ته دحقارت په سترګه کتل :
**قَالُوا انُؤْمِنُ لَكَ وَاتبَعَكَ الْارْذَلُونَ .**
**دشعرا سورت، ۱۱۱-ایت** وویل:ایا
زه له تاڅخه چې پیروان ئې عاجز دي. پیروي وکړم؟
**دټولنې ډیر لویدلي خلک به جمع کیدل ترڅو دعیسی خبرې واوري .اما فریسیانو قشري یهودیانو اوددین علماو به په هغو ایراد کول. چې دبدنامو اوټیټو خلکو سره ناسته او پاڅه کوي اودهغوې سره په یودسترخوان کښېني !**

**لوقاانجیل:۱۵ فصل،۲ـ ۱ ایتونه**
زمونږ په عصر کې هم دمخکښنیو (ادیانو)ځنې متعصب پیروان بهائیانوته دحقارت په سترګه ګوري.
اوهغوې ته دناپاکې اوګمراه ډلې خطاب کوي .اوغافل له دې نه چې پخپله دمخکښنیو له سنتو څخه پیروي کوي. که یوڅوک په خپله حقیر اوسپک نه وي.
هیڅکله بل چاته په سپک نظر نه ګوري.

**خوښ اونيکمرغه دي، هغه څوک چې عاجز اودخضوع والادي :هغوې به دځمکې «وارثارن»شي..** **حضرت مسيح ،متی انجيل ،۵فصل:۵-ايت**

**اې خدايه،خپله لاره راته وښايه اوخپل احکام ماته زده کړه.خپله رښتينولي ماته رازده کړه، ماته هدايت وکړه. ځکه چې ته ماته نجات ورکوونکی ئې ، اوزه هميشه تاته اميد واره يم...پروردګار نيک اوعادل دی ....هغه عاجز انسان ته دسمو کارونو سرته رسولو په خاطر هدايت کوي. اوخپله لار هغه ته وروښائي.۱۸**

**مزامير:۲۵ فصل،۹ـ ۵ ،۸ـ ۴ ايتونه**

**پروردګار ...زه راليږلی يم. چې عاجزو خلکو ته «ښه خبر»ورکړم...اودپروردګار دلطف کال اعلان کړم.                اشعيا: ۶۱**

**فصل،۲ـ ۱ ايتونه**

دباغ اوباغوانانو داستان وښائي چې ډير خلک چې دهر دين څخه وي. دپروردګار د موعود دپيژندنې څخه ډډه کوي.اوعجيبه داده. چې دپروردګار دائين نه انکار دخلکو له طرفه ،پخپله دهغه ائين دحقانيت نښانه ده!

حضرت باب هم يوداستان چې حضرت مسيح داستان ته ورته دی.اوپه لنډه توګه ئې بيانوي:

**انّ مثلکم کمثل من يبني جنّةً يغرس فيها اشجارًا من کلّ الثّمرات اذا يأتي مالکها قد استملکتموها باسمه وحين ما يأتيکم عن نفسه تمنعون انّا قد اغرسنا شجرة القرآن واظهرنا في تلك الجنّة من کلّ الثّمرات انتم کلّکم بها تتنعّمون واذا جئناان نملکن ما قد اغرسنا کانّکم لا تعرفون صاحبها ...۱۹**

**حضرت باب**

ستاسې داستان دهغه چا داستان دی. چې باغ جوړوي. اوپه هغه کې مختلفي ميوه داره ونې کښينوي .اما کله چې دهغه مالک راځي، هغه باغ چې دهغه په نامه

جوړوئ. اما دهغه دظهور په وخت کې هغه مالک نه ګڼئ.مونږ دقران ونې کښینولې اوپه هغه باغ کې

---

❖ دحضرت باب اوحضرت بهاءالله دظهور کال ته اشاره ده .دمسحيانو او يهوديانو په اسماني مقدسو کتابونو کې «۱۶»شپاړلس ځلې دحضرت باب اوحضرت بهاءالله دظهور کال«۱۲۶۰»او«۱۲۸۰)هـ ق د(۱۸۴۴ او۱۸۶۳)میلادې کلونو مطابق مشخص شوی دی.I Shall Come Again (۱۰-۱۸فصلونه)ته مراجعه وکړئ.



---

---

مومختلفي ميوې ثمر ته رسولې دي .تاسې ټول دهغه نعمت څخه ګټه اخلی .اما کله چې مونږ راغلو چې

خپل محصول لاس ته راوړو ،په هغه وخت کې تاسې دباغ صاحب نه پيژني....

راتلونکی ايتونه وښائي چې دنوی قوم خلک دوعدې سره ارتباط لري. چې خلک دهغوې سره دمخامخ کيدلو ميل نه لري:

**وَرَبكَ الْغَنِي ذُو الرحْمَةِ ان يَشَايُذْهِبْكُمْ وَيَسْتَخْلِفْ مِن بَعْدِكُم ما يَشَاء كَمَآانشَاكُم مِّن ذُرِّيةِ قَوْمٍ آخَرِي ن ان مَا تُوعَدُونَ لآتٍ وَمَا انتُم بِمُعْجِزِينَ. دانعام سورت،۱۳۴-۱۳۳،ايتونه** پروردګار بې نيازه اومهربان دی .که وغواړي تاسې له منځه وړي. اوله تاسې وروسته هرقوم چې وغواړي ستاسې ځای ناستي کړي. په همغه ډول چې تاسې ئې د بل قوم دنسل څخه منځ ته راوړی .هغه وعده چې تاسې ته درکړل شوې ده. پای ته ورسي، اوتاسې نشی کولای دهغې دتحقق څنډ شي.

دالاندې ايت هم مؤمينانو ته وعده ورکوي:

**وَعَدَ اللَّهُ الذِينَ آمَنُوا مِنكُمْ وَعَمِلُوا الصالِحَاتِ لَيَسْتَخْلِفَنهُم فِي الْارْضِ كَمَا اسْتَخْلَفَ الذِينَ مِن قَبْلِهِمْ وَلَيُمَكِّنَن لَهُمْ دِينَهُمُ الذِي ارْتَضَ لَهُمْ وَلَيُبَدِّل نچهُم مِّن بَعْدِ خَوْفِهِمْ امْنًا يَعْبُدُونَنِي لَا يُشْرِكُونَ بِي شَيْا وَمَن كَفَرَ بَعْدَ ذَٰلِكَ فَاوْلَئِكَ هُمُ الْفَاسِقُونَ. دنور سورت،۵۵-ايت**

پروردګار باتقوا مؤمينانو ته وعده ورکړې ده. چې

هغوې به دځمکې وارثين کړي .ترڅو هغه دين چې د
هغوې لپاره ئې ټاکلی دی ونيسي .اودهغو بيم اوايره
په امن اوامان بدله شي .هغوې به زما عبادت وکړي.
او مشرکان به نشي .اوله دې وروسته هرڅوک چې
کافر شي دفاسقو خلکو دډلې څخه دی.
مخکېنی ايت مونږ ته څو نکتې رازده کوي ،دهغې
جملې نه داچې :
- پروردګار رښتينومؤمنانو ته وعده ورکوي. هغه
وعده چې داينده پورې اړوند ده.

ـ د«ربښتينو مؤمنينو وارث کيدل»داهغه وعده ده. چې په مزامير کې هم مؤمنانو ته ورکړل شوې ده .اودقران په نورو ايتونو کې هم بهائي ائين ته په اشارې سره تائيد شوې ده.
ـ دمؤمينانو ترس اوايرې بدليدل په امن اوامان دهغوې دنوي پيدايښت اوتازه تولد ته اشاره ده.

# داعراف

# سورة

داعراف سورة ديوځانګړي امت خبره رامنځ ته کوي. چې خلک عدالت ته بولي. دا څنګه يو امت دی؟مناسبه ده. چې دا وړاندوينه ددې سورة دنورو ايتونو سره چې زمونږ دعصر دموعود سره اړيکه لري. بررسي اومطالعه کړو:

**وَمِمنْ خَلَقْنَا ا مةٌ يَهْدُونَ بِالْحَقِّ وَبِهِ يَعْدِلُونَ .**

**داعراف سورت، ۱۸۱-ايت** زما

دپيدايښت په منځ کې داسې امت شته دی. چې خلک دحقيقت اوهدايت لارې ته رابولي. اوددې لارې نه هغوې دعدالت لارې ته سوق اووربولي.
دخه ائين پيروان دي، چې خلک دحقيقت منلو ته رابولي. ترڅو ددې لارې هغوې انصاف اوعدالت ته

واستوي او سوق کړي؟ دحضرت بهاءالله دهدفونو
څخه يوهم په جهان کې دعدالت تاسيس دی:
**يا حزب الله!دعالم مربي عدل دی ،چې دوه برخې لري :مجازات اومکافات .اودادوه بنسټه دعالم دخلکو دژوند لپاره دوه چينې دي.۲۰**
**حضرت بهاءالله**
**دبنده ګانو چراغ عدل دی .هغه په مخالفو بادونو په اعتساف اوظلم مه ګلوې .اودهغه «داد اوعدل»مقصد په بنده ګانو کې ديووالي ظهور دی.۲۱**
**حضرت بهاءالله**
**هيڅ يو نور دعدل دنور سره معادل نه دی. هغه دعالم دنظم اودامتونو راحت دی.۲۲**

**حضرت بهاءالله**

**الحمد لله دعدل لمر دبهاءالله له افق څخه راوختل. ځکه چې دبهاءالله په الواحو کې دعدالت اساس موجود دی. چې دا ابداع او نوې رایستنه داول څخه تراوسه پورې په هیڅ یو فکر کې پیدا شوې نه ده.۲۳ حضرت عبدالبهاء**

دحضرت بهاءالله داجتماعي ښوونو اجرا لکه دثروت عادلانه تقسیم ،دښځو او نارینه مساوي حقونه ،اوپه ټول عالم کې دعدالت دخونو تاسیس، دپروردګار دعدل حکومت، په همغه ډول چې(دملایکو په عالم)کې برقراره دی،په جهان کې هم برقراره کړي.

په همدې سورة کې دهغه پیدایښت دظهوراړوند ایت «چې خلک به حقیقت اوعدالت ته هدایت کوي»په ځانګړې توګه داسرائیلو دامت په باره کې نازل شوی دی:

**وَمِن قَوْمِ مُوسَ امةٌ يَهْدُونَ بِالْحَقِّ وَبِهِ يَعْدِلُونَ .**

**داعراف سورت، ۱۵۹-ایت** دحضرت موسی دپیروانو په منځ کې ،داسې یوه ډله ده. چې خلک به

دحقیقت لارې ته هدایت کوي. اوله دې لارې به هغوې دعدالت اجرا ته استوي.
دې وړاندوینې هم تحقق موندلی دی ،ځکه چې دحضرت موسی دپیروانو څخه په زرهاو نفر دې بهائي ائین ته راغلي دي. اوپه دې وسیله ئې دحضرت عیسی اورسول اکرم په حقانیت هم شهادت ورکړی دی .دخلکو دیوې ډلې لخوا ددرې دینونومنل هیڅکله سابقه نه لرله .دې حقیقت چې موسویانو دخلکو په هدایت کې دهغې جملې نه مسلمانان دپرودګار نوي ائین ته مهم سهم لرلی دی.
وروسته دهغه امت دظهور دخبر څخه چې جهان کې دعدالت دتاسیس لپاره ظاهرېږي، قران دپروردګار دائین منکرینو ته دارنګه اخطار ورکوي:
**وَالذِينَ كَذبُواْ بِآيَاتِنَا سَنَسْتَدْرِجُهُم مِّنْ حَيْثُ لاَ يَعْلَمُونَ وَامْلِي لَهُمْ ا ن كَيْدِي مَتِينٌ.**

**داعراف سورت،۱۸۳- ۱۸۲ ،ایتونه**
منکرین دخپلو ایتونو اونښانو څخه ،په تدریج په هغه لاره چې پوه نشي ،مجازات کوم. اما هغوې ته مهلت ورکوم ،ځکه چې زما نقشه محکمه اوپا یداره ده . مخکېنی ایت وښائي. چې دنوي ائین پراخیتا به په تدریج سره وي ، پروردګار منکرینو ته مهلت

ورکوي. ترڅو دخدای دنقشې داجرا لپاره خپل سهم اداء کړي.



---

---

هغوې هم دروزګار په صحنه کې دالهي وعدو په تحقق کې سهم لري .وروسته له دې مقدمې ،دوحی یوځانګړې شخص ته اشاره کوي:

**اوَلَمْ يَتَفَ كرُواْ مَا بِصَاحِبِهِم مِّن جِنـةٍ انْ هُوَ الانَذِيرٌ مبِينٌ . داعراف سورت،۱۸۴-ایت** ایا فکر نه کوي چې دهغوې«مصاحب»لیونی اودیوانه نه دی؟دهغه وظیفه داده. چې په ښکاره توګه(دانکار له نتایجو)څخه خلکو ته اخطار ورکړي.

- پروردګارکوم څوک په دې ایت کې مصاحب یا دخلکو سره خبرې کوونکی ګڼي؟

- خلکو کوم کسان په ټولو عصرونو کې په لیونتوب متهم کړی دی؟
- پروردګار کوم کسان خپلو بنده ګانو ته داخطار اوتذکر لپاره ورلیږي؟

داخصوصیات وښائي چې دپیغمبر ظهور دنظر وړ دی. چې خلک دهغه قدر نه پیژني اودهغه دښکلو نومونو څخه منکر یږي.

په پورتنې بیان کې د«صاحب»څخه منظور څوک دی؟په عربي ژبه کې د«صاحب» کلمه مطابق ده، د«صاحب»سره په فارسي کې .پیغمبران دخلکو خوښي ده ،په همدې حال کې په پوره خضوع سره دخلکو سره ژوند کوي، دهغوې په جامه کې ګرزي، اودهغوې مصاحب اوخبرې کوونکی شي.حضرت بهاءالله دخلکو سره دخپل طرزاورفتار په اړه داسې فرمائي:

**دهر چاسره چې «مصاحب»وم. یعنی دهرچاسره مې چې خبرې کړې. په ډیرې مهربانې او ملګرتیا کې مې ورسره کړي دي. په ډیر زغم، بردبارې اودپروردګار درضا لپاره مې کړی دی.۲۴**

**حضرت بهاءالله**

حضرت محمد هم دپروردګار له لورې تحسین شوی دی:

**وَانكَ لَعَلى خُلُقٍ عَظِيمٍ .**

**دقلم سورت، ۴-ایت**

ته په رښتینې اويقين سره ښکلي اودتحسين وړاخلاق لرې.

**لَقَدْ كَانَ لَكُمْ فِي رَسُولِ اللهِ اسْوَةٌ حَسَنَةٌ لِّمَن كَانَ يَرْجُو اللهَ وَالْيَوْمَ الْآخِرَ وَذَكَرَ اللهَ كَثِيرًا .**

**داحزاب سورت، ۲۱-ایت**



---

په رښتيني تاسې لپاره ، چې دپروردګار په (وعدو)او هميشني سرای ته اميدواره ياستې، اوخپل خالق ډير په يادراوړي، دپروردګار پيغمبر ښه سرمشق دی.

وروسته زمونږ د«مصاحب»دمعرفي کولو نه ،پروردګار له مونږ څخه غواړي چې فکر اوتامل وکړو:

**اوَلَمْ يَنظُرُواْ فِي مَلَكُوتِ السمَاوَاتِ وَالارْضِ وَمَا خَلَقَ اللهُ مِن شَيْءٍ وَانْ عَسَ ان يَكُونَ قَدِ اقْتَرَبَ اجَلُهُمْ فَبِايِّ حَدِيثٍ بَعْدَهُ يُؤْمِنُونَ.** **داعراف سورت،۱۸۵-ايت** ايا ځمکې او اسمانونو ته اوهغه څه چې پروردګار پيداکړي دي نه ګوري؟اوبس نه دی چې دهغوې (اجل)نږدې شوی دی .پس دپروردګار په کومه خبره وروسته له هغه ايمان لري؟

مخکېنی ايت په روښانتيا سره مونږ ته راوښائي. چې مسلمانان داسلام دامت د«اجل»څخه انکار کوي.

اودپروردګار په خبره دخپل امت دبرخليک په باره کې ايمان نه لري. .څه«اجل»اوڅه د«زمان برُهه»ده. چې انتها ته نږدې ده ،امّا مؤمينان هغه اجل ته دنږدې کيدنې له اقرار څخه اودهغه زمان دپای ته رسيدلو نه داکراه اوجبر څخه کاروا‌خلي؟ايا دا(اجل)همغه عمر دی. چې پروردګار ئې هرامت ته وربخښي؟ايا څه شی په غير ددې حقيقت څخه مخامخ کيدلی شي چې :

**وَلِكُلِّ امةٍ اجَلٌ.**

**داعراف سورت،۳۴-ايت**

دهرامت لپاره ټاکلی وخت دی .
په مخکېني ایت کې فرمائي:«ایا ځمکې اواسمانونو ته نه ګوری»کوم درسونه هر انسان په خلاصو سترګو دپروردګارد پیداېښت څخه زده کوي؟هرمخلوق داتم څخه نیولی ترکهکشانونو پورې دحال په ژبه مونږ ته دارنګه وائي:دروزګار څرخ دهمیش لپاره په حرکت اوګردش کې دی .هغه څه چې ګوری. اغاز اوانجام یعنی پیل اوپای لري .ایا په قانون دحرکت اوګردش کې اوپه اغاز اوانجام کې استثناء لري؟ا یا مخکېني دینونه همیشه نوي شوي نه دي؟کله هم داسې یوائین راغلی چې داجل سره مخامخ شوی نه وي؟

---

❖ «**فَبِأَىِّ حَدِيْثٍ بَعْدَهُ**»دپروردګار وړاندوینوته اشاره ده. دهغو څخه وروسته وقایعو ته یعنې وروسته له رسول اکرم څخه.

**ګردش اوبدلون پيل اوپای استثنائي دي؟آيا مخکښني اديان يوبل پسې نوي شوي نه دي؟کله داسې ائين راغلي چې دمرګ سره مخامخ شوی نه وي؟**
**دجهان دخلکو څخه هريو چې په دې سهار کې دجانان خوږ بوی پيدانه کړ،دمړو څخه ګڼل کيږي.**
**۲۵**
**حضرت بهاءالله**
وروسته پروردګار دهدايت اوضلالت خبره رامنځ ته کوي:
**مَن يُضْلِلِ اللهُ فَلاَ هَادِيَ لَهُ وَيَذَرُهُمْ فِي طُغْيَانِهِمْ يَعْمَهُونَ .**
**داعراف سورت،۱۸۶-ايت**
هرچالره چې پروردګار ګمراه کړی ،رهنمانه لري.نافرمانه خلک پروردګار په سرکشې کې پريږدي.
مخکښنی ايت دبل ځل لپاره مونږ ته وښائي. چې خلک ديوخاص تصميم سره مخامخ کيږي په هغه حالت کې ،يادهدايت لاره نيسي اويا دګمراهي اوضلالت لاره نيسي.
وروسته قران د«ساعت دظهور»خبره رامنځ ته کوي.داايتونه چې ددې ظهوراړوند دي. په ۱۹فصل کې(دقيامت اوساعت معنی)په باره کې وربانديې بحث شوی دی. دقران دايتونو دمعنا درک کولو لپاره دنوو

خلکو دظهور په باره کې یادخلکو تبدیل په نورو خلکو ،له احادیثو څخه هم کولای شو. کمک وغواړو .څو حدیثه داکِلي مونږ ته راکولی شي .وګورو داایت رسول اکرم څنګه تفسیر کړی دی:

**وَان تَتَوَلوْا یَسْتَبْدِلْ قَوْمًا غَیْرَکُمْ ثُم لَا یَکُونُوا امْثَالَکُمْ .**

**دمحمد سورت،۳۸-ایت**

که مخ ترې واړوی ،پروردګار به یوبل قوم ستاسې په ځاې راولي. چې ستاسې په شان به نه وي .

په همغه ډول چې ومولیدل، دطبرسي په مجموع البیان کې دپورتنې ایت په تفسیر کې دارنګه راغلي دي:

**قالوا يا رسول الله من هؤلاء الذين ذكر الله في كتابه و كان سلمان إلى جنب رسول الله (صلى الله عليه وآله وسلم) فضرب يده على فخذ سلمان فقال هذا و قومه والذى نفسي بيده لو كان الايمان منوطا بالثريا لتناوله رجال من فارس...**

يو(اصحاب)وويل:اې دخداى رسوله**!**هغه كسان چې خداى په قران كې ذكر كړي دي. كوم كسان دي ؟سلمان فارسي درسول الله خواته نږدى ناست ؤ په هغه وخت كې رسول الله خپل لاس دسلمان په پښنو ووهل، اووې فرمائيل :داشخص اودهغه قوم.

«په هغه ذات مې قسم دى. چې زمونږ روح دهغه په قبضه كې دى. كه په پروردګار باندې ايمان دثريا په ستورى كې وي. ، دفارس دځمكې مردان به هغه ځمكې ته راوړي.»

درسول اكرم مخكښنې وينا ،مونږ ته دوه مطلبه رازده كوي. اومونږ ته داډ راكوي چې :

- دبل«قوم ظهور» په اينده كې دپروردګار نوي موعود ته اشاره ده.

- دزمان موعود هغه څوک چې ایمان دالهي وحې له اسمان څخه خلکو ته رسوي دسلمان فارسی هموطن یعنی داهل ایران څخه دی.

په یوه بله مرجع کې ،درسول اکرم بیان د«یوبل قوم»په باره کې دارنګه راغلی دي:

**فقال هم الفرس و هذا و قومه .٢٦**

وئې فرمائیل:دفارس دقوم څخه دي. ددې شخص په مثال (سلمان فارسي)اودهغه قوم.

نور احادیث هم شته دی چې دموعوددظهور محل ته اولمړنې پیروانو ته ئې اشاره کوي:

**وزرائه من الاعاجم ...٢٧**

قائم به دعجم دډلې څخه وي.

**یمن بهذالدین علی اولاد عجم .٢٨**

ددې دین په ورکولو سره دعجم زامنو ته په هغوې احسان اچوي.

---

داحادیثو ،دالاندې ویب سایټ اسلامي دي:

**http://www.islamweb.net/hadith/display_hbook.php?bk_no=1851&hid=846&pid=280621**

**اصحاب القائم ثلثماة و ثلثه عشر اولاد العجم. ۲۹**
اصحاب قائم «۳۱۳»نفره دعجم دخلکو نه دي.
**و اذا خرج هذاالامام المهدی فليس له عدو مبين الا الفقهاء خاصه...انهم يقتلون فی بلاد العجم. ۳۰**
کله چې امام مهدي موعود ظاهر شي ،فقهابه دهغه ښکاره دښمنان وي ...هغوې (دقايم پيروان)به دعجمو په ښارونو کې وژل کيږي.
**و اوّل من اعرض عنّا عُلماء الأرض فی هذا العصر الّذين يدعوننی فی اللّيالی والايّام. ۳۱**

**حضرت بهاءالله**
لمړني کسانو چې په دې عصر کې مخ واړول علماؤ. هغه څوک چې ماشپه اوورځ لولي (زما ذکر په ژبه راوړي).
**ډير داسې کسان شته دی. چې خپل ځان ته داهل دانش فکر کوي. اودالهي په دې ورځ کې دټولو**

**نعمتونو څخه محروم پاتې شول.۳۲**
**حضرت بهاءالله**

# پروردګار دهغه دکلام څخه پيژندلی شی.

**قَدْ افْلَحَ مَن تَزَکی وَذَکَرَ اسْمَ رَبِّهِ فَصَلی .**
**داعلی سورت،۱۵-۱۴،ايتونه**

دهر چاچې زړه پاک وي. اودپروردګار په نوم عبادت کوی. رښتينی دی.

**دالهي محبت اوميني جنود( لښکرو)وجود ته توجه وکړه ،هرزړه ئې چې قبول پيداکړ. هغه ئې تسخيرکړ اوهغه ئې ونيو.۳۳**
**حضرت بهاءالله**
**اې قومه!دموعود ورځ راغله، خپل ځان دهغه له برکتونو مه محروموئ.۳۴**

**حضرت بهاءالله**
**اوڅرنګه چې پوهيږئ چې دحق ظهور ځانګړی دی. دښکاره اوظاهرو علومو سره اودخلکوپه منځ کې دثابتو احکامو دتغير سره،بلکه په وخت دظهور کې**

**،ټول شیان دبرکتونو اواستعدادونو سره ښکلې شوي اوشي به.۳۵ حضرت بهاءالله**

قران اوبهاءالله

۷۰۰

---

---

**انشاءالله داسې خلک به ظاهره شي. چې دپروردګار جلَّ جَلاَلَهُ د بیانونو اودهغه دکلام مقصد به درک کړي.۳۶**
**حضرت بهاءالله**
**اې دوسته!ټولو ته مې ...امر کړی. په دې لوی ظهور کې په خپلو سترګو وګوري. اوپه خپلو غوږونو ئې واوري. خوکله چې دعالم افق دظهور په رڼا روښانه شو. اکثرو الهي امرونه اوالهي وصیتونه هیر کړل ، اوپه خپلو ګمانونو مشغول شوي دي.**

**.دانصاف دلمر ځيره د بې عقلو دګومانونو وريځو پټه کړې ده.۳۷ حضرت بهاءالله**

**ووايه!اې غافلانو ...دګومانونو دمغرب څخه ديقين مشرق ته توجه وکړئ...وخت د لاسه مه ورکوئ، وخت غنيمت وګڼئ ...وختونه دبرق په شان په تيريدو دي .کوښښ وکړئ دتوحيد حقيقى نور ته ورسئ.۳۸ حضرت بهاءالله**

**وَمَن جَاهَدَ فَانماَا يُجَاهِدُ لِنَفْسِهِ ا ن اللهَ لَغَني عَن الْعَالَمِينَ.**

**دعنکبوت سورت، ۶-ايت**

هرڅوک چې کوښښ وکړي. دخپل ځان لپاره ئې کوښښ کړى دى. پروردګار دجهانيانو څخه بې نيازه دى.

# ۲۴



## دنورو رسولانو پيداکيدل

داول نه اول نبی راغلی دی اواخرالاخر به راشي.۱
حضرت باب

دقران ډیر ایتونه درسول اویارسولانو دظهور او دراتګ خبر ورکوي .کله ئې په روښنائې سره کولی شي پیداکړي. چې ددې منظور رسول اکرم اویا دهغه څخه مخکی رسولان دي.
کله کله دایتونو مضمونونه وښائي. چې منظور دنورو رسولانو یارسول ظهور په اینده کې دی .له کومه ځایه کولی شی. داایتونه سره جدا کړئ. او دهغو په مقصد پوه شئ؟
یواځینې لار ددې ایتونو یوله بله توپیر کول ،دهغوې په معنا کې دقت کول دي. او دهغو ایتونوسره ورته ایتونو په معنا کې دقت کول دي .ښه به وي. چې له دې ایتونو څخه څو نموني بررسي کړو.

**هغه ایتونه چې رسول اکرم اویا**
**نورو رسولانو**
**ته په تیرو وختونو کې**
**اشاره کوي**

**يَا اهْلَ الْكِتَابِ قَدْ جَاءكُمْ رَسُولُنَا يُبَيِّنُ لَكُمْ كَثِيرًا مِّما كُنتُمْ تُخْفُونَ مِنَ الْكِتَابِ.**

**مائده سورت،۱۵-ایت**

اې دکتاب والاو!زمارسول په تاسې کې ظاهر شوی دی. ترڅو ډیر هغه حقایق چې تاسې ئې دالهي کتاب څخه پټوی. تاسې ته ئې بیان کړي.

**يَا ايهَا الرسُولُ بَلِّغْ مَا انزِلَ الَيْكَ .**

**دمائده سورت،۶۷-ایت**

اې رسوله!هغه څه چې پرتانازل شوي دي ،خلکو ته ئې ابلاغ کړه.

باید پوه اوسو. چې ددوه کلمو ترکیب (رسول الله)یواځې درسول اکرم پورې ځانګړې اومختص نه دی. دالقب دهرپیغمبر لپاره صادق دی .مثلاً حضرت مسیح فرمائي:

**وَاذْ قَالَ عِیسَ◻ ابْنُ مَرْیَمَ... انّي رَسُولُ اللّٰهِ ...**

**دصف سورت، ۶۱-ایت** کله چې عیسی دمریمې زوی وفرمایل ...زه رسول الله یم... راتلونکی ایت هغو کسانو ته ځواب دی. چې دحضرت مسیح دمقام په باره کې مبالغه کوله:

**ما الْمَسِیحُ... الارَسُولٌ قَدْ خَلَتْ مِن قَبْلِهِ الرسُلُ .**

**دمائده سورت، ۷۵-ایت** مسیح...یواځې داسې یوپیغمبر دی، لکه دنورو په شان چې له ده څخه مخکې راغلي ؤ.

## هغه ایتونه چې دپیغمبر یاپیغمبرانو دظهور خبر په راتلونکې کې ورکوي.

**تَنزِیلُ الْکِتَابِ لَا رَیْبَ فِیهِ مِنربِّ الْعَالَمِینَ امْ یَقُولُونَ افْتَرَاهُ بَلْ هُوَ الْحَق مِن ربِّكَ لِتُنذِرَ قَوْمًاما اتَاهُم مِّن نذِیرٍ مِّن قَبْلِكَ لَعَلهُمْ یَهْتَدُونَ .** **دسجده سورت، ۳-۲ ،ایتونه**

«هغه»اسماني «کتاب»دی .په هغه کې شک نشته دی.دجهانيانو دپروردګار له لورې نازل شوی دی.يا وائي :هغه ئې په دروغو جوړ کړی دی .دارنګه نه ده .(حقيقت دادی)چې هغه حق دی. اوستا دپروردګار دلورې څخه دی ، ترڅو اخطار ورکړي. هغه قوم ته چې هغوې ته مخکې له تا (رسول اکرم)اخطار ورکوونکی نه دی راغلی. شايد هدايت ومومي.

«هغه »چې کتاب دی. دپروردګار دلورې نازل شوی دی؟اوهغه څوک دی. چې په مختلفو بهانو دهغه دکتاب څخه انکار کوي؟له هغې جملې نه وائې :«هغه»ئې په دروغو جوړ کړې»؟«هغه»څوک دی. چې پروردګار دهغه په حقانیت شهادت ورکوي: هغه حق دی.
اودپروردګارله لورې دی !»؟«هغه»څوک دی. چې داسې یو قوم ته راځي. چې هغوې ته (مخکې درسول اکرم)نه اخطارورکوونکی نه دی راغلی؟
دالاندې ایتونه په روښنائې سره دپیغمبر دراتلو خبر ورکوي. دداسې یو قوم هدایت لپاره چې په مخکې وختونو کې هغوې ته پیغمبر نه دی راغلې .په دې هکله پوښتنه پیداکیږي:دقران دایتونو په اساس ،هیڅکله داسې یو امت نه ؤ. چې هغوې لپاره پروردګار پیغمبر نه وي ورلیږلی:
**وَلَقَدْ بَعَثْنَا فِي كُلِّ امةٍ رسُولاً .**
**دنحل سورت،۳۶-ایت**
البته چې دهرامت په منځ کې مې پیغمبر مبعوث کړی دی.
**لِكُلِّ قَوْمٍ هَادٍ .**
**درعد سورت،۷-ایت**
هرامت رهنما لري.

پس دقران ایت څرنګه کولای شي توجیه کړي ؟په شروع کې باید پوه شو. چې دنظر وړ قوم غیر له اعرابو څخه دی .داسلام ائین په لمړۍ درجه داعرابو لپاره ؤ:

**وَهَذَا کِتَابٌ انزَلْنَاهُ... لِتُنذِرَ ام الْقُرَى وَمَنْ حَوْلَهَا ...**

**دانعام سورت،۹۲-ایت**

داهغه کتاب دی، چې مانازل کړی دی...ترڅو هشدار وي، دښارونو مور ته (مکې)اواطرافوته.

مخکې درسول اکرم څخه هم پیغمبران لکه صالح اوهود دعربو قومونو ته ورغلی ؤ. ددې دوه پیغمبرانو دظهور داستان په تفصیل سره په قران کې راغلی دی.پس دنظر وړ قوم ،داسې یو قوم دی. چې عرب نه وي. اودنظر وړ پیغمبر،



---

په غیر درسول اکرم څخه دی . یوبل قوم ته نوبت رسیدلی دی.

که پروردګار هر قوم ته پیغمبر لیږلی دی ، بل کوم قوم نه دې پاتې .پس داوعده څنګه کیدلای شي توجیه اوتعبیرکړي؟یواځې یو«قوم»دی. چې هغه ته پیغمبر نه دی راغلی:هغه قوم «انساني عالم»دی. بهائي ائین په ایران کې تولد شوی دی،اما یواځې دایرانیانو لپاره نه دی راغلی .داائین دټول جهان د خلکو لپاره دی.
دالاندې وینا زمونږ عصر لپاره دپروردګار نقشه وښائې:
**دا«غږ»اودا«ذکر»دیو ځانګړي او خاص مملکت لپاره نه ؤ اونه دی. باید ټول اهل عالم هغه څه چې نازل شوي دي. اوظاهر شوي دي ومني. ترڅو، حقیقي ازادۍ ته ورسي.۲**

**حضرت بهاءالله**

دداسې یو ائین ظهور په جهان کې بې سابقې دی.
دپروردګار دوعدې په اساس به باالاخره ،ددې ائین په سیوری کې (دعالم انساني یووالی)رامنځ ته شي.زمونږ په زمانه کې دایران نفوس دجهان په نسبت یو پرسلو دی. که دارقم ثابت پاتې شي.ایرانیان به یواځې یووړوکې جز دجهان دبهائیانو وي.
دپروردګار دارادې په اساس ،په نوی عصر کې دعالم قومونه خپل هویت وساتي، اما دیوې سراسرې پردې

ترسیوري لاندې راتول شي، یو نوی قوم به شي،داسې یو قوم چې په جهان کې مشابه قوم لیدل شوي نه وي. برسیره پردې ،قران لکه څنګه چې مسلمانانو ته خطاب دی ،اودهغوې دعقیدې او تفسیر په اساس په ایران کې پیغمبر دایرانیانو د هدایت لپاره راغلی نه دی، دمسلمانانودعقیدې په اساس ،ایران دنوي پیغمبر دظهور لپاره ،حائزالشرایط دی.

---

❖ دبهائیانو دعقیدې په اساس ،حضرت زردشت دپروردګار پیغمبر ؤ. چې (۲۶۰۰)کاله مخکې دبهاءالله دظهور څخه په ایران کې ظاهر شو . اما څرنګه چې دهغه ذکر ظاهراً په قران کې راغلی نه دی.اکثره مسلمانان دهغوې په حقانیت عقیده نه لري.بهائیان په دی عقیده دي. چې «اصحاب رس»دزردشت قوم ته اشاره ده.

په همغه توګه چې مخکې تیر شو ،ځنې له احادیثو هم زمونږ دعصر دموعود ظهور محل اوځای ایران ګڼي. دسجدې سورة دبحث په ورړ ایت کې فرمائي(**هُوَالْحَقُّ مِنَّ رِبکُ**)(هغه حق دی اودپروردګار له لورې دی) .دکلماتوداترکیب او متشابهت دریم شخص ته په اشارې سره په قران کې په کراتو زمونږ دعصر د موعود په رابطه کارول شوي دي.دې لاندې نمونې ته توجه وکړئ:

**وَيَرَى الذِينَ اوتُوا الْعِلْمَ الذِي انزِلَ الَيْكَ مِن ربِّكَ هُوَ الْحَق وَيَهْدِي الَ صِرَاطِ الْعَزِيزِ الْحَمِيدِ** .

**دسبا سورت، ۶-ایت**

هغه کسانو ته چې علم ورکړل شوی دی، ګوري چې هغه څوک چې دپروردګار له لورې تاته راغلی دی،حق دی. اوخلک دپروردګار لارې ته هدایت کوي.

- کومو کسانو ته علم «عطا»اوورکړل شو؟هغه خلکو ته چې دموعود دپیژندنې لیاقت اواماده ګي لرله.

- کوم علم؟هغه علم چې خدای چاته بخښش کړی، نه دمدرسې علم.
- هغه خلک ځنګه ګوري؟دبصیرت په سترګو.
- هغه څوک دی. چې دخدای له لورې راغلی دی؟هغه دخدای پیغمبر دی.
- دهغه پیغمبر وظیفه څه ده؟دخدای لارې ته دخلکو هدایت.

په مخکښني ایت کې ،دسبا دسورة څخه ،پروردګار په شروع کې دټولو خلکو مربوط قانون بیانوي (**الَّذِیْنَ اُو توالْعِلْمَ**)« هغو ته چې علم بخښش شوی دی.
اووروسته هریوله بنده ګانو څخه دخطاب لاندې راولي (**الَّذِيْ آنْزِلَ اِلَلْکَ مِن رُّبِکَ**)(هغه څوک چې دپروردګار له لورې تاته راغلی دی.)
هغه ایتونه چې درسول اونورو رسولانو دظهور خبر ورکوي. ډیر دي. دهغو دجملې څخه داایتونه:

**لَمْ يَكُن ذِينَ كَفَرُوا مِنْ اهْلِ الْكِتَابِ وَالْمُشْرِكِينَ مُنفَكِّينَ حَتَ تَاتِيَهُمُ الْبَيِّنَةُ رَسُولٌ مِّنَ اللهِ يَتْلُو صُحُفًا مطَهرَةً فِيهَا كُتُبٌ قَيِّمَةٌ... وَذَلِكَ دِينُ الْقَيِّمَةِ . دبينّه سورت، ۵-۱ ،ايتونه**

داهل کتاب کافران (داسلام منکرين)اومشرکان (دخپل انکار)څخه لاس نه اخلي. ترڅو هغو ته روښانه دليل راشي،دخدای دلورې پيغمبر چې مقدس الواح «هغوې ته»ووائي هغه اثار چې په کتابونو کې ثابت دي ...اوهغه پر خپلو پښو ولاړدين دی.

دوه مشابه فعلونه ،يعنی **تَأْتِيَهُمْ** (هغوې ته به راشي)**وَيَتْلُو** (وبه ئې لولي)وښائي چې داخبر داسلام دپيغمبر دزمان څخه وروسته زمان پورې ارتباط لري.مخکښې ايتونه خبر ورکوي. د(خدای دلورې)دپيغمبر په ظهور سره او«**قَيِّمَةً**»يعنی پابرجا ائين، هغه پيغمبرچې څو کتابونه دپروردګار له لورې راوړي.داهغه وخت او زمان دی. چې ټول ملتونه دهغې جملې نه يهوديان اومسيحيان له انکار څخه لاس

په سر شي،اودنوي ائين په حقيقت پوه شي. دې وړاندوينې هم تراوسه تحقق موندلی دی. همداوس په سلهاو زره خلکو د«اهل کتاب»څخه، اوبې دینه خلکو په ټول عالم کې دبهائي ائین په حقانیت شهادت ورکړی. اوورکوي.

دالاندې ایت هم دهغو کسانو دظهور خبر ورکوي. چې د کتاب ، داحکامو دمقام اونبوت صاحبان دي:

**اوْلَئكَ الذِينَ آتَيْنَاهُمُ الْكِتَابَ وَالْحُكْمَ وَالنبُوةَ فَان يَكْفُرْ بِهَا هَؤُلاء فَقَدْ وَكلْنَا بِهَ اقَوْمًا ليْسُواْ بِهَا بِكَافِرِينَ اوْلَئكَ الذِينَ هَدَى اللهُ فَبِهُدَاهُمُ اقْتَدِهْ قُل لااسْالُكُمْ عَلَيْهِ اجْرًا انْ هُوَ الاذِكْرَى لِلْعَالَمِينَ .**

**دانعام سورت، ۹۰-۸۹ ،ایتونه** هغوې ته (زمونږ دعصر دوه موعودوته)کتاب ،حکم اونبوت بخشش اوعطا کړ.پس که خلک دهغوې څخه انکار وکړي، یوقوم ته وکالت ورکوم .چې ددې پیښې څخه انکار ونه کړي.هغوې ته خدای هدایت کړی . وروسته له هغو به هدایت موندونکی پیروي وکړي. زه له تاسې څخه کوم پاداش نه غواړم...دجهان دخلکو لپاره هغه زما «ذکر»دی.

---

❖ په حضرت بهاءالله نازل شوي الواح اوايتونه دسلو جلدو برابر دي.

۷۰۷ ۲۴فصل:دنورو رسولانو پیداکیدل

---

---

دالاندې ايت هم داينده پيغمبر دظهور خبر وركوي:
**يَا ايهَا الذِينَ آمَنُواْ آمِنُواْ بِاللهِ وَرَسُولِهِ وَالْكِتَابِ الذِي نَزلَ عَلَ□ رَسُولِهِد..**

**دنساء سورت،۱۳۶-ايت**

اې هغه كسانو چې تاسې ايمان راوړى دى! په خداى اورسول اوپه هغه كتاب چې په رسول ئې نازل كړى دى. ايمان راوړئ...
مخكېنى ايت مؤمنانوته خطاب دى .ايا پروردګار هغوې دعوتوي چې په هغه رسول اوپه قران مجيد

ایمان راوړي؟ایا ممکنه ده. چې په اسلام په خدای ،
په رسول اوقران مؤمین نه وي؟پس دمبارک ایت
مقصد څه دی؟ښکاره ده ،چې مقصد ئې
دپروردګارنوی موعود اونوی اسماني کتاب دی
.مسلمانان په دې ایت کې دعوت شوي دي. چې
پروردګار په نوی رسول اودهغه په کتاب ایمان
راوړي .که په هغه ایمان رانه وړي.دخدای څخه ئې
هم انکار کړی دی ،ځکه دهغه پیغمبر وینا دخدای وینا
ده .دااخطار دحضرت بهاءالله په اثارو کې هم تائید
شوی دی:

**وانكَ انْتَ ايْقِنْ فِي ذَاتِكَ بِان الذِي اعْرَضَ عَنْ هَذَ ا الجَمَالِ فَقَدْ اعَرَضَ عَنْ الرسُلِ مِنْ قَبَلُ ثُم اسْتَكبَرَ علَ□ اللهِ في ازَلِ الآزَالِ الِ□ ابَدِ الآبِدِ ينَ . ٣**

**حضرت بهاءالله**

ته په یقین سره پوه شه. چې هرڅوک
دپروردګارد(موعود) ددې زیبائې اوښکلا څخه مخ
واړوي، بې له شکه دمخکېنیو پیغمبرانو څخه ئې هم
مخ اړولی دی، اودپروردګار په نسبت چې دروزګار
شروع ئې (شروع نه لري)،دروزګار ترپایه پورې
چې(پای نه لري) تکبر اولوئې کړې ده.
لاندی ایت هم شهادت ورکوي. چې مسلمانان به نوي
ائین منلو ته دعوت شي:

**انمَا كَانَ قَوْلَ الْمُؤْمِنِينَ اذَا دُعُوا الَى اللهِ وَرَسُولِهِ لِيَحْكُمَ بَيْنَهُمْ ان يَقُولُوا سَمِعْنَا وَاطَعْنَا وَاوْلَئَكَ هُمُ الْمُفْلِحُونَ .**

**دنور سورت، ۵۱-ایت**

کله چې مؤمینان خدای اودهغه رسول ته دعوت کیږي. ترڅو دهغوې په منځ کې قضاوت وکړي. (هغه مؤمنین)په ځواب کې وائې: ستا دعوت مې واوریدل، اواطاعت مې وکړ. دامؤمینان ربښتیني دي.



---

---

مسلمانان هغه خلک دي. چې په خدای اوپه رسول ئې مؤمینان دي. ایا دعوت ته اړتیا لري.ددې لپاره دعوت چې په خدای اودهغه په رسول ایمان راوړي ؟
مسلمانانو دپروردګار غږ اوریدلی دی.ولی ددوهم ځل لپاره ورته وویل شي:

«اوریدلی مو دي»؟د«**سَمِعْنَا وَاطَعْنَا**»اصطلاح هغه وخت معقوله ده. چې مؤمینین دنوي دعوت سره مخامخ شي.

«دمؤمینانو په منځ کې دپروردګار قضاوت»په څه شي پورې اړوند دی.(**لَيَحْكُمَ بَيْنَهُمْ**)؟دا«قضاوت»اړوند دی. دهغوې په ځوابه پورې، چې دپروردګار دموعود دعوت ته ئې وائي. په دې یوه نمونه کې دسل هاو نورو نمونو څخه چې دپروردګار قضاوت دحضرت باب په ژبه ددې ائین دمؤمینانو اومنکرانو په هکله دی. تآمل اوفکر وکړئ:

**یا ایّهاالمؤمنون ما نزّل الله فی الکتاب..الّا لیعلمواالنّاس بالحق انّ الذکر لحق من عندالله و هوالله کان بکلشیئ علی القدیم علیماً یا اهل الارض فو ربّکم الذی لا اله الّا هو ما ابقی الله لنفس بعد الذّکر و هذاالکتاب حجّة..انّی اناالله لا اله الّا انا فاعبدنی واقم الصّلوة للذکر الاکبر..فانّ ربّکم الله الحقّ وانّ الّذین تدعون من دونه فاولئک اصحاب الن ار علی العدل...یا اهل الارض اتقواالله..فانّ الذّکر لحقّ بالحقّ وانتم وماتدعون من دونه لقد کنتم بحکم الحقّ من اهل النّارفی امّ الکتاب مکتوباً..وما علی الذّکر الّا بیان من الحقّ عن الله العلیّ بدیعاً هو**

**الذّکر من عندالله لیبشرکم بوعده و لینذرکم من نقمته وهوالمسطور ف□ امّ الکتاب...وانّ الله قد جعل الذّکر خیراً لکم من انفسکم لانفسکم لیتلوا آیات الله علیکم ویزکیکم ویخرجکم من الظّلمات ال□ النّور وهوالله کان عل□ کل شیئ شهیداً...یا اهل الارض لا تسلکوا مع الذّکرالاکبر ممّا قد فعلت الامّه بالحسین عل□ غیرالحقّ ف□ الارض المقدسة تالله الحقّ انّه هوالحقّ و کان الله علیه شهیداً ... ٤**

**حضرت باب**

اې مؤمنانو!پروردګار داسې یوځه په کتاب (قران) کې نه دي نازل کړي. مګر ددې لپاره چې خلک ورباندې پوه شي. چې «ذکر»حق دی. اودپروردګار دلورې ځخه دی. پروردګار همیشه په هرڅه اګاه وه اودی.

اې دځمکې والاو! په خدای قسم دی. چې په غير دهغه بل خدای نشته دی ! پروردګار په غير دايمان نه په «ذکر» کې بل څه نه پرېږدي .اوداکتاب ستاسې لپاره دليل دی.

«زه پروردګار يم. په غير له مابل پروردګار نشته دی». پس زما عبادت وکړئ. اوزما لمونځ دنوی «ذکر» لپاره په ښو ودروي .په يقن سره ستاسې پروردګار حق دی.اوڅوک چې په غيرله هغه څخه ووائي ،دعدالت دحکم په اساس ددوزخ اوسيدونکی دی...

ای دځمکې والاو! دخدای څخه ووېرېږئ... په يقن سره «ذکر» حق دی. اودحق د لوری څخه دی ، اوکه دهغه نه په غير بل څه ومني ، دحق دحکم په اساس ، ستاسې نوم «دکتابونو په مور» (قران)کې ددوزخ داوسيدونکو په يوه جزوه کې ضبط اوليکل کيږي .

«ذکر» په غير دحقيقت دبيان څخه بل کوم مسئوليت دپروردګار له لورې نه لري . هغه «ذکر» دی.

دخدای له لورې ترڅو تاسې ته دوعدې دتحقق څخه بنه خبر درکړي ، او دمجازاتو څخه تاسې باخبره

کړي. دهغه نوم د«کتابونو په مور» کې لیکل شوی دي...
پروردګار «ذکر» ستاسې له منځ نه ستاسې دخیر لپاره ټاکلی دی. ترڅو الهي ایتونه تاسې ته ووائي ، تاسې دککړتیاو څخه پاک کړي. اوله تیاری څخه مو رڼا ته ورسوي. پروردګار په هرڅه شاهد دی...
اې دځمکې والاو!په هغه ډول چې خلکو بې له حقّ په مقدسه ځمکه کې د(حسین)سره کوم چلند اورفتاروکړ، د«لوی ذکر» سره هغه رفتار ونه کړئ .په خدای قسم دی چې هغه حق دی. اوخدای دهغه شاهد دی.
**اِنْتَظَرُوا فی ایّ امِهِمْ بِما وُعِدُوا مِنْ لِسانِ مُحَمدٍ رَسُولِ اللهِ وَ کُلما سَمِعُوا اسْمَهُ قامُوا وَ تَصاحُوا بِعَ جلَ اللهُ فَرَجَهُ فَلما ظَهَرَ بِالْحَقِّ اَنْکَرُو ه فی اَنْفُسِهِمْ وَ اعْتَرَضُوا عَل یْهِ وَجادَل وهُ بِالْباطِلِ وَ سَجَنُوهُ فی وَسَطِ الْجِبالِ وَ ما اُطْفِیَ غِل صُدُورِهِمْ... اِلی اَنْ فَعَلُوا بِه ماَ احْتَرَقَتْ بِه اَکْبادُ الْوُجُودِ . ٥**
**حضرت بهاءالله**
دهغې وعدې په اساس چې دخدای درسول حضرت محمد دژبې څخه ئې اوریدلي وه.خلک په انتظار کې ؤ. اوکله چې دموعود نوم ئې واوریدل ،پورته شو. او فریاد ئې وکړ:چې په «ظهور دی عجله»وکړه! امّا کله چې ظاهر شو. دهغه څخه ئې انکار وکړ،په اعتراض

ئې پیل وکړاوپه بېهوده خبرو ئې دهغه سره دښمني شروع کړه. اودغرونو په منځ کې ئې هغه په زندان کې واچول .امّا د زړونو کینه ئې ارامه نشوه ... ترڅو داسې یوکارئې وکړ. چې دعالم زړونو ته ئې اور واچول. معمول دعا: یا صاحب الزمان به ظهورت شتاب کن ــ عالم زدست رفت توپادررکاب کن.

❖ په تبریزکې حضرت باب شهادت ته اشاره ده.



---

**فسوف تجدون اعمالکم عندالله ف لوح قد کان من ایدی الذّکر...مکتوباً .٦ حضرت باب**

ژر دی چې هغه وخت راورسي. چې خپله عمل نامه دخدای په وړاندې په هغه پاڼه کې چې د «ذکر »په لاس ...لیکل شوې ده، پیداکړئ.

دنوي ائین منلو ته دعوت په کراتو سره په قران کې تکرار شوی دی .په همغه ډول چې وموليدل، په هغه کتاب کې یو ایت چې حتی ددعوت ځای او هغه ښار

چې حضرت بهاءالله خپل «امر»په هغه کې اعلان کړ معلوم کړی دی:

**وَاللهُ يَدْعُو الَ دَارِ السلاَمِ وَيَهْدِي مَن يَشَاء الَ صِرَاطٍ مسْتَقِيمٍ. ديونس سورت، ۲۵-ايت**

پروردگار خلک دصلح ښار بغداد ته دعوتوي اوهرچاته چې وغواړي سمې لارې ته ئې بيائي.

راتلونکي ايتونه هم ددعوت کوونکي دظهور خبر ورکوي چې خلک ئې دعوت «نامطبوع»او«سحرامیز»گڼي:

**وَان يَرَوْا آيَةً يُعْرِضُوا وَيَقُولُوا سِحْرٌ مستَمِر وَكَذبُوا وَاتبَعُوا اهْوَاءهُمْ وَكُل امْرٍ مستَقِر**

**النذُرُ فَتَوَ ل عَنْهُمْ يَوْمَ وَلَقَدْ جَاءهُم مِّنَ الْانبَاء مَا فِيهِ مُزْدَجَرٌ حِكْمَةٌ بَالِغَةٌ فَمَا تُغْن يَدْعُ الداعِ الَ شَيْءٍ نكُرٍ. دقمر سورت، ۶-۲ ،ايتونه**

که یو ایت یا نښانه وگوري ، له هغه مخ اړوي اووائي :«داسحر دی چې ادامه لري.» هغوې انکار وکړ. او دهوای نفس څخه ئې پيروي وکړه .هر امر لپاره باالاخره سرو سامان شته دی. په يقين سره هغوې لپاره اخطار ورکوونکی خبر راغلی دی . داد الهي بالغه حکمت پورې اړوند دي .اما اخطارونه هغوې ته کومه گټه نه رسوي.پس له هغوې منکرانومخ واړوه.داهغه ورځ ده.چې دعوت کوونکی « هغوې

لره»یو«مشکل»کارته «یانوي» شي ته(دپروردګار په نوي ائين ايمان راوړلو ) ته بلنه ورکوي.

---

❖ **نُکُر**:دمولانا محمد علی ترجمه:سخت کار Hard task,

**دمحمد اسد ترجمه: نوی اوناشناشی.**

**Lit., “something not known (nukur)—that is, “something that human beings cannot know [i.e. visualize] because they have never met with anything like it” (Zamakhshari**





---

---

راتلونکي ايتونه ،په شروع اوپيل کې شهادت ورکوي. چې دپيغمبرانو ارسال اوراليږل هميشه دالهي محکمو سنتو دحکم سره موافق ؤ اووي به ، اوبيا د«ذکر» دانکار څخه (دحضرت باب لقب)دخلکو لخوا ورته اشاره کوي:

**امْرًا مِّنْ عِندِنَا انا كُنا مُرْسِلِينَ رَحْمَةً مِّن ربِّكَ... ان□ لَهُمُ الذِّكْرَىٰ وَقَدْ جَاءهُمْ رَسُولٌ مبِينٌ ثُم تَوَلوْا عَنْهُ وَقَالُوا مُعَلمٌ مجْنُونٌ .                   دخان سورت،۱۴ـ۶،۱۳ـ ۵،ایتونه**

دازما له لورې حکم دی:زه همیشه پیغمبر لیږم.دپیغمبرانو لیږل زما سنت وه، اووي به. داستا دپروردګار دفضل اورحمت نښانه ده .څنګه ممکنه ده. چې د«ذکر» اړوندو خبرونو څخه ګټه واخلي؟(هغوې ته امید نشته.) هغوې ته په روښانه دلایلو رسول راغلی دی. له هغه څخه ئې مخ واړول اوهغه ته ئې لیونی معلم وویل.

په مخکنیو ایتونو کې دا درې کلمې ، دپروردګار سنت او روش دپیغمبرانو په لیږلو کې په روښنائې سره بیانوي:

## اِنَّاكُنَّا مُرْسِلِيْنَ

## دیوسفعلی ترجمه:

زه همیشه ائین لیږم

## اِنَّاكُنَّامُرْسِلِيْنَ

**دمولانامحمد على ترجمه:**
**زه همیشه دپیغمبرانو دلیږلو په حال**

**یم**

---

❖ ځنګه ممکنه ده، داخلک «ذکر» ومنې؟

قران اوبهاءالله

۷۱۲

---

---

**انا كُنا مُرْسِلِينَ**

**دداکترهلالي ترجمه:**

**We are ever sending (the**

**Messengers)**

زه همیشه د«پیغمبرانو»دلیږلو په حال
کې یم.
دمخکېنې وعدې دذکر نه پس فرمائي:
**رَحْمَةً مِّن ربِّكَ.**
(دپیغمبرانو لیږل)دپروردګار دفضل اورحمت نښانه ده.
ایا دپروردګار دلورې بنده ګانو ته دپیغمبرانو داستولو څخه دهغوې دهدایت لپاره بل لوی رحمت اوفضل څه شی کیدلی شي؟ولی ناڅاپه دالوي بخشش پای ته ورسي؟

# دصف سورة

دالاندې ایتونه دصف دسورة څخه په ظاهر کې درسول اکرم ظهور ته اشاره کوي،امّا دهغه رسول څه حدیثونه شاهدي ورکوي. چې دنظر وړ پیغمبر زمونږ دعصر موعود دی.
**يُرِيدُونَ لِيُطْفِؤُوا نُورَ اللهِ بِافْوَاهِهِمْ وَاللهُ مُتِم نُورِهِ وَلَوْ كَرِهَ الْكَافِرُونَ هُوَ الذِي ارْسَلَ كُلِّهِ وَلَوْ كَرِهَ الْمُشْرِكُونَ الْحَقِّ لِيُظْهِرَهُ عَلَ الدِّين رَسُولَهُ بِالْهُدَى وَدِين. دصف سورت، ۹ـ۸،ایتونه**
غواړې چې د«پروردګار نور» دخولې په پوکیو خاموشه اوګل کړي.اما پروردګار دهغه رڼا تولو ته

رسوي(پراخوالی ورکوي اوکامیابۍ ته ئې رسوي.) که څه هم منکرین ددې بري څخه کرکه لري .پروردګار خپل رسول دخلکو درهنمائي اودحق دین دتاسیس لپاره راولیږل. ترڅو ټول دینونه دخپل سیورې لاندې راولي. که څه هم مشرک خلک ددې پیرورزې دلیدلو نه کرکه لري.
ددې سورة په پای کې ، پروردګار خپلو مؤمنیو ته ښه خبر ورکوي.

۷۱۳ ۲۴فصل: دنورو رسولانو پیداکیدل

---

**نَصْرٌ مِّنَ اللهِ وَفَتْحٌ قَرِيبٌ وَبَشِّرِ الْمُؤْمِنِينَ .**
**دصف سورت،۱۳-ایت**

دپروردګار په يارۍ دغلبې اوبري وخت نږدې دی .
مؤمينانو ته ښه خبر ورکړئ.
دالاندې حديث دمخکېنيو ايتونو اړيکه زمونږ دعصر دموعود سره تائيدوي:
**نصر من الله و فتح قريب يعنى فى الدنيا بفتح القائم .٧**
ياري دپروردګار ده. اودفتح اودبري وخت نږدې دی.
يعنی، په دنيا کې دقائم دفتح اودبري وخت.
**"هو الذى ارسل رسوله بالهدی و دين الحق ليظهره على الدين كله ".انها نزلت فى القائم آل محمد و هوالامام الذى يظهره الله على الدين كله .٨**
هغه دی چې خپل رسول ئې دخلکو دهدايت لپاره اودحق دين دتاسيس په خاطرراوليږل. «ترڅو ټول دينونه دخپل سيوري اواطاعت لاندې راولي.»داايت د آل محمد قائم په باره کې نازل شوی دی. دا هغه امام دی. چې ټول دينونه به دخپل سيوري لاندې راولي.
**"ليظهره على الدين كل "قال على جميع الاديان عند قيام القائم .٩**
(په تفسيرکې):«ترڅو ټول دينونه دخپل سيوري لاندې راولي»وفرمايل:
په ټولو دينونو به دقايم دظهور اثر وي.
دصف سورة ،مخکېني ايتونه مونږ ته رازده کوي:

- دپروردګار دائین ظهور اودمنکرینو لپاره دهغه پراختیا له رنځه ډکه اوسخته ده. امّا الهي نقشه اجرا ته رسي اود«خدای نور» ټول جهان ته خپریږی .داحقیقت په نورو ډیرو ایتونو کې هم تائیدشوی دی.
- «نورالله»(دالله روښنائي)په معنی کې د«بهاءالله»سره مطابق ده.دانور دپروردګار دوعدې په اساس په مقرره موده کې ټول جهان ته ورسي.

**فسوف یجتمع الله فی ظله کل من فی الملک ... ١٠**

**حضرت بهاءالله**

ژردی چې پروردګار دعالم ټول خلک دخپل سیوری لاندې راولي.

- دصف سورة دمدني سورتونو څخه دی ، چې دنزول په وخت کې فتح اوغلبه دمسلمانانو په نصیب شوې وه.دفتح اوغلبي لپاره وعدې لزوم نه لرل.

- دبهائې ائين منکرين په ايران کې دهغه په زادګاه کې د«خدای دنور»دخاموشولو لپاره دوه وسلی په کاروړلې اووړي .
اوله وسله: دهغوې زراوقوت ؤ. چې ددې ائين د«۲۰۰۰۰»نه زيات پيروان ئې مړه کړل.
اودسل هاوزره نورو مالونه ئې په غصب اوغارت سره يو وړل.ولي دهغه ځليدونکې رڼا دخپريدلومخه ئې ونه نيوله.
دوهمه وسله : ددې ائين ددبنمنانو ،تهمت اودرواغو تړل ؤ .دې دروغجنو مختلفې ردوونکې نوشتې کولې. ترڅو داائين رد کړي .د«خدای دنور»خاموشول په خولی سره دې وسلې ته اشاره ده.

**اذا قاموا الكل بالنفاق لهذا النور المشرق من شطر الافاق .۱۱ حضرت بهاءالله**

هغه وخت چې عامو خلکو دنفاق له مخې ددې «نور»
په وړاندې چې دجهان دافاق څخه راختلی دی ،قیام
کړی دی.
په همغه ترتیب چې د«صف سورة»په نهم ایت کې
موولیدل ،فرمائي «هغه دی چې خپل پیغمبر ... ئې
راولیږل ترڅو ټول ادیان دخپل سیوری لاندې راولي
.»بهائې ائین د ټول عالم دخلکو دنجات اوسعادت لپاره
راغلی دی .باالاخره ټول ادیان به دخپل سیوری لاندې
راولي اومتحد به ئې کړي .ادیان به ټول یو دین اوائین
شي او ټول امتونه به یو امت شي. په همغه ترتیب چې
مخکې موولیدل ،دقران یو بل سورة (۵-۱: ۹۸)هم
خبر ورکوي. چې باالاخره ټول ملتونه اودهغې جملې
نه «دکتاب والاوبې دینه خلک»دانکار څخه لاس
واخلي ،ددې ائین په حقانیت به اقرار وکړي.
ددې ائین په جهان بینی اوجهان دوستی په اسماني
ایتونو کې ډیر تاکید شوی دی:
**اې دعالم خلکو!ټول یو شان اودیوې څانګې پاڼې
یاستې. په محبت ، اتحاد اواتفاق سره چلند وکړئ.
دحقیقت په لمر قسم دی ،چې داتفاق اویوالي رڼا
،افاق روښانه اومنور کړي.۱۲**

**حضرت بهاءالله**

"



---

---

**ټول دعالم په اصلاح کې کوښښ وکړئ. عالم یو وطن دی...باید ټول په پوره اتحاد او اتفاق سره دهغه په جوړولو کې همت په کار واچوئ.۱۳اې د عالم خلکو!تاسې دیوبحر څاڅکي یاستې،اودیوې ونې پاڼې اختلاف اونفاق پرېږدئ اواتفاق اواتحاد وکړئ. ۱۴ اې دوستانو!...دټول اهل عالم سره په پوره محبت چلند وکړئ.۱۵ حضرت بهاءالله**

**په خپل ځان مه مشغولیږې. دعالم داصلاح په فکر کې اودامتونو په تهذیب کې اوسې.۱۶**

**حضرت بهاءالله**

**حضرت بهاءالله فرمائي: څومره نیکمرغه دی. هغه څوک چې نن ورځ دعالم اصلاح په قصد ویده کیږي. اوپورته کیږي .بهترین عمل دعالم سره مینه اومحبت دی.۱۹**

**حضرت بهاءالله**

حضرت باب دوینا په اساس ټول ادیان دهغې جملې نه داسلام دین باالقوه دټول جهان دخلکو لپاره راغلي دی.له دی نظره هغوې ټول یو شان دي. امّا ددې هدف اولوی ارمان دتحقق وخت اوزمان یواځی زمونږ په عصر کې امکان وموند .اسلام دخپل عمر دپای په وخت کې دجهان دخلکو یوپرشپږ.مه برخه اوسیدونکی دخپل سیوری لاندی لرل .

## دصافات سورة

داسورة هم درسولانو دظهور خبر ورکوي:

**وَانْ كَانُوا لَيَقُولُونَ لَوْ ا ن عِندَنَا ذِكْرًا مِّنْ الْاولِينَ لَكُنا عِبَادَ اللهِ الْمُخْلَصِينَ فَكَفَرُوا بِهِ فَسَوْفَ يَعْلَمُونَ وَلَقَدْ سَبَقَتْ كَلِمَتُنَا لِعِبَادِنَا الْمُرْسَلِينَ انهُمْ لَهُمُ الْمَنصُورُ ونَ وَان جُندَنَا لَهُمُ الْغَالِبُونَ فَتَوَل عَنْهُمْ حَت حِين .**

**دصافات سورت،۱۶۷-۱۷۴،ایتونه**

ځنې دهغوې ښخه ويل :که مونږ دمخکنيو په شان «ذکر»لرلی، دخدای مخلص بنده ګان به رانه جوړ شوي وی .(اما کله چې ظاهر شو.)له هغه ښخه ئې انکار وکړ.ژر دی. چې د«خپلو اعمالو»په نتيجه پوه شي!په يقين سره زما فرمان دهغو بنده ګانو په باره کې چې رسالت ته ئې ليږم ،مخکې صادر شوی دی .
دهغوې سره به کمک وشي .زما لښکر به پر هغوې [د پيغمبرانو په دښمنانو]برې ومومي .دهغو[منکرينو]نه مخ واړوه. تر«حين»پورې .

قران اوبهاءالله



---

مخکېني ايتونه دالاندې ټکي مونږ ته رازده کوي:
- خلک وائې: مونږ دمخکنيو په شان نه يو .که پروردګار «ذکر»بل پيغمبر راوليږي ،مونږ هغه منو ، اما دخلکو سنت هم تغيرمنونکي نه

دي.داځل ئې هم دمخکېنیو په شان دخپل موعود
څخه انکار وکړ.

- دخلکو انکار بې ګټې دی.هغه رسولان اودپروردګار هغه رااستونکی باالاخره دپروردګار په کمک به پر دښمنانو غالب اوبری پیداکړي .

په مخکېنې ایت کې یوبل رمز هم کارول شوی دی:

**فَتَوَلَّ عَنْهُمْ حَتَّىٰ حِينٍ .**

**دصافات سورت،۱۷۴-ایت**

وروسته له هغو[منکرینو]مخ واړوه تر«حین»پورې.
مخکېنی ایت دوه ځلې زمونږ دعصر دموعود دظهور په اړه دصافات په سورة کې راغلی دی. د«حین»په کلمه کې څه رمز پټ دی؟دحضرت بهاءالله دظهوردتاریخ په اړوندو ایتونو کې هم همدا کلمه ولیده:

**وَلَتَعْلَمُنَّ نَبَأَهُ بَعْدَ حِينٍ .**

**دصاد سورت،۸۸-ایت**

په یقین سره به په هغه خبر وروسته له «حین»یعنی څه(مودې)څخه وروسته پوه شي.
پس دصافات په سورة کې د«حین»څخه منظور څه دی؟ایا مبارک ایت مونږ ته را زده کوي. چې دمنکرینو څخه مخ واړوئ ،هغوې ته اعتناونه کړو،

اوصبر کوونکي اوسو.ولې داسې یوچلند وکړو؟ځکه چې وروسته د «حین»اووخت دانقضاءاوتیریدلو  څخه چې ټاکل شوې وه. موعود ظاهر شي. او دپروردګار وعده به سرته ورسي.
د«حین»کلمه دقران په نورو ایتونو کې هم کارول شوې ده . په لاندې ایتونو کې ،داکلمه دالهي نقشې تدریجې تکامل ته په اشارې سره چې د انسانې عالم یووالي دتاسیس لپاره  دبهائې ائین ترتولو مهم اجتماعي هدف دی، کارولې ده:
**وَان هَذِهِ امتُکُمْ ا مةً وَاحِدَةً وَانَا رَبکُمْ فَاتقُونِ فَتَقَطعُوا امْرَهُم بَيْنَهُمْ زُبُرًا کُل حِزْبٍ بِمَا لَدَيْهِمْ فَرِحُونَ فَذَرْهُمْ فِي غَمْرَتِهِمْ حَتى حِين .                دمؤمنون سورت،۵۴-۵۲،ایتونه**

داستاسې امّت یو امت دی. اوزه ستاسې پروردګار یم
.پس له ماڅخه اعتناء وکړئ .امّا خلکوئې «امر»
(ائین ئې)پخپل منځ کې ویشلی دی. اوپه بې اتفاقې کې
دي. اوهرډله څه چې لري په هغه خوښ دي .پس
هغوې لره تر«حین»پورې په غفلت کې پرېږده.
دپیړیو اوعصرونو په اوږدو کې خلکو دپروردګار
ائین په مختلفو ډلو ویشلی دی .اما دپروردګار دوعدې
په اساس ،دې بې اتفاقې ته پای شته دی.تفرقه
اچوونکو ته تر«حین»پورې مهلت ورکول کیږي
.د«حین»کلمه په دې ایتونو کې په لطیف شکل سره
حضرت بهاءالله ظهور ته اشاره کوي .ځکه
د«حین»تررارسیدو، (۶۸)کال پورې دادیانو تقسیم
ادامه لرله. وروسته له هغه زمانه ، دحضرت بهاءالله
په ظهور سره په الهي عالم کې دې عصر پای وموند .
ددې وړاندوینې داتحقق، دپروردګار نوی ائین دټول
جهان خلکو په ایمان پورې اړوند دی.
دصافات سورة کې ،نور ایتونه هم دپروردګار ددې
رالیږونکو په باره کې، زمونږ دعصر ددوه موعودو
په باره کې ذکر شوي دي. دهغې جملې نه داایتونه:

**بَلْ جَاء بِالْحَقِّ وَصَدقَ الْمُرْسَلِينَ .**
**دصافات سورت، ۳۷-ایت**
حقيقت راغی. او هغه رالیږونکي تصديق شو.
**وَسَلَامٌ عَلَ الْمُرْسَلِينَ .**
**دصافات سورت، ۱۸۱-ایت**
درود په هغو رالیږل شوو.
په اسماني کتابونو کې ډیر شباهت دی.په همغه توګه چې ذکر شو، دصافات دسورة دايتونو په اساس :ځنې له هغو ښځه ویل:«که مونږ هم دتیرو په شان «ذکر»یعنی «پیغمبر»لرلی ،مخلص بنده ګان شوي به وی.»ددې مطلب مشابه په انجیل کې هم پیداکولای شي:
وای پر تاسې اې ددين علماؤ رياکارانو!تاسې دسپين کړی شوو قبرونو په شان یاستې. چې ظاهر ئې ښکلی دی. اوپه داخل کې دمړو دهډوکو اوکثافت ښځه ډک دي! تاسې کوښښ کوې. چې خپل ځانونه ديندارە وښائې. اما دهغې مقدس نماچپنو لاندې د ريا او له ګناهونو ډک زړونه پراته دي. وای پر تاسو اې ديني علماؤ.

**تاسې دهغه پيغمبرانو لپاره چې ستاسې نيکونو ووژل ، په خپل لاس ديادبود بناء جوړ وې. اودهغو پاکانو قبرونه چې دهغوې په لاس هغه وژل شوي دي ښکلا ورکوي اووائې:که مونږ دنيکونو پرځای وی، پيغمبران به مونږ نه وی وژلي». ۲۰**

**حضرت مسيح**

**متی انجيل ،۲۳فصل، ۳۰-۲۷ ،ايتونه**

# دمجادلې سورة

داسورة هم ،دخو نښانو په لرلو مونږ سره کومک کوي. چې خپل موعود وپيژنو:

**اسْتَحْوَذَ عَلَيْهِمُ الشيْطَانُ فَانسَاهُمْ ذِكْرَ اللهِ اوْلَئَكَ حِزْبُ الشيْطَانِ... كَتَبَ اللهُ لَاغْلِبَن انَا وَرُسُلِي...اوْلَئَكَ [مؤمنون]حِزْبُ اللهِ الَا ان حِزْبَ اللهِ هُمُ الْمُفْلِحُونَ.**

**دمجادله سورت،۲۲-۱۹ ،ايتونه** شيطان پر هغوې تسلط پيداکړاوباعث شو. چې«ذکر الله»هير کړي.«هغوې دشيطان له حزب څخه دي»دپروردګار تقدير داسې وه

:«چې زه اوپيغمبران به غالبه شو...»مؤمينان (هغه چې په خدای اوپه ورځ داخرت ايمان لري)دحزب الله څخه ګڼل کيږي. په يقين سره پوه شي. چې دخدای حزب رښتينی دی.

مخکېني ايتونه دهغه کسانو پورې اړوند دي.چې د خدای سره سرجنک لري. داخلک هميشه وه او وي به. يواځې په دقت سره کولای شو. په دې ايتونو کې دهغوې رابطه ددې عصر دموعود سره پيداکړو. له دې نظره ،په دې ايتونو کې دا درې نښې ليدل کيږي:

- «ذکرالله »چې دحضرت باب لقب دی.
- «رسلی»چې څو رسولانو ته اشاره ده.

---

- ❖ دحضرت باب په اثارو کې د « شيطان حزب»دپروردګار دائين دښمنانو ته په اشارې سره کارول شوې ده .وروسته دهغه دشهادت نه يو دپيروانو څخه ئې دارنګه وويل:

**فأسئلک اللّهم بجودک ان تدخلن فی باب حرمک و تکتب اسمی فی الزّائرين لنفسک وتعذّب الّذين جعلوا هذا اليوم يوم الفرح و رضوا بفعل حزب الشّيطان...انّک علی کلّ شيئ قدير و بکلّ شيئ محيط. مجموعۀ مناجات حضرت نقطۀ اولی ، صفحات٣٦-٣٥**

- «حزب الله»داهغه لقب دی.چې حضرت بهاءالله خپلو پیروانو ته ورکړی دی. اوپه کراتو ئې په اثارو کې کارول شوی دی:

**یا«حزب الله»دعالم مربي عدل دی. چې دوه مهمې برخې لري: مجازات اومکافات اودادوه برخې داهل عالم دژوند لپاره دوه چینې دي.۲۱**

**حضرت بهاءالله**

**یاحزب الله!پخپل ځان مه مشغولیږئ. دعالم د اصلاح په فکراودامتونو په تهذیب کې اوسئ.۲۲**

**حضرت بهاءالله**

**یا حزب الله!په ښکاره اوپه یقین سره پوه شئ:فساد نزاع قتل اوغارت دځمکې دمخ د داړونکو ځناورو کار دی.دانسان مقام په علم اوعمل دی...یا«حزب**

**الله»دټول عالم احزابو سره په محبت چلند وکړئ .۲۳ حضرت بهاءالله**

**قلم اعلی «حزب الله»ته وصيت کوي. په محبت ،شفقت ،حکمت اومدارا سره ورته امر کوي.۲۴ حضرت بهاءالله**

په مخکښنيو ايتونو کې دمجادلې سورة څخه پروردګار شهادت ورکوي چې :«زه اوپيغمبران به مې غالبه شو».دالاندې ايتونه دسورة يونس څخه هم همدا خبر تائيد وي:

**فَهَلْ يَنتَظِرُونَ الامِثْلَ ايامِ الذِينَ خَلَوْاْ مِن قَبْلِهِمْ قُلْ فَانتَظِرُواْ انِّي مَعَكُم مِّنَ الْمُنتَظِرِينَ ثُم نُنَجِّي رُسُلَنَا وَالذِينَ آمَنُواْ كَذَلِكَ حَقا عَلَيْنَا نُنجِ الْمُؤْمِنِينَ.**

**ديونس سورت،۱۰۳-۱۰۲،ايتونه**

ايا په غير له ګذشته ګانو له وقايعو څخه انتظار لري؟ووايه!په انتظار کې اوسې!زه هم تاسې سره په انتظار کې يم !په هغه وخت کې به زه خپلو پيغمبرانو اومؤمينانو ته نجات ورکړم ،دارنګه پرماواجب دي.چې مؤمينانو ته نجات ورکړم.

مخکښني ايتونه مونږ ته رازده کوي چې :

❖ حضرت بهاءالله خپل ځان ته په اشارې سره پخپلو اثارو کې دقلم ابهی په ځای قلم اعلی کارولی دی .داپخپله ددوه موعودو ترمنځ دوحدت نشانه ده .قلم اعلی الهي اعظم روح ته اشاره ده.



---

- رد، اذیت اوانکار دخلکو دروزګار طریقه ده. په دې طریقه کې تغیر نه وه، اونه به وي.
- درسولانو ساتنه اوحمایت اودهغو دپیروانو ساتنه اوحمایت هم دپروردګار طریقه وه، اووي به. بې دپروردګار دساتنې اوحمایت څخه ،هیڅ یو دنن په جهان کې نه رامنځ ته شوی اونه به

هم رامنځ ته شي .یعنی نه ئې ریښه پیداکړې،
اونه به ئې پیداکړي .

- په دې عصر کې دیو پیغمبر څخه زیات ظهور
ته رسي.

# دیاسین سورة

## دیوې تاریخی پیښي داستان په دې ظهور کې

په دې لاندې سورة کې هم ډیرې مراجع زمونږ
دعصر ددوه موعودو دظهور اړوند دي:
**وَسَوَاء عَلَيْهِمْ انذَرْتَهُمْ امْ لَمْ تُنذِرْهُمْ لاَ يُؤْمِنُونَ اتبَعَ الذِّكْرَ وَخَشِيَ انمَا تُنذِرُ مَن الرحْمَن بِالْغَيْبِ .**
**دیاسین سورت، ۱۰-۱۱ ،ایتونه**
دهغوې لپاره یو شی دی. که هشدار ورکړئ. اوکه ئې ورنه کړئ. په هرصورت سره ایمان نه راوړي .ته یواځې هغه چاته خبر داری ورکوې. چې د«ذکر»څخه پیروي کوي. اودپروردګاره ایره ولري. مخکښني ایتونه مونږ ته رازده کوي. چې یواځې رښتیني مؤمنان دپروردګار دعدالت څخه ایره لري. اودموعود په پیژندنه یعنی د «ذکر»په پیژندلو مؤفقه کیږي . ټولو خلکو ته هشداراوخبر داری بې فایدې دی.

وروسته پروردګار دداستان خبره رامنځ ته کوی:
**وَاضْرِبْ لَهُم مثَلاً اصْحَابَ الْقَرْيَةِ اذْ جَاءهَا الْمُرْسَلُونَ .**
**دیاسین سورت،۱۳-ایت**
دهغه دیار داوسیدونکو داستان چې رسولان هلته
لاړل. هغوې ته مثال راوړه.
**اِذْاَرْسَلْنَا اِلَيْهِمُ اثْنَيْن فَكَذبُوهُمَافَعَزَزْنَا بِثَالِثٍ فَقَالُوا اِنَّا اِلَيْكُم مُّرسَلُونَ قَالُوا مَا اَنتُمْ الابَشَرُ مِّثْلُنَا وَمَا انزَلَ الرحْمن مِن شَيْءٍ انْ انتُمْ الاتَكْذِبُونَ قَالُوا رَبنَا يَعْلَمُ انَّا الَيْكُمْ لَمُرْسَلُونَ وَمَا عَلَيْنَا الاالْبَلاَغُ الْمُبِينُ .**
**دیاسین سورت،۱۷-۱۴،ایتونه**



---

کله چې ماهغو(دهغه دیار اوسیدونکو)ته دوه نفره
ورولیږل ،هغه لیږل شوی ئې دروغجن وګڼل

،وروسته مې ددریم نفر په لیږلو سره هغو (لیږونکو ته)تقویت ورکړ،هغوې (هغو لیږونکو)وویل:مونږ دخدای له لورې راغلی یو .(خلکو په ځواب کې ورته)وویل:
تاسې یواځې زمونږ په شان انسانان یاستې ،خدای ځوک نه دي رالیږلي .تاسې په دروغو خبرې کوې.(هغو رالیږل شوو په ځواب کې)ورته وویل:«پروردګار په دې پوهیږي. چې مونږ دهغه رالیږونکي یو .زمونږ وظیفه په غیر له خبرولو په روښانه ژبه بل څه نه دي.»
مخکېني ایتونه دواقعې خبر راکوي. داواقعه څه شی ده؟اودا دوه رالیږونکي اوهغه دریم رالیږونکی کوم کسان دي.همغه خالق چې داایتونه ئې نازل کړي دي، دارمز ئې هم دموعود پوسیله حضرت بهاءالله (یوله هغه رالیږل شوو)څخه مونږ ته روښانه کړ. ،حضرت بهاءالله په تفسیر کې «**فَعَزَّزْنَابِثَالَثٍ** »(وروسته مې په دریم نفر هغه تقویه کړ)دارنګه فرمائي:
**فاعلم بان اول ما بعثناه بالحق فهو علی قد اشرقناه عن افق الفارس...وآخر مابعثناه ...**
**باسمناالقدوس...وعزّزناهما بهذاالجمال ...۲۵**
**حضرت بهاءالله**

پس پوه شه چې لمړی نفر مې چې دحقیقت داشاعې اوخپرولو لپاره مبعوث کړ«علی»ؤ.هغه مې دفارس له افق څخه راپورته کړ...بل نفر مي چې مبعوث کړ نوم ئې قدوس واخیست. هغه دوه نفره مې ددې «جمال»سره مرسته کوونکي کړل...
په مخکښنې وینا کې ،حضرت بهاءالله دقران ایت تفسیر کړ ،هریو ئې له هغو درې نفرو معرفي کړل:

- **اول نفر** «علیّ» یعنی «علی محمد»چې ملقب په باب ؤ.
- **دوم نفر** دحضرت باب مهمترین پیرو ملقب په قدوس ؤ.
- **دریم نفر** حضرت بهاءالله ؤ، چې د«جمال»په کلمه کومه چې د«جمال مبارک»مخفف ده. معرفي شوی دی.

دتاریخ دشهادت په اساس ، حضرت بهاءالله دحضرت باب دپیروانو دحمایت لپاره چې دشیخ طبرسي په قلعه کې دحکومت لخوا محاصره شوي ؤ دهغې قلعې خوا ته حرکت وکړ، اما د لارې په اوږدو کې گرفتاره شول، اومقصد ته ونه رسیدل.

حضرت بهاءالله يواځې مخکېنی ايت ديسين دسورة
څخه تفسير کړی دی. ښه به وی. چې نور ايتونه ددې
سورة څخه چې زمونږ دعصر ددوه موعودو پورې
اړه لري. بررسي اومطالعه کړو.دمخکېني ايت څخه
وروسته ،قران مجيد نورې نښانې مونږ ته راکوي.
دانښاني په لمړي سرکې دخبرو اوګفتګو په شکل
دخدای له لوري دپيام راوړونکو اودهغو پيام
راوړونکو دمنکرينو ترمنځ صورت نيسي .
وروسته له دې چې هغه دخدای درې تنه رالیږونکي
وائي: «زمونږ يواځنې وظيفه خبر ورکول
دي»منکرين ، هغوې ته ځواب ورکوي:
**انا تَطَيرْنَا بِكُمْ لَئَن تَنتَهُوا لَنَرْجُمَنكُمْ وَلَيَمَسنكُم مِّنا عَذَابٌ الِيمٌ.** **دياسين سورت،١٨-ايت** مونږ ستاسې
ديدار په بد فال سره نيسو .که له خپلو ادعاو څخه لاس
وانخلئ ،تاسې سنګساروو.په هغه صورت کې به
ستاسې په نصيب دردناک عذاب وي.
دپروردګار رالیږونکي په ځواب کې وائي:
**قَالُوا طَائِرُكُمْ مَعَكُمْ ائَن ذُكِّرْتُم بَلْ انتُمْ قَوْمٌ مسْرِفُونَ .**
**دياسين سورت،١٩-ايت** ستاسې برخليک ــ
ښه يابد ــ ستاسې په لاس کې دی .ايا په تذکر ورکولو

کې کوم تاوان شته دی؟ په يقين سره تاسې تجاوزکوونکی خلک ياستی .(دخپل حدڅخه دباندې پښې ږدی)دپروردګار دراليږونکو اودهغو دمنکرينو ترمنځ خبرې دلته پای ته رسي:

**وَجَاء مِنْ اقْصَ□ الْمَدِينَةِ رَجُلٌ يَسْعَ□ قَالَ يَا قَوْمِ اتبِعُوا الْمُرْسَلِينَ اتبِعُوا مَن لايَسْالُكُمْ اجْرًا وَهُم مهْتَدُونَ .**

**ياسين سورت، ۲۱-۲۰ ،ايتونه** هغه وخت يو«مرد»دلرې ښار څخه په منډه منډه راغی. او وئې ويل:«اې زما قومه!له دې رسولانو څخه پيروي وکړئ. له هغه چاڅخه چې له تاسې مزد نه اخلي. اوپه خپله ئې هدايت موندلی دی.»

---

❖ دمولانامحمد علی نظر: This “man” represents the believer in the Truth.

دغه شخص چې په دې لاره رارسي. څوک دی؟یواځنې نښانه ئې چې لرم هغه داده.   چې هغه دلرې ښار څخه راغی .دوه کلمې «**اَقْصَی الْمَدِیْنَةِ**»کولای شئ. په دوشکله ترجمه کړئ:

- **دښار دلرې محل څخه.**
- **دلرې ښار څخه.**

که لمړې معنا ومنو،ایت دیونامعلوم شخص پورې مربوطیږي. چې په همغه یوځای دښار کې ایمان راوړي. اوخلک ایمان راوړلو ته رابولي . که دوهمه معنا ومنو، ددې وړاندوینې تحقق دحضرت باب په لمړني مؤمن او لوړپوړي دانشمند چې په باب الباب ملقب  دی، پیداکوو .دباب الباب وطن دبشرویه په ایالت خراسان کې ؤ ،اود حضرت باب وطن شیراز ښار دی.دادوه ښارونه دایران هیواد په مختلفوځایونو کې دي. بشرویه دایران په شمال شرق کې اوشیراز دایران په جنوب غرب کې قرار لري .باب الباب هم دشیخ طبرسي په قلعه کې دقدوس سره یوځای ، دخپل ځان په دفاع اودحضرت باب دټولو پیروانو ددفاع

لپاره څه موده دحکومت دقواو سره وجنګیدل.
اوباالاخره ئې خپل ځان دحضرت باب دائین ددفاع په لار کې قربان کړ.دمدافعینو په منځ کې قدّوس،لمړی مقام اوباب الباب دوهم مقام لرل .دمدافعینو شمیر په دی قلعه کې ۳۱۳تنه ؤ. چې دهغوې شمیره په احادیثو کې پیش بیني شوې ده.
په دې اساس ،ددې څلوروتنو مشترکه وجه دناصرالدین شاه دحکومت په وړاندې په مستقیمه اویا غیر ې مستقیمه توګه مقاومت دی.حضرت باب او حضرت بهاءالله دواړه په دې وخت کې په زندان کې ؤ. اومستقیماً ئې نشو کولی په دې مبارزه کې شرکت وکړي. دوه نورو نفرو قدوس اوباب الباب مستقیماً په دې مبارزه کې شرکت لرل. اوباالاخره خپل ځانونه ئې په دې لاره کې فدااوقربان کړل.

ناصرالدین شاه خپل ترور زوي ته په خطاب کې چې دلښکرمشروه، اوپه بابیانو ئې په حمله کې دقوماندې مشري په غاړه لرله په یولیک کې لیکلي وه:
**اې زما نامداره ترور زویه! غواړم چې داګمراه کوونکې طایفه له منځه یوسئ ،نابود ئې کړئ. چې یووړوکی اثر ئې پاتې نشي. اوپه مکمنه توګه دروزګار له صفحې اومخ څخه ورک اونابود شي.۲۶**

## دجناب قدوس څخه یولیک

په همغه ترتیب چې وموليدل ،دقران دایتونو په اساس ،هغو رالیږونکو وویل:
**رَبنَا یَعْلَمُ انا الَیْکُمْ لَمُرْسَلُونَ وَمَا عَلَیْنَا الاالْبَلاَغُ الْمُبِینُ .**
**دیاسین سورت،۱۷-۱۶ ،ایتونه**
پروردګارپوهیږي چې زه دهغه رالیږونکی یم .زما وظیفه په غیر له دې نه چې خلکو ته په روښانه ژبه خبر ورکړم بل څه نه ده.

کله چې جناب قدوس داصحابو دډلې سره له هغې جملې نه جناب باب الباب دشیخ طبرسي په قلعه کې محاصره ؤ. دلښکرو مشر ته یو لیک ولیږل. چې دهغه لیک دمتن ځنې برخې دلته رانقل شوي دي.ددې لیک مطالب نښانه ده. دقران دوړاندوینو دتحقق څخه د رالیږونکو په باره کې:
پروردګار شاهد دی. چې دابینوایان ددښمنې اوخصومت څخه نفرت لرو. جګړه اووژنه خوپه ځای پریږدی ...مونږ ددینې مسئولیت په اساس زړکلونه ددې موعود اوددې ورځې دراتګ منتظر و. اودهغې ابلاغ مونږ کړی دی. اودغه علماو دمعلومو دلایلو څخه سترګې پټې کړې. نه یواځې خپل ځانونه ئې محروم کړل بلکه دعوامو په غولولو ئې هم شروع کړې، ټول ئې له دی فیض اورحمت څخه محروم کړل...

بې له تحقيق اوڅيړنې څخه ئې ، دبنده ګانو دکفر اووژنې حکم ورکړ. اوبې له تجسس څخه ئې تحقير کړل اومظلوم اوبيچاره عوام ئې ددې اواره مظلومانو قتلولو ته تحريک کړل.ديوې ورې مظلومې ډلې خلکو وژل ئې پروردګار ته دنږدی کيدلو وسيله قلمداد کړه .اوپه مشتبه خلکو ئې امر وکړ. اوحضرت سلطان ئې په اشتباه کې واچول .اوهغوې لښکر کشې اوخلکو وژنې ته واداره کړل .دعالم ترنابودې پورې ددې دولت په لمن دننګ توړداغ پريښود .اوکه دوی دحق اوباطل تميز کړی وی. لازمه وه. چې ددې «امر»دمقام دظهور په اړه تحقق کړی وی. اوددې دعواتشخيص ئې له ټولو کارونو څخه اعظم اولوی ګڼلې وی. اويوه لحظه ئې بايد ارام نه وی کړی. ترڅو

مدعي ئې نه وی لیدلی. بې له غرضه اونفساني
غوښتنو ئې له هغه سره مذاکره اومناظره کړې وی...
له هیچا سره کینه نه لرو. اونه مونږ له چاسره کینه
کړې ده .اودمظلومانو یوه ډله یو.   په دې بیابان کې
راحصاریو .ډیر زیات صدمات اوتکلیفونه راته
ورسیدل ،لاره راکړئ. ترڅو یوبل ملک ته سفر
وکړو. اوله هرڅه لوړو درګاه ګانو خواته ولاړ شو
.اودامملکت تاسې او علماوته پریږدو .اوکله چې لار
رانه کړې. اولاره دځلورو خواوڅخه وتړی. ستاسې
مقصد یوائځې ددې مظلومانو وژل دي. په غیر له دفاع
څخه بل مسئولیت نه لرو. اوپه دفاع کې هم په دې
یقین لرو. چې په غیر دشهادت څخه بل کومه لارنه
لرو. اوددې شهادت لپاره په میړانه حاضر شوی
یو...دااصحاب چې په دې خرابه قلعه کې راحصار
دي .دځان ،مال اوهستې څخه تیردي ،دهغه مقام په
سبب چې دموعود په ظهور سره موترلاسه کړي
دي....اودحقیقت دعالم سره یوځای شوي یو. اوس
الهي قضایاؤ سره مخ یو. اوطوفاني حوادثواوپیښوته
منتظریو.
د۳۱۳ نفرو ددفاع داستان دحضرت باب پیروانو څخه
په طبرسي قلعه کې دناصرالدین شاه دقواو په وړاندې
په تفصیل سره دنبیل په تاریخ کې لیکل شوی دی.په

دی دفاع کې ددې ماجرا دوه لوی قهرمانانو قدوس اوباب الباب اودهغوې اکثره اصحابو دقربانې جامونه وڅښل.



## دمؤمنون سورة

دمؤمنون سورة هم درسول اورسولانو دهغو دپیروانو دراتلو خبر ورکوي.
دالاندې ایت دیوې ډلې خلکو دناخبرې خبر ورکوي اونښانې هم مونږ ته رازده کوي:

**وَلَا نُكَلِّفُ نَفْسًا الا وُسْعَهَا وَلَدَيْنَا كِتَابٌ يَنطِقُ بِالْحَقِّ وَهُمْ لَا يُظْلَمُونَ بَلْ قُلُوبُهُمْ فِي غَمْرَةٍ مِّنْ هَذَا .**

**دمؤمنون سورت، ٦٣-٦٢ ،ایتونه** چاته

دتوانائې څخه لوړ مسئولیت نه ورکوم .زما سره

يوكتاب دی.چې دحقيقت بيان كوي. اودهغو سره ظلم نه كيږي. اما دهغوې زړونه له دې څخه بې خبره دي. داكوم مسئوليت دی. چې خلک دهغه سرته رسولو توانائي لري؟دموعود پيژندنه. داكوم كتاب دی. چې حقيقت بيانوي ،اما خلک دهغه څخه بې خبره دي؟دموعود كتاب .خلک څنګه په ځان ظلم كوي؟دموعود نه په انكار سره.

راتلونكي ايتونه هم په پوره روښنائې زمونږ دعصر د«پيغمبرانو»دظهوره اوزمونږ دخلكو درفتار نه دهغوې سره خبر راكوي:

**افَلَمْ يَدبرُوا الْقَوْلَ امْ جَاءهُم ما لَمْ يَاتِ آبَاءهُمُ الْا ولِينَ امْ لَمْ يَعْرِفُوا رَسُولَهُمْ فَهُمْ لَهُ مُنكِرُونَ امْ يَقُولُونَ بِهِ جِنةٌ بَلْ جَاءهُم بِالْحَقِّ وَاكْثَرُهُمْ لِلْحَقِّ كَارِهُونَ وَلَوِ اتبَعَ الْحَق اهْوَاءهُمْ لَفَسَدَتِ السمَاوَاتُ وَالْارْضُ وَمَن فِيهِن بَلْ اتَيْنَاهُم بِذِكْرِهِمْ فَهُمْ عَن ذِكْرِهِم معْرِضُونَ .**

**دمؤمنون سورت، ۶۸-۷۱،ايتونه** ايا دپروردګار په كلام كې تامل اوځيرنه نه كوي؟ايا هغوې له داسې واقعې سره مخامخ شوي دي، چې دهغوې نيكونه ورسره مخامخ شوي نه ؤ ؟ايا په غير له دې بل څه شته دی. چې خپل پيغمبران نه پيژني. اوله هغو څخه انكار كوي؟ايا په غير له دې نورڅه دي. چې هغه ته

مجنون وائې ؟بلی حقیقت هغوې ته ښکاره شوی دی. امّا اکثره دحقیقت دمنلو څخه ډډه کوي .هغوې ناجایزه غوښتنې لري. که خدای دهغوې غوښتنو ته غوږ ونیسي ،ځمکه اواسمانونه اودهغوې اوسیدونکي به فاسد شي. (دهغوې دغوښتنو دمنلو په ځای)هغوې ته «ذکر»بخشش کړ.اما هغوې له خپل «ذکر»څخه مخ اړونکي شو.

---

❖ دخلکو لخوا دمعجزې غوښتلو ته اشاره .



---

---

زمونږ خالق له مونږ څخه غواړي. چې فکر اوتامل وکړو اودې پوښتنو ته ځوابونه ووایو:

- ایا دپروردګار کلام دخلکو پر وینا څه امتیاز لري، کله مو فکر کړی؟ځکه چې دخدای کلام دبنده ګانو دکلام سره دپرتلی اوقیاس وړنه دی.
- ایا نوی ائین دپخوانیو ادیانو دسنتو په اساس نه دی راغلی؟ دپیغمبرانو ظهور په ټولو عصرونو کې یوشی وه .هیڅکله پروردګار خپل بنده ګان دمعجزي له لارې دخپل پیغمبر دمنلو لپاره مجبورکړي نه دي . پیغمبران ئې په ظاهر کې دنورو خلکو په شان وي.
- ایا زمونږ دانکار علت دادی. چې نشو کولای خپل موعود وپیژنو ،لکه دهغو دلایل قانع کوونکي نه دي؟
- ایا کولی شو. پرموعود د دیوانه کیدلو تهمت دخپل انکار وسیله وګڼو ؟په ټولو عصرونو کې خلک دخپل موعود انکار لپاره په بهانو پسې ګرځیدلي دي.دموعود لیونتوب یوه له هغو بهانو څخه ده.زمونږ په عصر کې هم ډیر خلک یوائې دیوې جملې په ذکر سره دخپل موعود څخه انکار کوي.مثلاً وائي:«دادین دفلاني حکومت په لاس جوړ شوې دی.»دامنکران کوښښ کوي. چې ښکلی اوروښانه لمر په یو ناروا تصور سره وپوښوي.

- ددې پوښتنو په پای کې ،زمونږ خالق دخپل موعود دانکار اصلي علت زمونږ په خاطر راوړي:

**اكْثَرُهُمْ لِلْحَقِّ كَارِهُونَ .**

**دمؤمنون سورت، ۷۰-ايت**

دهغوې ډير دحقيقت دمنلو څخه كركه لري.

ولی خلک دخپل موعود دمنلو څخه كركه لري؟دې پوښتنې ته ځواب په ۲۷فصل کې په تفصيل سره دبحث لاندې نيول شوی دی.

دالاندې ایتونه زمونږ دعصر داکثره خلکو دحال بیان دی:

**بَلْ قَالُوا مِثْلَ مَا قَالَ الْاولُونَ... سَيَقُولُونَ لِلهِ قُلْ افَلَا تَذَكَرُونَ... سَيَقُولُونَ لِلهِ قُلْ افَلَا تَتقُونَ... سَيَقُولُونَ لِلهِ قُلْ فَانىٰ تُسْحَرُونَ بَلْ اتَيْنَ اهُم بِالْحَقِّ وَانـهُمْ لَكَاذِبُونَ.**

**دمؤمنون**

**سورت، ۹۰، ۸۹، ۸۵، ۸۱،ایتونه**

بلکه وئې ویل دهغه څه مشابه چې مخکنیو ویلی وه...په عجلې سره دهمغو مشابه به خدای ته (یادخدای په باره)کې ووائې. ووایه:ایا پند نه اخلئ؟... ډیر ژر دی. یوځل بیا دهغې مشابه خدای ته ووائې.ووایه :ایا ویره نه لرئ؟...ډیر ژر دی چې یوځل بیا دهغه مشابه خدای ته ووائې.تاسې څرنګه سحر شوي یاستې (ولې تاسې فریب خوړلی دی؟)بلې هغوې ته حقیقت راغلی دی. امّا هغوې هغه دروغ ګڼي.

داایتونه مونږ ته رازده کوي. چې دمخکنیو روند به ادامه پیداکړي. دخلکو سنت اوروند څه ؤ په غیر له دې چې دپیغمبرانو څخه انکار وکړي؟ دتاکید لپاره ددې ایتونو په اوږدو کې ،داایت ( ژر دی دهغه مشابه به خدای ته ووائې) درې ځلې تکرار شوی دی .په ټولو عصرونو اووختونو کې ،خلکو دخپل قول څخه هغه څه چې غوښتي دي ویلي دي. وروسته یې خدای

ته نسبت ورکړی دی .مسیحیان وائي خدای په انجیل کې مونږ ته راښودلي دي. چې «مسیح یواځنې لاره خدای ته ده» .مسلمانانو وائې «خدای پاک زمونږ رسول ته «خاتم النبین» ویلی دی.په دې طریقه ،دخپل ناسم تفسیر په تاویل سره هغه څه چې غواړي خدای ته نسبت ورکوي.

دمخکېني ایت په اخر کې ،پروردګار په پوره روښنائې سره دنوي ائین دظهور اودخلکو د انکار څخه خبر ورکوي:

**بَلْ اتَیْنَ اهُم بِالْحَقّ وَانهُمْ لَکَاذِبُونَ .**

**دمؤمنون سورت، ۹۰-ایت** بلې

هغوې ته حقیقت راغلی، اما هغوې هغه دروغ ګڼي.

په دې سورة کې چې د «مُؤْمِنُوْن»نوم لري. دمنکرینو دحال دوصف څخه وروسته پروردګار دې ائین ته دمؤمنینو خبر ورکوي. اویوځل بیا دخپل موعود نوم «ذکر»په یاد راوړي:

**انهُ كَانَ فَرِيقٌ مِّنْ عِبَادِي يَقُولُونَ رَبنَا آمَنا فَاغْفِرْ لَنَا وَارْحَمْنَا وَانتَ خَيْرُ الراحِمِينَ فَاتخَذْتُمُوهُمْ سِخْرِيا حَت انسَوْكُمْ ذِكْرِي وَكُنتُم مِّنْهُمْ تَضْحَكُونَ انِّي جَزَيْتُهُمُ الْيَوْمَ بِما صَبَرُوا انهُمْ هُمُ الْفَائِزُونَ .**

**دمؤمنون سورت، ۱۱۱- ۱۰۹،ايتونه**

زما دبنده ګانو ځخه يوډله ده. چې وائې :«پروردګاره! مونږ ايمان راوړی دی .مونږ وبخښه، اوپه مونږ رحم وکړه .ته بهترين رحم کوونکی ئې .ستاسې (بلې ډلې)هغه مؤمينان مسخره کړل ترهغه اندازې چې «زماذکر»ئې دياده ايستلی دی. اودهغو تمسخر ته ئې ادامه ورکړه . مانن ورځ هغوې ته دصبر په خاطر پاداش ورکړ.هغوې ربنتينې دي.

## درحمن سورة

## دبيان کتاب

درحمن سورة داول نه تراخره پورې زمونږ دعصر ددوه موعودو دظهور پورې اړوند دی.داسورة دارنګه شروع کيږي:

**الرحْمَنُ عَلمَ الْقُرْآنَ خَلَقَ ا لانسَانَ عَلمَهُ الْبَيَانَ .**
**درحمن سورت،۱۴-ایت**

پروردګاررحمان قران زده کړ.«انسان»ئې پیداکړ.
او هغه ته ئې «بیان» ورزده کړ.
په پورتني ایتونو کې دوه کلمې کارول شوی دی.چې توضیحاتو ته اړتیا لري.

## انسان

د«انسان»کلمه په دې ایت کې دانسان دنوع دپیداېښت پورې مربوط ده ،ځکه د انسان پیداېښت وروسته دقران له یادولو څخه راغلی دی.په دې کلمه کې رازپټ دی .ډیر مفسرین ،«الانسان»دکامل انسان په معنی یعنی دخدای پیغمبر تفسیروي.حدیث «خلق ادم علی صورته»اوایت شریف «**عَلمَّ ادَمَ الْاَسْمَاء کلها**».

---

❖ دمولانامحمد علی دوینا په اساس:

**...many commentators interpret al-insán as meaning the perfect man**
**i.e., the Prophet ...**
**The Holy Qur’an , p. 1044**

«ټول نومونه ئې ادم ته وښودل »(دبقره سورة، ۳۱- ایت)هم دادم دکلمې معنی روښانوي.
داایت هم مونږ ته د«انسان»معنا رازده کوي:
**انا عَرَضْنَا الْاَمَانَةَ عَلَ السمَاوَاتِ وَالْاَرْضِ وَالْجِبَالِ فَابَيْنَ ان يَحْمِلْنَهَا وَاشْفَقْنَ مِنْهَا وَحَمَلَهَا ا لانسَانُ انهُ كَانَ ظَلُومًا جَهُولًا . داحزاب سورت، ۷۲-ایت**
ما
الهي«امانت»اسمانونو، ځمکې اوغرونو ته وړاندې کړ.له دې کارڅخه ئې ايره اوبيم لرل، اود وړلو څخه ئې انکار وکړ .يواځې «انسان»هغه يوړ،اوهغه دخلکو دبې اعتنائي اوظلم سره مخامخ شول.
ددې ايتونو په اساس مخکېنې وعدې دحضرت باب په ظهور سره تحقق پيدا کړ:
**وانّ الله قد عرض ولايتنا عل السّموات والارض والجبال فا بين ان يحملنها واشفقن منها فحملها الانسان ذ كرالله الكبير ...۲۷**
**حضرت باب**

پروردګار زما «ولایت اومقام»اسمانونو،ځمکې اوغرونه ته وړاندی کړ.هغوې ددې امانت دوړلو څخه ډډه وکړه .پس انسان دخدای «لوی ذکر»(حضرت باب )هغه انتقال کړ.

**داسلام علما ددوه کلمو«ظَلُوْماً جَهُوْلاً»دمعنا ددرک کولو څخه عاجز پاتی شوې وه ، اوغالبً وائي «انسان»(نوع انسان)ظالم اوجاهل دی!دحضرت عبدالبهاء دوینا په اساس ،داتفسیر معقول نه دی.ځکه چې دداسې دروندااوله قدره ډک امانت انتقال یواځي الهي ټاکوونکو اودهغو رښتینو پیروانو لخوا امکان پذیر دی،نه دنادانو اوپرکینو خلکولخوا.**

**امّا دقران ایت چې دلوی امانت دانتقال په حق کې دی «ظَلُوْم وجَهُوْل»فرمائي،داظلوم اوجهول دظالم اوجاهل په معنی نه دي. بلکه معنائې مظلوم اومجهول ده. یعنی دلوی امانت انتقال اوحمل«مظلوم»دی. ځکه خلق له هغه څخه انکار کوي. اومجهول القدر دی یعنی په قدر ئې نه پوهیږی.۲۸ حضرت عبدالبهاء**

---

❖ دمجید فخري ترجمه:

**He (man) has indeed been unjust and ignorant**

۷۳۱

۲۴فصل:دنوررورسولانو پيداکيدل

---

---

هغه امانت چې ټول حلقتونه ئې په غير دپروردګار دپيغمبرانو له حملولو څخه ډډه کوي، دابلاغ مسئوليت خلکو ته دپروردګار غږ دی . دخلکو بې اعتنائي اودښمني تردې حده ده. چې هيڅوک په غير دپيغمبرانو نه نور څوک دامسئوليت نه مني. يعنې ددې دروند بار په وړلو قادر نه دې. حتی ځمکه او اسمانونه ددې بار دتحمل څخه عاجز دي. هغه بنده ګان چې دپيغمبرانو سره دمرستې لپاره پورته کيږي. ددې امانت په حملولو کې شريک دي:

**دحق جلاله څخه وغواړه چې په خپل کامل قدرت سره خلک وګوماري مبعوث ئې کړي.چې شايد داامانت يوسي.۲۹ حضرت بهاءالله**

پیغمبران دپروردګار دامانت حاملان دپروردګار دبې کرانه دریاب څخه په ساحل کې مرجانونه اوغمي اچولي دي ،اما په غیر له تمسخر ،ظلم ،بې اعتنائې اوقدرنه پېژندنې ئې (ظَلُوماً جَهُولاً)دخلکو څخه څه لیدلي دي؟

وروسته پروردګار دخپلو امانت وړونکو دمظلومیت علت بیانوي:

**لِيُعَذِّبَ اللهُ الْمُنَافِقِينَ وَالْمُنَافِقَاتِ وَالْمُشْرِكِينَ وَالْمُشْرِكَاتِ ...          داحزاب سورت،۷۳-ایت**

ترڅو پروردګار دوه مخې اومشرک خلک څه نارینه اوڅه ښځینه وي (دعدالت دقانون په اساس )مجازات کړي.

---

الهي ایتونه مختلفې معنا ګانې لري. په دې بیان کې حضرت عبدالبهاء بله معنا له «انسان دظلوم اوجهول»څخه بیانوي:

که څه هم بشر په انساني طریقت ښکلی دی. ولې دحقیقت څخه بې خبره دی.

**دایو کلي بخشش دی. چې په انساني حقیقت کې جلا پیداکړی، ولې انسان له دې غافل دی.د(اِنَّهُ کَانَ ظَلُوماً جهولاً)دمبارک ایت یوه معنا داده.**

**منتخباتی ازمکاتیب**

**حضرت عبدالبهاء،جلد۶،صفحه ۳۶۱**

په دې بیان کې حضرت عبدالبهاء په ډیری عاجزې ددې امانت دحمل څخه دعاجزې اظهار کړی دی:

**وګورې چې ددرګاه عبادت اوبنده ګې څومره سخته ده. اوس داضعیفه بنده په دې ضعیفه جسم اوواړه قوت دداسې لوی بار وړل سرته ورسوي نه هیڅکله نه .**

**منتخباتی از مکاتیب**

**حضرت عبدالبهاء ،جلد۶،صفحه ۳۶۴**



دپیغمبرانو مظلومیت دوه مخې خلک دپروردګار دهدیه اوبخشش دمنلو څخه لرې ساتي. دخلقت اوپیدایښت نقشه له همدې لپاره ده. چې دایمان دامدعیان دازمایش لاندې ونیسي ترڅوخپل نیت اوطبعیت وښائي.که له دې په غیر وي. هردوه مخې ظالم دطمع اوترس له مخې، نه دمینې له مخې دپروردګار هدیه مني .هغه ایمان چې په جبر ،ترس

اوايرې متکي وي. دپروردګار په درګاه کې هیڅکله دقبول وړ نه دی.

## بیان

یوبل رمز چې درحمان په سورة کې پټ دي د«بیان»کلمه ده .په دې سورة کې د«بیان زده کول»د«قران دنزول څخه وروسته راغلی دی».معقوله نه ده. چې دقران دنزول نه وروسته پروردګار انسان ته «بیان»ورزده کړي.ددې مشکل حلول دمسلمانومفسرینو لپاره سخت کار دی.اما دحضرت باب دایتونو څخه اګاهي اوپوهاوی دامشکل اسانوي. هغه موعود مختلف کتابونه لرل،اما دقران به شان اصلي کتاب ئې چې دالهي تعلیماتو اواحکامو لرونکی دی.«بیان»دی.پس دقران دایتونو معنی رحمت په سورة کې دارنګه ده:

- «**الَّرحْمَنُ عَلَّمَ الْقُرْاٰنَ**».پروردګار قران داسلام پیغمبر ته وښود.
- «**خَلَقَ اِلاْنْسَانَ**»وروسته «انسان»یعنی یوبل پیغمبر پیداکړ.
- «**عَلَّمَهُ الْبَيَانَ**»اودې پیغمبر ته ئې حضرت باب «بیان»ورزده کړ.

## دوه لوی بخششونه

وروسته له خبره يعنى دحضرت باب له ظهوره اودهغه اسماني كتاب ذكر چې د«بيان»په نوم دى،درحمن سورة په دوه نورو مطالبو بحث كوي:

---

❖ داتفسير دبهائي ائين دظهور له پيل څخه دبهائي مفسرينو دتوجه وړؤ.



---

---

- دپروردګار فضل اواحسان په بنده ګانو.
- دخلكو ناشكري اودقدر نه پيژندل.

ددې سورة په اوږدو کې زمونږ خالق له مونږ څخه په کراتو پوښتنه کوي. چې ولی ددې ټولو بخششونو اورحمتونو په وړاندې ددوه لوی پیغمبرانو رالیږلو دقدر پیژندنې په ځای دژبې په اعتراض پیل کوې؟څرنګه دابې مثاله ارمغان نادیده ګڼې؟فرض کړی، تاسې یو فقیر شخص ته دوه ښکلې اولوی قصرونه هدیه ورکړه . اما دهغه دقدر پیژندنې په ځای ستاسې په ازار اوذیت شروع وکړه. اوحتی دهغه دوه قصرونو دخرابې لپاره ستاسې د وژنې اوحبس لپاره اوهم ستاسې ددوستانو دمرګ لپاره پورته شو .دډیرو خلکو همدا سلوک دپروردګار دوه رالیږل شوو سره زمونږ په عصر کې ؤ.په دې سورة کې چې (۷۸)ایتونه لري. پروردګار (۳۰)،ځلې مونږ مخاطب کړي یو،له مونږ څخه پوښتنه کوی:

**فَبِايِّ آلَاءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبَانِ .**

**درحمن سورت،۱۳-ایت**

پس (تاسې دوه ډلې)دخپل پروردګار له کوم نعمت څخه انکار کوې؟

«رَبِّلَمُا»یعنی ستاسې رب «دوه ډلې»داکلمه دپروردګار ربّ ددوه موعودو ظهور ته اشاره ده. چې ایتونه ظاهر شول .که څه هم حضرت باب اوحضرت بهاءالله دوه مستقل پیغمبران دي. اودوه مستقل دینونه

ئې تاسیس کړي دي،اما دهغوې نهائي هدف دیوائین
تاسیس دی.په دې اساس دهغه دوه پیغمبرانو
داستقلالیت په خاطر کیدلی شي. ووایو: چې دبهائې
ائین منل یا انکار دپروردګار له طرفه ددوه ائینه او
دوه لوی بخششونو دانکار اویا منلو سره برابردی .
برسیره پردې یادشوی ایت دمنکرینو ددوه ډلو
مسلمانانو اوبابیانو په هکله هم صدق کوي. ځکه چې
دبابیانو یوې ډلې هم دمسلمانانو په څیر حضرت
بهاءالله دروغجن وګڼل.
په سورة رحمن کې ډیر رمزونه پټ اوښکاره دي،له
هغې جملې نه دا چې ددوه پیغمبرانو دراليږلو برسیره
،پروردګار له هرشي دوه نمونې پیداکړې دي.دانمونې
په دې سورة کې راغلې دي:

| | |
|---|---|
| • دوه عالمه | • دوه چیني |
| • دوه ډوله دریابونه(خوږ اوتریو) | • دوه ډوله مېوې له مختلفو میووڅخه |
| • دوه مشرق | •په دوزخ کې دوه مجازاته |
| • دوه مغرب | • دوه جنته |

# دوه ډوله مخلوق:
# انسان اوپیری

دالاندې دوه ایتونه دذاریات له سورة څخه په پیل کې دپیدایښت «دوه ګونې»نقشې ته اشاره کوي، وروسته مونږ د«ذکر»پیژندنې په اړتیا ذکر کوونکي شو.

**وَمِن كُلِّ شَيْءٍ خَلَقْنَا زَوْجَيْنِ لَعَلَكُمْ تَذَكرُون...وَذَكِّرْ فَان الذِّكْرَى تَنفَعُ الْمُؤْمِنِينَ.**

**دذاریات سورت،۵۵-۳۹،ایتونه** له هرشي څخه مې دوه دوه پیداکړل .شاید ذکر کوونکي شئ...پس ذکر

کوونکي اوسئ ځکه د«ذکر»منل دمؤمنانو لپاره ګټه ور دی.
درحمن په سورة کې ،خلک په دوه ډلو ویشل شوي دي:انسانان اوپیریان ددې دوه کلمو دپیژندنې لپاره په ځانګړې توګه د«پیري»درمزه ډکه کلمه چې همیشه دخلکو دحیرانتیا اوکنجکاوي سره مخ وه ،لازمه ده پوه شو. چې هرڅه خدای پیداکړي دي ، په غیر له زمونږ د ارادې څخه هریو له مونږ څخه ازاد یو. چې ددې دوه ډلو څخه یوې ډلې سره یوځای شول ،یا دانسانانو له ډلې سره اویا دپیریانو له ډلې سره په همغه ترتیب چې مخکې تیر شول. د پیري کلمه مختلفې معنا ګانې لري.اما اکثره وختونو کې دهغو خلکو په باره کې راځي چې تمایل لري. پټ اوسي. اوپه خاصه توګه خپل ایمان پټ وساتي.
ولې داډول صفتونه اورفتار په پټه ژوند کول دومره اهمیت لري. چې پروردګار مونږ په دوه ډلو تقسیموي زمونږ دانسانیت لمړنې نښه،؟

زمونږ صداقت اوشفافیت دی. دپېټ پټاني والا خلک همیشه کوښښ وکړي ترڅو خپل روح خپل تمایلات اوافکار له نورو څخه پټ کړي ،اوکه دکوم خطر یا مشکل سره مخامخ شي ،دخپلو ګټو دساتلو لپاره حقیقت پټ کړي. اوله دوه مخو څخه شي.
دپېټ پټاني والا خلکو یوبل خصوصیت ،دخپل حد څخه ډیراحتیاط کاره اوترسو وي. که صداقت زمونږ دانسانیت اساس وي. شجاعت دافتخار لوړ میزان اوزمونږ دسر لوړې تاج دی .شجاع خلک دنورو دراحت اوسعادت لپاره حتی خپل ژوند په خطر کې اچوي. څه خلک ،دپیغمبرانو دظهور په پیل کې دپروردګار په ائین ایمان راوړي. اودهغه دخپرولو لپاره کار کوي ؟که دمؤمینانو شهامت او فداکاري نه وی ، ایا کوم ائین به په جهان کې ریښې ځغلولې وی ؟څه خلک ؤ چې همیشه دظلم په مقابل کې پورته شوي دي؟که دشجاع خلکو په خاطر نه وی. دعدالت

اثربه په عالم کې پیدا شوی وی؟ترسو،ایرندوکو او محتاط کاره خلکو انسانیت ته کوم خدمت کړی دی؟ په غیر له تقلید نه دبلې کومې لارې څخه خپل برخلیک ټاکلی دی؟ تقلیدکوونکي همیشه دانساني عالم په اوږو بارؤ.
دبهائې ائین په تاریخ کې ، مشهور ترین پټ کاره میرزا یحیی مشهور په «ازل»دی. هغه خپل ځآن همیشه دخطر څخه اوخپل افکار د ریا د پردې شاته پټ ساتل .دحقیقت څخه ترس اوفرار حتی انسان همیشنې جنت ته دداخلیدو څخه ساتي .دحضرت مسیح دشهادت په اساس :

**هرڅوک چې په خپل نفس بری ترلاسه کړي. داټول نعمتونه به په میراث یوسي. اوزه به دهغه خدای یم اوهغه زما زوی وي. ولی ترسو اوایرندکو کې چې زما د پیروې څخه مخ اړوي. اوهغه څوک چې په ما ایمان نه لري .دهغو ټولو ځای په هغه دریاچه کې دی چې په ګوګردواو په اور کې سوځي. ۳۰ حضرت مسیح(یوحنا مکاشفات: ۲۱فصل،۸-۷،ایتونه)**

دخلکو ایرول دنورو فکرونو دتحقیق اوپوهاوي څخه ، دشیطان کار دی.

**انمَا ذَلِكُمُ الشيْطَانُ يُخَوِّفُ اوْلِيَاءهُ ...**
**دآل عمران سورت، ۱۷۵-ايت**

په يقين سره «شيطان» خپل پيروان او دوستان ايروي...

بې ايمانه پيشوايانو اورده وونكو ،هميشه دپروردګار دنوي اديانوپيروانو ،دوستانو اوطرفدارانوته اخطار وركول. اوحتى دهغوې سره ئې خبرې كول خطر ناكې ګڼلې.

په دې عصر كې دحقيقت په منلو كې اودهغه په خپرولو كې حتى «احتياط»له لويو ګناهونو څخه شميرل كيږي.

**په دې ورځ احتياط لويه ګناه ده.۳۱**
**حضرت بهاءالله**

داسې خلک ډومره ډېر دي چې دبشر په تاريخ کې د«لوی خبر»زيری اوري ،اما دهغې ايرې اوترس په خاطرچې دپروردګار په نوي ائين دايمان راوړلو په نتيجه کې رامنځ ته کيږي. دتحقق اوڅېړنې څخه ډډه کوي ،اوخپل ځانونه دالهي هميشنې بخششونو څخه محروموي. دباصداقته اوباشهامته خلکو امتياز په ترسو اومحتاطو خلکو ترهغه حده دی چې پروردګار د«انسان»نوم يواځې هغوې ته ورکوي.

دقاجار دوخت يو شهزاده دکيوان ميرزا په نامه غوښتل دحضرت بهاءالله سره وګوري. اما په نيمه شپه کې مبادا چې څوک دربانډې پوه نشي په پټه کې وګوري .دهغه دغوښتنی په ځواب کې حضرت بهاءالله دوه بيتونه چې دکردستان په بنديخانې کې ويلی ؤ ،دميرزا محيط پوسيله چې ددې غوښتنې واسطه وه شهزاده ته وليږل:

**هستت به دل اينجا ميا**
**ورنثار جان ودل داری بيا وهم بيار**
**ل بها داری طلب**
**ورنباشی مرد اين ره دور شو زحمت ميار۳۲**

دې دوه بيتونو شهزاده په ايره کې واچول اوددې لوی افتخار اوديدار څخه محروم شو. ډير کم وخت وروسته قضا اوقدرت هغه له دې ځايه څخه بل ديار ته يووړ.



---

درحمن سورة دپاتې ايتونو څيړنې ته دوام ورکوو. کوم چې د«دوه ګونو »مخلوقاتو په باره کې دي .خلک په ابتدا کې يو شان وي ،اما دموعود دظهور دخبر اوريدلو څخه وروسته په دوه ډلو تقسيمږي :مؤمنين اومنکرين.

منکرین په همیشني عالم کې کوم سرنوشت لري؟درحمن سورة په اساس ددوبلاګانو سره چې «متشابه»معنا ګانې لري مخامخ کیږي:
**هَذِهِ جَهَنمُ التِي يُكَذِّبُ بِهَا الْمُجْرِمُونَ يَطُوفُونَ بَيْنَهَا وَبَيْنَ حَمِيمٍ آنٍ.**

**درحمن سورت،۴۳-۴۴،ایتونه** داهمغه دوزخ دی. چې ګناهکاران (دموعود منکرین)دهغه څخه انکار کوي.(دا منکرین (ددوبلاګانو)یعنې «ددوزخ اور»او«جوش کړو اوبو»ترمنځ په ګرځیدوکې وي.
اما دمؤمینانو سهم دمنکرینو برخلاف په دوجنتونو کې ژوند دی:
**وَلِمَنْ خَافَ مَقَامَ رَبِّهِ جَنتَانِ .**
**درحمن سورت،۴۶-ایت**
اما دهغه چالپاره چې دپروردګار په وړاندې، د ودریدو څخه ایره اوبیم لري، دجنت دوه باغونه ورکولی شي.

## دوه ډوله دریابونه

## تریو اوخوږ

ددوه ائینو، بابي اوبهائي ترمنځ اړیکه هم په ډیر لطافت اوښکلا سره درحمن په سورة کې بیان شوې ده
:

**مَرَجَ الْبَحْرَيْن يَلْتَقِيَانِ بَيْنَهُمَا بَرْزَخٌ لا يَبْغِيَانِ فَبِايِّ آلَاء رَبِّكُمَا تُكَذِّبَانِ يَخْرُجُ مِنْهُمَا اللؤْلُؤُ وَالْمَرْجَانُ .**
**درحمن سورت،۲۲-۱۹ ،ایتونه**

---

د«خدای» څخه دبیم معنی دانه ده. چې په ایره اوترس کې ژوند وکړو .مقصد دادی. چې دخپل خالق قدرت اوعدالت څخه اګاه اوسو. اوپوه شو. چې هر کار کې حساب اوکتاب شته دی. اوباالاخره دخپل چلند نتیجه به و ګورو.



---

**۱ .ترجمه:**دهغه دوه دریابونو پریښودل ترڅو په ازادې کې په جریان کې وي. دوه دریابه چې له یو بل سره یوځای دي .دپروردګار دکوم نعمت

څخه انکار کوی؟ له هغه دوه دریابه څخه (دوجود په ساحل)کې غمي اومرجان رالویږي.
۲.**ترجمه**:دوه دریابه ئې په جریان کې اوحرکت کې راوستل. ترڅو یو بل ته ورسي .په منځ کې حائل دی.(ترڅو دهغوې استقلال وساتل شي).
دپروردګار دکوم نعمت څخه انکار کوئ ؟ دهغه دریابونو څخه غمي اومرجان رابهر کیږي.
دفرقان دسورة دالاندې ایت هم دوه دریابه ته اشاره کوي:
**وَهُوَ الذِي مَرَجَ الْبَحْرَيْن هَذَا عَذْبٌ فُرَاتٌ وَهَذَا مِلْحٌ اجَاجٌ وَجَعَلَ بَيْنَهُمَا بَرْزَخًا وَحِجْرًا محْجُورًا .**
**دفرقان سورت،۵۳-ایت** هغه دی
چې دوه دریابونه ئې سره یو ځای کړل :یو ئې خوږ اوزړه پورې اوبل ئې تریو اوتریخ اودهغوې په منځ کې حائل ودرول.
ددریاب څخه مقصد څه شی دی ؟حضرت باب اوحضرت بهاءالله دوه مستقل پیغمبران دی .اما هدف ئې دهمغه څخه دیو ائین تاسیس ؤ .په مخکنیو ایتونو کې ددې دوه پیغمبرانو دوه اصلي کتابونه دبیان اوداقدس کتابونه دوه دریابونو سره تشبیه شوي دي.
چې دژوندون په ساحل کې به ډیر غمي وغورځوي

.اما هر یو له هغو دریابونو څخه ځانګړی نقش لرل اولري .دبابي ائين ځنې احكام ډير سخت دي. يعنی دهغوې اجرا كول ډير مشكل كار دی .دااحكام دډيرو خلكو په مسخروكې تروه او ترخه دي. امّا داتريؤالی اوتريخوالی يو خاص هدف لري .د«بيان»داحكامو هدف دخلكو دفكرونو پاكول دپوسيده خيالونو څخه اودهغوې اماده ګی دحضرت بهاءالله دظهور لپاره ؤ. هغه سورة چې د«بيان»دتعاليمو دخوند او«طعم»په باره كې مونږ ته خبرې كوي. په شروع كې خبر له همدې كتاب څخه وركوي:

الرحْمَنُ عَلمَ الْقُرْآنَ: پروردګار رحمن قران زده كړ. درحمن سورة ۲-۱اىتونه .

---

دمولانامحمد ترجمه: He has made the two seas to flow freely—they meet.

دپروردګار كلام ډيری معنا ګانې لري .حضرت عبدالبهاء په يو ليک كې دښځينه اونارينه په اړه دهغوې دازدواج په منځ كې ددوه دريابونو سره مقايسه كړې دی.

**خَلَقَ الْاَ نْسَانَ:«انسان» ئې پیداکړ.**
**درحمان سورة، ۳-۱ایت**
**عَلَّمَهُ الْبَيَانَ:«بیان»ئې هغه ته ورزده کړ.**
**درحمان سورة ،۴-ایت**

خوږوالی اوتریووالی دواړه زمونږ دسلامتیا لپاره لازم دي ،امّا هریو ئې ځانته اثر لري.له دې وړاندې الهي نعمتونه هم په تریو دریاب کې پیداکیږي اوهم په خوږ دریاب کې پیداکیږي.(۱۲:۳۵).

**حضرت ولي امرالله فرمائي چې په کتاب د«بیان»کې احکام اوفرایض دي. چې په (عمیقه)طریقه سخت (بیان)شوي دي.وروسته توضیح ورکوي. چې ددې شدت سبب ، دپخواني پوسیده نظم تاسیساتو خرابول دي.د دین د مشرانو بیدارول اودخلکو په زړونو کې انقلاب اوتحول ، اودهغوې اماده کول دحضرت بهاءالله دظهور لپاره ؤ .دهغوې دوینا په اساس ، د«بیان»احکام نه یواځې ځنې مخکښني احکام منسوخ کړل، بلکه یو فاصل حد او ارتباطي حلقه ؤه. د پخوانی نظام اودنوي بهائي ائین لپاره .۳۳**

ددریاب کلمه دحضرت بهاءالله په مناجاتو کې په مختلفو معنا ګانو سره کاریدلې ده.په مناجاتو کې ،خپل ائین ته بحراعظم وائي .دغفران دریاب ،دپوهې دریاب ،دپروردګار دغنا دریاب ،دتوحید ددریاب دُردانې ،اصطلاحاتو په شان نورې ډیرې نمونې د حضرت بهاءالله په اثارو کې په کراتو راغلې دي:

**اغتمسوا فی بحر بیانی لعلّ تطّلعون بما فیه من لئالی الحکمة و الاسرار .۳٤حضرت بهاءالله**

زما د«بیان په دریاب» کې لامبوزن شئ. ترڅو دهغه له حکمته اواسرارو ډکو دُردانو چې په هغه کې پرتې دي. معلومات ترلاسه کړئ.

**بحرَ الأعظم تموج فی ذاته باسمه الاعظم الاکبر .۳٥ حضرت بهاءالله**

«لوی دریاب»پخپل ذات کې، په اسم اعظم اواکبر خپل سره، په موج کې راغی .

**هذا البَحْرِ الذِيْ كَل قَطْرَةٍ مِنْهُ تُنادِي بِاعْلی النِّداءِ بَيْنَ الارْضِ وَالسمَاءِ بِانهُ مُحْيِي العالَمِين ...۳٦ حضرت بهاءالله**

داهغه درياب دی چې دهغه هرڅاڅکې په ډير لوړ اواز سره دځمکې اواسمان ترمنځ غږ کوي. چې هغه د«پروردګار لیږونکی»دټول جهان لپاره دژوند سرچينه ده.

**لا تَمْنَعَ عِبادَكَ مِنْ هذِهِ الشرِيعَةِ التِيْ انْشَعَبَتْ مِنَ البَحْرِ الاعْظَمِ بِمَشِيتِكَرِوَارَادَتِكَ . ۳۷**

**حضرت بهاءالله**

خپل بنده ګان دې، دهغه شريعت نه چې د«لوی بحر»څخه ئې ستا په غوښتنه سرچينه اخيستی ده، مه منع کوه.

**اې توانا اودقوت والا!ضعيفانواوکمزورو ته قوت ورکړه. اومړوته ژوند ورپه برخه کړه ،شايد چې تاسې ته اوستاسې د پوهې درياب ته لار پيداکړي.۳۸**

**حضرت بهاءالله**

**دامرعالم دارادې لمړی...مقام دی.هغه د«ارادې بحر»دی. چې د«امر عالم»دی.۳۹**

**حضرت عبدالبهاء**

**د«بیان بحر»ددلایلو په موجونو،اودعالمیانو غوښتونکی فضل ظاهر دی. اوهرموج ئې په ذکر ګویا دی.۴۰**

**حضرت بهاءالله**

**ووایه!اې غافلواوناخبره بنده ګانو !په یو څاڅکي «دالهي ایتونو دبحر»څخه محروم شوی...۴۱**

**حضرت بهاءالله**

**بحر البیان ینادی ویقول :یا اهل الارض انظروا اِلـ□ امواجـ□ و ما ظهر منّـ□ من لئالئ الحکمة و البیان . ٤٢**

**حضرت بهاءالله**

د«بیان دریاب»غږ کوي اووائې:ای دځمکې اوسیدونکو!زما موجونو څخه اوهغه څه چې د«بیان»دحکمت له دردانو څخه ظهورته راغلي نظرواچوئ.

**د«لوی بحر» دابو څاڅکي دعالم دشيانو ،دصنايعو دظهور او څرګندونې سبب اوعلت دی.۴۳**
**حضرت بهاءالله**
**دهرڅه اوټولو لرونکي بحر دی .هرڅه چې ورک شي له هغه ظاهرېږي.۴۴**

**حضرت بهاءالله**
**خوږې اوبه رواني دي. بحر په څپوکې دی.لمر په مشرق کې دی،خوغوښتونکي لږ اوکم دي. اوبايد همدارنګه وي . ځکه چې دمعنی غمي د هربې بصيرته لايق نه دي.اوقيمتي جوهر دهربې خبره لايق نه دي.۴۵ حضرت بهاءالله**
د«درياب»کلمه دحضرت باب په ايتونو کې هم کارول شوې ده :

**فاستمعوا ندائ□ ..فـ□ هذالبحر المحيط ...٤٦**

**حضرت باب**

زما غږ ... له دې دریابه چې ټول عالم ئې احاطه کړی، واورئ...

دالهي حکمت اواسرارو دردانې په ظاهري صورت هم د شط اوزورڅخه (دجلې) دریاب ته داخلې شوې.

دحضرت بهاءالله دمنشي دشاهدې په اساس:

**په سلهاو زره بیتونه دهغو ایتونو څخه چې دحضرت بهاءالله په مبارک خط لیکل شوې وه.حسب الامرپه شط زوراء کې واچول شو. او محو شول.٣٧**

**حضرت بهاءالله «کتاب اقدس»ته په اشارې سره، کله دشیرین او خوږ کلمه په کار وړي.۴۸**

**په کتاب داقدس کې وائي:**

**لا یأخذکم الاضطراب اذا...سکنت امواج بحر بیان□ ...تالله الحقّ قد انفجرت من الاحجار الانـهار العذبة السّآئغة بما اخذتها حلاوة بیان ربّکم المختار و انتم من الغافلین .**

**٤٩ حضرت بهاءالله**

هرکله چې زما د«بیان دبحر»امواج ،ساکت اوچوپ شي مه خفه کیږی...په خدای قسم دی!ستاسې دمختار پروردګار د«بیان شیریني»اوخوږوالی دارنګه دی، چې له تیږو څخه خوازه نهرونه جاري شي، اما تاسې په غفلت کې یاستي.

په مناجاتو کې فرمائي:

**ثم ارزقهم حلاوة اوامرک و احکامک ...**

**۵۰ حضرت بهاءالله**

پس [اې پروردګاره ]خپل بنده ګان دخوږو اوشیرینو احکامو اودستورونو څخه برخه من کړه...

☆ په انجیل اوتورات کې هم خواږه اوشیرین طومار ته اشاره شوې ده .حزقیال نبي ، په معنوی عالم کې دداسې یو چا سره په دیدار کې چې دبهاءالله سره شبیه ؤ فائز شو . ددې روحاني تجربې په منځ کې یوه فرشته له هغه څخه غواړي. چې هغه شیرین اوخوږطومار وخوري:

---

☆ څرنګه چې دهغه منشي ددې دستور په اجراء کې دشک سره مخامخ کیدل حضرت بهاءالله وویل:په دې وخت کې هېڅ یو ددې نغموداوریدلولایق نه دی.

ماته ئې وويل :اې دانسان زويه!هرڅه چې له تاسره
دي هغه وخورئ ...هغه وخت خوله مې خلاصه کړه.
اوهغه راته طومار راکړ.چې وئې خورم ...پس ما
هغه وخوړ. په خوله کې مې لکه دشاتو په شان
خواږه ؤ ...هغه وخت ئې زما «روح»پورته کړ. اوله
شامې لوړ غږ واوريدل [چې و ئې ويل]: حمد او ثناه
دې وي په جلال يهوه [بهاءالله].

حزقيال نبی:۳فصل،۳،۱۲-۱،ايتونه
هغه غږ مې له اسمان نه اوريدلې ؤ ، دبل ځل لپاره
ئې ماته وويل :ورځه هغه طومار چې خلاص شوې،
دهغه فرشتې څخه چې دځمکې اودرياب په مخ ولاړه
ده ،واخله .پس زه دهغې فرشتې خواته ولاړم. اوله
هغې څخه مې وغوښتل. چې هغه وړوکی طومار ماته
راکړي .هغې ماته وويل: هغه واخله اووئې
خوره.معده به دې تروه کړي. اما خوله به دی دشاتو
په شان خوږه کړي .ماهغه وخکل ،دشاتو په شان په
خوله کې خوږه مزه لرله...
يوحنا مکاشفات:۱۰فصل،۱۰-۸،ايتونه

«اقدس»چې وړو کې کتاب دی، دیوحنا خیال ته تحقق وربخښي.

# دمرسلات

# سورة

دمرسلات سورة هم دپروردګار ددوه رالیږونکو دظهور خبر ورکوي:

**وَالْمُرْسَلَاتِ عُرْفًا .**

**دمرسلات سورت، ۱-ایت**

په یوبل پسې رالیږل شوو قسم دی. (حضرت باب اوحضرت بهاءالله).

**فَالْمُلْقِيَاتِ ذِكْرًا .**

**دمرسلات سورت، ۵-ایت**

دوحې په راوړونکو قسم دی. (دوه موعودو).

---

**And he [the angel] said to me, "Son of man, eat what is before you, eat this scroll…" So I opened my mouth, and he gave me the scroll to eat…So I ate it and it tasted as sweet as honey in my mouth …Then the Spirit lifted me up, and I heard behind me a loud rushing sound—May the glory of the Lord**

**[Bahá’u’lláh ] be praised in his dwelling place! Ezekiel 3:1-3, 12 NIV**



---

---

**انمَا تُوعَدُونَ لَوَاقِعٌ .**

**دمرسلات سورت، ۷-ایت**

په یقین سره به وعده تحقق ومومي

**وَاذَا الرسُلُ اقِّتَتْ .**

**دمرسلات سورت، ۱۱-ایت**

هغه وخت چې دپیغمبرانو دظهور وخت راورسي.

**لِايِّ يَوْمٍ اجِّلَتْ ؟**

**دمرسلات سورت، ۱۲-ایت**

دکومې ورځې لپاره (دهغوې ظهور ) ټاکل شوی دې؟

**لِيَوْمِ الْفَصْلِ .**

**دمرسلات سورت، ۱۳-ایت**

دجدائې ورځې لپاره (دمؤمنينو اومنكرينو په منځ) كې
.
**وَمَا ادْرَاكَ مَا يَوْمُ الْفَصْلِ ؟**
**دمرسلات سورت،۱۴-ايت** ستا درک
د(جدائې ورځې) څخه څه دی؟
**وَيْلٌ يَوْمَذٍ لِّلْمُكَذِّبِينَ.**
**دمرسلات سورت،۱۵-ايت**
په هغه ورځ وای دحقيقت پر منكرينو**!**
**فَبِايِّ حَدِيثٍ بَعْدَهُ يُؤْمِنُونَ .**
**دمرسلات سورت،۵۰-ايت**
۱.**ترجمه:**وروسته له دې خبرې په كومه بله خبره ايمان لري؟
۲.**ترجمه:**په كومه وينا (دوقايعو په باره كې)وروسته له هغه (رسول اكرم)ايمان راوړي؟

# ديونس سورة

د(۳۰)ايتونو په شاوخوا كې ديونس دسورة (۷۰-۴۱)زمونږ دعصردپيښو څخه اودهغو خلكو دگفتار اورفتار څخه خبر وركوي. لنډيز درعايت لپاره مناسب دی. چې دهغو ايتونو خلاصه له نظره تيره كړو:

- خلک ازاد دي. چې له حقیقت څخه انکار وکړي.

---

☆ دااخطار ددې لنډ سورة په اوږدو کې چې (۵۰)ایتونه لري. (۱۰)لس ځلې تکرار شوې دی.



---

---

- له هغوې څخه یوه ډله د اوریدو غوږونه نه لري.آیا دارنګه خلک کولای شي دپروردګار کلام واوري؟دخلکو یوه ډله ، بینا سترګې اودلیدو میل نه لري.آیا کولای شي. دارنګه خلک سمې لارې ته راولې؟

- پرورگار په هیچا ظلم نه کوي .خلک پخپل ځان ظلم کوي.
- هغه کسان چې دپروردګارددیدار دوعدې څخه انکار کوي. له زیان کارانو څخه دي.
- دهر امت لپاره رسول راځي.
- خلک پوښتنه کوي. چې ددې وعدې دسرته رسیدلو وخت کله رارسي؟
- ووایه!ددې امر تحقق زما لاس کې (رسول اکرم)نه دی .ولې په دې پوه شی. چې دهر امت لپاره په تقدیر کې اجل دی. چې وخت ئې یو ساعت نه مخکې اونه وروسته کیږي.
- تاسې د«دې وعدې»په تحقق کې عجله کوله.حال داچې په ټاکلي وخت ئې تحقق موندلی دی،حاضر یاستې په هغه ایمان راوړی؟
- هغوې چې ایمان نه راوړي ،پخپل ځان ظلم کوي.ددې ظلم په خاطر ، خپل ځآن په دایمې عذاب ګرفتاروي.آیا داخلک انتظار نه لري. چې دخپلو اعمالو نتیجي ته ورسي؟
- خلک پوښتنه کوي. چې ایا دخدای وعده سمه ده ؟په خدای قسم دی!چې دخدای وعده سمه ده. اوتاسې دهغې وعدې دتحقق مخنیوي کولی نشئ.

- هر روح چې په دې دينا ددې ګناه ګرفتار شي (ددې وعدې څخه انکار وکړي)کله چې دهميشني جهان عذاب ددې انکار په خاطر ويني،حاضر دی چې دجهان ثروت  دهغه عذاب نه دخلاصي لپاره ورکړي.په هغه وخت کې پروردګار دعدالت حکم وکړي. اوپه هيچا ظلم ونشي.
- په يقين سره پوه شئ. چې د«پروردګاروعده »سمه ده. اما ډير خلک له دې حقيقت څخه اګاه نه دي.
- ژوند اومرګ دخدای په لاس دی. اوټول دهغه لوري ته ورګرځي.

- هغه خلک چې دموعود دقیام په ورځ ، په خدای تهمت پورې کوي.(موعود دروغ ګڼي.)څه فکر کوي؟دپروردګار فضل اورحمت په خلکو ډېر دی. امّا هغوې غالباً قدر نه پيژندونکي دي.
- په همیشنې جهان کې ،دپروردګار دوستانو،الهي احباوته، نه وېره اونه هم غم وي. هغه کسان چې په موعود ایمان راوړي، اوله بدیو څخه لرې والی کوي. په امن او امان کې دي.
- هغه په دې سرای کې او هم په هغه سرای کې .«ښه خبر»دداډول مؤمینانو په انتظار کې دی.دپروردګار دوعدې څخه ډاډه اوسې .په دې کار کې توفیق دموعود پيژندنه لویه رښتینولې ده.

څرنګه چې ددې فصل موضوع ، درسول یا رسولانو ظهور دی ، مناسبه ده. چې دا بحث په دې ایتونو سره چې په ۴فصل کې بررسي شوی دی، پای ته ورسوو:
**وَلِكُلِّ ا مةٍ اجَلٌ فَاذَا جَاء اجَلُهُمْ لاَ يَسْتَاخِرُونَ سَاعَةً وَلاَ يَسْتَقْدِمُونَ يَا بَنِي آدَمَ اما اتقَ وَاصْلَحَ فَلاَ خَوْفٌ عَلَيْهِمْ وَلاَيَاتِيَنَكُمْ رُسُلٌ مِّنكُمْ يَقُصونَ عَلَيْكُمْ آيَاتِي فَمَن هُمْ يَحْزَنُونَ وَالذِينَ كَذ بُواْ بِآيَاتِنَا وَاسْتَكْبَرُواْ عَنْهَا اوْلَئَكَ اصْحَابُ النارِ هُمْ فِيهَا خَالِدُونَ افْتَرَى عَلَ اللهِ كَذِبًا اوْ كَذبَ بِآيَاتِهِ**

**فَمَنْ اظْلَمُ مِمن ...**

**داعراف سورت، ۳۷-۳۴،ایتونه**

دهر امت لپاره ځانګړی «زمان ټاکل »شوی دی .کله چې هغه زمانه راورسي ، حتی یو ساعت نه مخکې او نه وروسته ځي.اې دادم زویه!که تاسې ته پیغمبران راشي. چې البته رابه شي هغوې به زما ایتونه تاسې ته ولولي.دنیکو کارانواو پرهیز ګارانو لپاره نه ایره وي اونه غمونه. اما څوک چې زما دایتونو څخه انکار کوي. او دهغو په وړاندې کبر وکړي، ددوزخ اوسیدونکي دي. اوهمیشه به هلته پاتې کیږي. له دې ظالم خلک به نور څوک وي. چې په خدای تهمت پورې کوي ،اودهغه ایتونه دروغ ګڼي؟

مخکني ایتونه دحضرت محمد (رسول اکرم)څخه وروسته دپیغمبرانو دظهور خبر ورکوي. پیغمبران کیدلی شي، ټولو پیغمبرانوته اویا زمونږ دعصر ددوه پیغمبرانو حضرت باب اوحضرت بهاءالله ته اړیکه ورکړو .دواړه معنا ګانې مقبولې په نظرراځي. زمونږ دعصر دوه پیغمبرانو په یو وخت کې ظهور اوراتګ، دې خبر ته تحقق وربخښي.

طاهره قرة العين دحضرت باب منكرينو ته په خطاب كې دارنګه ليكي:
سپک ئې وګڼل. هغه عظيم اولوی امر، چې رب عظيم ، عظيم ګڼلی. اوخيال ئې وکړ. چې دهغه نه تبديليدونكي حق اوسنت همغه دی. چې دده په نزد ښكاره دی. اوپه پاک اودقيق نظر ئې، دې فاسد اوزشت اعتقادته، دننګ په سترګه وليدل، چې دالوې كفر دی . پروردګار لاس تړلی اوبسته نه دی ...مونږ خومره كمزوري اونادانه يو. مونږ بيچاره ګان خومره پخپل نفس ظالمان يو. چې دامام عليه السلام لاس چې دالله لاس دی. تړلی ګڼو. **سبحانه سبحانه هوالمتصرف ف□ ا لملک كيف يشاء بما يشاء...يتبعون اهوائهم و لا يدخلون الباب سجدا ليكونوا من الفائزين.واحسرة ثم واحسرة عليهم بان القوا انفسهم بايديهم ال□ التهلكة و اوردنا ال□ المهلكة العظيمة و هم لايشعرون هذه فتنة يضل بها من يشاء و يهدى بها من يشاء انه عزيز حكيم . ۵۱**

اې دغرور په شرابو مستو باید ددې دیار له باب څخه چې زړه دی. دحکمت په دلیل سره داخل شی.**لا بامجادلة والاعتراض وابتلاء النفس بالاعراض والامراض ... ان یروا کل آیة لایؤمنوا ،حتی اذا جائوک یجادلونک .** دادکوشش او مجاهدې مقام دی نه د مجادلې دا په غیبو دایمان مقام دی نه دلیدلو.**انک لاتهدی من احببت**،ددې ځای همدالته دی.۵۲

# پروردګار دهغه دکلام څخه

# پیژندلای شئ

ورځ غړ کوي ، لمر زیری ورکوي اوسپوږمې بشارت ورکوي . اې دوستانو !دانا خدای راغلی ، شاهدي ورکړئ .پټه روښنائې ښکاره شوه ، دزړه له کومې عجله وکړئ...اې بنده ګانو !ددانائي له دریابه ځانونه مه بې برخې کوی . اودلیدونکی لمر نه ځآن مه محروموی . روح بخښونکي نسیم ولړیده ، پژمرده ګانو ته ئې تازه ګي ورکړه .داورځ په الفاظو نشي صفت کیدلی، اوهره وینا دهغې له شرح څخه عاجزه ده. نیکمرغه دی، هغه څوک چې د نن ورځې په مقام اودهغې په مبارک والي شاهدي ورکړه.

**په هر حالت کې له يکتا دوست څخه غواړو. چې ټول خپل د بخشش له درياب څخه محروم نه کړي. او دربښتيني لمر دليدو څخه ئې منع نه کړي.۳۵**
**حضرت بهاءالله**

**دلمر رڼا ټول جهان روښانه کړى دى. او دخپګان روزګار ته ئې تازه ګي وربخښلي ده. نيکې دي هغه سترګې، چې وئې ليد اووئې پيژاند.له بې نيازه ئې وغواړه. ترڅو دخپلې ورځې په راز دې پوه کړي. اوتاپخپل ژوند کې نوى اونوى کړي. هغه توانا اودقوت والا دى. اوهغه دانا دى .۵۴**
**حضرت بهاءالله**

**نیکمرغه دي. هغه څوک چې څه ئې واوریدل. اوپه هغه کې فکر وکړ.اودهغه په حقیقت اګاه شول.۵۵**
**حضرت بهاءالله**
**دعواالقصص عن ورائکم ان انظروا امری بعین هذا ما امرتم به فی ا لکتب والزّبروالصّحف والالواح .٥٦**
**حضرت بهاءالله**
قصې شاته پریږدئ. زما امر اوزما ائین ته زما په سترګو وګورئ . پروردګار تاسې ته په کتابونو ،الواحو اواسماني لیکونو کې دارنګه امر فرمائي.
**وَالذِينَ جَاهَدُوا فِينَا لَنَهْدِيَنهُمْ سُبُلَنَا وَا ن اللّهَ لَمَعَ الْمُحْسِنِينَ . دعنکبوت سورت،۶۹-ایت** هغه څوک چې زما په خاطر کوښښ وکړي. البته هغوې به خپلو لارو ته هدایت کړم. په یقین سره پروردګار دنیک سیرته خلکو ملاتړ کوونکی دی.

**فو ربّكم الحقّ ربّ السّموات والارض انّ وعد الله لحقّ في حقّ الذّكر وقد كان الوعد في امّ الكتاب مفعولاً . ١**

**حضرت باب**

ستاسې په پروردګار قسم دی. چې په ځمکه اواسمانونو حاکم دی ، دخدای وعده د«ذکر»دظهور په باره کې دکتابونو په مور (قران) کې تحقق موندلی دی.

«ذکر»دهغو کلماتو څخه دی. چې په قران مجید کې په څو معنا ګانو سره راغلی دی. دهغې جملې څخه :

- **دخدای پیغمبر ، هغه څوک چې خلکو ته**
- **دخدای یادول،عبادت**

**تذکر کوي.**

- **یادونه**
- **قران یا دخدای کلام**
- **زمونږ دعصر موعود**

دقران ترجمه کوونکو اومفسیرینو ددې کلمې اولنې څلورمعنا ګانې پیداکړي دي. اما دپنځمې معنی څخه ئې عاجزؤ ،ځکه چې درسول اکرم څخه وروسته پیغمبر ته منتظرنه ؤ اونه دي.

# «ذکر»دپیغمبر په معنی

**وَمَا يَاتِيهِم مِّن ذِكْرٍ مِّنَ الرحْمَن مُحْدَثٍ الا كَانُوا عَنْهُ مُعْرِضِينَ . دشعرا سورت،٥-ایت** هغوې ته نوی پیغمبردخدای له لورې نه راځي،خو هغه وخت، چې دهغه نه مخ واړوي.

**وَمَا اهْلَكْنَا مِن قَرْيَةٍ ا لا لَهَا مُنذِرُونَ ذِكْرَى . دشعرا سورت،٢٠٩- ٢٠٨،ایتونه** ماهیڅ یو قوم نه دی هلاک کړی، مګر کله چې مې د«ذکر»(پیغمبر)پوسیله هغوې ته اخطار ورکړی دی.

**لَقَدْ انزَلْنَا الَيْكُمْ كِتَابًا فِيهِ ذِكْرُكُمْ افَلَا تَعْقِلُونَ . دانبیاء سورت، ١٠-ایت**

ما تاسې ته کتاب نازل کړ. چې په هغه کې ستاسې دپیغمبر خبرې شوې دي (ستاسې دپیغمبر دظهور خبر) ورکړل شوی دی .آیا دعقل څخه کارنه اخلی؟

**فَاتقُوا اللهَ يَا اوْلِي الْالْبَابِ الذِينَ آمَنُوا قَدْ انزَلَ اللهُ الَيْكُمْ ذِكْرًا رسُولًا يَتْلُو عَلَيْكُمْ آيَاتِ اللهِ مُبَيِّنَاتٍ لِّيُخْرِجَ الذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصالِحَاتِ مِنَ الظلُمَاتِ الَ النورِوَمَن يُؤْمِن بِاللهِ وَيَعْمَلْ صَالِحًا يُدْخِلْهُ جَناتٍ تَجْرِي مِن تَحْتِهَا الْانْهَارُ خَالِدِينَ فِيهَا ابَدًا قَدْ احْسَنَ اللهُ لَهُ رِزْقًا .**

**دطلاق سورت،۱۱-۱۰،ایتونه**

اې دعقل خاوندانو چې ایمان مو راوړی دی ، له خدایه وویرېږئ . خدای تاسې ته«ذکر»درلیږلی دی ،هغه «رسول » چې دخدای روښانه ایتونه تاسې ته ولولي ترڅو نیکو کاره مؤمنان له تیارې څخه رڼا ته هدایت شي .هرڅوک چې په پرورګار ایمان راوړي او نیکو کاره وي ، پروردګار هغوې لره هغو باغونو ته چې دباران لښتي په هغه کې جاري دي. داخلوي اوترابده پورې به په هغو باغونو کې هغوې ته ځآی ورکوي. څومره ښه رزق پروردګار هغوې ته وربخښي!

داایت دحضرت نوح په باره کې :

**اوَ عَجِبْتُمْ ان جَاءكُمْ ذِكْرٌ مِّن ربِّكُمْ عَلَ□ رَجُلٍ مِّنكُمْ لِيُنذِرَكُمْ وَلِتَتَقُواْ وَلَعَلكُمْ تُرْحَمُونَ .**

**داعراف سورت،۶۳-ايت** آيا تعجب كوئ چې «ذكر» ستاسې دپروردګار له لورې(هغه څوک چې ستاسې په منځ كې دى)راغلى. چې تاسې ته اخطار دركړي. ترڅو پرهيزګاره شئ اودالهي رحمت لاندې راشئ؟

---

❖ دمحمد اسدترجمه:

We did not destroy a community unless it had its warners by way of a Redeemer



---

---

# «ذكر»داسماني كتاب په معنا

**انا نَحْنُ نَزلْنَا الذِّكْرَ وَانا لَهُ لَحَافِظُونَ .**

**دحجر سورت،۹-ايت** ماذكر (قران) نازل كړ. اودهغه حافظ اوساتكونكى يم.

**وَقَالُواْ يَا ايهَا الذِي نُزِّلَ عَلَيْهِ الذِّكْرُ انكَ لَمَجْنُونٌ .**

**دحجر سورت، ۶-ايت** وائي:اى هغه څوكه چې

پرتا«ذكر»نازل شو. يقيناً ته ليونى ئې،

**اوُلْقِيَ الذِّكْرُ عَلَيْهِ مِن بَيْنِنَا بَلْ هُوَ كَذابٌ اشِر .**

**دقمر سورت، ۲۵-ايت**

(منكرين وائي):آيا زمونږ په منځ كې يواځې پرهغه

«ذكر»(دپروردګار كلام)نازليږي؟

نه ،هغه دروغجن اوله مدعاو ځخه ډک دى.

## «ذكر»دتذكرپه معنا

**وَلَقَدْ آتَيْنَا مُوسَ وَهَارُونَ الْفُرْقَانوَضِيَاء وَذِكْرًا لِّلْمُتقِينَ .**

**دانبياء سورت،۴۸-ايت** موسى اوهارون ته

مې ،فرقان (دحق اوناحق ميزان)وركړ .هغه نور

او«تذكر»دى دپرهيزګاره خلكو لپاره.

**وَهَذَا ذِكْرٌ مبَارَكٌ انزَلْنَاهُ افَانتُمْ لَهُ مُنكِرُونَ .**

**دانبياء سورت، ۵۰-ايت**

دايو مبارک «تذكر»دى. چې مانازل كړى دى.ايا

تاسى له هغه ځخه انكار كوى؟

## «ذكر»دعبادت په معنا

**اتْلُ مَا اوحِيَ الَيْكَ مِنَ الْكِتَابِ... وَلَذِكْرُ اللهِ اكْبَر .**

**دعنكبوت سورت، ۴۵-ايت**

هغه څه چې په تاددې کتاب څخه وحې شوې ده.
تلاوت ئې کړه ...دخدای «ذکر»هغه څه چې په
تصور کې راځي)برتره اوبهتره دی.

---

❖ فرقان:جداکول،هغه میزان چې حق اوناحق سره
جدا کړي.الهي کتاب ته اشاره ده.قران مجید



---

---

## زمونږ دموعود نوم:
## دخدای «ذکر»

د«ذکر، ذکري ،اوذکرا»لقبونه دبل هرلقب نه زیاد په
قران مجید کې حضرت باب ته په اشارې سره راغلي

دي .حضرت بهاءالله هم په ندرت اوکمه توګه دهغوې مشابه لقبونه خپل ځان ته په اشارې سره کارولي دي:

**هذا الذّکر الاعظم الّذی به ظهرالفرح الاکبر ف العالم و ناح کلّ غافل محجوب .۲**

**حضرت بهاءالله**

دا«لوی ذکر» دی. چې په ظهور سره ئې «لويه خوښي»په جهان کې راښکاره شوه،امّا هغه چې غافل او پرده کې دي ، په چغو اوفريادئې شروع وکړه .

په دې لاندې بيان کې حضرت باب وروسته له خپل ځآن نه موعود «ذکرالله»نوموي:

**په هغه ظهور کې هغه «ذکرالله» دی.۳**

**حضرت باب**

## پروردګاردهغه دکلام ځخه

## کيدلای شی وپيژنی

په دې فصل کې ، دقران مجيد ډيرې نمونې اودحضرت باب په اثارو کې د«ذکر»دظهور دوعدې په باره کې اودهغې وعدې دتحقق لپاره وړاندې کيږي .دامشابه نمونې وښائې چې ټولو ديوې اسماني منشاء ځخه سرچينه اخيستې ده.

**وَانهُ لَذِكْرٌ لئَكَ وَلِقَوْمِكَ وَسَوْفَ تُسْألُونَ .**

**دزخرف سورت، ۴۴-ایت**

هغه ستا اوستا قوم لپاره «ذکر»دی .ډیر ژر دی. چې دپوښتنې لاندې راشي.

**یا عبادالرحمن ان تؤمنوا بالله الحقّ فلا تشکوا ف□**

**امرالذّکر . ٤ حضرت باب**

اې دپروردګار بنده ګانو ! په خدای ایمان راوړې.

اود«ذکر»دامر په باره کې شک ونه کړئ.

داخبر اوداروښانه اوښکاره اخطارد يو لنډ سورة په اوږدو کې چې(۵۰)ايتونه لري(۱۰)ځلی تکرار شوی دی:
**هَذَا ذِکْرُ مَن معِيَ وَذِکْرُ مَن قَبْلِي بَلْ اکْثَرُهُمْ لَا يَعْلَمُونَ الْحَق فَهُم معْرِضُون.**

**دانبياء سورت، ۲۴-ايت** دا«ذکر»(موعود)زما دپيروانو (مسلمانانو)اود هغو(پيغمبرانو) دامتونوذکر(موعود) دی. چې مخکی له ما (رسول اکرم)څخه راغلي دي .اما ډير ئې (منتظرين)دي. حقيقت نه پيژني (اوله دی کبله)مخ اړونکي دي.
**و انا نحن قد جعلنا عبدنا ذ کرا من عندالله مبارکاً فيکم لتتنصرنه ف يوم البعث .۵**

**حضرت باب**
ما خپل بنده «ذکر»(ديادونې اوتذکر وسيله ده. )دخدای دلورې مقرر کړی دی.ترڅو «دبعثت په ورځ»دهغه کمک اوياري ته ورسي .ظهور ئې ستاسې لپاره مبارک دی.

**انمَا تُوعَدُونَ لَصَادِقٌ وَان الدِّينَ لَوَاقِعٌ... فَوَرَبِّ السمَاء وَالْارْضِ انهُ لَحَق... وَذَكِّرْفَان الذِّكْرَیٰ تَنفَعُ الْمُؤْمِنِينَ .**
**دذاريات سورت، ۵۵، ۶۳ ، ۶-۵،ايتونه**

په يقين هغه وعده چې تاسې ته درکړل شوی ده سمه ده .«ددين دظهور وعده تحقق ته رسي... دځمکې اواسمانونو په پروردګار قسم دی. چې هغه موعود حق دی .(دخدای له لورې دی)...متذکر اوسه!دمؤمنانو لپاره «ذکر»سودمند دی.

**فانّه تالله الحقّ لحقّ من عندالله...ولاتقفوا لمحة عين على الامر فانّا بالحقّ سنسئلنكم عن السّمع والبصروالفؤاد وانّ امرالله من عندالذّكر قد كان فى ا م الكتاب مقضيّاً . ٦ حضرت باب**

په خدای قسم دی !هغه حق دی. اودخدای دلورې دی...ددې «امر»اوائين په منلو کې يوه شېبه ځنډ ونه کړئ.زه به تاسې دپوښتنې لاندې راولم. ستاسې زړونه ، سترګې اوغوږونه دخدای دامر په ظهور سره د«ذکر»دلورې دکتابونو په مور (قران)کې وړاندوينه شوې ده. د (هغه ظهور دخدای دحکم اونقشې په اساس دی).

**فَهَلْ يَنظُرُونَ الا الساعَةَ ان تَاتِيَهُم بَغْتَةً فَقَدْ جَاء اشْرَاطُهَا فَانى لَهُمْ اذَا جَاءتْهُمْ ذِكْرَاهُمْ .**

**دمحمد سورت،۱۸-ایت**

آيا په غيرله دې نه انتظار لري. چې په هغوې به ناڅاپه «ساعت» راشي. ( تحقق به پيداکړي.) په هغه زمان کې دهغه دراتلو نښانې، دهغوې لپاره په قران کې ذکر شوي دي؟ اما هغه وخت کله چې دهغوې «ذکر»دهغوې لپاره راشي. دهغه نښانو څخه به څه ګټې ترلاسه کړي؟(هغه نښانې به دهغوې لپاره څه ګټې ولري؟)

**انی اناالله الّذی لا اله الّا هو قد اقمت الذّکر لنفسی بالحقّ...وانّ وعد ربّکم الرّحمن لحقّ و هوالله کان علی کلّ شیئ شهیداً...فقل انّ حجّتی هذاالکتاب من عندالله فمن شاء فلیؤمن و من شاء فلیکفر ...۷**

**حضرت باب**

ز ه پروردګار يم. هغه خدای چې په غير له هغه څخه بل خدای نشته دی .ما «ذکر» له خپله لوري په کار واچول...په يقين سره ستاسې دپروردګاردرحمان وعده سمه ده.خدای په هرڅه شاهد دی . پس ووايه : زما دليل داکتاب دی. چې دخدای دلورې دی . هرڅوک چې وغواړي، ايمان راوړي. اويا هر يو چې وغواړي، کافر شي ...»

**لَقَدْ انزَلْنَا الَيْکُمْ کِتَابًا فِيهِ ذِکْرُکُمْ افَلَا تَعْقِلُونَ .**

**دانبياء سورت، ۱۰-ايت**

ما دقران کتاب تاسې لپاره نازل کړ. چې په هغه کې ستاسې د«ذکر» خبر دی. (ستاسې دموعود دظهور خبر په هغه کې «ذکردی. ايا دعقل څخه کار نه اخلئ؟

**يا اهل العلم اتقواالله فی الذّکر يعلّمکم الله من لسان الذّکر تأويل الکتاب .۸ حضرت باب**

اې دپوهې والاو!له خدایه چې تاسې سره د«ذکر» په وسیله خبرې کوي ، وویرېږئ. (ددعوتولو دبې اعتنائې څخه نګران اوسئ)پروردګار د«ذکر» په ژبه دقران دکتاب معنا تاسې ته زده کوي.

**وَهُم بِذِكْرِ الرحْمَن هُمْ كَافِرُونَ .**
**دانبیاء سورت،۳۶-ایت**
هغوې دخدای له ذکره انکار کوي.
**انّ انا الله لا اله الّا انا قد قدّرت فضل الذّکر کفضل علی العالمین جمیعاً . ۹ حضرت باب**

۷۵۵ ۲۵فصل:دخدای ذکر

---

---

زه پروردګار یم ! په غیر له مابل پروردګار نشته دی . د«ذکر» ظهور په ټول جهان کې زما فضل دی .

انّ لَهُمُ الذِّكْرَىٰ وَقَدْ جَاءهُمْ رَسُولٌ مبِينٌ ثُم تَوَلوْا عَنْهُ وَقَالُوا مُعَلمٌ مجْنُونٌ.

**دخان سورت، ۱۴-۱۳ ،ایتونه**

د«ذکر» ظهور هغوې لپاره څه ګټه لرله ؟( دروښانه نښانو) سره هغوې ته پيغمبر راغې دهغه څخه ئې مخ واړول، اوهغه ئې ليونی وګڼل .

**فاتبعوا ما انزل الله اليكم بالحقّ فى شأن الذكر .**

**۱۰ حضرت باب**

له هغه څه څخه چې پروردګار د«ذکر» په شان اومقام کې نازل کړی پيروي وکړئ.

په مخکښني ايت دقران کې فرمائي:

**انّ لَهُمُ الذِّكْرَىٰ .**

**دخان سورت، ۱۳-ايت**

۱**.ترجمه** :ايا د«ذکر» دظهور څخه ګټه اخلي؟

۲**.ترجمه:**د«ذکر» ظهور هغوې ته څه ګټه لرله ؟

دذاريات په سورة کې هم دمخکښني ايت په شان ايت نازل شوی دی:

**وَذَكِّرْ فَان الذِّكْرَىٰ تَنفَعُ الْمُؤْمِنِينَ .**

**دذاريات سورت، ۵۵-ايت**

«متذکر»اوسه! ځکه «ذکر»مؤمینانو ته ګټه رسوي.
دقران ژباړونکی د«ذکری »کلمه په مخکېني ایت کې
د(خدای دیادولو) په معنا ترجمه کوي. دهغوې
دترجمې په صحت نشي کولای شک وکړي ، ځکه
دخدای په یاد راوړل زمونږ دروح دخوښې باعث
ګرځي. امّا په ایت کې دقت کول راوښائي چې یوه بله
معنی هم په هغه کې پټه ده. دادوه ایتونه مقایسه کړئ:
**انی لَهُمُ الذِّكْرَىٰ .**
**دخان سورت،۱۳-ایت**
ایا د«ذکر» په ظهور سره ګټه اخلي؟
**وَذَكِّرْ فَان الذِّكْرَىٰ تَنفَعُ الْمُؤْمِنِينَ .**
**دذاریات سورت،۵۵-ایت** په یاد
راوړه !ځکه د«ذکر» منل مؤمنانو ته ګټه وربخښي.

په قران مجید کې حضرت باب ته په اشارې سره د«ذکري» کلمه (زما ذکر) کله «ذکر» اوکله «ذکری» کارول شوي دي. دقران دیوې لغت نامې په اساس ، دمعنا له نظره د«ذکر»او«ذکری» په منځ کې چندان توپیر نشته دی. دعمید فرهنګ (ذکری) کلمه داسې تعریفوي: «یاداوري اویادبود» .په دې اساس ، «ذکری» یعنی یادبود اودخدای نماینده دانسانانو په منځ کې،دامعنا متشابه ده د«بقیة الله» سره،چې دقائم موعودالقابو څخه ده.

**انهُ لَقَوْلُ رَسُولٍ كَرِيمٍ ذِي قُوةٍ عِندَ ذِي الْعَرْشِ مَكِين مُطَاعٍ ثَم امِين وَمَا صَاحِبُكُم بِمَجْنُونٍ انْ هُوَ ا لا ذِكْرٌ لِّلْعَالَمِينَ لِمَن شَاء مِنكُمْ ان يَسْتَقِيمَ . دتکویر سورت،۲۸- ۲۲ ،۲۷-۱۹،ایتونه**

په یقین سره هغه دلوړ مرتبه ، لوی او قادر رسول وینا ده . چې دعرش صاحب دی .هغه مطیع اوامین دی .ستاسې مصاحب لیونی نه دی . هغه دټول عالم خلکو لپاره «ذکری» دی .هریو له تاسي چې غواړی سمه لار ونیسی.

**ما جعل الله امرالذّكر الّا امرنا .١١**

**حضرت باب**

د«ذکرامر»په غیر د زما(خدای) له «امر»څخه بل څه نه دی.

**بَلْ هُمْ عَن ذِكْرِ رَبِّهِم معْرِضُونَ .**

**دانبیاء سورت، ۲۱-ایت** هغوې دخدای له «ذکر» مخ اړونکي دي.

**و هوالشاهد علیکم باذننا فسوف یریکم ذ کرالله الاکبر ف□ ا لقیمة عما تکسبون لانفسکم .۱۲**

**حضرت باب**

هغه زما (خدای) په اجازه پر تاسې شاهد دی . ډیر ژر به د«پروردګار لوی ذکر» په ورځ دقیامت هغه څه چې تاسې دخپل ځآن لپاره ترلاسه کړي دي ، تاسی ته به ئې وښائي.

---

❖ صاحب اومصاحبت یعنی هم صحبت اودخبروملګری . پروردګارد پیغمبرانو پوسیله زمونږ سره خبرې کوي:

**دهرچا سره مې خبرې کړي. په ډيرې مهربانې سره، اويو ډير بردباره اورايګان ملګرې وم .**
**دحضرت بهاءالله دايقان کتاب، ۱۶۵ ـ مخ**

۷۵۷ ۲۵فصل:دخدای ذکر

---

**وَسَوَاء عَلَيْهِمْ انذَرْتَهُمْ امْ لَمْ تُنذِرْهُمْ لاَ يُؤْمِنُونَ انمَا تُنذِرُ مَن اتبَعَ الذِّكْرَ وَخَشِيَ الرحْمَن بِالْغَيْبِ فَبَشِّرْهُ بِمَغْفِرَةٍ وَاجْرٍ كَرِيمٍ .**
**دياسين سورت، ۱۱ـ ۱۰ ،ايتونه**

که هشداراواخطارورکړئ، اويائې ورنه کړئ ، دهغوې لپاره ، يو شی دی . په هر صورت کې ايمان نه راوړي . ته يواځی هغه چاته خبر داری ورکوې. چې د«ذکر» څخه پيروي وکړي. اوله خدايه وويريږي . دارنګه کسانو ته په بخښنې،ښه پاداش اوحق الزحمې سره بشارت ورکړه.

**فو ربّكم انا نحن الاقرب بكم من انفسكم لانفسكم ما لكم لاتبصرون بذكرالله المنيع ...١٣**

**حضرت باب**

ستاسې په پروردګار قسم دی. چې دخپل ځان نه تاسی ته نږدې تریم! په تاسې څه شوي دي ؟ ولی د«الله ذكر» حقانیت چې لوړ مرتبه دی. دزړه په سترګو نه ګورئ...؟

**وَمَن يُعْرِضْ عَن ذِكْرِ رَبِّهِ يَسْلُكْهُ عَذَابًا صَعَدًا .**

**دجن سورت،١٧-ایت**

هرڅوک چې دخپل پرورګار د«ذکر» څخه مخ واړوي ، پروردګار به هغه دلوی عذاب سره مخامخ کړي.

**و من اعرض عن ذ كرنا لن يقبل الله له من عمله من شيئ .١٤ حضرت باب**

هرڅوک چې زما له «ذکر» مخ واوړوي هیڅ یو عمل ئې پروردګار ته قبول نه دی.

**وَعَرَضْنَا جَهَنمَ يَوْمَئِذٍ لِّلْكَافِرِينَ عَرْضًا الذِينَ كَانَتْ اعْيُنُهُمْ فِي غِطَاء عَن ذِكْرِي وَكَانُوا لَا يَسْتَطِيعُونَ سَمْعًا افَحَسِبَ الذِينَ كَفَرُوا ان يَتخِذُوا عِبَادِي مِن دُونِي اوْلِيَاء انا اعْتَدْنَا**

جَهَنَمَ لِلْكَافِرِينَ نُزُلً قُلْ هَلْ نُنَبّكُمْ بِالْاخْسَرِينَ اعْمَالًا الذِينَ
ضَل سَعْيُهُمْ فِي الْحَيَاةِ الدنْيَا وَ هُمْ يَحْسَبُونَ انهُمْ يُحْسِنُونَ
صُنْعًا اولَئكَ الذِينَ كَفرُوابِآيَاتِ رَبِّهِمْ وَلِقَاهِ فَحَبِطَتْ
اعْمَالُهُمْ فَلَا نُقِيمُ لَهُمْ يَوْمَ الْقِيَامَةِ وَزْنًا ذَلِكَ جَزَاؤُهُمْ جَهَنَمُ
بِمَا كَفَرُوا وَاتخَذُوا آيَاتِي وَرُسُلِي هُزُوًا ان الذِينَ آمَنُوا
وَعَمِلُوا الصالِحَاتِ كَانَتْ ل هُمْ جَناتُ الْفِرْدَوْسِ نُزُلًا
خَالِدِينَ فِيهَا لَا يَبْغُونَ عَنْهَا حِوَلًا.

دكهف سورتو۱۰۸-۱۰۰،ايتونه

قران اوبهاءالله



---

په هغه ورځ دجهنم كافرانو ( دموعود منكرانو ته ) وړاندوينه كوو ، همغه چاته چې ستركې ئې « زما دذكر» دپيژندنې څخه په پرده كې وې ، او هغه ته ئې اوريدونكي غوږونه نه وركول . آيا كافران دامني. چې زما په ځاى دابنده ګان په دوستې كې ونيسي

؟مونږ جهنم د کافرانو لپاره اماده کړی دی. ترڅو دهغوې ځای وي . ووایه : غواړی پوه شی. چې څوک دټولو ډیر په تاوان کې دی؟هغوې هغه کسان دي. چې ددنیا لپاره ډیر کوښښ کوي. اوداسې فکر کوي. چې سم کار ئې ترسره کړی دی .هغوې هغه څوک دي، چې دپروردګار ایتونو اودهغه ددیدار څخه انکار کوي . دداسې خلکو عملونه تباه دي. اودقیامت په ورځ په حساب نه راځي . دهغوې جزا جهنم دی ، ځکه چې انکار ئې کړی دی. اوزما ایتونه اوزما رسولان ئې مسخره کړي دي . اما چا چې په دې رسولانو ایمان راوړی دی. او نیک عملونه ئې ترسره کړي دي. ، دهغوې ځای دجنت په باغونو کې دی. چې ترابده به هلته اوسیږي . اوهیڅکله به دهغه ځای څخه دوتلو میل ونه لري.

توضیح: مخکښني ایتونه په سورة دکهف کې نازل شوي دي ، همغه سورة چې د بهائي ائین په تاریخ کې مهمه برخه لرلې ده . داایتونه په روښنائې سره وښائي چې ډیر خلک د«ذکر» دلیدلو او دهغه دوینا داوریدلو څخه خپل ځآن لرې ساتي . ددې په ځای چې «ذکر» یعنی دخدای له لورې رالیږل شوی په دوستی سره ونیسي. اودخپل خالق پیروي وکړي . دخدای (بنده ګان اوپیشوایان) په دوستې سره نیسي. اودهغوې څخه

تقليد كوي . په دې چلنده اورفتار سره خپل ځآنونه دلوی افتخار څخه یعنې دپروردګار ددیدار څخه لرې ساتـي.
په مخکښني ایتونو کې «رسولانوته» اشاره شوې ده. چې دخلکو دتمسخر اوانکار سره مخامخ کیږي. دا رسولان زمونږ دعصر دوه موعوده دي. چې په کراتو په قران کې د«ذکر» اویا «ذکری» «زما ذکر» په کلمو سره ورته اشاره شوې ده .
**فسوف ینبئکم الله یوم القیمة من لسان الذّکر عمّا کنتم تعملون فی سرائرکم و اجهارکم .١٥**

**حضرت باب**
ډیر ژربه په ورځ دقیامت ، پروردګار تاسې دهغو کارونو څخه چې تاسې په ښکاره اوپټه ترسره کول د«ذکر» له ژبې باخبره کړي.

**ایحسب النّاس ان لایری الذّکر اعمالهم کلّا فهوالشاهد من الله مولیهم علی العالمین جمیعاً. ١٦**

**حضرت باب**

آیا خلک فکر کوي. چې «ذکر» دهغوې عملونه نه ګوري ؟نه داسې نه ده !هغه دپروردګار له لورې په ټول عالم شاهد دی.

# فرقان سورة

دفرقان سورة زمونږ دموعود په باره کې مونږ ته ډیرې نښانې راکوي. دهغو نښانو په اساس ، دموعود ورځ هغه ورځ ده چې خلک:

١١: ٢٥ :دساعت څخه انکارکوي. ( **كَذَّ بُوْ بِا السَّاعَةِ)** په همغه شکل مخکی مووليدل ،

ساعت دموعود ظهور وخت ته اشاره ده .

١٨: ٢٥: «ذکر» له یاده وباسي. ( **نَسُو الذّکرة)**.

٢١: ٢٥ :دخدای دیدار وعدې ته امید نه لري. ( لاَ يَرْجون لقاءنا)

دموعود ورځ هغه ورځ ده. چې :

٢٥:٢٥ :اسمان به سره بیل شي. اوملایکي به له هغه څخه راښکته شي .( **يَوْمَ تَشقَّقُ السَّمَاء بِالْغمَامِ وَنُزِّلَ الْمَلَائكَة تَنْزِيلاً).**داهم زمونږ دعصر دموعود دظهور نښانې دي. چې مخکې پرې بحث وشوه.

وروسته له مخکېنيو نښانو څخه قران مجيد دارنګه خبر ورکوي:

**الْمُلْكُ يَوْمَئِذٍ الْحَق لِلرحمن وَكَانَ يَوْماً عَلَى الْكَافِرِينَ عَسِيراً وَيَوْمَ يَعَضُ الظَالِمُ عَلَى يَدَيْهِ يَقُولُ يَا لَيْتَنِي اتخَذْتُ مَعَ الرسُولِ سَبِيلًا يَا وَيْلَتَى لَيْتَنِي لَمْ اتخِذْ فُلَانًا خَلِيلًا الذِّكْرِ بَعْدَ اذْ جَاءنِي وَكَانَ الشيْطَانُ لِلانسَانِ خَذُولًا لَقَدْ اضَلنِي عَن وَقَالَ الرسُولُ يَا رَبِّ ان قَوْمِي اتخَذُوا هَذَا الْقُرْآنَ مَهْجُورًا .**

**دفرقان سورة، ۳۰-۲۶ ،ايتونه**

په هغه ورځ ( دموعود ورځ) دپروردګار رحمان حکومت دی. دمنکرينو لپاره سخته ورځ ده . داسې ورځ ده. چې ستمکار(منکر) خپل لاسونه په ډير افسوس سره په غاښونو کيکاږي اووائي:

«اې کاش چې درسول» لاره مې نيولې وی . وای پرما!ای کاش چې دفلاني سره مې دوستي نه وی کړې . هغه وروسته د«ذکر» له ظهوره زه ګمراه کړم . زما دايمان خنډ شو . شيطان هميشه انسان سره خائن دی . «رسول » ( دقران موعود ) وويل: ای پروردګاره! زما قوم له قران څخه لرې شوی دی. ( قران ئې پرې ايښی دی. ) !

مخکښنی ايت په ظاهر کې رسو ل اکرم ته اشاره کوي ، اما دهغه په معنا کې دقت ، وښائې چې دراتلونکی پيغمبر يعنی دقران « موعود » دنظر وړ دی . دانښاني په هغه ايتونو کې پيداکو لای شی:

- زمونږ دعصر دپيښو څخه يوه داده، چې پروردګار دلمړی ځل لپاره پخپله خپل حکومت په لاس کې نيسي. اوخپل موعود پرتخت کښينوي . ټولو پيغمبرانو ددې وعدې خبر ورکړی دی . ددې وعدې تحقق په ظاهري صورت کې دوخت دتيريدو غوښتنه کوي.
- دموعود ورځ دمنکرينو لپاره مشکله ده . ځکه چې دپروردګار په نوي ائين ايمان شهامت اوفداکاري غواړی . ډير خلک دپيغمبرانو

دظهور په وخت کې ، دجهان سره مینه دخدای
دمینې څخه اسان تره ګڼي . دقران نور ایتونه په
دې حقیقت شاهدې ورکوي:

**يَوْمَ يَدْعُ الداعِ الَ شَيْءٍ نكُرٍ ...يَقُولُ الْكَافِرُونَ هَذَا يَوْمٌ عَسِرٌ كَذبَتْ قَبْلَهُمْ قَوْمُ نُوحٍ فَكَذبُوا عَبْدَنَا وَقَالُوا مَجْنُونٌ ...** **دقمر سورت،۹ـ۸، ۶،ایتونه** په هغه ورځ چې دعوت کونکي یونامطلوبه شي ته دعوتوي ...منکرین وائي: داورځ سخته ده . مخکی له هغوې (دنوح قوم) زما بنده (نوح) ئې دروغ وګڼل، اووئې ویل هغه لیونې دی...

- وروسته ددې سرای دسفر څخه دپروردګار دموعود منکرین به پخپله خطا پوه شي اوغوښته به کوي. چې اې کاشکې دانکار په ځآی دخدای درسول لاره یعنی د «قران موعود» منلی وی. اودهغه یاري ئې کړې وی.

---

---

- د«ذکر»کلمه زمونږ دعصر دموعود دخاصونمونو څخه دی . چې په ټول قران کې راغلی دی:

**انهُ لَذِکْرٌ لئَكَ وَلِقَوْمِكَ وَسَوْفَ تُسْالُونَ .**

**دزخرف سورت،۴۴-ایت**

هغه ستا «ذکر» دی. ستا دقوم لپاره دی . ډیر زر دی چې دپوښتنې وړ وګرځي.

- دخلکو ګمراه کیدل وروسته د«ذکر» دظهور څخه وښائې چې په غیر درسول اکرم څخه بل پیغمبر دنظر وړ دی.

مخکېني ایتونه شهادت ورکوي. چې دیر خلک دتحقیق په ځای تقلید ته ترجیح ورکوي. دخدای دحکم دپیروی په ځای ، دپیشوایانو ، خپلوانو اودوستانو پیروي کوي.وروسته د دې سرای له سفر څخه په دې لوی اخطار پوهیږي. اوافسوس کوي. چې خپل موعود «ذکر» ئې دخپل ژوند په وخت کې په دې دنیا کې ونه پیژندل . هغه وخت به پوه شي چې کوم خلک

دهغوې دایمان خنډ ګرځیدل ، دخدای له نظره شیطانان دي نه انسانان. داهغه ورځ ده. چې دموعود منکرین خپل ځان ته وائي:
وائې پرما!اې کاشکې چې فلانی مې په دوستی نه وی نیولی . هغه وروسته د«ذکر» دظهور څخه زه ګمراه کړم . شیطان ( ګمراه کوونکی) همیشه دانسان سره خیانت کوي.
دپروردګار نوی رالیږل شوی ، وروسته له مخامخ کیدلو ددې منکرینو، اوقدر نه پیژندونکو سره دپروردګار درګاه ته مخ اړوي. اوخپل خدای ته په خطاب کې وائي: اې پروردګاره ! زما قوم (مسلمانان) ستا دکتاب څخه مخ اړوي ! ستا دحکم داطاعت په ځای دنفس اودهوی اوهوس دحکم څخه پیروي کوي.
برسیره پردې ټولو نښانو ، د«**يَوْمَئِذٍ**» کلمه په هغه ورځ وښائي، چې مخکښني ایتونه دفرقان په سورة کې داینده پورې مربوط دي ، نه په تیرو پورې . پس کوم پیغمبردی. چې خلک دهغه انکار کوي ؟کوم پیغمبر دی. چې د«ذکر»په لقب سره ظاهریږي. کوم پیغمبر دی. چې مسلمانان دخپل قوم څخه ګڼي؟کوم پیغمبر دی. چې دقران نه د مسلمانانو دلریوالي شکایت کوي؟

**یا اهل العرش اسمعوا ندائی من هذاالذکر...و هو یجلس بالحق علی تراب الارض باذن الله لیعلم النّاس اسرار مبدئهم حتّی قد شهدالکلّ بانّ بارئهم هوالحقّ الله الّذی لا اله الّا هو و انه قد کان عبده و باب حجته علی العالمین جمیعاً .١٧ حضرت باب**

ای دعالم والاو اې دجهان خلکو!زما غږ له دې «ذکر» څخه واورئ ... هغه دخدای په اجازه ( دالهي امر داسمان) نه ځمکې ته راغلی دی ، ترڅو خلک دخپلې مبدا اوپیل اسرار پیداکړي. اوپه دې حقیقت شهادت ورکړي. چې دهغوې خالق یکتا اوبې همتا پروردګار دی.هغه ( موعود) دخدای بنده دی. اودټول عالم دخلکو په وړاندې باب دی .

## دطه سورة

**كَذَلِكَ نَقَص عَلَيْكَ مِنْ انبَاء مَا قَدْ سَبَقَ وَقَدْ آتَيْ نَاكَ مِن لدُنا ذِكْرًا مَنْ اعْرَضَ عَنْهُ فَانهُ يَحْمِلُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ وِزْرًا خَالِدِينَ فِيهِ وَسَاء لَهُمْ يَ وْمَ الْقِيَامَةِ حِمْلًا... وَكَذَلِكَ وَمَنْ ...انزَلْنَاهُ قُرْآنًا عَرَبِيا وَصَرفْنَا فِيهِ مِنَ الْوَعِيدِ لَعَلهُمْ يَتقوت اوْ يُحْدِثُ لَهُمْ ذِكْرًا اعْرَضَ عَن ذِكْرِي فَان لَهُ مَعِيشَةً ضَنكًا وَنَحْشُرُهُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ اعْمَى. دطه سورت،۱۲۴، ۱۱۳، ۱۰۱، ۹۹،ايتونه** په

دي ډول تاته د تيرو خبرونو قصه كوم . په يقين سره مې دخپله لوري تاته «ذكر» دركړ . هرڅوک چې له هغه مخ واړوي ، په ورځ دقيامت به ئې په اوږو درروند بار وي اوهميشه به هغه حال كې پاتې شي . دامنكرين به په ورځ دقيامت څومره بد بار ولري . دارنګه مې قران په عربي نازل كړ، اوپه هغه كې مې مختلفي خبر تياوې ذكر كړې ، شايد چې هغوې دتقوى لاره ونيسي . اومتذكر شي. ( چې « ذكر» هير نه كړي.)... اوهرڅوک چې زما د«ذكر» څخه مخ واړوي. تنګ اوسخت ژوند به ولري. اودمحشر په ورځ به هغه دړندو په منځ كې واچوم.

**وانّ الله قد جعل اعظم النعماء فی يومكم هذا ذ كرالله العلیّ و كان الله علی كلّ شيئ شهيداً .۱۸**

**حضرت باب**

په یقین سره دپروردګار لوی نعمت په دې ورځ ستاسې لپاره دپروردګار «ذکر» دی. پروردګار په هرڅه شاهد دی.

---

❖ په بحارالانوار کې دحدیث په اساس داایت، قایم موعود ته اشاره کوي.



---

## دمؤمنون سورة

دمؤمنون په سورة کې هم زمونږ خالق دخپل موعود ( ذکر) په باره کې مونږ سره خبرې کوي:

**وَلَوِ اتبَعَ الْحَق اهْوَاءهُمْ لَفَسَدَتِ السمَاوَاتُ وَالْارْضُ وَمَن فِيهِن بَلْ اتَيْنَاهُم بِذِكْرِهِمْ فَهُمْ عَن ذِكْرِهِم معْرِضُونَ امْ تَسْالُهُمْ خَرْجًا فَخَرَاجُ رَبِّكَ خَيْرٌ وَهُوَ خَيْرُالرازِقِينَ وَانكَ لَتَدْعُوهُمْ الَ□ صِرَاطٍ مسْتَقِيمٍ .**

**دمؤمنون سورت،۷۳- ۷۱ ،ایتونهر** که
پروردګار( دخپل موعود دحقانیت داثباب لپاره )
دهغوې دهوسونو څخه پیروي وکړي. اسمانونه ،
ځمکه اودهغې اوسیدونکي به تباه شي. ( دهغوې
هوسونو دپیروې په ځای)« دهغوې ذکر»
دهغوې لپاره راوړی دی . اما هغوې د«ذکر» څخه
مخ اړونکي دي. ایا « موعود» دهغوې څخه مزد
غواړي؟ستا دپروردګار پاداش بهتر دی. اوهغه بهترین
رزق ورکونکی دی. اوستا وظیفه سمې لارې ته
دخلکو دعوتول دي.
په مخکېنیو ایتونو کې په دې ټکو بحث شوی دی:

- خلکو دپیغمبرانو څخه دهغوې دادعا دثبوت لپاره همیشه معجزه غوښتې ده . دخارق العاده کارونو وسیله همیشه دپروردګار درضا مخالف ؤ اودی .
- دمعجزې په ځآی پروردګار هغوې ته خپل پیغمبر « ذکر» دالهي حکمت اوعلم سره هغوې ته ورلیږلی دی. اما هغوې ددې لوې معجزې څخه مخ اړونکي دي.
- دخدای پیغمبر دخلکو څخه مزد نه غواړي . برعکس پروردګار هغوې ته پاداش ورکوي .

دپیغمبر یواځنې وظیفه سمې لارې ته دهغوې
هدایت دی.

ځومره زمونږ طرز فکر دپروردګار دحکمت اونقشې سره په توپیر کې دی !مثلاً دحضرت موسی دظهور په وخت کې ځنې خلکو وویل : پروردګار ولی یو قاتل پیغمبر کړی دی ؟ دحضرت مسیح دظهور په وخت کې ویل: ولی یو بې پلاره اوفقیر پیغمبر شوی دی؟دحضرت محمد دظهور په وخت کې وویل : پروردګار یو صحرانشین بې سواده پیغمبر کړی دی؟ زمونږ په عصر کې هم وائي : څنګه ممکنه ده چې پروردګار یو ۲۵کلن تاجر دشیراز څخه قایم موعود کړ ؟

دمؤمنین سورة په پای کې، پروردګار دمؤمنینو به باره کې په دې ائین خبرې کوي:

**اِنـهُ كَانَ فَرِيقٌ مِّنْ عِبَادِي يَقُولُونَ رَبنَـا آمَنـا فَاغْفِرْ لَنَـا وَارْحَمْنَا وَانتَ خَيْرُ الراحِمِينَ فَاتخَذْتُمُوهُمْ سِخْرِيا حَتى انسَوْكُمْ ذِكْرِي وَكُنتُم مِّنْهُمْ تَضْحَكُونَ.**

**دمؤمنون سورت، ۱۱۰-۱۰۹ ،ایتونـه**

زما دبنده ګانو یوه ډله ده. چې وائي : پروردګاره !مونږ ایمان راوړی ، مونږ وبخښه، اوپه مونږ رحم وکړه . ته دهر مهربان څخه مهربانتر ئې. تاسې هغه (په نوي ائین مؤمنین) مسخره کړل ، ترهغه حده چې ستاسې غفلت باعث شو. چې زما «ذکر» هیر کړی، اوخپل تمسخر ته ادامه ورکړئ.

توضیح: په غیر دمؤمینانو نه دپروردګار په نوي موعود، کوم کسان وائې:«رَبَّناَ اَمَنَّا» «مونږ ایمان راوړی دی!»؟په غیر د پروردګار دراليږل شوی ، یعنی دخدای «ذکر» څخه بل څوک دخلکو دتمسخر لاندې راځي؟

**وانّماالمؤمنون الّذین لایریدون فی انفسهم دون الرّحمن و ذ کره علی الحقّ حبیباً .۱۹**

**حضرت باب**

ربښتيني مؤمينان هغه څوک دي. چې دځآن لپاره په غير د «محبوب رحمان» اودهغه د«ذکر» څخه بل څوک نه غواړي.

**اتقواالله و لا تقولوا ف ذ کرالله الاکبر بشيئ من دون الله فانا نحن قد اخذنا ميثاقه عن کل نب ّ و امّته .**

**۲۰**

**حضرت باب**

دخدايه وويريږی، اودخدای «ذکر په باره کې» دخدای دارادي مخالف څه مه وائې. ما دهغه عهد اوميثاق ظهور له هرپيغمبر اوهر امت څخه اخيستی دی.

## دذاريات سورة

**كَذَلِئكَ مَا اتَ الذِينَ مِن قَبْلِهِم مِّن رسُولٍ ا لا قَالُوا سَاحِرٌ اوْ مَجْنُونٌ اتَوَاصَوْا بِهِ بَلْ تَنفَعُ الْمُؤْمِنِينَ ... هُمْ قَوْمٌ طَاغُونَ فَتَوَ ل عَنْهُمْ فَمَا انتَ بِمَلُومٍ وَذَكِّرْ فَان الذِّكْرَی ,فَوَيْلٌ لِّلذِينَ كَفَرُوا مِن يَوْمِهِمُ الذِي يُوعَدُونَ .**

**دذاريات سورت، ۶۰، ۵۵-۵۲،ايتونه**

---

❖ « دعهد او ميثاق اخيستل» مخکېنيو پيغمبرانو ټولو زمونږ دعصر ددوه موعودو دظهور زيری ورکړی دی . دهغه پيغمبرانو دهريو پيروان دخپل ائين داقرار له مخې متعهد دي. چې

موعود پیغمبر ومني. اوکه نه په خپل عهدئې وفا کړې نه ده .

- د«ذکرا»او«ذکری» توري یوشی دي. اما دهغوې معنا اوتلفظ لږ توپیر لري. ذکرا یعنی «ذکر» دتاکید لپاره «ذکری» «زما ذکر».



دهغوې مخکېنیو لپاره رسول رانه غي ، مګر دا چې وئې ویل:« جادوګردی،لیونی دی!»هغوې مخکنیو داوینا دهغه (موعود)په باره کې هغوې ته ( دموعود معاصرو خلکو ته ) انتقال کړې ده؟( هغوې ته ئې توصیه کړی ده؟)نه !داسې نه ده!دوې پخپله تجاوز کوونکي خلک دي. له هغوې مخ واړوه. تاته کومه ملامتیا نشته دی. ته «ذکر»تذکر ورکړه ځکه «ذکر»دمؤمنانو لپاره ګټور دی...څومره بد دی. دهغو کسانوبرخلیک چې دخپل موعود دورځې څخه انکار کوي.

مخکېني ایتونه دالاندې نکتې مونږ ته رازده کوي:

- دپروردګار په وعده کې دنوي موعود او نوي دین دظهور په باره کې نه باید شک وکړو.

- زمونږ دعصر اوزمان خلک به هم دمخکنیو په شان دخپل موعود څخه انکار کوي.
- آیا زمونږ دزمان خلکو دا رفتار اوداطرزفکر له مخکېنیو څخه زده کړی دی ؟ آیا دافکر دمخکنیو نسلونو څخه روستنیو نسلونو ته منتقل شوی دی. نه دارنګه نه ده . انکار ته تمایل ارثي نه دی.
- یواځي درسول اکرم وظیفه داده. چې مسلمانانو ته تذکر ورکړي. چې په «ذکر» ایمان دهغوې په ګټه او دهغه موعود څخه انکار دهغوې په تاوان دی.
- زمونږ دبیدارې لپاره ، پروردګاردسورة په پای کې مونږ ته اخطارراکوي. اومونږ دانکار څخه منع کوي. اومونږ ته رازده کوي که د«ذکر» دظهور وعده نادیده ونیسویا انکار ترې وکړو ، نامساعد برخلیک به په همیشنې جهان کې ولرو.

داایتونه په همدې سورة کې له مخکې مونږ بررسي کړل:

**انمَا تُوعَدُونَ لَصَادِقٌ وَان الدِّينَ لَوَاقِعٌ... فَوَرَبِّ السمَاء وَالْارْضِ انهُ لَحَق.**

**دذایات سورت،۶۳، ۶-۵،ایتونه**

په يقين سره هغه وعده چې تاسې ته درکړل شوه، سمه ده ...ددين دظهور وعده به تحقق پيداکړي...دځمکې اواسمانونو په پروردګار قسم دی. چې هغه (موعود)حق دی.



---

**وانّ الله قد عرض ولايتنا عل□ السّموات والارض والجبال فا بين ان يحملنها و اشفقن منها فحملها الانسان ذ كرالله الكبير ...**

**٢١ حضرت باب**

پروردګار زما ولايت اسمانونو ، ځمکې اوغرونو ته وړاندې کړ. هغوې ددې امانت دحملولواو وړلو څخه

ایره لرله. اودامسئولیت ئې ونه منل . پس انسان ( دخدای لوی ذکر)هغه حمل کړ.

## أَهْلَ الذِّكْرِ

## دموعود پیروان

دقران په دو سورتونو کې ، « اَهْلَ الذَّکْر یاد ذکرپیروانو»اصطلاح راغلې ده.ددې اصطلاح څخه منظور څه شی دی؟

**وَلَقَدْ بَعَثْنَا فِي كُلِّ امةٍ رسُولاً... وَمَا ارْسَلْنَا مِن قَبْلِكَ الا رِجَالاً نوحِي الَيْهِمْ فَاسْالُواْ ,اهْلَ الذِّكْرِ ان كُنتُمْ لاَ تَعْلَمُونَ .**

**دنحل سورت،۴۳ ـ۴۶،ایتونه** ماهر امت ته پیغمبر ورلیږلی دی...هغه کسان چې له تامخکې مې لیږلی دي. داهغه خلک ؤ چې هغوې ته وحې کیدله. که نه پوهیږي د«ذکر» دپیروانو څخه پوښتنه وکړئ.

«اهل ذکر»کوم کسان دي؟مسلمان مفسرین دقران ددې اصطلاح دتفسیر څخه عاجز پاتې دي. دهغوې ډیر په دې عقیده دي. چې «اهل الذکر»یهودیان اومسیحیان دی. داتفسیر معقول نه دی. څنګه ممکنه ده چې مسلمانان په یو مطلب پوه نشي. اما داسلام منکرین دې ورباندې پوه شي؟اصولاً ولی مسلمانان دمشکل دحل لپاره منکرینو ته ورشي؟بله ډله له هغې جملې

يو سفعلی ، وائي داايت مشركينو ته خطاب دی. چې داسلام دپيژندني لپاره لازمه ده. ديهوديانو څخه داسلام د حقانيت په باره کې پوښتنه وکړي. داهم يو نامعقول کار دی ، هغه خلک چې بت پرست دي. څنګه ممکنه ده. يهوديانو ته اعتنائي ولري.دا خوبيخي پريږدی چې دپروردګار دسنتو په باره کې دپيغمبرانو دليږلو لپاره يا کومه بله مسئله چې دايمان او دين پورې اړه ولري، له هغو څخه نظر وغواړي؟



**شوپرک نه پوښتنه کوي. چې آيا لمر راښتلی دی؟٢٢**
**حضرت بهاءالله**

دامشکل یواځي یو معقول ځواب لري. یواځي د نوي ائین مومېنین کولی شي. د مسلمانانو نه ډیر معلومات ولري. داهل الذکراصطلاح دانبیاء په سورة کې هم راغلي ده:

**اقْتَرَبَ لِلناسِ حِسَابُهُمْ وَهُمْ فِي غَفْلَةٍ معْرِضُونَ مَا يَاتِيهِم مِّن ذِكْرٍ من ربِّهِم محْدَثٍ الا اسْتَمَعُوهُ وَهُمْ يَلْعَبُونَ لَاهِيَةً قُلُوبُهُمْ وَاسَرواْ النجْوَى الذِينَ ظَلَمُواْ هَلْ هَذَا الا بَشَرٌ مِّثْلُكُمْ افَتَاتُونَ السِّحْرَ وَانتُمْ تُبْصِرُونَ قَالَ رَبِّي يَعْلَمُ الْقَوْلَ فِي السمَاء وَالارْضِ وَهُوَالسمِيعُ الْعَلِيمُ بَلْ قَالُواْ اضْغَاثُ احْلاَمٍ بَلِ افْتَرَاهُ بَلْ هُوَ شَاعِرٌ فَلْيَاتِنَا بِآيَةٍ كَمَا ارْسِلَ الاولُونَ مَا آمَنَتْ قَبْلَهُم مِّن قَرْيَةٍ اهْلَكْنَاهَا افَهُمْ يُؤْمِنُونَ وَمَا ارْسَلْنَا قَبْلَكَ الا رِجَالاً نوحِي الَيْهِمْ فَاسْالُواْ اهْلَ الذِّكْرِ ان كُنتُمْ لاَ تَعْلَمُونَ وَمَا جَعَلْنَاهُمْ جَسَدًا لا يَاكُلُونَ الطعَامَ وَمَا كَانُوا خَالِدِينَ.. لَقَدْ انزَلْنَا الَيْكُمْ كِتَابًا فِيهِ ذِكْرُكُمْ افَلَا تَعْقِلُونَ.**

**دانبياء سورت، ۱۰، ۸- ۱ ،ایتونه** دخلکو دحساب ورځ نږدی شوې ده ، اما هغوې غافل دي. او مخ ئې اړولی دی . هیڅ یو نوی ائین دپروردګار له لورې نه راځي . مګر هغه چې وروسته له اوریدلو ئې دهغه په باره کې دبازیچې فکر کړی دی . زړونه ئې غافل دي. داستمکاره خلک په نجوی او (راز)کې یوبل نه وائي:ایا داشخص په غیر دانسان نه ستاسې په شان

دی؟ ایا هغه څه چې ګوری، دایو سحراو جادو
دی؟«هغه»(ذکر)وائي : پروردګار مې په هغه څه چې
په اسمانونو اوځمکه کې دي، باخبره دی. هغه
اوریدونکی اوبینا دی. همدارنګه خلک وائي:    هغه
دیو شاعرنه زیات نه دی. اوکه نه نو هغه دې دمخکنیو
پیغمبرانو په شان مونږ. ته معجزه راوړي.
مخکې له هغوې ، دهغه ځایونو خلک چې ایمان ئې نه
دی راوړی ، نابود کړي دي. آیا داخلک ( له مخکی
څخه پنداخلي) ترڅوایمان راوړي؟ماله تامخکی هم
مردان لیږلي دي. ( دعامو خلکو په څیر) هغوې ته
وحې کیدله . که نه پوهیږئ د«ذکر»دپیروانو څخه
پوښتنه وکړئ . دهغوې تن هم دنورو خلکو په څیر
خوړو ته اړتیا لرله ، ابدي ژوند ئې هم په دې دینا کې
نه لرل. ماتاسې ته قران نازل کړی دی. چې په هغه
کې ستاسې د«ذکر»خبرې شوې دي. آیا دعقل څخه
کار نه اخلي؟
په مخکنیو ایتونو کې داټکي او نکتې مطرح شوي دي:

---

- دحساب ورځ یا دقیامت ورځ چې دموعود دظهور زمانه ده. رارسیدلی ده . (دامطلب په مخکې فصلونو کې څیړل شوی دی).
- اما خلک غافل اوبې خبره دي . یوه ډله حتی ددې لوی خبر داوریدلو نه وروسته هم ایمان نه راوړی.
- داغفلت کوم نوی کار نه دی، همیشه دارنګه وه.
- خلک په خپلو سترګو دموعود قدرت اوعظمت ګوري . په داسې یو حال کې حتی پخپلو سترګو اطمنان نه لري . دخپل ځان سره وائي : «داټول سحر اوجادو دی.»
- بله ډله دموعود وینا دروغ ګڼي یا هغه ته دشاعر فکر کوي.
- هغه څه چې خلک دخپل پیغمبر نه انتظار لري ، معجزه ده . دهغوې بڼکلې اوله معنی ډکه وینا هغوې قانع کولای نشي.
- پروردګار هیڅکله دې بې ځآیه انتظار ته ځواب ویلی نه دی.

- حلک دخدای دسنتو باخبره دي ، په داسې حال کې ولی پند نه اخلي؟
- دپروردګار سنت همیشه داوه، چې یو انسان دانسانانو له منځه وټاکې اوخپل کلام هغه ته ورزده کړي.
- که په دې باره کې شک لری ، دنوي موعود دپیروانو یعنی د«اهل ذکر» نه پوښتنه وکړئ ،
- قران مجید د(ذکر) دظهور وړاندوینه کړې ده . (دموعود ظهور په هغه ټول کتاب کې ذکر شوی دی.) ولی دعقل اوخرد دقانون په اساس قضاوت نه کوي؟

څه مطلب دی. چې مسلمانان باید د«اهل ذکر» یعنی د«ذکر دپیروانو» څخه پوښتنه وکړي؟زمونږ دعصر ددوه موعودو دتعالیما تو اوښوونو داحقیقتونه دمخکېني ایتونو په تفسیر کې مونږ ته رازده کوي:

- دپروردګار سنت اوطریقه داوه، چې دهر امت له منځه هغوې ته رسول وټاکي.
- داپیغمبران انسانان و. دټولو خلکو په څير هغه انسانان چې هغوې ته وحې کيدله.
- اوس هم همدا سنت د«ذکر» په نامه دپيغمبر په ظهورسره تکرار شوي دي.
- که په دې معقول مطلب باور نه لري د«ذکر دپيروانو» څخه پوښتنه وکړي. ترڅو هغوې تاسې قانع کړي. چې دپيغمبرانو دليرلو په سنتو کې هيڅکله تغير اوتعطيل نه ؤ اونه به وي.

دپورتنيو ټکو په ذکر اويادولو سره قران د«ذکر» نقش په دې ايت کې روښانه کوي:

**بِالْبَيِّنَاتِ وَالزبُرِ وَانزَلْنَا الَيْكَ الذِّكْرَ لِتُبَيِّنَ لِلناسِ مَا نُزِّلَ الَيْهِمْ وَلَعَلهُمْ يَتَفَ كرُونَ**

**دنحل سورت، ۴۴-ايت** ما«ذکر» دروښانه دلايلو سره اوداسماني کتابونو سره ستا طرف ته دروا‌ستول. ترڅو

هغه څه چې دخلکو لپاره نازل شوي دي. دهغوې لپاره توضيح کړي. شايد چې د فکر څخه کار واخلي.
مخکېني ايت په روښانه توګه وښائي. چې دپروردګار نوی موعود به دقران اسرار ښکاره کړي. دهغوې پيروان يعنی « اهل ذکر» دهغه داسماني کتابونو څخه ګټه پورته کړي . اودقران مشکلات دنورو لپاره دهغې جملې نه مسلمانانو ته روښانه کړي.
**انا نحن قد نزلنا علي عبدنا هذاالکتاب من عند الله بالحق..فاسئلوا الذّکر تأويله فانّه قد کان بفضل الله علي آياته بحکم الکتاب عليماً .٢٣**
**حضرت باب**
ما ( پروردګار) په حقيقت سره دااسماني کتاب پخپل بنده نازل کړی دی... پس دهغه تفسير( دهغه دباطني معنا سره ) له «ذکر» نه پوښتنه وکړئ . ځکه هغه دپروردګار په فضل دکتاب په احکامو اوپه دې ايتونو علم اوپوه لري.

---

❖ زمونږ دنن ورځې په ژبه ، مخکنی سورة په دی شکل بيانيږي:
**وَانزَلْنَا اَلَيْکَ الذِّکْرَ بِالْبَيِّنَاتِ وَالزبُرِ لِتُبَيِّنَ لِلناسِ مَا نُزِّلَ اَلَيْهِمْ وَلَعَلهُمْ يَتَفَکرُونَ.**

❖ په دې ايتونو کې د«کتابونو» ذکر شوی دی. رسول اکرم يو کتاب راوړ، حضرت باب اوحضرت بهاءالله هريو مختلف کتابونه راوړه.



---

**وَ ما سَلُوا عَنْ اَهْلِ الذّ کْرِ بَعْدَ الذِی اَمَرَهُمُ اللهُ بِذلِکَ قالَ وَ قَولُهُ الحَق" فاسْلوا اَهْلَ الذِّکْرِ اِنْ کُنْتُمْ لا تَعْلَمُون "بَلْ اَعْرَضُوا عَنْ اَهْلِ الذِّکْرِ وَ اتبَعُوا السّامِری بِاَهْوَاهِمْ. ٢٤ حضرت بهاءالله**

د«اهل ذکر» څخه ئې پوښتنه ونه کړه. اوحال داچې پروردګار هغوې ته امر وکړ . دارنګه ئې وفرمايل چې خبرې ئې حق دی: «که نه پرې پوهيږي، د ذکروالاڅخه پوښتنه وکړئ»په عوض کې د«اهل ذکر» څخه مخ واړول. اودخپلې هوا اوميل په اساس د«سامري»پيروان شو .

**اللهُ يَحْكُمُ بَيْنَكُمْ يَوْمَ الْقِيَامَةِ فِيمَا كُنتُمْ فِيهِ تَخْتَلِفُونَ .**

**دحج سورت، ۶۹-ايت** البته په هغه څه

کې چې دنظر اختلاف لری. پروردګار به په ورځ دقیامت ( دموعود قیام) ستاسي په منځ کې قضاوت وکړي.

**ا ن رَبكَ يَقْضِي بَيْنَهُمْ يَوْمَ الْقِيَامَةِ فِيمَا كَانُواْ فِيهِ يَخْتَلِفُونَ .**

**دیونس سورت، ۹۳-ایت**

البته پروردګار به دې په ورځ دقیامت دهغه څه په باره کې چې دنظر اختلاف لري دهغوې په منځ کې قضاوت وکړي.

**وَلا تَحْتَجِبُوا عَمّا سَمِعْتُمْ مِنْ عُلَماۤکُمْ ثُم اسْئَلُوا اُمُورَ دِيْ الذی جَعَلَهُ نِكُمْ عَنَ اللهُ راسِخاً فِ□ عِلْمِه...يا ا يهَا النّاسُ اتقُوا اللهَ وَ لا تَتخِذُوا الْعِلْمَ مِنَ الْعُ ي ونِ الْمُكَدرَةِ التِ□ كانَتْ عَنْ جَهَةِ النفْسِ وَالْجَهْلِ جَرِ ي اً فَاتخِذُوهُ مِنَ الْعُ ي ونِ السّايِ لَةِ السّاغَةِ الصّافِ يَ ةِ الْجارِ يَ ةِ الْعَذْبِ يةِ ...**

**۲۵**

**حضرت بهاءالله**

(نه پرېږدي هغه څه چې دخپلو علماو څخه ئې اوریدلي دي، لکه د پردې په څير تاسې دحقیقت دلیدلو څخه لرې ساتي. دیني مسایل له هغه چا پوښتنه وکړئ. چې پروردګار هغه په علم کې راسخ کړي دي. اې خلکو!دخدای څخه وویرېږئ. اوعلم دالوده اوککړو چینو څخه چې دنفس اونادانې څخه ئې جریان

پیداکړي دی وانخلي. هغه له روانوپاکو خوږو مزه دارو چینو څخه په لاس راوړي).
دخدای دحکم په اساس دهر ائین دربنتینولې دلایل باید دهغه دپیروانو څخه پوښتنه وشي. نه دهغه دمنکرینو څخه ، اما خلک دا حکم همیشه نادیده نیولی اونیسي:
**أتسئلون الیهود هل کان الرّوح عل□ حقّ من الله او الاصنام هل کان محمّد رسولاً او ملأ الفرقان ذ کر الله العل□ّ العظیم .۲۶**
**حضرت بهاءالله**

---

❖ «سامري» هغه جادو ګر اوساحرؤ. چې دحضرت موسی په زمانه کې طلائې خوسی جوړ کړ. اوخلک ئې دخوسي عبادت ته رابلل. له دې کبله داکلمه دګمراه کوونکي معنا په توګه په غیرې حقیقي اصطلاح بدله شوه .



---

آیا دیهودیانو څخه پوښتنه کوې، چې حضرت عیسی دخدای له لورې دی؟

يادا چې دعيسويانو څخه پوښتنه کوې، چې حضرت محمد دخداى راليږونکى دى؟
(په همدى قياس) آيا د« الهي ذکر» دحقانيت په باره کې دمسلمانانو څخه پوښتنه کوى؟
ښه به وي. چې يو ځل بيا دپروردګار دااخطار اوکلام په نظر راوړو :
**أتسئلون اليهود هل كان الرّوح على حقّ من الله او الاصنام هل كان محمّد رسولاً او ملأ الفرقان ذ كر الله العلىّ العظيم .**

**٢٦ حضرت بهاءالله**

اې مؤمينانو ! پروردګار په قران کې داسې يو څه نه دي نازل کړي. چې خلک وربانديې پوه نشي. ( هرڅه ئې چې نازل کړي ددې لپاره چې خلک وربانديې پوه شي) «ذکر» حق او دخداى دلورې دى. اوپروردګار هميشه په ټولو شيانو اګاه وه اودى.
اې دځمکې والاو!په هغه خداى قسم دى. چې په غير له هغه بل خداى نشته دى ! پروردګاربه په غير دايمان نه په «ذکر» نور څه باقي پرې نږدي.
اوداکتاب(دحضرت باب ايتونه ) ستاسي لپاره دليل دى . زه پروردګار يم ، په غير له مابل خداى نشته دى.

پس زما عبادت وکړئ. اولمونځ د«لوی ذکر» لپاره اداء کړئ . په یقین سره ستاسې پروردګار حق دی. اوهغه څوک چې دهغه دعوت ونه مني ، دعدالت دحکم په اساس ، به ددوزخ اوسیدونکی وي...
اې دځمکې والاو!له خدایه وویرېږئ. په یقین سره ذکر حق دی. اودحق له لوري دی. اوکه په غیر له هغه بل څوک ومنئ. دحق دحکم په اساس به ستاسې نوم د( کتابونو دمور) ددوزخیانوپه پاڼو کې ولیکل شئ. «ذکر» په غیردلوی اوپیداکوونکي پروردګار دلورې دحقیقت دویلو اوبیان څخه بل کوم مسئولیت نه لري.

هغه «ذکر»دی. دخدای دلورې، ترڅو تاسې ته دخپلې وعدې دتحقق څخه ښه خبر درکړي. اودمجازاتو څخه تاسې ته خبر داری درکړي. دهغه نوم ( دکتابونو په موریعنې قرآن کې) ثبت اولیکل شوی دی...پروردګار ستاسې له منځه ستاسې دخیر دپاره ټاکلی دی. ترڅو الهي ایتونه تاسې ته ولولي ، تاسې دالودګې اوککړتیا څخه پاک کړي. او تاسې دتورې تیارې نه روښنائې ته ورسوي . پروردګارپه هرڅه شاهد دی...

**ینبغ□ لکل نفس ان یکون ناطقاً بذکر ربه و ذاکراً بهذاالذکر .٢٨ حضرت باب**

ښه به وی چې هر نفس دخپل پروردګار په یاد ژبه وښوروي اودا«ذکر» په یادراوړي.

**شهدالله انّه لااله الّا هو المهیمن القیّوم و ان هذا هوالقائم الحق الذی کنتم به توعدون .٢٩**

**حضرت باب**

دخدای په شهادت ، دهغه خدای چې په غیر له هغه بل خدای نشته دی. اوداهمغه قائم حق دی. چې دظهور وعده ئې تاسې ته درکړل شوې ده.

**هیچ جنّتی از برای این خلقْ اعلی از ظهور من و آیات من نیست .و هیچ ناری اشد از احتجاب به من و آیات من نیست . ۳۰**

**حضرت باب**

دې خلکو لپاره په غیرد زما له ایتونو اوزما له ظهوره، بل هیڅ کوم اعلی جنت نشته دی، اوزما دمحرومیت اوپېتوالي څخه، بل کوم دوزخ نشته دی.

**فسوف تجدون اعمالکم عندالله فی لوح قد کان من ایدی الذّکر علی الحقّ بالحقّ مکتوباً . ۳۱**

**حضرت باب**

ژر دې هغه وخت راورسي. چې خپله عمل نامه دخدای په وړاندې دهغې پاڼې په مخ چې د«ذکر» په لاس جوړه شوې ده ترلاسه کړي.

# یولسمه برخه

# دپروردگار دپیغمبرانو

# د

# پیژندنې لاره

## درې فصله لري

۱.دایمان ارمغان څه شی دی. اودچا په لاس کې دی .

۲.دپیغمبرانو دعوت ته دخلکو دبې اعتنائې سببونه اوعلتونه.

۳.دقران دلوی معّما خلاصه اولنډیز.

هغه څه چې لری سرته ئې ورسوئ، که قبول شو. مقصد حاصل اوکه نه حمله، باطله ،ناروا او ناحقه

**ده. ۱**

**حضرت بهاءالله**

**هَذِهِ تَذْكِرَةٌ فَمَن شَاء اتخَذَ الَ□ رَبِّهِ سَبِيلًا .**

**دانسان سورت، ۲۹-ایت**

داایتونه پند نامه اونصیحت دی. دهرهغه چالپاره ځوک چې غواړي، دخپل پروردګار لورې ته لاره پیداکړي.

# ۲۶



## دایمان ارمغان اوهدیه څه

## شی دی

## اودچا په لاس کې

## دی؟

دافصل دخاص اهمیت څخه برخه من دی ، ځکه چې دانسان دپیدایښت دنقش مهم سهم اودبنده ګانواړیکه دخدای سره ، داسماني ایتونو په اساس ، بیانوي .

دداسې «پیدایښت یوې حلقی» دپیژندنې نه مه واره د خدای پیژندنه چې زمونږ دپیدایښت هدف دی ، ممکنه نه ده . ددې فصل اهمیت په دې کې دی. چې اکثره خلک په هغه ترتیب چې دپروردګار سره دمینې اوایمان داسرارو اورازونو څخه سمه پوه او اګاهي نه لري ، اوهم په هغه څه چې پوهیږي، دپیشوایانو دناسمې ګټې په خاطر چې ددین اوایمان څخه ئې اخلي، دپیدایښت دنقشې سره مخالف دي.

په پیل کې باید پوه شو. چې دایمان سوغات دپروردګار دبنده ګانو لپاره لوی بخشش اوفضل دی . ددې یکتا او بې مثاله،بې همتا اوبېشانه بخشش په لویوالي کې اغراق اومبالغه ممکن نه ده . دجهان ټول نعمتونه اوبخششونه دهغه په وړاندې لکه ددریاب نه یو څاڅکی او له لمر څخه یوه ذره وي . ځکه هر راحت اونعمت پای لري ، مګر دایمان نعمت پای نه لري. اوهمیشنی دی. دپروردګار عنایت او مینه دبنده ګانو سره همیشنې ده . دپروردګار دشاهدې په اساس په اسماني کتابونو کې ، دهغه دراليږونکو د پیژندنه، منل، اوپیروي په ټولو الهي عوالمو او جهانونو کې زمونږ دخوښي اوربتینولی سبب دی.

دحضرت باب اوحضرت بهاءالله داثارو په اساس وروسته ددې عالم دژوندون څخه نورعالمونه زمونږ په انتظار کې دي . په خلقت اوپیدایښت کې هیڅ شی په حدودو کې محدود نه دی. په همغه ترتیب چې زمونږ وجود همیشنی دی ، الهي عالمونه هم بې شماره دي. دې دوه راليږل شوو دعوت ته بې اعتنائي دهمیشني بخششونو ، نعمتونو دمحرومیت سبب په ټولو الهي عوالمو کې دی . پس دادعوت وړوکې مه

ګڼي ، ځکه دانسان دپيدايښت مقصد دايمان دسوغات ترلاسه کول اوهميشنی ژوند دی.
دډير تاسف ځای دی. چې په دې زمان کې ، دالوی اودادقدر ډک ارمغان دډيرو خلکو په نظر کې په خاصه توګه دځوانانو په نظر کې خوار اوبې مقداره دی . زمونږ دعصر ددين اوايمان په انحطاط کې ددين ملايانو اوپيشوايانو اولنی نقش په غاړه لرل.هغه څوک چې په ظاهر کې هميشني جنت ته دخلکو رهنمايان دي ، په ټولو عصرونو کې هغوې ئې دفناه اونيستي لارې ته سوق اوبرابر کړي دي. او دانسان دپيدايښت اصلي مقصد ته درسيدلو دلارې څخه ئې لرې ساتلي دي.

**دعلم په لباس کې ظاهر اودجهل په فن کې ماهر.۲**
**حضرت عبدالبهاء**

خودخواه ،نادانه ملايانو اوپيشوايانو هر ډول ناسمه استفاده ئې چې په تصور کې راغلی دخدای اودين په نوم ئې دخپلو پيروانو څخه کړې ده . دپروردګار پاک ائين په تعصباتو اوخرافاتو الوده (ککړ) اودعقل اوعلم څخه ئې لرې کړی دی.

اودسیاست اوقدرت په خاطر ئې دسیاست سره ګډ
کړی دی. چې دحضرت زردشت دشهادت په اساس،
که هغه «ائین ګرته وښائي،وبه ئې نه پیژني».

**بس که به بستند بر او برګ وساز ګرکه**

بهائې ائین د«برګ اوساز»څخه خلاصوي. دهغه قدر
اومقام دعزت اوعظمت مدارجوته ئې لوړوي ،
اووښائي چې پروردګار سره مینه اودکیهان په خالق
توکل کول ، دانسان دسرلوړې افتخار اوپه جهان کې
دیو والی اوصلح لویه ترینه سرمایه ده .

## دایمان ارمغان
## دخدای په لاس کې
## دی

دپروردګار اجازې نه مه واره هیڅوک دهغه درګاه ته
نه لار پیداکولای شي. اونه هم دهغه درګاه ته نږدې

کیدلی شي . دا حقیقت په کراتو په اسماني کتابونو کې تکرار شوی دی. په همدې حالت کې ډیرخلک دهغه نه اګاهي نه لري:

**ما کان لنفس ان تؤمن الاّ باذن الله .**

**دیونس سورت، ۱۰۰-ایت**

دپروردګار اجازې نه مه واره به څوک ایمان رانه وړي.

**هیڅوک نشي کولای زما خواته راشي ،خو هغه پلار چې زه ئی لیږلی یم. هغه ئې زما خواته جذب اوراولیږي ... حضرت مسیح:دیوحناانجیل،۶ فصل،۴۴ ـ ایت**

حتی پیغمبران بې له پروردګار داجازې ، له دې کار څخه ( چې ایمان چاته هدیه کړي.) عاجز دی . داایت حضرت رسول اکرم ته خطاب دی:

**انكَ لَا تَهْدِي مَنْ احْبَبْتَ وَلَكِن اللّهَ يَهْدِي مَن يَشَاء وَهُوَ اعْلَمُ بِالْمُهْتَدِينَ.**

**دقصص سورت، ۵۶-ایت** له هرچا سره چې ته مینه لرې. نشې کولای هغه ته هدایت و کړئ . دخلکو هدایت دخداې په لاس کې دی. پروردګار هغه بنده ګان چې دایمان لایق دي ښه ئې پیژني.

دافصل دوعدې پيژندلو په باره کې نه دی. دموعود دليدلو په باره کې دی . فرض کړو يو ښار ته روان يو . دابنار دموعود وطن دی. هغه ايتونه چې تراوسه مونږ ويلی دی. هغه نښانې دي. چې دلارې په اوږدو کې مونږ ليدلی دي ، هغه علامې چې مونږ مقصود ښارته رهنمائې کوي.



امّا زمونږ هدف یواځې سفر نه دی. زمونږ هدف دمعشوق دیداردی. څومره ډیر مسافران کله چې خپل منزل ته رسي، دخپل دمعشوق دجمال ددیدار څخه ډیر لږ هم نه برخمن کیږي.څومره ډیر لټونکي چې وعده زده کوي امّا دموعودزیارت څخه محروم دي.
هغه ایتونه اونښې چې دقران څخه لولو دمعشوق په غاړه کې دکمیس په شان دي. زمونږ مقصد دمعشوق دیدار دی. نه دکمیس پیداکول . که د«یوسف کمیس» پیداکړو اودیدارته ئې ونه رسیږو ، اودهغه مبارک جمال ونه ګورو څه فایده ؟
دپروردګار دحکم اوحکمت په اساس دمعنوي معشوق ، صورت ښکلا له نامحرمانو څخه همیشه پټه ساتي ، اودهغه زړه وړونکي اوسحرامیزه جمال یواځې دمحرمانو اوعاشقانو لپاره دی. هغه کسان چې ددیدار په خاطر له هرراحت څخه تیر شي. اوهري سختي ته حاضر شي. دهغه بې مثاله جمال ددیدار دلاسته راوړلو لپاره ډیر کوښښ اوتحقیق اومینې ته اړتیا ده .
حضرت بهاءالله فرمائي: ترڅو اوریدونکي غوږونه پیدانه کړو ، خوله بیرته نه کړو. اوتر څو چې پاکه ځمکه ونه ګورو. دحکمت داني ونه شیندو ، تروه ځمکه دالهي اسرارو لایق نه ده .۳ د ارمغان دبخښلو په وخت کې تعرض اوحمله جایزنه ده:

شی دی اودچاپه لاس کې دی؟

---

---

**هغه څه چې لرى وئې ښائې . که قبول شو ، مقصد حاصل. اوکه نه تعرض اوحمله باطله اونارو ا ده.۴**
**حضرت بهاءالله**
**لا تحاربوا مع نفس بل ذکّروها بالبيان الحسنة و الموعظة البالغة ان کانت متذکّرة فلها و الّا فاعرضوا عنها .۵**
**حضرت بهاءالله**
نه بايد له چاسره مبارزه وکړئ. بلکه هغه ته نيکه وينا او د حکيمانه نصيحت «تذکر» اويادونه وکړئ.

**که تذکر منونکی دی. دهغه په ګټه ده . په غیر له دې صورته هغه په خپل حال پرېږدی.**
**که له تاسې سره کلمه اویا جوهر دی چې نور له هغې محروم دي، دشفقت اومهربانې او محبت په ژبه ئې ورته ووائې . که قبول شو اواثر ئې وکړ مقصد حاصل ، اوکه نه هغه پرېږدی. اودهغه په باره کې دعا وکړئ، نه جفا . دشفقت ژبه دزړونو راښکونکی ده، اودروح غذا ده ...۶**
**حضرت بهاءالله**

ددې کتاب نورو فصلونو ددې لارې نښانې دقران دایتونو څخه مونږ ته راښودلي دي دافصل دمعشوق ددیدار اسرار راوښائي . دې اسرارو ته دلاس رسي لپاره لمړنې او لازمی پوښتنه داده : دایمان له قدره ډک ارمغان اودخدای سره مینه څنګه کولای شي په لاس راوړئ؟ آیا د اارمغان ټول دخدای په لاس دی، اوکه زمونږ په لاس کې هم دی؟که ددواړوپه لاس کې دی ، به دې ماجرا اوراکړه ورکړه کې زمونږ نقش څه شی دی ؟ ښه به وي چې ددې لوی رمز څخه پرده لرې کړو. ترڅو، ددې لارې رښتینې لټوونکي دالهي دلوړې هدیه نقش لپاره د خپل همیشني برخلیک څخه اګاهي اوپوه پیداکړي ، اوترڅو فرصت لري ددې لوی بخشش اوبې نظیره نعمت څخه پراخه برخه واخلي .

ځکه زمونږ دپیدایښت مقصد د« خدای » « دیدار» دی:»

**څومره نیکمرغه دي پاک زړي خلک هغوي به خدای وګوري.**

**حضرت**

**مسیح:انجیل متي،۵ فصل،۸ ـ ایت**

که په دې دیدار کې دپیروزې نه مه واره دجهان داسرارو قصد اوعزم وکړو . په عبثو کې ژوند کوو. اودژوند دباغ اوبوستان څخه په غیر دناکامی او پښېمانې کومه میوه ترلاسه نه کړو. زمونږ عصر د بلاګانو ، غمونو اوسختیو عصر دی . ډیرو خلکو دپروردګاردعبادت څخه دې جهان عبادت اوبنده ګې ته مخ اړولی دی . دشیانو په مینه خوشحاله دی، نه دخدای په مینه .

قران اوبهاءالله

۷۸۰

---

دداسې خلکو ډله چې ورځ په ورځ ئې شمیر په زیاتیدودی ، خپل ځانګړی ائین ئې جوړ کړی دی. اوهغه څه ته چې مایل دي. په هغه عمل کوونکي دي

. دخلکو په یوه بله ډله ، چې دپرورګارددیدار زړه
بایلونکي عاشقان دي. تردې دمه ئې دامید قدمونه
دباندې نه دي ایښي اولاسونه ئې دجستجو او لټولو
څخه نه دي اخیستي . داخلک یقین لري. چې مهربانه
پروردګار هیڅکله خپل بنده ګان په سرګردانې کې نه
خوشې کوي اوبې له یار او یاوره ئې نه پرېږدي .
دافصل دداسې زړه بایلونکو ، صبرناکو د یارې لپاره
لیکل شوی دی.

**زه دبنده ګانو د ( روح) مړینې سره مینه نه لرم .**
**پس دګمراهې دلارې څخه وګرځئ ترڅو نوی ژوند**
**پیداکړئ.**

**حزقیال:۱۸فصل،۳۲-ایت**

**پروردګار مینه لري. چې ټولو ته هدایت وکړي ...**
**ولی کبرجن نفوس نه هدایت کیږي. ځنې دعلم په نوم**
**اوځنې دعزت په نوم.۷**

**حضرت باب**

**پروردګار په هرحال کې دخپلوخلکوڅخه غني دی.**
**مینه ئې لرله اولري. چې ټول په ډیره مینه جنتونو ته**
**ورشي.۸**

**حضرت باب**

حضرت بهاءالله په کتاب دایقان کې دحضرت مسیح
دوړاندوینې په تفسیر کې چې زمونږ عصر دبلاګانو

اوفلاکت عصر دی ، فرمائې چې دابلاګانې اولوي مصیبت دمؤمنانو سرګردانې ته اشاره ده. چې دحقیقت غوښتونکي دي اما په دې نه پوهیږي چې چاته ورشي اوپه څه ډول هغه قیمت بهاء ارمغان لاس ته راوړي.

دابلاګانې ورځ په ورځ زیاتیږي . ځکه زمونږ په عصر کې نوې دنیا رامنځ ته شوې ده.

ددې مصیبت نه ډکې دنیا یو خصلت دادی. چې مختلفې فرقې به زیاتې شي. اودخدای لور ته ( دنوواولنډو لارو) منځ ته راوړل. هرچا دځآن لپاره یو الله اودخدای دمذهب څخه ئې ددنیا دعزت اونعمتونو دلاسته راوړلو لپاره لارې جوړې کړې دي . په هیڅ عصر اوزمان کې ، زمونږ دعصر په اندازه دګمراهې لارې نه وي . آیا ددې څخه لوی مصیبت بل تصور کیدلای شي. چې انسان دلمر عاشق وي ، اما په غیردتورې تیارې نه بل څه شی پیدا نه کړي؟

---

❖ لوی مصیبت:The Great Tribulation

آيا له دې بله سخته بلا کولای شي تصور کړي. چې لټوونکي، دپروردګار ددیدار، دصلح اوصفاغوښتونکي وي. او دپروردګار ددين اوائين دطرفدارانو اودايمان د مدعيانو په منخ کې ، په غير ددښمنې ، تعصب اوريا څخه بل څه پیدانه کړي؟ددې لوی مصيبت اوبلا اوددې له غمه ډکې سرګردانې دشدت اووخامت څخه دزياتي پوهې لپاره فرض کړئ. په يو ښار کې اوسيږی، چې دهغه دخکلو اوبه په وژونکو زهرو ککړې شوې دي . اما يوائې تاسې اوستاسې دوستان له دې ککړتيا څخه خبر ياستې .
نور په پوره ډاډ سره بې له ايرې اوواهمې ، په زهرو ککړې اوبه څکي ، په دې فکر که په اوبو کې څه مشکل وي. داوبو دتصفې مسئولينو به هغوې ته اخطار ورکړی وی . په دې وخت کې ددې خلکو خيال اسوده اوراحت کې دی. اوکه هغوې ته داوبو دککړتيا خبره وکړي. تاسې ته کومه اعتنانه کوي ،

اوډېر داسې چې تاسې ته په غضب شي. او اعتراض دربانديې وکړي . چې ولی دهغوې ارامتیا موګډه وډه کړې ده . اما تاسې اوستاسې دوستان په زهرو ککړو اوبو د ښځنلو څخه ډېر ناارامه یاستې. اودخپل ځآن اودنورو دژوند دساتلو لپاره حاضر یاستې. دصافو اوبو پیداکیدلو لپاره یوبل لرې ښارته ولاړ شی ، شاید دنجات لاره پیداکړی . ځکه ستاسې په روح کې دامید اوپوهاوي نور روښانه وي . که تاسې ددې تږو دډلې څخه یاستې ، دافصل په دقت سره ووائې اوبه هغو ایتونو کې چې دژوند دداسې اوبو سرچینه وښائې فکر او تعقل وکړئ . اوکه کوم مشکل لری، له خدایه وغواړئ. چې تاسې سره دې مقصد ته په رسیدلو کې یاري اوکمک وکړي. ځکه پروردګار دهر مهربان څخه مهربانتره دی . ( داعراف سورة، ۱۵- ایت) **که ستاسې توکل په خدای وي. اوتاسې دخپل رب سره کلکه مینه لري . اوستاسې روح دهغه عنایت ته امید واره وي ، ستاسې صبر پایداره وي. اوستاسې زړه ددنیا سره دمینې اوتعصب څخه پاک اوصفاوي . الهي فضل اورحمت همیشه ستاسې رهنما دی.**

**هرڅوک چې له ما سره مینه لري ... زه هم له هغه سره مینه لرم او زه دهغه یم.**

**حضرت**

**مسيح(يوحنا انجيل:۱۴فصل،۲۱-ايت)**

**تاسې حق ته مخ اړولی دی . يعنی دهغه په بخشش دې مقام ته مؤفق اوبرياللي شوي ياستی. اوحق تاسې ته په پوره بخششونو سره متوجه دی.۹**

**حضرت بهاءالله**

حضرت بهاءالله

۷۸۲

---

---

**و انه ليهدی من يشاء ال□ صراط البهاء ... ۱۰**

**حضرت بهاءالله**

پروردګارچې هرڅوک وغواړي د(بهاء لارې ته ) به ئې ( هدايت) او رهنمائي کړي.

وروسته دپورتنې وينا څخه فرمائي:

**داذکر اوبيان دهغه چا لپاره دی. چې په حقيقت کې دهدايت دلارې طالب وي.۱۱**

دپروردګار سره دمينې اوايمان لمړنې لازمه کوښښ اوپلټنه ده :

**حکایت کوي. چې یوه ورځ ئې مجنون ولید. چې خاورې ئې غلبیل کولې اواوښکې تویولې . پوښتنه ئې ترې وکړه : څه کوې ؟ وویل : په هر ځآی کې لټوم. شاید چې په کوم ځای کې پیداکړم .۱۲**

**حضرت بهاءالله**

**حضرت باب فرمائي ، ګل چینې ملایکې دهمیشنې جنت څخه خلکو ته ګوري. که دمینې په ګلشن کې دکومې ونې ګل ووینې، چې ورسره مینه لري. هغه راشکوي، موعود پیژندنې مقصد ته ئې رسوي.**۱۳

خلک یو شان نه دي ، دجهان ښکلا په تنوع کې ده .

یوه امریکائې بهائې ماندینه په حیرانتیا کې وه. چې ولې ځنې دوستان ئې په بهائي ائین ایمان نه راوړي . داماندینه په (۱۹۲۱)میلادي کال کې ددوهم ځل لپاره دمقدسې خاورې زیارت ته ولاړه. اوحضرت عبدالبهاء ته ئې داسې وویل.

ځنې دوستان مې ستاسې حضور ته راورسیدل ...اما دتاثیر لاندې رانغلل . کله چې زه دلته راغلم ، کاملاً مسته او خماره شوم. اودامرالله دعظمت دتاثیر لاندې راغلم . ولې زما دوستان بهائیان نشو؟

ددې ماندینې په ځواب کې حضرت عبدالبهاء یو مثال راوړ . په دې مثال کې خلک په څلورو ډلو تقسیم کړل په دې شکل سره :

- دالهي سلطنت دباغ په دروازه کې ، ځنې ودرېږي اوباغ ته دننه ګوري، ولی باغ ته نه داخلیږي.



شی دی. اودچا په لاس کې دی؟

---

---

- ځنې قدمونه اخلي اوباغ ته داخلیږي . ښکلائې ګوري اما دباغ منځ ته نه ځي.
- ځنې هم دباغ دننه ګرد چاپیره په حرکت کې وي اود ګلانو په بوی مست شي. دښکلا څخه لذت اخلي اوبیرته له همغې دروازې څخه دباغ نه بیرون شي.
- امّا ځنې داسې دي. چې باغ ته داخل شي. دهغه عظمت اوجلال په لیدو سره داسې دخپل خان

ځخه بې خوده شي. چې مست اوخمار شي اوابدالابد دپروردګار دسلطنت په باغ کې پاتې شي.

زمونږ دعصر ځخه دوه زره کاله مخکې عیسویان دهمدغسې یو عبادت سره مخامخ ؤ . حضرت عیسی هم دیوبل مثال په وړاندې کولو سره خلک په څلورو ډلو وویشل. په دې مثال کې یو دهقان هغه تخم چې الله لخوا رالیږل شوی دی . تخم دپروردګار کلام دی. اوځمکه دانسان زړه دی:

دهقان پخپله ځمکه کې تخم کرل . په همدې ډول چې هرې خواته ئې تخم شیندل:

- ځنې دانې دځمکې په لاره کې ولویدلی ، مرغان راغلل او هغه دانې ټولې کړې .
- ځنې دانې په داسې خاوره ولویدلی چې ورلاندې تیږې وې . هغه دانې چې دخاورې ژورتیا ئې لږه وه ډیرې زرشنې شوی . اما کله چې تیز لمر په هغو ولګیدل ټولی وسوی او له منځه لاړې لکه څنګه چې ژورې نیلې نه لرلې.
- ځنې دانې په اغزو کې ولویدلی اغزیو او تخم دانو یو ځای رشد کول او ددانو نیلې داغزو په نیلو کې فشارلاندې راغلې او خفه شوې .

- اما ددې تخمونو څخه ځنې دانې دښې خاورې لاندې راغلې. او له هر تخم څخه ۳۰، ۶۰ او حتی ۱۰۰ دانې نورې لاس ته راغلې.

**که اوریدونکي غوږونه لري، ښه غوږ شئ.**

**دمتی انجیل ،۱۳فصل،(۹- ۴) ایتونه**

وروسته حضرت عیسی ددهقان دکرلو داستان داډول تفسیر کړل:



---

- په هغه ځمکه چې لاره وه. او تخمونه ورباندې ولویدل ، دهغه چا زړه وښائي، چې دپروردګار دسلطنت زیرى اوري ، اما هغه درک کولاى

نشي ، اوبيا شيطان دهغه زړه څخه تخمونه پټوی.

- هغه خاوره چې دهغې لاندې تيږه ده ، دهغه چا زړه وښائي. چې دخدای پيغام اوري. فوراً هغه مني ، اما څرنګه چې هغه عميقاً نه دی درک کړی، دهغه په زړه کې ريښې نه دي زغلولي ، کله چې دايمان په خاطر ازار او اذيت سره مخامخ کيږي ، خپل شور او شوق له لاسه ورکوي.
- هغه ځمکه چې اغزي لري ، دداسې يو چا حالت بيانوي چې پيغام اوري. اما دژوند نګراني او دمال سره مينه دخدای کلام په هغه کې خفه کوي ...
- **هغه ښه ځمکه دداسې يو چا زړه وښائي. چې دخدای پيغام ته غوږ ږدي. په هغه پوهيږي او نورو ته ئې هم رسوي. او ۳۰ ، ۶۰ او حتی ۱۰۰ تنه نور په هغه ايمان راوړي.**

**دمتی انجيل،۱۳فصل،۲۳- ۱۹ ، ايتونه**

دخلقت دښکلا او ښايست رمز په تنوع کې دی . که خلک ټول يو رنګ وي. ژوند به معنی او جلا نه لرلی . دانسانې عالم تنوع زمونږ دازادې او اختيار په خاطر ده . دجهان او انسان دپيدايښت نقشه پروردګار دازل

نه دارنګه رسم کړې ده. هيڅکله په دې نقشه کې تغيير اوتبديل نه ؤ اونه به وي.
**سُنةَ اللهِ التِي قَدْ خَلَتْ مِن قَبْلُ وَلَن تَجِدَ لِسُنةِ اللهِ تَبْدِيلًا .**
**دفتح سورت،۲۳-ایت**
دپروردګار روند او سنت ( دخپلو بنده ګانو په اړه )له مخکې تعين شوي دي. هيڅکله به په دي روند او سنتو کې تغير او تبديل نه وي.
بايد دټول نوع بشر سره څه مؤمين او څه غير مؤمين وي. مهربانه اوسو. او هغوې ته داحترام په سترګه وګورو . غير مؤمينين هم دخلقت دنقشې په تحقق کې سهم لري ، ځکه دعالم په ښکلا او تنوع کې نقش لري . دهغوې بې احترامي ، دپيدايښت نقشې ته بي احترامي ده . هغوې ته په وړه سترګه کتل دطراح طرح ته په وړه سترګه کتل دي.

هغه ایتونه چې دایمان ارمغان دخدای په لاس کې وښائي ډیر دي . ددې مطلب داهمیت په خاطر لازمه ده ددې ایتونو څو نورو نمونو ته نظر واچوو.

**والله یهدی من یشاء الی صراط حق یقین و لایحب الله ان یذکر من لم یومن بالله و آیاته والله یحب المتقین .**

**۱۵**

**حضرت باب**

پروردګار هرچالره چې وغواړي ، سمې لارې ته ئې په ډاډ سره رهنمائي کوي.

پروردګار مینه نه لري. چې څوک دهغه اودهغه په ایتونو ایمان نه لري. اودهغه یاد وکړي . پروردګار دپرهیز ګارانو سره مینه لري.

**په دې وخت کې ، دحضرت مسیح ملګري هغه ته راغلل. او له هغه څخه ئې پوښتنه وکړه:«ولې همیشه داسې حکایتونه کوي. چې درک کول ډیر مشکل دي؟» هغه حضرت وفرمائیل « دالهي سلطنت داسرارو درک او قدرت یواځې تاسې ته بخشش شوی دی. نور ددې بخشش څخه سهم نه لري» .**

**دمتی انجیل ،۱۳فصل،(۱۱- ۱۰)ایتونه**

**الله يهدی من يشاء بفضله .١٦**
**حضرت باب**
(پروردګار هرچالره چې وغواړي. دخپل فضل او رحمت له مخې به ئې سمې لارې ته بوزي) .
**ډير خلک دعوتيږي. اما کم خلک انتخابيږی.**
**حضرت**
**مسيح(متی انجيل، ٢٢فصل، ١۴-ايت**
**تاسې زه نه يم انتخاب کړی ، ماتاسې انتخاب کړی ياستې.**

**يوحنا انجيل، ١۵فصل، ١۶-ايت**
**قل الفضل بيد الله يقدّر لمن يشاء ما يشاء .١٧**
**حضرت بهاءالله**
ووايه!فضل او رحمت دخدای په لاس کې دی .دهرچا لپاره چې هرڅه وغواړي. مقرروي.
**ان ربّک يفتح باب العرفان عل وجه من يشاء .انه لهو المدبر الحکيم .١٨حضرت بهاءالله**
په يقين سره ستا پروردګار دپيژندنې دروازه چې هرچاته وغواړي خلاصوي. پروردګار باتدبيره اودحکمت والا دی.

**وَلَوْ اننَا نَزلْنَا الَيْهِمُ الْمَلأَئكَةَ وَكَلمَهُمُ الْمَوْتَ□ ...ما كَانُواْ لِيُؤْمِنُواْ الا ان يَشَاء اللهُ وَلَكِن اكْثَرَهُمْ يَجْهَلُونَ .**
**دانعام سورت، ١١١-ايت**



---

---

که مونږ فرشتې او ملائکې هغوې ته وليږو. او که مړي دهغوې سره خبرې وکړي...ايمان نه راوړي ،مګر که خدای وغواړي ، اما ډير ئې په نادانی معتاد دي.
**وَاللهُ يَدْعُو الَ□ دَارِ السلاَمِ وَيَهْدِي مَن يَشَاء الَ□ صِرَاطٍ مسْتَقِيمٍ . ديونس سورت، ٢٥-ايت** پروردګار خلک دارالسلام (بغداد) ته دعوت کړي دي. او هرچا لره چې اراده وکړي سمې لار ته ئې وړي.
**حضرت باب دحضرت بهاءالله دظهور دزمان په باره کې چې هغه دقيامت ورځ نوموي فرمائي: دخلکو دزړونو سترګې په هغه ورځ دمحبوب دپيژندلو او**

**لیدلو څخه عاجز دي . مګر هغو کسانو لره چې خدای هغوې ته اجازه ورکړي .(۱۹)**

# دایمان نښې

دخدای سره مینه او په هغه ایمان په وینا او اقرار سره نه دی . دایمان لازمه او دهغه د وجود نښانه ، نیک رفتار ، نیک ګفتار او نیک پندار دی . رښتینې ایمان بې له وجدان ، دپاکوالي او صفائي څخه ممکن نه دی . که په پروردګار ایمان ، دانسان روح هغه ته پالنه ورنکړي او په هغه کې اُثرات وانه چوي ، یواځې سراب او ګمان ، خیال او خوب دی.

**اې په ظاهرکې اراسته او ښکلی شویه، اوپه باطن کې کاسته او کم شویه ، ستا مثال دترخو صافو اوبو په څیر دی.چې په ظاهر کې صافې اوپاکې ښکاریږي.اوکه دذایقې او خوند صراف ته په لاس ورشي. یوڅاڅکی به ئې وانخلي. ۲۰**

**حضرت بهاءالله**

**په ظاهر کې دعلم په سینګار اوګانه ښکلي شوي دي .اوزړونه ئې دتقوا څخه خالي شوي،په شکل اوصورت کې پوه اودانا دي .اوپه حقیقت کې ناپوه او نادان . ۲۱**

**حضرت بهاءالله**

**ووائې اې ورونو!په عملونو خپل ځانونه ښکلي کړئ، نه په خبرو.۲۲**

**حضرت بهاءالله**

دخدای سره مينه او په هغه ايمان يواځې په زړونو کې ځای لري. نه په ژبو کې ، دانسان په روح کې پټ دی. نه د دوه مخو په چپنو او تظاهرکوونکو په تندو کې.

۷۸۷ ۲۶فصل: دايمان ارمغان څه شی دی او دچا په لاس کې دی؟

---

---

**که دانسان فضلیت په پګړې وي، باید هغه اوښ چې زر۱۰۰۰ پګړې پرې باروي . دټولو خلکو نه او چټه وګڼل شي...۲۳**

**حضرت بهاءالله**

**پروردګار دزړه په کورکې کې پیداکولی شی، نه په کلیسا ګانو ، منبرونو ، او دجماتونو په منارو کې ، دایمان هدیه داسې قیمت بها ده، چې په غیر دخدای نه بل څوک هغه ته لاس رسی پیدانه کړي، اوپه غیر دهغه بل څوک دهغې هدیه وړ او لایق نه پیژني.**

**خدای داناوپوه دی. چې خالص نیت په چا کې دی، او ځیرکي اوپوهه په چا کې ده.**

**حضرت باب**

## دایمان دارمغان دلاسته

## راوړلو څخه

## دنالایقو خلکو منع کول

مخکېنې ایتونه او ځنې نور ایتونه په ظاهر کې وښائې چې دایمان دارمغان په بخشش کې، تبعیض او استثنا ښکاري داایتونه دډیرو دناسمو تفاهماتو سبب شوي دي. دی څو مشابه نمونوته دځو اسماني کتابونوڅخه توجه وکړئ:

**وَالذِينَ كَذبُواْ بِآيَاتِنَا صُم وَبُكْمٌ فِي الظلُمَاتِ مَن يَشَاَاللهُ يُضْلِلْهُ وَمَن يَشَايَجْعَلْهُ عَلَ صِرَاطٍ مسْتَقِيمٍ .**

**دانعام سورت، ۳۹-ايت** هغه کسان چې زمونږ دنښانو څخه انکار کوي ، ړانده او کاڼه دي، اوپه تياره کې غرق دي.پروردګار هرچا لره چې وغواړي. ګمراه کوي اوهرچالره چې وغواړي سمې لارې ته ئې بيائي.

**پروردګار دهغو سترګې ړندی کړي دي. او زړونه ئې ورته سخت کړي دي، ترڅو ونشي کړلای په سترګو وګوري. په زړونو پوه شي.او ماته مخ واړوي ، ترڅو هغو ته شفا ورکړم.**

**حضرت مسيح(يوحنا انجيل ،۱۲فصل، ۴۰-ايت)**

**اتُرِيدُونَ ان تَهْدُواْ مَنْ اضَل اللهُ .**

**دانساء سورت،۸۸-ايت** آيا غواړې هغه څوک چې پروردګار ګمراه کړی وي. لارې ته ئې راولې؟

**و كان الجمال عن اعينهم مستوراً، و انّهم لو يشهدون لا يشهدون كذلك خلقناهمصمّا من غير بصر و جعلناهم بكما عل ارض الذل محشوراً .۲۵**

**حضرت بهاءالله**

دپروردګار دجمال ښکلا دهغوې (منکرينو) له سترګو
څخه پټه ده . او که تماشاه ئې وکړي ، نه ئې ګوري.
داډول ما هغوې کاڼه ړانده ، او توتله پيداکړي، ترڅو
د ذلت نه ډک ژوند وکړي.
**مَا كَانَ لِنَفْسٍ ان تُؤْمِنَ الابِاذْنِ اللهِ وَيَجْعَلُ الرِّجْسَ عَلَ□ الذِينَ لاَ يَعْقِلُونَ.**

**ديونس سورت، ۱۰۰-ايت**

څوک چې دپروردګار اجازې پرته نشي کولای ايمان
راوړي . پروردګار دهغه چا په روح چې تعقل او
تفکر نه کوي پرده اچوي.
دپروردګار په صفت کې او دخالق رابطه دبنده ګانو
سره ، له دې لاندې وينا نه بله جامع وينا نشي پيدا
کولی:
**اخْفَيْتُ انْوارَ جَمالِيْ لِيَكُوْنَ ظاهِرُهُ ظُلْمَةً وَباطِنُهُ نُوْرًا عَلـ□ نُوْرٍ فَوْقَ كُلِّ نُوْرٍ. ۲٦**

**حضرت بهاءالله**

دخپل جمال رڼائي مې پټه کړه، ترڅو ظاهراً تیاره شي ، امّا په باطن کې نور اندرنورده او له هرنور څخه روښنائې تره ځلیږي.

دمخکنې ایتونو څخه مقصد څه شی دی؟ ولی پروردګار هرچا لره چې وغواړي، ګمراه کوي، او هرچا لره چې وغواړي هدایت او سمې لارې ته بیائې ؟ولی دانا اوپوه، پروردګارمحرمانو څخه خپل جمال پټوي؟ ډیرو مؤمینانو ددارنګه ایتونو دمطالعې څخه نتیجه اخیستې ده. چې دایمان ارمغان به تبعیض او استثنا متکي دی . پروردګار هغه قیمتي ګوهر یواځې خپلو دوستانو ته بخښي!ځنې نورو مؤمنانو داسې فکر کړی، چې ایمان یو تصادفي امر دی . دې یکتا او بې مثاله ګوهر ته لاس رسی ، باید نیک بخت ولري. دې پوښتنو ته ځوابونه ( دپیغمبرانو دپیژندنې دلوازمو او شرایطو) په بررسې کې کولای شئ پیداکړئ.

## دپیغمبرانو دپیژندنې

## لوازم او شرطونه

داسماني اثارو مطالعه وښائي چې په پروردګار ایمان او دزمان دموعود پیژندنه ، نه تصادفي امر دی، اونه هم تبعیض او استثنا دی . هغه څه چې دخدای په لاس کې دي. هغه قوانین دي چې دعدالت او حکمت داصولو په اساس پیدا شوي دي.

۷۸۹ ۲۶فصل: دایمان ارمغان څه شی دی.
او دچا په لاس کې دی؟

---

---

**ټول په دې قوانینو محکوم دي. او له هغو تجاوز نشي کولای . حضرت بهاءالله فرمائي ، په ځمکه او اسمانونو کې یوه ذره حرکت نشي کولای، مګر دپروردګار په اجازه .۲۷**

حضرت باب هم په همدې مضمون یو بیان فرمائي:

**کلّ عباد له و کلّ بامره قائمون.۲۸**

ټول دهغه بندګان دي او ټول دهغه دحکم او امر تابع دي.

که دایمان لاسته راوړل دقوانینو مربوط دي. چې دخدای پیدایښت دی ، پر مونږ واجب دي، هغه وپیژنو. او دخپل پروردګار او خالق له رهنمائې څخه باید برخه من شو ، ځکه زمونږ دائمي برخلیک ددې الهي قوانینو په پوهاوي متکي دی. ښه به وي چې ددې مشکل حل لپاره یو مثال راوړو ، ځکه پروردګار ډیرې زده کړې مونږ ته ددې لارې رازده کوي .
اسماني کتابونو دانسان زړه دځمکې سره او دپروردګار کلام دتخم سره تشبیه کړی دی . دتخم درشد لازمه څه شی دی؟ دوه اسماني عوامل چې عبارت دي له:

- نور، رڼا
- باران، نم

اویو عامل ئې ځمکنې دی چې عبارت دی له:

- مساعده ځمکه

په معنوي عالم کې هم همغه عوامل حاکم دي:

- الهي کلام لکه دلمر په څیر زمونږ روح ته روښنائي ورکوي.
- الهي فضل او رحمت لکه دباران په څیر چې د«امر» له اسمان څخه او دخدای دحکمت څخه پرمونږ وریږي او مونږ ته همیشنی ژوند راکوي.

- زمونږ زړه لکه دخاورې په څير دپوهې رڼا ته او دالهي فضل او بخشش باران ته اړتيا لري.



---

---

حضرت بهاءالله په دې وينا کې ، دوه اسماني عوامله چې دانسان په زړه کې دايمان دتخم دپالنې منبع او منشاده، د«پوهاوي او دانائې لمر»او د«بخشش وريځې»دي:

**وايه!اې دوستانو ... نن دبخشش وريځې وريږي. او د دانائي لمر روښنائي ورکوي. او خپل ځان ته لار پيدا کوي...ديکتا دوست وينا واورئ. او دهغه څه چې لايق دی، هغسې چلند وکړئ.٢٩**

کوم کسان د«بخشش دوریځو» اود« دانائي دلمر» ځخه برخمن کیږی؟ هغه کسان چې دوه اسماني نعمتونو یعنې « نور» او « باران» وپیژني ، داخلک کوم کسان دي؟ دهغوې لوی صفت دهغوې زړه پاکي او صفائي ده.

**يَا ابْنَ الروحِ ! فِي ا ولِ القَوْلِ امْلِكْ قَلْباً جَيِّداً حَسَناً مُنيراً لِتَمْلِكَ مُلْكاً داماً باقِياً الالزَلاً قَدِيماً . ۳۰**

**حضرت بهاءالله**

اې دروح زویه!زما لمړنې نصیحت تاته دادی: چې زړه دی پاک ، نیک او ځلیدونکی کړه. ترڅو هغه مقام او رتبي ته ورسئ. چې همیشنی دی. چې نه هغه پیل ، او نه هم پای لري.

آیا دروښانه لمر ځلا دپیژندنې لپاره دلیل او برهان لازم دی ؟ « لمر راغی.» دلمر دلیل دپروردګار دکلام دبرترې ، عظمت او شوکت داسې ښکاره او معلومداره دی. چې هغه دلیل ، برهان او واسطې ته اړیتا نه لري . باید حق لره په حق وپیژنو:

**دانصاف په لیدلواوپه پاک زړه حقیقت په حقه وپیژنئ. ۳۱ حضرت بهاءالله**

دايمان د تخم كرل دومره قيمتي دي. چې دپروردګار نه خوښيږي. هغه هدر لاړ شي.
فرمائي، ترڅو اوريدونكي غوږونه پيدانه كړو، بايد خبره ونه كړو:
**اې دخاورې زويه!په بنده ګانو كې دحكمت والا هغه دي چې ترڅو اوريدونكې پيدا نه كړي ،خپلې شونډې نه خلاصوي،لكه څنګه چې دساقي څخه غوښتنه ونه شي .پياله به ورنه كړي. اوعاشق ترڅو خپله معشوقه ونه ګوري. له ځان څخه نه تيريږي.**

---

**نَظْرَه** : يوه ليدنه،يونظراچونه. **به نظْرَهِ**: په يو نظرِ



---

---

**پس بايد دحكمت اوعلم تخم دپاكو زړونو په ځمكه وشيندئ اوپټ ئې كړئ.ترڅو دالهي حكمت ګلام دزړه**

**نه راووزي نه له ختو ۳۲**
**حضرت بهاءالله**

ځومره ډیر دي. داسې کسان چې قران لولي. اوپه هغه کې دتوجه وړکوم څه شی نشي پیداکولای. دامنقدان او انتقاد کوونکي په غیر دنیوکو او انتقاد څخه په اسماني منشور ، بله خبره نه لري. مسیحي علما او پیشوایانو داسلام اوقران د ردولو په باره کې کتابونه لیکلي دي. دا لاندې ایت ددې منکرینو او منقدانو دحال صفت کوي:

**انهُ لَقُرْآنٌ كَرِيمٌ فِي كِتَابٍ مكْنُونٍ لا يَمَسهُ ا لا الْمُطَهرُونَ تَنزِيلٌ مِّنربِّ الْعَالَمِينَ.**

**دواقعه سورت، ۸۰-۸۸،ایتونه** قران کریم یوه پټه لیکنه ده. دجهانیانو دپروردګار لخوا چې په غیر دپاک دلانو څخه نور څوک نشي کولای هغه لمس کړي. دپروردګار په بیان کې فکر وکړئ . هغه کسان چې دتعصب او تکبر په ککړو زړونو قران وائي ، حتی دهغه اسماني منشور دلمس څخه عاجز دي، دهغه درمزونو درک کول خو ډیره لرې خبره ده. داسماني اسرارو ددرُدانو معنا چې دپروردګار په کلام او وینا کې پټه ده. دمنقدانو او متعصبانو دروح سره ئې فاصله دځمکې نه تراسمانه ده . دخلقت دنقشې په اساس

دداسې خلکو دبصيرت سترګې ددې ديدار څخه بې
برخې دي:
**پاکو سترګو ته ضرورت دی چې وئې پيژني. او پاکې ژبې ته اړيتا ده. چې صفت ئې وکړي.۲۳**
**حضرت بهاءالله**
**حضرت بهاءالله فرمائي ، رښتيني لټوونکي ، داسې بينا او با بصيرته دي. چې حقيقت د باطل څخه لکه دلمر او سيوري په شان ئې توپير کوي .۳۴ حضرت باب فرمائي: بايد پروردګار لره دپروردګار په سترګو وګورو ترڅو د«درياب په زياتوالي» کې دوحدت د راز څخه محتجب او محروم نشو.۳۵**
**په الهي ايتونو کې کله د«بينائې او دانائې» خبره مينځ ته راځي دهغوې فرق څه شی دی؟**
**بينائ ، سفير و هادىِ دانائ است .۳٦**
**حضرت بهاءالله**
**دانائ خرد از بينائ بصر است .۳۷**
**حضرت بهاءالله**

په ورځني ژوند کې فکر وکړئ . ډير خلک دي. چې
دژوند ډيره ښکلې همسره لري . دهغې په باره کې په
څه پوهيږي . امّا هغه په کوم ډول چې ده ، نه ئې
گوري. او په قدر ئې نه پوهيږي. څومره ډير زامن
دی. چې دملايکو په شان موراو پلار لري. اما هغوې
ته دحقارت په نظر گوري ، داقدر نه پيژندونکی ، په
دی پوهيږي ، اما نه ئې گوري او نه ئې پيژني . دا
خلک ټول کور دله اوپڅ ذهنه دي . په همدې ډول
څومره ډير خلک دي چې دقران ايتونو ، يا انجيل يا
بيان او يا ايقان لولي. دهغو مضامين زده کوي. اما
دهغو ايتونو څه چې کومه رڼا پورته کيږي دهغې رڼا
دليدو څخه عاجزدي.
کولی شی «دانائې»او«بينائې» له دوه سترگوسره
تشبيه کړئ . يوه سترگه زما په لاس ده، او بله
سترگه دخدای په لاس ده . زده کول او پوهيدل زمونږ
په لاس کې دي، ليدل او پيژندل دخدای په لاس کې
دي. د«زړه سترگې» د«فکر دسترگو» رهنما دي.بې
له دې رهنما، دفکر دلارې دپيداکولو او ليدلو څخه
عاجزې دي.

**دحکمت خاوند اولیدونکی عالِم دعالَم دهیکل لپاره دوه سترګې دي.۳۸ حضرت بهاءالله**

په دې ایتونو کې د ایمان د ارمغان دلاسته راوړلو لپاره حضرت بهاءالله درې شرطه لازم ګڼي:
باید سترګې خلاصې کړو، فکر وکړو، او الهي مظاهرو ته پناه وړونکي اوسو.

- دسترګو خلاصون: دزړه دسترګو خلاصول ، بینائي.
- تفکر: دفکری نیرو په کاروړل ، دانائې.
- التجاء: خدای ته عاجزي او دعا اودخدای څخه کومک غوښتل.

دحدیده سترګو والا،اوپه اوریدونکو یادساتونکو غوږونو والا،درڼا پاکو اوتابناکو زړونو والا، اودخلاصو سینووالا رښتیا له دروغو پیژني.

- حدیده سترګې: تیزبینه سترګې .تیز بینې یعنی دیو شي په ډیر زیات دقت سره مطالعه او تحقیق. په فکر او دانتقادیه نظر سره هرڅه ته کتل.

اودچا په لاس کې دی؟

---

---

- آذان واعیه: اوریدونکی غوږونه . خلاص ذهن لرل، بې له خنډه تصورونه او انتظارونه، او قضاوت کول.
- منیره زړونه او منشرحه سینې : تابنا که زړونه او خلاصې سینې . ښه نیت والا دتعصب ، ریا ، خود خواهی ، دنیا پرستې څخه پاک او مبراه وي.

هرڅوک چې په پاک زړه ، په بینا اوتیزبین فکر سره دپروردګار په درګاه کې التجأ اوپناه وغواړي په یقین سره به هغه ته خپل مخ وښائي.

دپروردګار رڼا او روښنائي په هرځای او په هر شی لګیږي . اما یواځې « دزړه سترګې»ددې باشکوه او باعظمته ځلا داره ښکلا ځلا لیدلی شي. او ددې بې انتها تلألؤ، ځلیدااوروښانتیا څخه برخمنې دي.

| |
|---|
| لوه دلدار        درتجلّی است از در ودیوار |

## دپیغمبرانو بلنې ته

## د

## بې اعتنائې بدې

## پیبنې

په کتاب دبیان کې حضرت باب فرمائي: دخدای لیږل شوی په هرحال کې دخپلو بنده ګانو ناظر دي.هرکله چې دخپل ظهور استعداد دخپلو غوښتونکو دزړونو په ائینو کې دایمان ارمغان وګوري ، دپروردګار په اجازه خپل ځان هغوی ته ورپیژني:

**ځکه چې دهغوې لپاره حرکت او سکون نه ؤ اونه به وي. مګردپروردګار عزجل په اجازه ، ۴۱**

**حضرت باب**

مخکېنې وینا یوځل بیا وښائي. چې دایمان ارمغان یواځې دخدای په لاس کې دی.هرڅه دهغه له لوري دي. اوهرڅه دهغه لورته رجوع کوي . دپروردګار په وړاندې ، پیغمبران دخپل ځان نه کومه اراده نه لري. او بې دخپل خالق له اجازی ګام نه پورته کوي. په همغه ترتیب چې ددې فصل په پیل کې مونږ ولیدل ، قران مجید همدا حقیقت تائیدوي . ددې مطلب داهمیت

په خاطر ښه دی، چې یو ځل بیا هغه ایت په نظر راوړو:



---

**انكَ لَا تَهْدِي مَنْ احْبَبْتَ وَلَكِن اللّهَ يَهْدِي مَن يَشَاء وَهُوَ اعْلَمُ بِالْمُهْتَدِينَ.**

**دقصص سورت، ۵۶-ایت** ته اې [رسول]هرچاسره چې مینه لرې، نشې کولای هغه ته هدایت وکړئ، دخلکو هدایت دخدای په لاس کې دی. خدای ، هغه کسان چې دایمان دهدیه لایق دي ښه پیژني.
هغه درس چې داایتونه ئې مونږ ته رازده کوي. دادي چې که څه هم په ظاهر کې دیو پیغمبر سره سروکارلرو،په حقیقت دخپل خدای سره مخامخ یو

اودهغه کلام اورو . بې له شکه ، دپیغمبرانو بلنې ته
بې اعتنائي دجهان خالق ته بې اعتنائي ده . دټولو
اسماني کتابونو د شهادت په اساس ددې بې اعتنائې
بدې پیښې په همشنې جهان کې ډیرې بدې دي
اودپروردګار څخه دجدائي او لریوالي سبب کیږي.
ترهغه وخته چې هغه نه اخر لرل اونه به ئې ولري.

**هرچا چې له ما انکار وکړ. دهغه چا څخه ئې انکار وکړ. چې زه ئې رالیږلی یم.**

**حضرت**

**مسیح (لوقا انجیل، ۱۰ فصلو۱۶-ایت**

**هرڅوک چې دمسیح احترام ونه کړي. دهغه پلار چې مسیح ئې رالیږلی دی. دهغه احترام ئې ونه کړ.**

**حضرت مسیح ( یوحنا انجیل ،۵فصل ،۲۳-ایت**

**هرچا چې په «زوی» ایمان راوړ همیشنې ژوند ئې پیدا کړ. اوهرڅوک چې هغه رد کړي له ژوند څخه به ګټه وانخلي دخدای غضب پرهغه دی.**

**حضرت**

**مسیح (یوحنا انجیل،۳فصل،۳۶- ایت**

راتلونکې دعوتنامه دحضرت بهاءالله هغو کسانو ته
خطاب دی. چې دپروردګار په لطف او مرحمت امید
اوایمان نه لري . پروردګار له هغو څخه غواړي. چې
دازادې او خودمختارې ارمغان هدر لاړ نشي ،

دپروردګار دلوی بخشش څخه پخپلو بنده ګانو سترګې پټې نه کړي. اوترڅو چې فرصت ئې له لاسه نه وي ورکړی ، دهمیشني ژوند جام په پوره شوق او اشتیاق سره ومني او وئې چښي:

**اې ښوریدونکي خاورې!زه له تاسره مینه لرم او ته زما نه څومره مایوسه ئې. دګناهونو شمشیر ستا دامیدونو ونه غوڅه کړې ده. په هرحال کې زه تا ته نږدې یم اوته په ټولو حالاتو کې له مالرې ئې ماستا لپاره بې زواله عزت خوښ کړ. او ته دخپل ځان لپاره بې منتها ذلت خوښوې. اخر داچې ترڅو وخت پاتې وي. رجوع وکړه اوفرصت له لاسه مه ورکوه.۴۲**

**حضرت بهاءالله**

۷۹۵ ۲۶فصل:دایمان ارمغان څه شی دی. اودچا په لاس کې دی؟

---

---

## پروردګار دارنګه

## وائي

دوینا شروع دپروردګار په صفت پیلیږي. اې بنده ګانو!دپروردګار دبخشش چینې په جوش اومستې کې دي. له هغه څخه ئې وڅښئ.ترڅو دپروردګار په یارۍ له تورې خاورې پاک شئ.ترڅو دیواځینې دوست محلې ته داخل شئ. له جهان نه تیرشئ.اودجانان دښار اراده وکړئ.۴۳
حضرت بهاءالله
ووایه اې دوستانو!دپروردګار دبخشش ددریابه خپل ځانونه مه لرې کوې ،هغه ډیر نږدې راغلی دی.هغه څه چې پټ ؤراغلي،اوښه راغلي.په یولاس کې دژوند اوبه دي. اوپه بل لاس کې دازادې فرمان دی.ګوزار ئې کړئ. اووائې خلئ. ګوزار کړئ. هغه څه چې په جهان کې لیدل کیږي. اوواخلئ هغه څه چې دبخشش لاس ئې ورکوي.هغه څه راغلي، چې دروزګار سترګو تراوسه نه دي لیدلي. اې دوستانو!عجله وکړئ.عجله وکړئ ! واورئ !.۴۴
حضرت بهاءالله
ووایه!نن ورځ چې دپروردګار دبخشش په لمر اسمان ښکلې دی. زړونو ته بیړه اوعجله وکړئ. شاید دوجود دظهوراوعلت په سبب پوه شئ. نن به دټول عالم ګنجونه اوخزانې دپوهې ددریاب دیوڅاڅکي سره برابري ونه کړي.۴۵ حضرت بهاءالله

**اې دوستانو! پروردګار فرمائي:نن دخبرو اووينا ورځ نه ده. دبې مثاله دوست غږ واورئ.ومني هغه څه چې بنده ګان پرې و پوهول شي. اوازادي وربخښي. ۴۶**

**حضرت بهاءالله**

**انّا امرناکم...بما يرفعکم و ينفعکم فی کلّ عالم من عوالم ربّکم...ما خلقتم لانفسکم بل لخدمة امر الله ربّ العالمين .**

**٤٧**

**حضرت بهاءالله**

زه تاسې ته امر کوم ... په هغه څه چې ستاسې دلوړتيا سبب دي . ترڅو دپروردګار په ټولو عوالموکې دخپل کوښښ څخه ګټه پورته کړئ...تاسې دخپل خدمت لپاره پيداشوی نه ياستې. دپروردګار دائين، دجهانونود پروردګار دخدمت لپاره، دهستې په ميدان کې قدم ايښی دی.

**اې بنده ګانو!رښتيا وايم. رښتينې هغه څوک دی. چې سمه لاره ئې وليده...اودالاره دنورو لارو په منځ کې لکه لمرچې په ستورو کې وي. هرڅوک چې دې لارې ته ونه رسيده پوه نه دی. اوبې لارې دی. دغه ديکتا پروردګارخبره ده.۴۸ حضرت بهاءالله**

**اې زما محبوبه!هره سينه ستا دمينې اوهرزړه ستا ددوستې وړ نه دی... دوصال دكعبې غوښتونكي، ترڅو دجلال دحدودو څخه تير نشي، دجمال په ظهور به خوښ نشي. اوترڅو چې دفنا جام ونه څكي، دبقا دين ته به داخل نشي. اوترڅو ستا درضا په لاركې دفقر كميس وانه غوندي، دغنا په لوړو درجو به ونه وياړل شي. اوترڅو چې دميني له درد څخه ناروغه نشي، دشفا په سرمنزل به پوه نشي . اوترڅو ددې خاورين وطن څخه تيرنشي، دالهي سپيڅلي اوپاک وطن ته به پورته نشي. ترڅو په بيابان كې دابدي غوښتنې لپاره مړ نشي، پاتې ازلي ژوند ته به ونه رسيږي. اوترڅو دذلت په ځمكه كې مأوی پيدانه كړي، دعزت اسمان ته به لاره ونه مومي. اوترڅو دفراق اوبيلتون زهر ونه چښي. دبقا شات به ورنه كړل شي .ترڅو دهجر اولريوالي بيابانونه ونه وهي، دنږديكت اووصال په ښارونو كې به مستريح نشي.٤٩ حضرت بهاءالله**

**اې بنده ګانو!بې حرکته وجود مړ دی او هغه زړه چې دخدای یاد په کې نه وي. پژمرده اومړژواندې دی.ددوست په یاد سره ژوند وکړئ. اوله دښمنه پرهیزوکړئ. ستاسې دښمنان ستاسې شیان دي. چې پخپله غوښتنه تاسې هغه پیداکړي، او ساتلي دي. اوتاسې خپل روح په هغو ککړ کړی دی. روح دجانان دیاد لپاره دی. هغه دګمراهانو په یاد مه ککړوې. ۵۰**

**حضرت بهاءالله**　　　**قل یا قوم لا تمنعوا انفسکم عن فضل الله و رحمته و مَن یمنع انّه علی خسران عظیم. ۵۱**

**حضرت بهاءالله**

وایه!اې خلکو، خپل روح دپروردګار دفضل اورحمت څخه مه محروموی . هرڅوک چې ځان محروم کړي په لوی تاوان کې دی.

**ټول هغه څه چې لیدل کیږي. له منځه ځي.دهغه یوه کلمه دعالم دثروت څخه ښه ده.**

**نیکمرغه دی هغه څوک، چې په هغه ئې برې ترلاسه کړ. ۵۲**　　　**حضرت بهاءالله**

**په څومره لویه اندازه دخرڅلاو شیان، دحکم په لاس ښکته اوپورته شو. پاچاهان اومریان دواړه ئې خاورو ته لاړل. کوم سهار دی، چې هغه پسې ماښام**

نه راځي. اوکوم عمر دی، چې هغه پسې اجل نه راځي؟هغه څه چې لیدل کیږي، ډیر ژربه دفنا غوسه تول پورته اونابود کړي...کوښښ وکړئ. شاید داسې عمل ترسره کړئ چې دقبول په تاج ښکلی شي. اوپه الهي سلطنت کې دهمیش لپاره پاتې شي.۵۳
حضرت بهاءالله
وختونه دبرق په شان تیریږي. په هرنفس لازم دي. چې په دې پاتې ورځو کې لوړاوعالی پاتې مقامونه ترلاسه کړي.۵۴
حضرت بهاءالله
هغه څه چې دمنځه لاړل،دابد لپاره هغه بیرته نشي ترلاسه کولی.۵۵    حضرت بهاءالله



# دپیغمبرانو دعوت او بلنې ته دخلکو

## دبې اعتنائې سببونه

### دقصور اوغفلت پردې

حضرت بهاءالله ، دایقان کتاب په شروع کې فرمائي:

**مخکیني وختونو ته نظر واچوې. چې څومره خلک مترصداومنتظر ؤ. دعاګانې اوزارې به ئې کولې چې شاید دالهي رحمت نسیم په لږیدلو راشي. او دموعود جمال، دغیبو د پردې څخه دظهور میدان ته راشي. اولکه ...دغیبو لمر په شان دقدرت دافق څخه راظاهریدل، ټول به ئې دروغ کړل...اوس لږ څه تامل اودقت وکړئ،چې دخلکو د اعتراض سبب څخه وروسته دهغوې غوښتنې اوهیلې ئې څه شی ؤ؟اوپه داسې ډول ئې اعتراض کول، چې ژبه اوبیان ، تقریر**

**اوتحرير ، ټول دهغه ذکر څخه عاجز،او ناتوانه دي.١**
**حضرت بهاءالله**

قران اوبهاءالله



---

دمخکنۍ کلام څخه وروسته ، ددې ايت په نقلولو سره دخلکو رسم او روند وښائي:
**يَا حَسْرَةً عَلَى الْعِبَادِ مَا يَاتِيهِم مِّن رسُولٍ الاكَانُوا بِهِ يَسْتَهْزِؤُون . ديونس سورت، ٣٠-ايت** واى پر هغو بنده ګانو !کوم پيغمبرو، چې دوى ته رانغى. او هغه ئې مسخرنه کړ !
وروسته دمخکېني ايت له ذکرڅخه ، فرمائي:

**هرڅه چه په هغه زمانه کې دهغو خلکو دلريوالي اوبې اعتنائي سبب ؤ، په اوسنې حالت کې ددې خلکو دغفلت سبب شوى دى.۲**
**حضرت بهاءالله**
وروسته دخلکو داعتراض او لريوالي داستان، دمخکېنيو پيغمبرانو څخه يويو بيانوي، په دې مقصد چې:
**شايد داذکر سبب شي. چې ځنې دخلکو دعصر اوزمان علما او جاهلان د اعتراض اولريوالي په وجه پريشانه نشي ، بلکه دهغوې په يقين اوډاډ ورزيات شي.۳**
**په ټولو زمانو اوعصرونو کې دمؤمنينو شميره په پيل کې کمه او دغيرى مؤمنينو شميره زياته وه ، داسلام دظهور پيل همدارنګه ؤه . حضرت باب فرمائي :« چې درسول اکرم دظهور په لمړنيو (۷)کلونو په اوږدو کې يواځې مؤمنين**
**حضرت اميرؤ» .۴**
وروسته فرمائې ، دې منکېرينود دليل اوبرهان ته دتوجه پرځاى نورو ته نظر اچول.
**وَمَا لَكُمْ لَا تُؤْمِنونَ بِاللهِ وَالرسُولُ يَدْعُوكُمْ لِتُؤْمِنُوا بِرَبِّكُمْ .** **دحديد سورت،۸-ايت** په تاسې
څه شوي دي؟ ولې په پروردګار اودهغه په رالیږل

شوي ایمان نه راوړئ؟ هغه تاسې لره په خپل رب باندې ایمان راوړلو ته رابولي.

**دحضرت باب پیروانو هم دمخکنیو خلکو سنتو او روند ته ادامه ورکړه . دهغوې ځني ډلو دخپل موعود حضرت بهاءالله دعوت ته ځواب ورنه کړ . حضرت باب دامنکرین د هغو ماهیانو سره تشبیه کوي. چې هغوې دخپل اسماني کتاب بیان په دریاب کې لامبووهي. اوله هغه څخه ئې ژوند پیداکړی دی.اما دهغه دریاب دوجود څخه سوال کوی.۵ داډول پیروان په خپل ایمان کې صادق نه ګڼي.۶**

اوفرمائي:

---

❖ اغماض:بې اعتنائې ، نادیده ګڼل.

**دمؤمينانو په منځ کې داسې کسان شته دی. چې « هرشپه ترسهاره پورې په عبادت او دخدای په ذکر مشغول وي» په داسې حال کې چې دحقيقت لمر دظهور په اسمان کې راختلو ته نږدی دی. اما هغوې تراوسه دخپلو جاينمازونو څخه حرکت نه دی کړی . اوکه څوک هغوې ته دنوي ائين ايتونه ووائې ، هغوې به ځواب ورکړي : « چې مونږ دخدای دذکر نه مه اوباسه!» وروسته همدې خلکو ته په خطاب کې وائې ، ای هغو کسانو چې د غفلت او دانکار پردې شاته موځای نيولی دی ، تاسې دخدای ذکر په ژبه راوړئ اما له هغه چاچې داذکر ئې ستاسې په روح کې متجلي اوروښانه کړی دی ، غافل او بې خبره ياستې!٧**

په دې کلام کې ، پروردګار زردشتي پيشوايان په همدې توګه مخاطبوي:

**ووايه!اې دستورانو( زردشتي پيشوايانو) !زما دنوم سره څومره مينه لرې. اوله ماڅخه په تيښته کې ياستې.٨**

**حضرت بهاءالله**

خلک له دې سره تمايل لري. چې يواځې دخپلو همفکرانو سره محبت وکړي. او له نورو څخه ځانونه لرې وساتي . بې دينه خلک دبې دينه خلکو سره

دژوند څخه خوند او لذت اخلي ، مسيحي دمسيحيانو سره ، روشنفکره مسلمانان دروشنفکره مسلمانانو سره متعصبه مسلمانان دمتعصبه مسلمانانو سره، دهر حزب طرفداران دهغه حزب دغړو سره محبت کوي . دا تمایل خلک دنورو خلکو دعقایدو او فکرونو څخه لرې ساتي.

**فاني سترګې باقي جمال نه پيژني ، اومړ زړه په غير دمړاوی ګل څخه به بل څه نه مشغوليږي. ځکه چې هره انډيوالي خپل انډيوال لټوي اودخپل جنس سره محبت کوي. ۹۰**

**حضرت بهاءالله**

**عدم اونابودي به قدم اوګام ته ونه رسي، فنااومړ دبقااوژوند څخه لريوالی لټوي. ۱۰**

**حضرت بهاءالله**

دپروردګار دنوو پيغمبرانو سره دخلکو بې اعتنائي اودنورو څخه د تقليد اوپيروې يومهم سبب يواځې پيشوايان وه:

**په هرظهور کې ځنې دځنو په پيروي سره دوزخ ته ځي. ۱۱ حضرت باب**

**قل من لن يطهّرَ قلبه عن حجبات التّقليد لن يقدرَ أن يُقبلَ ال□ هذا الوجه الدّرّى الرفيع. ۱۲**

**حضرت بهاءالله**

وو ايه! هرڅوک چې زړه دتقليد څخه پاک نه کړي ، هيڅکله به ونشي کولی، دا روښانه څيره وګوري.
دحيرانتيا ځای دی . که څوک له چا څخه شکايت لري، قضاته ځي . هغه وکيلان چې په قانون ، بيان ، اقامه ، دليل او برهان کې تخصص لري . وروسته دتحقيق او ډيرو څيړنو دقاضي په وړاندې ودريږي.
اوپه ډير مهارت سره دخپل مؤکل څخه دفاع کوي .
قاضي چې دقضاوت په فن کې ماهر دی. ساعتونه او شايد ورځې دهغوې خبرو ته غوږ کيږدي. او وروسته دډير تفکر او تأمل څخه رائ ورکوي . اما ډير خلک ، دخپل ژوند ترټولو مهم قضاوت کې چې دهغوې هميشنی برخليک په هغه پورې تړلی دی ، بې له ډير

کم کوښښ د اوازو د اوریدو په اساس په قضاوت پيل کوي ! ايا له دې حيرانوونکي امر بل څه شی تصور کولی شي؟

**ووايه! اې دسترګو والا!ناليدلی مه وايه، او هغه ته چې نه ئې رسيدلی شاهدي مه ورکوه . لاره معلومه، او روښانه ده، وګوره او پرې لاړشه ...۱۳ حضرت بهاءالله**

**که يو بنده وغواړي د پوه اوجاهلو بنده ګانوکړنې ، خبرې اوعملونه دخدای اودهغه داولياو دپيژندنې په ميزان سره وښائي ، هيڅکله به دژوند سرمنزل ته ونه رسي. او خدای ته دنږدې کيدلو له جام اوروزې څخه برخه من نشي.۱۴ حضرت بهاءالله**

په دې لاندې وينا کې حضرت مسيح اظهاروي. چې خلک دهغه څه په خاطر چې دخپلو غورونيکونو څخه اوريدلي دي. دهغه دشهيدولو قصد لری:

**تاسې اماده ياستې چې ما ووژنئ، ددې لپاره چې ستاسې په زړونو کې زما د وينا لپاره ځآی نشته ...تاسې هغه څه چې دپلرونو نه اوريدلي دي. سرته رسوی .**

**حضرت مسيح (**

**يوحناانجيل:۸فصل،(۳۸- ۳۷)ايتونه**

حضرت باب فرمائي : (چې څومره ډير خلک دي.
چې دقران احکام عملي کوي. اما د ژوندانه دونې
دميوې څخه ئې ګټه نه ده پورته کړې . هغه اسماني
کتاب وائي ،



---

---

**امّا دالهي مقصد او مراد څخه غافل او بې خبره دي.۱۵**

**دهغه موعود دوينا په اساس: (مؤمين دائينې په شان دي، او غيرمؤمين دتيرې په شان خداى قادر دى، چې دتيرې نه ائينه جوړه کړي. اما دا کار دپروردګار، دارادې سره سمون نه لري . ځکه تيرې پخپله غوښتې دي. چې تيره پاتې شي.۱۶**

او وروسته فرمائې دموعود دظهور په ورځ:

**هغه څه چې دمؤمينانو دايمان سبب وګرځيد، همدا سبب په عين توګه دغيرې مؤمينانو لپاره هم ؤ. دا چې په پرده کې ؤ په همغه سبب په پرده کې پاتې شو.١٧ حضرت باب**

دپروردګار دامر لمر او باعظمته ائين هميشه روښانه او ځليدونکی دی. اما ډير خلک ، خپل پاک او ځليدونکی روح په داسې دخيالونو او تصورونو په خامو وريځو کې پوښوي چې دهغه دجمال او ځلا ډير وړوکی اثر هم نهويني.

**امر ظاهر دی ، اودلمر په شان ښکاره دی. ولې خلک پخپله دخپل ځان حجاب شوي دي، له حق څخه غواړم. چې هغوې ته درجوع بری ورکړي.١٨ حضرت بهاءالله**

**څومره نيکمرغه دی هغه څوک. چې دشرم پرده ئې څيرې کړه. او دظهور دلمر په وړانګو رڼا شو.١٩ حضرت بهاءالله**

دپروردګار دشاهدې په اساس ځنې له خلکو څخه داسې غافله دي. او دارنګه دمعنوي نظره بې استعداده دي. چې يواځې دهغوې دبيدارۍ او پوهې سبب، ددوزخ ايرونکی مخ دی. يعنی دپروردګار څخه دلريوالی په بې پايانه درد کې په هميشنې جهان کې دی:

**ان الذِينَ حَقتْ عَلَيْهِمْ كَلِمَتُ رَبِّكَ لاَ يُؤْمِنُونَ وَلَوْ جَاءتْهُمْ كُل آيَةٍ حَتـ□ يَرَوُاْ الْعَذَابَ الالِيمَ .**

**ديونس سورت، ۹۷-۹۶ ،ايتونه**

هغوې چې دپروردګار وينا دخپل ميل برخلاف پيداکړي. هره نښانه او دليل چې ووينـي. ايمان نه راوړي. ترهغه وخته چې ددوزخ درد ناک عذاب ووينـي .

دحضرت رسول اکرم نه وروسته دپيغمبرانو ظهور داکثره مسلمانانو دميل مخالف دی . دا متداول او مروج ميل ئې ديوې کلمې په خاطر يعنی « خاتَم» يا «مهُر»دمؤمينانو په روح کې ژورې ريښـې ځغلولې دي،

❖ ځومره نيکمرغه او بريالی دی هغه ځوک...

حضرت بهاءالله دداسې يو چا يادونه کوي: چې په کراتو دپروردګار د لمربنکلا دهغه دراليږل شوي افق نه يعني دحضرت بهاءالله څخه دهغه په برخه شوې وه. **فی کل حسین اشرق علیه شمس الجمال من افق الا جلال.» ۲۰**

په همداسې يو حالت کې نه يواځې داچې دايمان ارمغان ئې په برخه نشو ، بلکه دهغه موعود سره په مخالفت کې پورته شو .

دقران دايتونو څخه يو ايت وښائي. چې دځنې خلکو روحونه داسې دتعصب ، دروغو ، دښمنيو او کينو څخه ډک دي. چې دپروردګار دوينا اوريدل او ليدل لکه باد چې په اورلګيږي ، دهغوې په دښمنې، نفرت اوکرکې ورزياتيږي:

**اما الذِينَ فِي قُلُوبِهِم مرَضٌ فَزَادَتْهُمْ رِجْسًا الَ رِجْسِهِمْ وَمَاتُواْ وَهُمْ كَافِرُونَ.**

**دتوبه سورت، ۱۲۵-ايت**

هغه خلک چې په زړونو کې « غرضونه او مرضونه» لري. دپروردګار وينا دهغه دروح په مرضونو او تيارو وراضافه کوي. داناروغان باالاخره بې ايمانه مرګ ته تسليمږي.

(په همغه ډول چې تاسې ولیدل ، دایمان ارمغان اوبخشش داسې مقام او مرتبه لري. چې حتی پیغمبران بې دپروردګار داجازې ، دهغه په بخششولوقادر نه دي). ۲۱ دعدل دحکم والا پروردګار همیشه داسې نا لایقه له دې احسان او بخشش څخه لرې ساتلي او ساتي.

**اې خدایا...دبنده ګانو څخه څومره لوی کفران اوناشکري ظاهره شوې ده. چې درحمت دبحر له موجونو څخه محروم پاتې شوي دي. اودلمر درڼا دروښنائي دظهور څخه محروم شوي دي.۲۲**

**حضرت بهاءالله**

**دبنده ګانو خپل عملونو هغوې خپل خالق څخه محروم کړي دي. اوکه نه دهغه لوی فضل ټول عالم نیولی دی...۲۳**

**حضرت بهاءالله**

**څومره غټه ناشکري دبنده ګې څخه ښکاره ده، چې ټول دې دپیژندنې څخه محروم کړي دي؟۲۴**

**حضرت بهاءالله**

**په یقین سره دخدای لاس لنډ نه دی، چې هغوې ته نجات ورکړي ... ستاسې ناسم رفتاراو چلند تاسې دخدای څخه جدا کوي . ستاسې ګناهونه دپروردګار**

**ځیره له تاسې څخه ... پټه کړې ده...**
**داشعیای نبی: ۵۹فصل، ۲-۱،ایتونه**
**رڼا جهان ته راغلې ، امّا خلکو دتیارې سره مینه لرله ، ځکه چې رفتار ئې ناسم ؤ.**
**حضرت**
**مسیح: یوحنا انجیل،۳فصل،۱۹-ایت**

۸۰۳ ۲۶فصل: دپیغمبرانوبلنې ته دخلکو دبې اعتنائې علتونه او سببونه

---

---

**دتعجب وړ دي هغه خلک، چې خپل غوږونه ئې له داسې وینا څخه چې دسهار له نسیم نه رقیق تره اونرې ده، له روح څخه لطیف تره او سپېڅلې ده ، منع کړي دي ... دانا او لیدونکي لکه کیمیا نایاب اوناپیدا دي.۲۵ حضرت بهاءالله**

زمونږ دعصر دخلکو دوصف په باره کې دیهودیانو مقدس کتاب دارنګه وائي:

**دهغوې دین په غیر د خلکو دتصوراتو او افکارو څخه بل څه نه دي. چې طوطي وارئې پخپل خاطر کې**

**سپاري ... دعقل صاحبان ، به خپل عقل دلاسه ورکړي...**

**اشعیای نبی: ۲۹فصل،۱۴-۱۱،ایتونه**
**سل زره افسوسه په هغه غافلو خلکو ... چې ډیر زربه داجل باد هریو خپل مقر او ځآی ته راجع کړي . غافل راغلل .غافل ئې ژوند وکړ، اوغافل ئې خپل مقام ته رجوع وکړه .**
**ډیر حدیثونه دمسلمانانو دناسم چلند څخه دخپل قائم موعود په وړاندې خبر ورکوي. ۲۶**
**حضرت بهاءالله** دهغې جملې نه دقران دایتونو دیو ایت په تفسیر کې امام محمد باقر دارنګه فرمائي:
**"و لقد اتینا موسا الکتاب فاختلف فیه (دهود سورت، ۱۱۰-ایت) قال اختلفوا کما اختلف هذه الامة فی الکتاب و سیختلفون فی الکتاب الذی مع القائم الذی یأتینهم به حتی ینکره ناس کثیر .۲۷**
مونږ موسی ته کتاب ورکړ. په هغه څه کې چې بیان ورکړ، اختلاف پیداشو. دهود سورة ،۱۱۰ — ایت).هغه وخت حضرت امام وفرمایل : په همغه ترتیب چې د ( اسلام )امت دقران په کتاب کې هم دنظر اختلاف لري. زر دې هغه کتاب چې قایم

موعود ئې راوړي.په هغه کې به هم اختلاف واچوي ، په داسې حداو اندازې سره چې ډير به دهغه څخه انکار وکړي.

**دځمکې دخلکو همدغه ورګرځونه، ښکنځلې ،لعنت په هغو اسپ سوارانو اودهغو ميدان ته په غوڅه توګه تسليميدل دحضرت باب دحقيقت لپاره لوی ثبوت اولوی دليل دی. ځکه څه چې واقع شول له مخکې ...ئې خبر ورکړی دی.۲۸ حضرت بهاءالله**

ديوسف سورة په پيل کې د«ذکر» دراتللو مژده اوزيری ورکوي. ورپسی د« ساعت» دظهور درارسيدو او دخلکو دنااګاهې اوناپوهې خبر ورکوي:



---

**افَامِنُوا ان تَاتِيَهُمْ غَاشِيَةٌ مِّنْ عَذَابِ اللهِ اوْ تَاتِيَهُمُ الساعَةُ بَغْتَةً وَهُمْ لاَ يَشْعُرُونَ.**

**ديوسف سورت،۱۰۷-ايت ۱ .ترجمه:**ايا کله چې دالهي

عذاب پرده په هغوې راشي. او یا په ناڅاپه توګه بې له مخکېنې پوهې او صبر څخه هغه « ساعت» پر هغوې راشي. دامنیت احساس کوي؟

۲.**ترجمه**:آیا فکر کوي که د«عذاب پرده» دهغوې روح پټ کړي ، پوهیږي ؟ آیا فکر کوي چې د«ساعت ظهور»څخه به اګاه شي؟

مخکېنی ایت وښائي چې خلک تمایل لري. چې دژوند په موجودو شرایطو کې دامنیت احساس وکړي . ولی دهغوې دتمایل پرخلاف دظهور « ساعت» ناڅاپه رارسي. او دعذاب پرده چې دهغوې دانکار اوغفلت نتیجه ده. دهغوې روح پټوي ، اما هغوې ددې ټولو لویو او له خطرونو ډکو پیښنو بې خبره دي.

دعذاب کلمه هغو خلکو ته په اشارې سره چې (لوی خبر) دروغ ګڼي، په ډیرو ایتونو کې راغلی دی:

**ان عَذَابَ رَبِّكَ لَوَاقِعٌ مَا لَهُ مِن دَافِعٍ...فَوَيْلٌ يَوْمَئِذٍ لِلْمُكَذِّبِينَ الذِينَ هُمْ فِي خَوْضٍ يَلْعَبُونَ .**

**دطور سورت،۱۲-۷،ایتونه** البته چې دخدای عذاب به راشي. او هیڅوک به دهغه مخنیوی ونه کړي... وای پرهغو خلکو چې په هغه ورځ دحقیقت څخه منکر شي. اودخپلو خیالونو اوتصورونو سره اخته او سرګرم وي. زمونږ دعصر خلکو ژوند ددې شاهددی.

چې ګويادقران ټولو وړاندوينو تحقق پيداکړی دی. ځومره ډير خلک دي. چې په غفلت کې غرق دي . دناپايداره دنيا سرګرميو او امنيت هغوې لره پروردګار ته دتوجه اودځپل هميشني برخليک ځخه لرې ساتلي دي . داخلک پخپلو ارزوګانو کې داسې غرق دي. چې هيڅ يو خبر ، که هرځومره لوي او له خوښيو ډک وي. هغوې دغفلت دخوب حځه نشي پاځولی.

**قد اتی النباء الاعظم والامم اکثرهم من الغافلين .۲۹**

**حضرت بهاءالله**

ترټولو لوی خبر، راغلی دی. اماډير خلک غافل اوناخبره دي.

# دپروردګار له نظره بې عقله

## اولنۍ فکره خلک

عقلمند خلک ،روڼ خیاله، دکرامت خاوندان اودګراندیشه خلک یعنی هغه څوک چې دوجدان اوعقیدې ازادي، دتقلید په بردګې اوغلامې اوچته ګڼي. دپروردګار له نظره ډیرمحترم اوعزیز خلک دي. داخلک دحضرت عیسی دوینا په اساس دمالګې په څیردجهان ساتونکي دي . برعکس کوردله اوپڅ ذهنه ، بې فکره او سخت متعصب خلک په الهي ایتونو کې دتحقیر ،توهین او تهدیدوړګرځیدلی دي .آیا د دوزخ دمجازاتو څخه بداوخرابه برخلیک نورڅه شی تصورکیدلی شي؟

دالاندې ایتونه دبې عقله او کور دله خلکوپه وصف کې راغلي دي . داخلک دعالم درنځونو ظلمونو ، اوبلاګانوسرمنشاءدي.

**لَهُمْ قُلُوبٌ لايَفْقَهُونَ بِهَا وَلَهُمْ اعْيُنٌ لايُبْصِرُونَ بِهَا وَلَهُمْ آذَانٌ لا يَسْمَعُونَ بِهَا اوْلَئَكَ كَالانْعَامِ بَلْ هُمْ اضَل ...**

**داعراف سورت، ۱۷۹-ایت**

هغوې داسې زړونه لري. چې درک نه لري ، په سترګو نابینا اوړانده دي ، غوږونه ئې اوریدل نه

کوي. دا خلک دځناوروپه شان دي. حتی دهغونه هم بدتر...

**ان شَرالدوَاب عِندَ اللهِ الصم الْبُكْمُ الذِينَ لاَ يَعْقِلُونَ .**

**دانفال سورت،۲۲-ایت** بې شکه ، پسترین ځناوران دپروردګار په وړاندې هغه خلک دي چې «ګونګیان او کاڼه»دي هغه کسان چې دعقل دارمغان څخه بې برخې دي. ( هغه کسان چې په کارونو کې دعقل څخه کار نه اخلي ).

ایا کیدلی شي چې بې خرده او بې فکره خلک له دې زیات تحقیر شي ؟ ایا بې عقله خلک دومره عقل لري، چې پوه شي دابې عقله دی؟

داسې خلکو ته په خطاب کې فرمائې:

**ووایه اې رندو!جهان پناه دجهان واکمن راغلی، دلیدو ورځ ده،پوه لیدونکي راغلی. دفداکاری وخت دی. په دې ورځ دبخشش کې کوښښ وکړئ. ترڅو دنیکو خلکو په دفتر کې یادشي. ۳۰**

**حضرت بهاءالله**

**وَمَن كَانَ فِي هَذِهِ اعْمَ فَهُوَ فِي الآخِرَةِ اعْمَ وَاضَل سَبِيلاً . دبنی اسرائیل سورت،۷۲-ایت**

هرڅوک چې په دې دنیا کې کوردله اوپخ ذهنه دې ، په همیشني جهان کې هم نابینا دی . دارنګه یوڅوک ځومره ګمراه او ( بدبخته) دی!

## ځان خوښی ، خودبینه لنډ فکره نفس

زمونږد خود بینه ، خودخواه او لنډ فکره نفس څخه په غیر بل څوک او څه شی زمونږ دړوندوالی سبب دی ؟ الهي ایتونه مونږ ته اخطار راکوي. چې زمونږ « حاکمانه نفس» زمونږ ترټولو غټ دښمن دی . دداسې دوست نمادښمن څخه باید خبرداره اوسو:

**زيّن الشيطان لکم اعمالکم ... ٣١**

**حضرت بهاءالله**

شیطان ( ځان خوښی نفس)ستاسې عملونه تاسې ته ښکلي وښودل...

**لم يكن لكم اعداء الّا انفسكم فاعرفوها يا قوم ايّاكم ان تغفلون .۳۲ حضرت بهاءالله**

ستاسې يواځنې دښمن ستاسې نفس دی.اې خلكو! هغه وپيژنئ !مبادا په دې كاركې غفلت وكړئ!

**په خدای قسم دی. چې دنفس دلوازمو غفلت دی ... دهغه دشر اودهغه دمكر څخه خپل خدای ته پناه غواړو....۳۳**

**حضرت بهاءالله**

**ايّاک ان يمنعک نفسک عمّا قدّرناه لک .۳٤**

**حضرت بهاءالله**

خدای مه كړه چې خپل نفس دې بې برخې نه كړي، له هغه څه چې ستاپه تقدير كې دی.

**لا تصرفوا نقودَ اعمارِكم النّفيسةِ ف المشتهياتِ الن فسيّة .۳٥ حضرت بهاءالله**

دخپل عمر غوره اوپاكه سرمايه دخپلو نفساني غوښتنو او هيلو لپاره مه لګوې.

## تولوخلكو ته

## داحترام

## اومحبت،لزوم

## اوارتيا

يوځل بيا لازمه ده، چې په ياد راوړو. چې زمونږ وظيفه د پوهاوي ورکول دي ، نه قضاوت. که څه هم دپروردګار له نظره متعصب اولنډفکره خلک سپک اوبې مقداره دي.

## ۸۰۷ ۲۷فصل: دپيغمبرانو بلنې ته دخلکودبې اعتنائې علتونه اوسببونه

---

---

پرمونږ ده. چې دټولو خلکو سره په محبت چلند وکړو. اوهغوې ته داحترام په نظر وګورو ، ځکه ديوپروردګار دخلقت او پيدايښت بنده ګان يو. اوديوماهراو پوه طراح تصويرونه يو.دحقارت او سپکاوي په نظر بنده ته کتل دپيدايښت دطراح نقشې ته په حقارت اوسپکه کتل دي . هغه څه چې کوردله او پڅ ذهنه خلک، متعصب اومقلد خلک ئې سرته

رسوي، دازادۍ دارمغان په خاطر دي چې پروردګار ټولو بنده ګانو ته بخشش کړي دي:

**كلّ عباد له وكلّ بامره قائمون .٣٦**

**حضرت باب**

ټول دهغه بنده ګان دي او ټول دهغه په امر ولاړ او قائم دي.

دقضاوت حق دپروردګارسره دی ، نه دګناهکاره بنده سره . پرمونږ ده چې هیڅکله خپل ځانونه لوی اونور واړه ونه ګڼو . ځکه دحضرت بهاءالله دوینا په اساس مونږ دخپل برخلیک دانجام څخه هم خبر نه یو. نور خو لاپه ځای پرېږده دایقان په کتاب کې دیو رښتینې مؤمین لټونکي په صفت کې وائې:

**دګناهونو څخه دپوره برې په درشل کې دی. که دبخښنې غوښتنه وکړي. په ګناهکارانو دبخشش قلم کش کړئ. اوپه حقارت ورته ونه ګورئ.ځکه چې ښه اخره مجهوله ده. ډیرګناهکاران دي چې دمرګ په وخت کې دایمان خاوندان شي،اودابدي ژوند شراب وڅښي. او جنت لاړ شي. اوډیر مطیع اومؤمین خلک دي. چې دروح دپورته کیدو په وخت کې هرڅه بدل شي او دوزخ ته لاړ شي.٣٧**

**حضرت بهاءالله**

**دپروردګار دنوي ائين منل ، دانسان په ژوند کې ترټولو لوی تصمیم دی . ډیر خلک پخپل ځان اعتماد نه لري. چې په داسې یو کار کې لاس وهنه وکړي . دهردین ښخه چې دي، دخپلو نیکونو ائین اودین لوړ ګڼي .حضرت بهاءالله فرمائي، « داخلک دماشومانو په شان دی. په لمړیو کې نرمې ډوډې ته اړتیا لري. ترڅو په کراره رشد اوپرورش پیدا کړي. اودایمان راوړلو ته اماده شي .»۳۸**

حضرت باب فرمائي :دبې دینه اومخالفو خلکو سره ډیر ښه سلوک وکړئ ، شاید:

---

☆ حُسن خاتمه:ښه اخره ،ښه پای،په همیشني جهان کې دانسان ابدي برخلیک ته اشاره ده.

ملأاعلی : دپورته عالم اوسیدونکي ،الهي سلطنت ته ، جنت ته اشاره ده.

دروح ارتقا:همیشنې جهان ته دانسان پورته کیدل اورجوع.

**دوجود څخه ئې ګټه پورته شي ، په پروردګار به ایمان راوړي . ځکه چې دایمان امکان په هرنفس کې موجود دی.۳۹**

**حضرت بهاءالله**

حضرت بهاءالله په سل هاؤ مناجاتو کې دخپل خدای څخه غوښتي دي. چې دهغه دائین په منکرانو لطف اواحسان وکړي. اوله هغوې سره یاري او کمک وکړي. ترڅو دهمیشني جنت څخه بې برخې نشي:

**عرف یا الهی عبادک شمس التی اشرقت عن افق افضالک و تقدیرک و لا تجعلهم محروماً عن جنة التی خلقتها باسمک الابهی . ٤٠**

**حضرت بهاءالله**

ای پروردګاره!هغه لمر چې ستا دفضل او تقدیر له افق څخه روښانه اوځلید، خپلو بنده ګانو ته وروپیژنه. اوهغوې دهغه جنت څخه چې پخپل روښانه اوپرشکوه نامه دې پیداکړئ مه محروموه.

**الها معبودا مسجودا مقتدرا، شهادت می دهم که تو به وصف ممکنات معروف نشوی و به اذکار موجودات**

موصوف نگردی...ای علیم اگر چه غافلیم ولکن به کَرَ
مت متشبّث، و اگر چه جاهلیم به بحر علمت متوجّه .
توئ□ آن جوادی که کثرت خطا ترا از عطا باز ندارد، و
اعراض اهل عالم نعمتت را سدّ ننماید .باب فضلت لازال
مفتوح بوده .شبنم□ از دریای رحمتت کلّ را به طراز
تقدیس مزیّن فرماید، و رشح□ از بحر جودت تمامِ وجود
را به غنای حقیق□ فائز نماید .ای ستّار، پرده برمدار .
لازال ظهورات کَرَمت عالم را احاطه نموده و انوار اسم
اعظمت بر کلّ تابیده .عبادت را از بدایع فضلت محروم
منما و آ گاه□ بخش تا بر وحدانیتت گواه□ دهند، و
شناسائ□ ده تا بسویت بشتابند .رحمتت ممکنات را
احاطه نموده و فضلت کلّ را اخذ کرده .از امواج بحر
بخششت بحور طلب و طمع ظاهر .هر چه هست□ توئ□ ،
مادونت لایق ذکر نه الابِالدخُولِ فِي ظِلّكَ وَالوُرُودِ فِي
بِساطِكَ... توئ□ سلطان کرم و مالك عطا وَالمُهَيْمِنُ عَلَ□
مَنْ فِي الا رْضِ وَالسمَاءِ .٤١
حضرت بهاءالله

قل الهِ□ الهِ□ لک الحمد بما انزلت آیاتک و اظهرت بي
ناتک و نوّرت افئدة

**المقرّبين بنور عرفانک و المخلصين بضيآء بيانک اسئلک ببحر فضلک و سمآء**

۸۰۹ ۲۷فصل:دپیغمبرانوبلنې ته دخلکو دبې اعتنائې علتونه اوسببونه

---

---

**جودک و ما کان مخزونا ف□ علمک و مکنونا ف□ کنز عصمتک و باللّئآل□ المستورة ف□ خزائن قلمک الاعل□ و بانوار وجهک يا مول□ الورى و مالک العرش و الثرى ان تؤي د المعرضين عل□ الاقبال و المنکرين عل□ الاقرار و الغافلين عل□ الرّجوع ال□ شطر رحمتک و الانابة لدى باب عفوک و غفرانک انّک انت التّوّاب الغفّار الفضّال العليم الحکيم. ۴۲**

**حضرت بهاءالله**

# دمذهبي پیشوایانو

## نقش

هغه تصویر چې دمذهبي ملایانو او پیشوایانو په هکله په اسمانيٍ کتابونو کې وینو. دومره ښکلی نه دی، ځکه چې دهغو کتابونو دشهادت په اساس ،پیشوایان په ټولو عصرونو کې دخلکو دهدایت په ځای دهغوې دایمان مانع اوخنډ ګرځیدلي دي.

په دې عصر کې، دهغوې په حکم د«۲۰,۰۰۰» نه زیات مؤمینان په دې ائین دهغوې په زادګاه ، ایران کې ، په ډیر فجیع شکل سره ووژل شو .دجهان دخلکو په برخلیک کې دپیشوایانو نقش دومره پراخه دی. چې ځانته یو کتاب غواړي.

باتقوا علما دپروردګار له نظره ډیرعزیز،لوړې مرتبې او ارجمند مقام لري:

**و انّ الله قد کتب العلم للذین یخشون من الله بارئهم ف□ سرهم و جهرهم.. اولئک هم العلماء عندالله ...۴۳ حضرت باب**

دپروردګار په وړاندې دعلم والا هغه څوک دي. چې څه په باطن او څه په ظاهر کې دخدای له عدالت څخه بیم او ایره ولري ...دخدای په وړاندې هغه رښتیني علمأدي.

---

❖ لیکوونکي یو کتاب په انګلیسي کې دپیشوایانو نقش دعالم انسان دبرخلیک په باره کې او دخپلو مباحثاتو دتشریحاتو په اړه دحضرت مسیح درجعت په باره کې ، دمسیحي علماؤ سره مې لیکلی دی. په دی ویب سایټ:

www.TheknowledgeofqzGod.com

اودې کتاب ته: Religious Leaders: A Secret Most Believers Do Not Know

مراجعه وکړئ.



---

**دخدای په نزد دپوهې والا، هغه څوک دي. چې عالِم په هغه [موعود] شوې دی. اود  بلی په کلمه کې توقف اوځنډ کړی نه دی.۴۴**

**حضرت بهاءالله**

**بلال حبشي دعلم يوه کلمه نه وه ويلې. دايمان او يقين اسمان ته پورته شو.او عبدالله اُبَّیْ چې يو عالِم وُ نفاق ته پورته شو.۴۵**
**حضرت بهاءالله**

مذهبي عالمان په ټولو عصرونو او وختونوکې داديانو دويشلو اودخلکو دجدائي سبب شوی دی.په بهائې ائين کې ، دملا او پيشوا رسم او طريقه بيخي له منځه تللې ده. دخلکو په منځ کې ديووالي راوستلو لپاره په نورو دبرترۍ حس بايد بيخي له منځه ولاړ شي:

**برتري اوبهتري چې رامنځ ته شوه. عالم خراب اوويجاړ شو.۴۶ حضرت بهاءالله**

دهغو علمأ او پيشوايانو په باره کې چې دپروردګار دائين سره ئې مخالفت وکړ، دايقان په کتاب کې فرمائي:

**دامعرضين چې په غير دهواې نفس څخه ساه نه اخلي. اودباطلو ګومانونو له پنجيري څخه ئې خلاصون نه دی پيداکړی،اوپه ورځ کې خپل سر دفرش څخه نه پورته کوي مګر دتيارو دخفاش په څير دفاني دنيا لپاره کوښښ کوي،اودشپې راحت نه کوي مګر ددنياوي کارونو دجوړولو لپاره کوښښ کوي. به نفساني تدبيرونو مشغول دی. اودخدای دتقديرڅخه غافل دی. دورځې دځان دمعاش په**

**کوښښ کې دی. اودشپې دفرشونو داسبابونو دښکلا پ‍ه کوښښ کې وي.۴۷**

**حضرت بهاءالله**

په سیاسي امورو کې دپیشوایانو دخالت په ټولو وختونواو عصرونو کې دګډوډیو سبب شوي دي، په خاصه توګه زمونږ په عصر کې چې دجهان اوسیدونکي لکه د یو وجود غړی دیوبل سره متصل دي . زمونږ په عصر کې مذهبي ملایانو که په شرق کې دي اوکه په غرب کې دي. ډیر مشکلات رامنځ ته کړي دي. بهائې ائین هغوې ته ددې سخت کار خبرداري ورکوي:

**دعلماو وظیفه اودفقهاو فریضه دروحاني کارونو پالنه ...ده . اوهر کله چې ددین علما ... په سیاسي عالم کې ...تدبیر جوړ کړ...دفساد اورئې ولګول.اوددښمنې په اورئې جهان وسوځول .۴۸**

**حضرت عبدالبهاء**

**هغه څوک چې دخپل کور اوکلی تربیت نشي کولی، دخپل اوپردي نه بې خبره دی. دممکلت په مهمو کارونو کې مداخله وکړي؟...۴۹**

**حضرت عبدالبهاء**

**امید دی. چې دایرانیانو لپاره داسې اسباب رامنځ ته شي. چې دېولو لپاره دراحت سبب شي. عدل او انصاف رامنځ ته شي. زورونه پای ته ورسي . مونږ ته په سیاسي کارونو کې غرض او کارنشته ، دېولو خیر غواړو. اودجمهوریت ترقي ، دایران دعالم لپاره دادابواو اخلاقو خدمت کوو، شپه او ورځ کوښښ کوو. چې په ایران کې پروردګار نوی روح واچوي ، ترڅو یو خارق العاده قوه دایران په بنیاد او ایرانیانو کې ځلا وکړي. ۵۰**

**حضرت عبدالبهاء**

حضرت بهاءالله په کراتو سره مذهبي عالمان دعوت کړي دي. چې تحقیق وکړي. اود پروردګار دائین په خپرولو کې کوښښ وکړي. اما دهغوې ډیرو په غیر

دبې اعتنائي او مخالفت نه دهغه بلنې ته ځواب ورکړی نه دی:

**اوّل من اعرض عنّا عُلماء الأرض...باعراضهم اعرض العباد .٥١ حضرت بهاءالله**

لمړنی کسان چې زمانه ئې مخ واړول. اوپه اعتراض ئې پیل وکړ دجهان علما وو. ...دهغوې انکار او عرایض دنورو بنده ګانو دانکار او عرایضو سبب شول.

**قل یا معشر العلمآء ان انصفوا بالله ثمّ اتوا بما عندکم من الحجّة و البرهان...اتّقوا الله و لا تکونوا من الّذین حقّت علیهم العذاب من لدی الله مالک الوجود هذا یوم فیه ینادی بحر العلم و اظهر لئالئه...سیفن ما ترونه الیوم و تنوحون عل ما فرّطتم ف جنب الله .٥٢**

**حضرت بهاءالله**

ووایه!اې دعلماؤ ډلې!دخدای دامر په وړاندې،انصاف نه کارواخلئ .اوهغه دلیل اوبرهان چې له تاسې سره دی. هغه راوړئ . له خدایه وویرېږئ. اوله هغو خلکو مه اوسیږئ. چې دخدای په عذاب اخته شوي دي. نن ورځ هغه ورځ ده. چې دپوهې اودانش دریاب غږ کوي. دوجود په ساحل کې دردانې اچولی دي ...زر دی هغه څه چې نن ګوری،

❖ په همغه ترتیب چې ددې کتاب په پیل کې ذکر شو ،په سلهاو لويو علماؤ په حضرت باب او حضرت بهاءالله ايمان راوړ، په همدا سې يو حالت کې داډول علماپه اقليت کې ؤ اودي.



نابودې اوفناته ورسي، اودخدای دامر په وړاندې دخپل قصور په خاطر په چغو او سوروبه پيل وکړي.
**دګمراهې علتونه همیشه وه، اووي به .امّا وای پر هغه چاچې د]خلکودګمراهې] سبب شو.**
**پيشوايانو په باره کې چې دهر ائین څخه وي صدق کوي:**
**حضرت**
**مسيح لوقا انجيل:١٧فصل،١-ايت**
**ددستورانو کردار خلک له کردګاره لرې کړي دي.داړتياو په ځای ،حرص اوطمع ښکاره ده**

**...ګمراه دي اوخپل ځانونه دلارۍ والا ګڼي.۵۳**
**حضرت بهاءالله**

دعلم څخه مقصد، دخدای پیژندنه ده. هغه کسان چې دپروردګار دعظمت او لویوالی د«دیدار» څخه دهغه په رالیږونکو کې عاجز دي عالمان نه دی:
**که په هغوۍ کې دعلم جوهروي ، هیڅکله به دالله دظهور څخه په پردو کې نه پاتې کیدل.۵۴**
**حضرت باب**

**هغه عالمان چې په شرعي مسایلو کې تراوسه هم په شک کې دي ، څنګه کولای شي. دالهي اصولو په مشکلو او مبهمومسایلوکې اودقدسیه کلماتو داسرارو په جواهرو کې دعلم اظهار وکړي.۵۵**
**حضرت بهاءالله**

دمذهبي علماو او پیشوایانو لپاره ، دقتل ورکولو فتوا ډیره اسانه ده .حضرت سیدالشهدا اوحضرت باب دهغوۍ په فتوا سره په شهادت ورسیدل . دحضرت مسیح په شهادت کې هم مهم سهم لرل ، زموږ په عصر کې دمذهبي علماو او پیشوایانو ناسمې کړنې خپل اعلی حدته رسیدلې دي . درسول اکرم دا حدیث په ډیرو اسلامې مراجعو کې تائید شوی دی . په کتاب دایقان کې ، هم حضرت بهاءالله دهغه حدیث یوه برخه رانقل کړې ده :

**سياتـ□ علـ□ امتـ□ زمان لا يبقـ□ من القران الا رسمه ولا من الا سلام الا اسمه يسمون به وهم ابعد الناس منه، مساجدهم عامره وهـ□ خراب من الهدى فقهاء ذالك الزمان شر الفقها تحت ظل السماء منهم خرجت الفتنة واليهم تعود .٥٦**



---

---

زما په امت به داسې وخت راشي. چې دقران څخه به هيڅ شی پاتې نشي. په غير دتورو څخه ( قران ته به اعتنانه کيږي)، اوداسلام نه څه نه پاتې کيږي. مګر يو نوم ئې. په مسلمان به يادېږي اوحال دا چې داسلام څخه به ډير لرې وي. (داسلام څخه به بوې نه

وړي).جماعتونه به ئې ابادوي ،ولې دخلکو داصلاح اوهدايت له نظره به ديوې خرابې نه زيات نه وي .
دهغه وخت فقهابه شرير ترين اوبدترين فقها وي، داسمان دچترلاندې . هغوې به فتنې جوړوي. هغه به بيرته هغوې ته ورګرځي.
مذهبي ډير عالمان به ددې دنيا راحت ته دعقبی په نعمتونو ترجيح ورکوي:
**خدايه په غير دهوا اوهوس بل څه پيدا نه کړل،اوپه غير دسرو اوطلاو څخه ئې په مذهب کې بل څه پيدا نه کړل.٥٧**
**حضرت بهاءالله**
داايت زمونږ دعصر خلکو پورې تړلی دی:
**فَقَالَ الضعفَاء لِلذِينَ اسْتَكْبَرُواْ انا كُنا لَكُمْ تبَعًا فَهَلْ انتُم مغْنُونَ عَنامِنْ عَذَابِ اللهِ مِن شَيْءٍ قَالُواْ لَوْ هَدَانَا اللهُ لَهَدَيْنَاكُمْ سَوَاء عَلَيْنَآ اجَزِعْنَا امْ صَبَرْنَا مَا لَنَا مِن محِيصٍ .**

**دابراهيم سورت،٢١-ايت** وروسته له مرګه( پيروان) (پيشوايانو) ته وائي:مونږ ستاسې پيروان ؤ . کولی شي داسې يوکاروکړئ. چې مونږ دخدای دعذاب څخه خلاص کړی؟هغوې ځواب ورکوي: که خدای مونږ ته هدايت کړی وی. البته مونږ به هم تاسې ته هدايت

کړی ؤ( اوس کار له کاره تیر شوی دی.) که صبر ونه کړو، او یائې وکړو څه فرق نه کوي، اوس«زمونږلپاره دتیښتې لار نشته دی.»
وروسته «شیطان»دهغو پیشوایانو لخوا دنماینده په توګه دهغو مقلدو اوګمراه شووپیروانو ته دارنګه وائي:

---

❖ پخپله اصل حدیث اودهغه ترجمه عیناً له دې اسلامې سایت څخه نقل شوې ده:

http://www.askquran.ir/showthread.php?p=17 1401

دایقان کتاب ۱۶۴مخ ته مراجعه وکړئ.

**وَقَالَ الشيْطَانُ لَما قُضِيَ الامْر ا ن اللهَ وَعَدَكُمْ وَعْدَ الْحَقِّ وَوَعَدتكُمْ فَاخْلَفْتُكُمْ وَمَا كَانَ لِيَ عَلَيْكُم مِّن سُلْطَانٍ الاان دَعَوْتُكُمْ فَاسْتَجَبْتُمْ لِي فَلاَ تَلُومُونِي وَلُومُواْ. دابراهيم سورت، ۲۲-ايت**

کله چې « امرتحقق پيداکړ.»( دپروردګار وعده سرته ورسيده). شيطان وويل : پروردګار تاسې ته سمه وعده درکړې ، ولی ما پخپله وعده وفا ونه کړه . ماپه تاسې تسلط نه لرل. په غير له دې چې تاسې مې دعوت کړې، او تاسې ومنل . پس زما دملامتيا په ځای خپل ځانونه ملامت کړی . زه نشم کولای ستاسې فرياد اوچغې کمې کړم. اوتاسې هم نشي کولی زما فرياد او سوری کمې کړی.

دپروردګار دائين دمنکرينو ژړا او فرياد دمرګ په وخت کې او وروسته له مرګه ،دحضرت بهاءالله په ايتونو کې هم تائيد شوې ده . ځکه دهغو منکرينو روح ناڅاپه پوه شي. چې څومره نعمتونه او بخشونه ئې له لاسه ورکړي دي:

**حين الاحتضار يعرفون مافات عنهم و ينوحون و يتضرّعون ...۵۸ حضرت بهاءالله**

دمرګ په وخت کې هغه روحونه کوم څه ئې چې دلاسه ورکړي دي. پرې پوه شوي دي. په ژړا او فرياد شروع وکړي...

تولو اسماني کتابونو شهادت ورکړی دی. چې دمؤمینانو برخلیک په همیشني جهان کې له خوښیو ډک وي. او دمنکرینو سرنوشت برعکس له غمونو ډک وي . مونږ ته په دې ماجرا کې کوم اختیار نشته دی . پروردګار به دارنګه غوښتي وي.
دااخطار دپروردګار دلورې، نه باید نادیده وګڼل شي.
**ګمراه خلک ویرې،اضطراب اووحشت نیولی وي. چې دتصور نه پورته وي. نیکمرغه دي هغه څوک چې دادیانو دمالک دعنایت دلاسه ئې دباقي ایمان شراب واخیستل او وئې څکل .۵۹**
**حضرت بهاءالله**

---

- د«**قُضِیَ الْاَمْرُ**»اصطلاح (امر تحقق پیداکړ.) په قران مجید اوددې ائین په اسماني ایتونو کې دپروردګار وعدی تحقق ته داشارې په توګه، په دې عصر کې په کراتو راغلې ده.
- ،صَریخ، صراخ :فریاد اواستغاثه کول، کمک غوښتنه.

---

حضرت بهاءالله فرمائې که د اسرارو پرده لرې شي،دجهان خلک دهغه مقام په ليدو سره چې مؤمنينو ته ورکړل شوی دی، بې هوشه شي.
راتلونکی وينا وښائي، چې د ظالمانو برخليک اود رښتينو مؤمنانو برخليک څومره يوله بل سره توپير لري:
**خدای ته دورتګ اودمرګ رازونه پټ وه اووي به. په خدای قسم دی که ښکاره شي ځنې به له ويرې اوغمه هلاک شي،اوځنې به په داسې شان خوښ شي چې هره لحظه به دخدايه مرګ وغواړي. دايمان راوړونکوته مرګ خوښي وربخښي او خوشحالي ور راوړي، اوهميشنې ژوند وربخښي. دروح جام دی، دمخصوصو کسانو لپاره چې دپيدايښت دثمرې څخه چې دحق جل جلاله په عرفان اوپيژندنه ئې برى ترلاسه کړی دی.دې مقام ته ځانته بيان اوځانته ذکر دی.العلم عندالله ربّ العالمين. ۶۰حضرت بهاءالله**
دخبرواووېناو مهمه نتيجه د شيطان ( ګمراه پيشوايان) اوپيروانو ترمنځ دانسان دازادې ثبوت دی . دامکالمه

وښائي. چې هر فرد باید پخپل کوښښ سره موعود وپیژني ، نه د هغه، اوده دوینا په منلو سره. په ځانګړې توګه هغه خلک چې خپل صفتونه ئې « ضاله مضّله» دې ائین پیروانو ته نسبت ورکړی، اوورکوي . داخلک په مخکنیو ایتونو کې شیطانان اوپه نورو ایتونو کې فاسقان نومول شوي دي . دهغوې ډیر د ردیه لیکونکو دډلې څخه اودجاه طلبو خودخواه پیشوایانو څخه دي. چې کوشش کوي. په «خوله» سره په ( دروغو او تهمتونو) جهان ځلوونکی لمر له ځلا او روښنائې څخه لرې وساتي . حضرت بهاءالله دابیت په دی هکله نقلوي:

**کز حسد پوشند خورشید تورا** ... **ه ها**

---

- ❖ **لو کشف الغطاء لینصعق من فی الاکوان من مقامات الّذین توجّهوا الی الله و انقطعوا فی حبّه عن العالمین .** **د حضرت بهاءالله داثارومنتخبات، ۱۲۵مخ**
- ❖ دربښتینو مؤمنانو لپاره مرګ، دژوند دجام په څیر دی.
- ❖ ددې اسرارو علم دپروردګار، دجهان خالق سره دی.

دخبرو په پای کې ، ګمراه کوونکی پیشوا، ګمراه
کوونکي پیروته داسې وائې:
**انِّي كَفَرْتُ بِمَآ اشْرَكْتُمُونِ مِن قَبْلُ .**
**دابراهیم سورت،۱۴-ایت** په یقین سره
هغه څه چې له مخکې زما په اړه خدای ته نسبت
ورکول انکار کوم.
ښکاره ده. چې خلکو به پیشوایان ددین اوایمان له
نظره په لمړی صف کې حسابول ، اوهغوې به ئې
دخپل ځان لپاره همیشني جنت ته خپل رهنمایان ګڼل ،
بې له دې چې دداخل څخه ئې باخبره وي. اوپوه شي.
چې هغوې دوزخ ته اودخدای څخه لریوالی ته سوق
اولیږي.

وروسته پروردګار ظالمانو ته یعنی هغو کسانوته چې دنورو دانکار موجب او سبب ګرځي. ددردناک عذاب وعده ، اودنوي ائين دمؤمنينو لپاره دجنت وعده ورکوي.

حضرت بهاءالله فرمائي: چې زمونږ دعصر ډير خلک مشرکان دي ، اما ديکتا پرستې چغې وهي ؛خپلو خيالونو اوتصورونو ته سجده کوي ، اوهغه ته دحقيقت نوم اخلي. ؛اغزو ته ګوري اوهغو ته دګلانو نوم اخلي . ۶۱ په دې کې مشرک هغه څوک دى چې خپل ځان خداى ګڼي. دخپل خالق سره دخبرو په ځاى دخپل ځان سره خبرې کوي . اوريدونکى دهغه نفس اودهغه غوښتنې دي، نه د هغه پروردګاراوخالق.

ددې ايت په معنى کې فکر وکړئ:

**افَرَايْتَ مَن اتخَذَ الَهَهُ هَوَاهُ وَاضَلَهُ اللّٰهُ عَلَى عِلْمٍ وَخَتَمَ عَلَى سَمْعِهِ وَقَلْبِهِ وَجَعَلَ عَلَى بَصَرِهِ غِشَاوَةً فَمَن يَهْدِيهِ مِن بَعْدِ اللّٰهِ افَلَا تَذَكرُونَ . دجاثيه سورت،۲۳-ايت**

ايا ددې ليدل هغه څوک چې خپل ميل ، هوا اونفس ئې خپل خداى ګڼلې دى؟خداى هم دهغه دعلم، دهغه دګمراهې سبب وګرځيدل. اوپه زړه اوغوږونوئې ورته مهُر ووهل. اوپه سترګو ئې ورته پردې واچولې

.په غیر دخدای نه بل څوک دهغه په هدایت کولو قادر دی؟آیا پند نه اخلی؟

مخکنې ایت مونږ. ته دوه درسونه رازده کوی:

- خپل میل ته اتکاء ، بې له دې چې په خدای اتکاء وکړي ،داشرک دی. اوګمراهې ده.



---

---

- که علم دعجزی سره یوځای نه وي ، دکمک اومرستې په ځای دخلکو سره دهغوې دګمراهې سبب کیږي.

حضرت بهاءالله نالایقو علماؤ ته دارنګه خطاب کوي:

**اې په علم مشهورو جاهلانو!ولې په ښکاره سره د شپانه دعوه لرې اوپه باطن کې زما دپسونو لپاره ځناور ګرځیدل یاستې؟ ستاسې مثال دسهار دراتګ نه مخکې ستوري په شان دی. چې په ښکاره سره روڼ**

**ځليږي اوپه باطن کې زماد ديار اوښار دکاروانونو دهلاکت اوګمراه کولو سبب کيږي.۶۲**
**حضرت بهاءالله**
**جهل ته ئې دعلم نوم ورکړی دی.اوظلم ته ئې دعدل نوم ورکړی دی.۶۳حضرت بهاءالله**
زردشتي پيشوايانو ته ئې په پارسي سره ( په ايرانې خالصه) ژبه دارنګه ځواب ورکړی دی:
**ووايه!اې دستورانو!له خوبه پورته شئ. اوله بې عقلې څخه عقل ته راشئ. اودبې نيازه اواز دزړه په غوږونو واورې،اوهغه څه چې دخدای دورځې سزاوار اولايق دی رفتار وکړئ. نن ورځ مشر هغه څوک دی چې وليد اوپوه شو، اووړوکې هغه څوک دی چې ددانا وينا ئې پيدانه کړه، اونوې دوست ئې په نوي جامه کې ونه پيژندل .دپوهې درياب ښکاره دی دليدنې لمرڅرګند دی. واورئ، دپاينده ويونکې غږ اوخپل ځان دهغه څه چې لايق نه دی پاک کړئ. ترڅو دپروردګار ددرګا لايق شی.۶۴ حضرت بهاءالله**
راتلونکی ايت مونږ ته رازده کوي. هغه علم چې دغرورسره ککړوي. دګمراهې سبب دی. ډير عالمان پخپل علم داسې وياړي. چې دفارسي په اصطلاح کې ( ازخودراضي شود) له خپل ځآن نه راضي شي:

**فَلَما جَاءتْهُمْ رُسُلُهُم بِالْبَيِّنَاتِ فَرِحُوا بِمَا عِندَهُم مِّنَ الْعِلْمِ وَحَاقَ بِهِم ما كَانُوا بِهِ يَسْتَهْزِؤُون .سوره غافر، آيه ٨٣**

کله چې دهغوې پيغمبران ددليل اوبرهان سره هغوې(علما اوپيشوايانو)ته راغلل ، هغوې دخپل علم په خاطر راضي اوخوشحاله ؤ.امّا هغه څه ئې چې مسخره کول، باالاخره دهغوې سره راګيرشول(په مجازاتو واغوښتل).



---

«په خپل علم راضي اوخوشحاليدل» دتکبر اوغرور دپردې تار اوپود دی. هغه پرده چې علما دحقيقت دليدلو څخه لرې ساتي . دپروردګار اودهغه دپيغمبرانو دپيژندنې لازمه خضوع او عاجزي ده:

**انمَا ي ؤْمِنُ بِآيَاتِنَا الذِينَ اذَا ذُكِّرُوا بِهَا خَروا سُ جدًا وَسَبحُوا بِحَمْدِ رَبِّهِمْ وَهُمْ لَا يَسْتَكْبِرُونَ .**

**دسجده سورت،۱۵-ایت** یواځې هغه کسان زمونږ دایتونو ګرویدلی شي. چې هغه واوري ، خپل پروردګار ته په سجده کولو دهغه ستاینه اوعبادت وکړي .په هغو کې دتکبرنښانې نشته دي.
**هغه حقیقت عاجزو خلکو ته زده کوي اوهغوې ته سمه لار وښائي.**

**مزامیر:۲۵فصل،۹-ایت**
**پروردګارعاجز خلک پورته کوي اوبدخویه خلک په ځمکه ګذاروي.**

**مزامیر:۱۴۷فصل،۶-ایت**
**دعلم اودانش له مجلس څخه د خلوت غیبوکور ته لاره نه وه. اونه به وي.۶۵**

**حضرت بهاءالله**
ډیر خلک په دې باور دي چې هر حاخام ، موبد، کشیش یااسقفي چې ښکلې لباس واغوندي، اوهراخوند چې اوږده چپن واغوسته اودنعلین پڼې ئې په پښو کړی. اوعربي زده کړي. اویا داجتهاد درجه په لاس راوړي، اود«الازهر»یا کوم بل مشهورپوهنتون ته

لاړ. دپروردګار دوفادارو مؤمنانو څخه دی . داهغه
تصور دی. چې کوم اساس نه لري. اویوخام خیال دی.
چې همیشه دخلکو دایمان دسقوط اودخدای څخه دهغو
دلریوالي سبب شوی دی.  څومره ډیر علما او فقها
اومجتهدین دي. چې دوخت په علومو کې ترهرچا
دمخه وي. اما دایمان دقیمتي ګوهر یوه ذره ئې هم نه
وي. ترلاسه کړې. اونه به ئې هم ترلاسه کړي ،
اوڅومره ډیر خلک دي. چې یوه کلمه ئې په مدرسه
کې نه وي زده کړي ،اما زړه ئې داسې صاف وي.
اوروح ئې د مینې به رڼا روښانه وي. چې دپروردګار
کلام په همغه لحظه کې پیژني اودزړه له کومي ئې
مني.
دالهي کلماتو فهم ....په ظاهري علومو پورې هیڅ
اړیکه نه لري .داد زړه په صفا ئې پورې ...اودروح
په پاکوالي پورې مربوط اواړوند دی.۶۶
حضرت بهاءالله

 ۲۷فصل:دپیغمبرانو دعوت ته دخلکو
بې اعتنائې علتونه

**دمؤمينانو يوه ډله ، دايمان نښانه دلمونځ كوونكو په تندېه كې اويادهغوپه پكړې ،دلاس په همسا اوتسبوكې ګوري . داخلک ددې حقيقت څخه غافل دي. چې عبادت دعدالت او حقيقت سره دميني مه واره ،دريا نښانه ده ،نه په خداى دايمان نښانه .دامام حسين ځني دښمنانو چې دهغه سره ئې په جنګ شروع وكړه ، په كال كې درې مياشتې روژه نيوله او شپه اوورځ ئې دقران تلاوت كول.۶۷**

**ان لا تعتنواالّذين يدّعون العلم فی انفسهم ولا يخافنكم كبر عمائمهم وتحرّک السنتهم وتنعرّهم حين ينكرون الفيض من هذاالسّحاب المشرق المرتفع العزيز المنير . ٦٨**

**حضرت بهاءالله**

هغه چاته چې دعلم دعوه لري اعتنامه كوې . دغتو پګړيو اوغټو خبرو څخه په داسې حال كې چې ددې لوړ، روښانه اوعزيز فيض اوبركت څخه منكر دي. مه ويريږئ.

**قل إنّ ا لاعراض من كلّ معرض منادٍ لهذا الأمر و به انتشر أمرُ الله و ظهورُه بين العالمين . ٦٩**

**حضرت بهاءالله**

ووايه!په يقين سره هرمنكر اومخ اړونكى ددې «امر» غږ پورته كوي. اوظهور ته ئې دخلكو په منځ كې انتشار وركوي.

ايا له دې حيرانوونكې پيښې بله كومه انګيزه تصور كولى شى ؟چې دلوې علماو ، فقهاو اومجتهدينو له ډلې څخه ،په دې ائين دايمان په خاطر ، له هر راحت ، عزت اونعمت څخه تير شول ، هره بلائې په ځان ومنله ،اوباالاخره ئې په پوره ډاډ اوعشق اوايمان سره ئې دزمان دموعود څخه خپل ځانونه فدا اوقربان كړل. دهمغو علماو يوې بلې ډلې دهغو مؤمنينو وژنه خپله لازمي وظيفه وګڼله . څه سبب ؤ؟ددې دواړو ډلو څخه په كومه يوه ئې باور كولى شى؟ په هغو چې دحقيقت په لاره كې له هرڅه څخه تير شو ، اويا هغه چې دراحت عزت او نعمتونو كې كښيناستل اودهغو عاشقانو دوژنې فتوا ئې خارله؟دايمان كور، دپاك اوله مينې ډک زړه دى. نه دعلم اودانش نه ډک مغز ،فكر رهنما دى ، نه دلارې مقصد . كه زړه ككړتيا پيداكړي. قدرت ،ډيروالى اوروښنائې دليل ګڼه نشي

کیدلی . ځکه دعشق اوداېمان رڼا هیڅکله دتعصب اوغرور دپردې څخه تیریدلی نشي.



---

که دمقلدو پیروانو اودهغو دپیشوایانو څخه تیرشو. دپروردګار اودهغه داخرت له سرای څخه منکرانو ته نظرواچوو . ولې ځنې خلک دپروردګار په وجود اودهغه په همیشنی جهان ددلیل اوبرهان له اوریدلو څخه وروسته دایمان اواقرار څخه ډډه کوي؟ ددې کار ریښه څه ده؟ دالاندې ایت دې پوښتنې ته ځواب وائي:

**فَالذِينَ لاَ يُؤْمِنُونَ بِالآخِرَةِ قُلُوبُهُم منكِرَةٌ وَهُم مسْتَكْبِرُونَ**

**دنحل سورت، ۲۲-ایت** .

هغه خلک چې په همیشنې جهان ایمان نه راوړي، دهغوې زړه دهغوې دانکارسبب دی.هغوې مغروره اوکبرکوونکي خلک دي.

زمونږ دروح زړه ، زمونږ دجسد دزړه په شان دی. که دسختې خواته ولاړ شي. علاج ته ئې اړتیا ده.
دپروردګار اودهمیشني جهان منکرانو بیماری (ناروغي) په اوله درجه دهغوې کبر او غرور دی. ځنې خلک دپو هنتون په زده کړوکې لوړو درجوته رسیدلي دي. دجهان په خالق ایمان راوړل کوم اړتیا نه ګڼي.دساده دلو خلکو یوه ډله هغوې ته دپیشوا اورهنما په نظر ګوري . اودهغوې څخه په تقلیدپیل کوي ، غافل له دی نه چې دخدای کور، عاجز اوپاک زړه دی. نه ددنیا دعلم اوپوهې څخه اکنده مغز.(یعنی ډک شوی مغز) . څومره ډیر علمونه اوپوهې دي، ددې په ځای چې زړونو ته نرمې اوپاکوالی اوپراختیا وروبخښي. دهغو دزړونو دتنګتیا اوسختې سبب شي .
دپروردګار له نظره سخت زړو اوکبرجنو خلکو ته کوم اعتبار اولوړتیا نشته دی:
**انهُ لاَ یُحِب الْمُسْتَکْبِرِین .**
**دنحل سورت،۲۳-ایت**
پروردګار دمغروروا‌وکبرجنو خلکو سره مینه نه لري.
دپروردګار دشهادت په اساس یوشوم برخلیک ددې خلکو په انتظار کې دی:
**فَلَبِسَ مَثْوَی الْمُتَکَبِّرِینَ .**
**دنحل سورت،۲۹-ایت**

دکبرجنو خلکو مأوای اومنزل څومره بد اوخرابه دی.

۸۲۱ ۲۷فصل:دپیغمبرانوبلنې ته دخلکودبې اعتنائې علتونه

---

---

مخکېني ایتونه یوځل بیامونږ ته رازده کوي. چې دپروردګار په اړه ، لازمې شرط عاجزي ده . څنګه ممکنه ده. چې کبرجن زړه، دروح اود زړه جهان ته لارپیداکړي ؟ آیا دعاجز زړه لپاره پوهنتون لازم دی؟

حضرت بهاءالله فرمائي: د«علم» هدف «معلوم» ته رسیدل دي . په دې قیاس سره د«عاشق»هدف په غیر دمعشوقې رسیدلوته نور څه دي؟ هغه دانشمندان چې له دې دینا څخه بې ایمان ځي ، دهغو مسافرو په څیر

دي. چې عمر ئې په مسافرۍ کې تیر شي ، بې له دې
چې دخپل مقصد ښارته ورسي. اودخپل معشوق څخه
نښانه پیداکړي.

## په څناورو باندې دانسان دبرترۍ

## میزان ،عقل اوپوه ده

**«دانسان عقل...الهي لويه څلا ده» ٧٠ «عقل دکائناتو اشرف دی» ٧١حضرت عبدالبهاء**

**باید په هروخت کې خپل رب ته پناه یووړل شي. چې نه باید دجهل لښکرې، په علم اوعقل غلبه پیداکړي. اودګومان دجنود لښکرې په یقین غالبې شي.٧٢حضرت بهاءالله**

دانسان اوجهان دښکلا رمز، په تنوع اوتفاوت کی دی . ددې تنوع منشاء دانسان خلقت ، ازادې، ایمان او وجدان دی، چې دعقل اوتفکر دقوې په اساس متکي دی . که تنوع نه وی ، ژوندون به ښکلا اوځلا نه لرلی . ازادي دعقل اوخرد څخه مه واره لیونتوب اودیوانګی ده . اوعقل اوخرد دازادې مه واره غلامي اوبنده ګي ده .څنې له خلکو ، دازادې له سرمائې نه دخپل ځان لپاره یواځې بلا ګانې اوبدې اخلي .
داغافلان ، دخپل روح پانه په داسې دروغو اوګمانونو

ککړه کړي. چې په هغه کې دلیکلو ځای نه پاتي کیږي . دخلکو بله ډله دخپل روح مقام او نیکي پیژني .
پروردګار هیڅکله هغه لوي ارمغان او هغه پاکه اوسپینه پاڼه دنادانو اومتعصبو خلکوپه اختیار کې نه ورکوي.
ترڅو دهغوې همیشني برخلیک دریا اوغرور په قلم په هغه پاڼه ولیکي.

قران اوبهاءالله



---

دامؤمینان ترڅو وینا دفکر اوپوهې په رڼا کې ونه سنجوي. اودهغه دلیل اونښانه ئې نه وي پیداکړي.
دخپل روح په پاڼه ئې نه لیکي.

دهغې جملې نه دپیدایښت اسراردادي، چې پروردګار دهرشي لپاره «ایت»اویا «نښانه»پیداکړې ده. اومونږ ته پند راکوي. چې د ژوند ټولو کارونو کې دې نښانو ته توجه وکړو.لمر، ستورې ، سپوږمې اواسمان داټول دپروردګار دقدرت اوحکمت اوښکلا نښې دي. دهغوې په وجود کې فکر کول مونږ خدای ته رسوي. ډیر خلک دي چې خپل ځان ته فرصت نه ورکوي. ترڅو په الهي ایتونو کې تأمل اوفکر وکړي . یوه بله ډله هغه «ایتونه»او«نښانې»نادیده ګڼي. اوله نظره ئې غورځوي.

داغافلان دقران دشهادت په اساس دپروردګار درحمت او فضل څخه بې برخې دي . که دهرشي لپاره «ایت»او«نښانه»شته ، ښه ده چې پوښتنه وکړو. د«رښتینې مؤمین»لمړنې نښانه څه ده؟ددا سې یو مؤمین لمړنې نښانه ددې اصولو پیروي ده:

- دازادې اصل:دتقلید محکومول چې دازادې ،ایمان اووجدان مخالف دی.
- دفکر اوعقل اصل:عادلانه تحقیق په ټولو کارونو کې په خاصه توګه په اسماني اووجداني کارونو کې چې همیشني نتایج لري.

په عادي او روزمره کارونو کې دوه اصله چې زمونږ دانسانیت ښکاره نښې دي. محترمې ګڼو . مثلاً که

ځوک په چاتهمت وتړي . پوښتنه کوو«ستا دلیل څه دی؟ له کومه ځایه پوهیږې؟»اما ددین اوایمان په کارونو کې داقانون عالباً نادیده نیسو .مثلاً که تاسې دسلو نفرو څخه چې دمختلفو دینونو پیروان دي پوښتنه وکړئ:«په څه دلیل دې خپل دین منلی دی؟کوم ایتونه او یانښانې ستاسې ددین په حقانیت شهادت ورکوي؟».



---

---

اووروسته وګورئ چې څونفرو له هغوې څخه ، خپل دین ددوه اصلونو په اساس «ازادې تفکر اوتحقیق »له

مخې منلى دى. شايد دداسې مؤمينانو شماره په سلو
کې ديو څخه هم کمه وي. دتاريخ دشهات په اساس
ددين څخه پيروي، هميشه يو ميراثي امر ؤ ، په همغه
ترتيب چې خلک جسماني خاصيتونه په ميراث اخلي.
خپل دين هم په ميراث کې اخيستى اواخلي .
دقران دايتونو له مخې ،ديوامر منل وروسته دتحقيق
څخه دعقل اوخردنښانه ده، اودامر بې له تحقيق څخه
منل دعقل دکموالي نښانه ده .(دزمرسورة،١٨-
١٧،ايتونه)پرځناورو زمونږ دبرترې اوانسانيت لمړنې
نښه ،زمونږ دعقل اوتفکر قوت دى.که له دې قوت
څخه کار وانخلو له ځناورو څخه ټيټ اوپست يو. ځکه
هغوې هغه څه چې نه لري. په کار ئې نه وړي
،اومونږ هغه څه چې لرو په کارئې نه وړو.
دحضرت بهاءالله داوينا په( خالصه ايراني ژبه ) چې
څو وارې په دې کتاب کې تکراري راغلې ده ، ډيره
ښکلي ده:

**عقل وائې : (هرڅوک چې ما نه لري،هيڅ نه لري.دهرڅه نه تير شي، اوما پيداکړې.زه ليدونکي لمر يم، اودپوهې درياب. پژمرده تازه کوم، اومړي ژوندي کوم).** ٧٣

**حضرت بهاءالله**

**په انسانې عالم کې دعقل نه لوی بخشش نشته ...عقل ددرک کولو میزان دی .په دې خاطر هره مسئله دعقل په تله اومیزان وتلی.۷۴**
**حضرت عبدالبهاء**

که دفکر ،پوهې اوعقل قوت چې دالهي دلویو بخششونو څخه دی په کاروانه چوو ، دپروردګار په وړاندې مسئول یو . دامسئولیت ترهغه حده دی. چې بې له فکره یوه خبره نه باید په ژبه راوړو.

دحضرت عیسئ دااخطار هرمؤمین باید خپله رهنما وګرځوي:

**خلک چې هره کلمه بې له فکره په ژبه راوړي،دهغې حساب به په ورځ دمحشر ورکوي.**
**حضرت مسیح: انجیل متی:۱۲فصل،۳۶ ـ مخ**

## له هغه چا پوښتنه وکړئ،

## چې پوهيږي.

ددې لاندې ايت په معنا کې فکر وکړئ. ترڅو د«دليل غوښتلو»او«نښانې پيداکولو» دلزوم په اهميت پوه شی. او دغفلت په عواقبو اوددې ميزان په کارولو سره چې زمونږ دانسانيت علامه اونښانه ده. اګاه شی . داايت هغه خلکو ته اشاره ده. چې فاسق اوبې وجدانه دي. چې بې له کوم دليل اوبرهان څخه بهائې ائين دروغ ګڼي ، اودهغه په ردولو کې کتابونه ليکلې دي. اوډير دروغ ئې ويلی دي. ډيرو مسلمانانو دپروردګار دائين ددښمنانو وينا بې له کومې څيړنې اوجستجو منلې ده ،اوبهائيان ئې يونادان قوم اوګمراهان ګڼلې دي اوګڼې ئې .

**يَا ايهَا الذِينَ آمَنوا ان جَاءکُمْ فَاسِقٌ بِنَبَأٍ فَتَبَينُوان تُصِيبُوا قَوْمًا بِجَهَالَةٍ فَتُصْبِحُوا عَلَ مَا فَعَلْتُمْ نَادِمِينَ .**

**دحجرات سورت، ۶-ايت** اې مؤمينانو**!**که يوفاسق شخص تاسې ته خبر راوړي ، دليل ترې وغواړئ (ښه تحقيق وکړئ)نه بايد چې يو قوم نادان اوناپوه وګڼو(بې له کومه دليل څخه)اووروسته سخت پښيمانه شی .

دلغاتودفرهنګ له مخې «فاسق»یعنی:بدکار دربنتینې لار څخه اعوبنتی اومنحرف ، داکلمه هغو خلکو ته په اشارې سره کارول شوې ده. چې په دروغو دالهي ائین حقیقت دنورو څخه پټوي . ردیّه لیکونکي له دې ډلې څخه دي . دمسلمانانو اومسیحي علماو اوپیشوایانو دنورو دینونو دردولو په باره کې دهغې جملې نه دبهائې ائین په ردولو کې کتابونه لیکلي دي.
په مبارک ایت کې فرمائي که دیو فاسق شخص څخه کوم خبر واوریدل ، دلیل وغواړې اوبې له جستجو څخه قضاوت مه کوې. مبادا ، یوه ډله دکوم ائین دپیروانو څخه نادان وګڼی. ډیر خلک ددې په ځای چې دنوي ائین دحقانیت نښانې دهغه (ائین) دمؤمنینو څخه پوښتنه وکړي.

---

"**فَتَبَيَنَّوا» دمهمو** کلمو څخه ده. چې څو ځلې په قران کې راغلې ده ، په دی معنی چې : ښه رسیده ګې وکړئ، په دقت سره تحقیق وکړئ ، روښانه دلیل وغواړئ.
(۹۴: ۴)دبهائې ائین په ایتونو کې د «تحری حقیقت» (دحقیقت پیداکول) په همدې معنی راغلی دی.

دهغه ائین دمنکرینو څخه اوپه خاصه توګه دخپلو پیشوایانو څخه پوښتنه کوي. اوبې له تحقیق او جستجو دهغوې قضاوت مني.
نږدې دوه پیړیو ته رسیږي. چې دلوی پیغمبر دپیداکیدو خبر له ایران څخه دایرانیانو اودجهان نورو ملتونو غوږ ته رسیدلی دی. دهغو له منځه کومو خلکو چې داخبر اوریدلی دی ، څو په سلو کې په تحقیق او جستجو پیل کړی دی. اوله بهائیانو څخه ئې ددلیل اونښانې غوښتنه کړې ده ؟ دمسلمانانو علماو اوپیشوایانو نه چې همیشه ئې قران ویلی اووائې څو په سلو کې ددې ائین له مؤمنینو څخه دقران دحکم ایتونه غوښتي دي ؟ څو په سلو کې پوښتنه کړې ده : ددې « خبر» دسمون اوربښتینولی نښانه اودلیل څه شی دی؟
یوائځې دحضرت باب درسالت په دوران کې نږدې (۴۰۰)تنو دمسلمانانو لوی علماو چې په تقواکې دټولو په سرکې ؤ. په هغه حضرت ایمان راوړی دی.
دهغوې دتقوا اوپاکې درجه په داسې حد کې وه. له هرراحت څخه تیر شو. اوهربلا ئې په ځان ومنله .

دهغو لویو علماو څخه ډیرو ددې ائین په حقیقت باندې دخپل ځان نه په تیریدلو سره شهادت ورکړ . دقران دحکم په اساس که یو مسلمان دیو فاسق شخص څخه کوم خبر واوري،باید هغه خبر بې له تحقیق څخه ونه مني. او بلکه د ویونکی څخه دلیل وغواړي. په دې پوښتنه فکر وکړي : آیا ددې لویو علماو اوددې قهرمانانو دتقوای ، علم ، اوحکمت په میدان کې دهغوې ایمان اوشهادت کافی نه دی. چې دجهان ټول مسلمانان دقران حکم اجرا کولو ته واداره کړي؟ آیا دمیلو نهاو کسانو ایمان دپوهو خلکو څخه چې وروسته له ډیر تحقیق اوکوښښ نه ددې « لوی خبر» په حقیقت اودپروردګار له لوري ، ددوه پیغمبرانو په ظهور شهادت ورکړی دی. دفاسقو اودروغجنو خلکو دشهادت څخه کمتردی؟

راتلونکی ایت زمونږ دزمان مسلمانانو دهدایت لپاره نازل شوی دی. هغوې ته زده کوي چې وروسته«دلوی خبر» داوریدو څخه باید په څیړنه اوجستجو پیل وکړي .اودپروردګار دنوي ائین له مؤمنانو څخه دهغه لوی خبر په باره کې نښانې اودلیل وغواړي:

**فَاسْأَلْ بِهِ خَبِيرًا .**
**دفرقان سورت،۵۹-ایت** دهغه په باره کې دهغه
چا څخه پوښتنه وکړه چې پوهیږي.
کوم کسان د«هغه»په باره کې پوهیږي؟ دنوي ائین
منکران اوکه دنوي ائین مؤمینان ؟ توجه وکړئ. چې
دقران په ایت کې نه دی فرمائلي چې که کوم خبر
واوری. دهغه په سم اوناسم باره کې دملاّ اویادمحل
مجتهد څخه پوښتنه وکړئ.نه ئې دي وئلي دحدیثو او
یا دقران داستاذ څخه په عربستان اویا ایران کې
کومک وغواړئ ، یادقران له تفاسیرو څخه لکه
«تفسیر کبیر»سره مشوره وکړئ.پروردګار دتحقیق
مسئولیت دهرفرد پر روح چې دا«لوی خبر» اوري
ایښی دی ،اوله هغه څه غواړي. چې دنوي ائین

دپیروانو څخه دنوي موعود په باره کې پوښتنه وکړي اودلیل اونښانه وغواړي.
مهربانه پروردګار دخپل ټاکل شوی دپیژندنې استعداد خپلو ټولو بنده ګانو ته بخشش کړی دی. دپروردګار دعدالت څخه ډیر لری دی. چې دا استعداد اودالوی افتخار یواځې دعربې ژبې استاذانو ته اویا دفقې اوفلسفې معلمانو اودقران مفسرینو ته بخشش کړي .
دایمان د ارمغان غوښتونکي دعلماو اوپیشوایانو دتقلید په ځای اوپه نورو اتکأ ،باید خپل توانا اومهربان پروردګار ته پناه راوړي. اوله هغه څخه یاري اوکومک وغواړي:
**باید«دربښتینې لارې لټوونکي» په هروخت کې په حق توکل وکړو اوله خلکو ځان وساتو.۷۵**
**حضرت بهاءالله**

## په وینا اوګفتار کې

## مجادله

دخلکو یوه ډله په دې تصور ده. چې دایمان ارمغان په خلکو باندې په یو فشار سره تحمیل کړي. دهغې جملې نه په خبرو کې دمجادلې په وسیله ، دایو خام اوبې مقداره تصور دی.دپروردګار طریقه همیشه داسې وه

اووي به، چې دهغه ائين په محبت اوپند اود«حکمت اوبيان» دلارې دهغه غوښتونکو اوتږو ته وروښايو:

۸۲۷ ۲۷فصل:دپيغمبرانودعوت ته دخلکو دبې اعتنائې علتونه

---

---

**لارې ته هدايت کول دمينې اومهربانې له مخې ؤ ، نه دقدرت او لويوالې له مخې. هذاسنة الله من قبل ومن بعد.۷۶ حضرت باب**

**أن اذْکِرِالنّاسَ بالحکمة و الموعظة و لا تُجادِلْ مع أحد فى أمر ربّک ليتمّ حجّةُ ربّک على العالمين .۷۷**

**حضرت بهاءالله**

خلکو ته په پنداوحکمت سره یادونه وکړه ،اودهیچا سره دپروردګار دائین په باره کې مجادله جنګ ، جګړه ، بحث اوشور مه کوئ. ترڅو دپروردګار دلیل اوبرهان دجهان خلکو ته پوره ورسي.

دمجادلې

هدف،پرنوروبرتري اوځان لوړښودل دي:

**غافلترین بنده ګان هغه څوک دي چې په خبروکې مجادله کوي.اوپخپل ورورځان لوړ ګڼي.۷۸**

**حضرت بهاءالله**

مجادله،په خبروکې رقابت ته ویل کیږي. اودهغې هدف، دسپورټي مسابقو په شان په حریف برتري ترلاسه کول دي.داډول رفتارپه سپورټي مسابقو کې په زړه پورې وي.آیا ددین او ایمان په ډګر کې هم دا کار جائز دی؟

دخبرواو بحث هدف په معنوي کارونو کې ،حقیقت ته رسیدل دي، نه په نورو غلبه اوځان لوړ،وښودل.

مذهبي پیشوایان ،چې دهرمرام اومسلک دي ، دخپل مقام اوقدرت دساتلو په خاطر ، خپلو پیروانو ته زده کړي دي. چې دنوروفکرونو والاو ته درقیب اومخالف په نظر وګوري ،نه دیار او همراه په سترګو چې یو مشترک مقصد اوهدف ته ورسي.

حتی دسیاست په برخه کې چې ددين په نسبت دخلکو
داحساساتو سره کم اغېزل شوي دي، ددوه مخالفو
حزبونو نماينده ګانو ترمنځ مجادله دتوافق اويا تغير
نظر سبب شوې نه ده. اونه به وشي. کله تاسې ليدلې
يا اوريدلي دي. چې يو سياستمدار دمباحثي يا مناظرې
په وخت کې دمخالف حزب مربوط فرد ته ناڅاپه
ووائې:«ما اشتباه کړې ده!» «حق ستاسې دی!»
؟همدارنګه په مذهبي خبرواو مباحثو کې
داديانودپيشوايانو ترمنځ کله هم ليدلی يا اوريدلی دي.
چې يوپيشوابل پيشوا ته ووائي:«زه په اشتباه کې وم!»
تاسې په حقه ياستې!»؟

---

❖ دا د خدای سنت دي. له پخوانه اوله دې نه
وروسته .

که داسې ده ،پس ولی دخلکو په منځ کې مجادله دارنګه په زړه پورې ده ؟په همغه ترتیب چې ورزشي مسابقات په زړه پورې دي . خلک ټول له دې سره مینه لري. چې وګوري. یورقیب ئې ماتې خوري اوبل رقیب ئې مډال په لاس راوړي.دانسان طبیعت له دې احساس سره تړلی دی . دحقیقت په کشفولو کې باید په دې احساس اوتمایل غلبه پیداکړی شي . ځکه زمونږ هدف اوارمان دحقیقت پیداکول دي، نه رقابت. خدای پیژندنه ده، نه د برترې اوقدرت احساس.

دالاندې ایت زمونږ دعصر دخلکو اړوند دی، دهغو خلکو خبر راکوي. چې دبهائې ائین په باره کې دپوهاوي پرته یواځې په هغه څه چې دبې خبرانو څخه ئې اوریدلي دي. ددې ائین دپیروانو سره په مجادله اوړي:

**وَمِنَ النَاسِ مَن يُجَادِلُ فِي اللهِ بِغَيْرِ عِلْمٍ وَلَا هُدًى وَلَا كِتَابٍ منِيرٍ .        دلقمان سورت، ۲۰-ایت**

دخلکو یوه ډله ، بې له دې چې دروښانه کتاب ،علم اوهدایت دارمغان څخه برخمن وي ، دخدای دکلام په باره کې په مجادله پیل کوي.

ځوک په غیر دپیغمبرانو ددرې لویو بخششونو (علم ، هدایت اوروښانه کتاب) لرونکی دی؟ په غیر له زمونږ دعصر ددوو موعودو دپیروانو څخه ،نور کوم کسان دهغوې څخه برخمن دي؟
مخکنې وړاندوینې تحقق پیداکړی دی . ځکه له همغه شروع څخه ، مذهبي پیشوایانو په خاصه توګه دمسلمانانو او مسیحیانو له منځه دبهائیانو سره په مجادله کې پورته شوي دي ، دخپل قدرت دساتلو لپاره او دحقیقت دپټولو لپاره ، خپل پیروان ئې دبهائیانو سره دناستې پاځې اومعاشرت څخه منع کړي دي.

## دالهي سلطنت جشن

همیشني جنت ته داخلیدل اوالهي سلطنت ته په جشن کې ، دعوت نامې اوبلن لیک ته اړتیا ده .بې له هغه بلن لیک څخه پروردګار ته دنږدې کیدلو اوهغه بې کرانه اوپراخه میدان ته ننوتل دهیچا لپاره ممکن نه دی.

که ستاسې دخوښې مراسم لرلی ،تاسې به ناپیژندلي خپل واده ته رابللي وی؟ که تاسې داسې نه وی کړې، خدای ولی داسې وکړي؟دې ایت ته چې څو ځلې په دې کتاب کې تکرار شوې دی. توجه وکړئ:

| **دخدای وعده دربښتینې لارې لټوونکو سره** | **دوعدې دتحقق شرطونه** |
|---|---|
| **وَالذِينَ جَاهَدُوا فِينَا لَنَهْدِيَنهُمْ سُبُلَنّا... دعنکبوت سورت، ۶۹-ایت** هغه څوک چې زمونږ په پیداکولو کې کوښښ وکړي. البته چې هغه به خپلې لارې ته هدایت کړو. | **ا ن اللهَ لَمَعَ الْمُحْسِنِينَ. دعنکبوت سورت، ۶۰-ایت** دپروردګار لطف اورحمت دنیکو کارانو سره دی. |

په اسماني اثارو کې په سلهاو کرته دپیغمبرانودپیژندنې شرایطو خبره رامنځ ته شوې ده. په هغوې کې همیشه دنظر وړ خبره او مطلب دخلکو رفتار اود«زړه خبره» ده .په هغو اثارو کې ، حتی یوځل هم دفقې ،منطق ،فلسفې ،ژبې ،مکتب اومدرسې خبره منځ ته راغلې نه ده .

**فَالذِينَ لاَ يُؤْمِنُونَ بِالآخِرَةِ قُلُوبُهُم منكِرَةٌ وَهُم مستَكْبِرُونَ .**

**دنحل سورت،۲۲-ایت** هغوې چې

دهمیشني جهان څخه منکر دي ،دهغوې زړه دانکار سبب دی ،هغوې کبرجن خلک دي.

**دخدای لاس لنډ نه دی. چې تاسې ته نجات درکړي...ستاسې ګناهونه دهغه صورت له تاسې څخه پټ کړی دی.**

**اشعیا: ۵۹فصل،۲-۱،ایتونه**

په لاندې وینا کې ، حضرت بهاءالله دنیک رفتار دلزوم یادونه کوي. اوددې «راز»اوددې «لوی ورځې» دپیداکولو شرط «پرهیزګاري» ګڼي:

**دپت اوعزت په ساتلو سره دناسموکارونو اوغوښتنو څخه خپل ځانونه پاک کړئ. ترڅو دبې نیازه دورځې رازونه پیداکړئ.۷۹**

## حضرت باب هم همدا

**مطلب يادوي:**

**كذلك نبأ الّذين ترى فيهم خيراً يومئذٍ و كذلك علمهم سبل الحق لعلهم يفقهون . ۸۰**

پس دپروردگار پيام هغو خلكو ته چې په نيكې سنمبال او ښكلي دي ورسوه . او هغوې ته دپروردگار دسمې لارې ښودنه وكړه، شايد پوه شي. اوحقيقت ته ورسي.

**حضرت باب دبيان په كتاب كې فرمائي: چې دپروردگار راليږل شوې په هرحال كې خپلو خلكو ته ناظروي. اوهركله چې ديوه زړه په ائينه كې دايمان استعداد وګوري ، خپل ځانونه دپروردگار په اجازې هغه ته ورپيژني.۸۱**

دالاندې بلنه چې په خالصه ایراني ژبه نازل شوې ده ، یوځل بیا ووائې اودهغه په معنی کې فکر وکړی:

**دپروردګار لمړې خبره داده:چې دالایش اوککړتیا،د خواهش اوغوښتنو څخه په پاکې سینې سره اودپیدایښت درنګونوڅخه په پاک زړه، پوه، لیدونکي اوقدرت والا پروردګار ته راشی.اوهغه څه چې دهغه دورځې وړ اوسزاوار دي.له ځان سره راوړئ...په پاک روح سره عجله وکړئ. شاید ورورسیږی .اوهغه څه چې سزاواراو وړ دي شاید پرې پوه شئ..په درې شیانو دیدار ترلاسه کیږي:دزړه، سترګواودغوږونو پاکوالې له هغه څه چې لیدلی او اوریدلي دي.۸۲**

**حضرت بهاءالله**

دمخکښني کلام په اساس،دپروردګار دیداردې درې شرطونو دسرته رسولو پورې اړه لري:

- دزړه پاکوالی له دروغو ، ریا اونورو ناپاکیو نه.
- دسترګو پاکوالی دظاهري کارونو او ناپایداره روزګار ته دتوجه څخه.
- دغوږونو پاکوالی دخلکو په منځ کې دخپرو شوو ګمانونو اوتصورونو څخه.

په هرځای کې دپاکوالي او صفا خبرې دي:

**ځومره نیکمرغه دي پاک زړي خلک ، ځکه خدای به وګوري .**
**حضرت**

**مسیح انجیل متی:۵فصل،۸-ایت**
**بې د«روح» دپاکوالي به ځوک خدای ونه ګوري.**
**عبرانیان:۱۲فصل،۱۴-ایت**



---

---

هغه ایتونه چې ذکر شو. داوبنائي چې تبعیض لپاره الهي درګاه ته لار نشته دی.
ټول دپروردګار په وړاندې یو شان دي . دایمان لاسته راوړل دخاصو شرایطو دتحقق پورې تړلي دي،اوهرځوک چې هغه شرایطو ته تحقق ورکړي ، دایمان په بنکلا به بنکلي شي . آیا ممکنه ده تصور وکړو. چې حضرت بهاءالله بلنې ته یو ځوک دزړه له

کومې ځواب ووائې او هغه ئې ونه مني؟ دپروردګار فضل او رحمت دومره زیات دی. چې هغه حضرت به متعصب اوبدخویه خلک هم په پوره محبت اواحترام سره منل . هغه چاته په خطاب کې چې دپروردګار بلنه ئې منلې وي ، فرمائي:

**انّا سمعنا ندائك اجبناك و رأينا اقبالك اقبلنا اليك .**

**۸۳ حضرت بهاءالله**

**ستا غږ مې واورید اوتاته مې ځواب درکړی دی .**

**ستا توجه مې ولیده اوتاته مې توجه کړې ده .بهائیانو ته دهدایت لپاره په جهان کې د«لوی خبر»،دخپریدلو دطریقې او روش په اړه په یو لیک کې فرمائي: چې باد په خرابه او اباده دواړو لګیږي . تاسې هم دخدای په خاطر داغږ او «لوی خبر» خلکو ته ورسوی . هرچا چې ومنل دهغه دنیک رفتار نتیجه هغه ته رسي. او هرچا چې مخ واړول ، جزائی پخپله ګوري.۸۴**

**وَاللهُ يَدْعُو الَ دَارِ السلاَمِ وَيَهْدِي مَن يَشَاء الَ صِرَاطٍ مسْتَقِيمٍ . دیونس سورت،۲۵-ایت**

پروردګار خلک دبغداد «ښار» ته دعوتوي. اوهر چا لره چې وغواړي سمې لارې ته ئې بیائي.

تراوسه پورې نږدې دوه پیړې دحضرت باب د«امر داظهار» څخه په شیراز کې او دحضرت بهاءالله دامر

داظهار ځخه به بغداد کې تیریږي . زمونږ په زمان
کې بغداد ته بلنه ( دارالسلام ته بلنه)، ددې ائین
دتحقیق دښانو اودلایلو دبلنې سره برابره ده. هغه ائین
چې په هغو دوه ښارونو کې په ۱۲۶۰او ۱۲۸۰هجری
قمری کلونو او                    یا(
۱۸۴۴او۱۸۶۳)میلادي کلونو کې دجهان خلکو ته
اعلان شو.

---

❖ په همغه ترتیب چې دمخه مووليدل د(دارالسلام)
لقب له پخوانه ددوه ښارونو بغداد او شیراز په
رابطه کارول شوی دی ، دادوه ښارونه چې
دحضرت بهاءالله او حضرت باب دامر داظهار
ځایونه ؤ:
**دارالسلام :دجنت سرای،دبغداددښار لقب ،
ددمشق دښار لقب او شیراز ته هم دالقب ویل
شوې دی.                    دعمید فارسي فرهنګ
لمړی جلد ۹۰۹ مخ**

ښکاره ده. چې ډیرو مسلمانانو دبهائي نوم اوریدلی دی . ددې نوم اوریدل ،دتحقیق اوڅیړنې دبلنې سره برابر دي . که ددې خبر داوریدونکو زړه ، ایمان ته اماده وي، دقران دحکم اجراء ته چې دصادق مسلمان نښه ده ،پورته کیږي ،اویقین کوي چې ددوه لمړنیو شرطونو سرته رسول ، دخپل کوښښ نتیجي ته رسي:

- دائمي فکر ، تحقیق اوڅیړنه دهغوې روح او فکر ته روښنائي ورکوي.
- دوامداره دعا او زاري دپروردګار درحمت او بخشش دباران داوریدلو سبب کیږي.
- دلمر وړانګې او دبخشش او احسان باران وریدل دهغوې زړونه دایمان دتخم پالنې ته اماده کوي.

اما هغه مؤمنان چې دخپلې وظیفې په سرته رسولو کې غفلت وکړي ، یعنی :

- دپروردګار دعوت ئې دزړه له کومې نه وي منلی .
- اودخپل پروردګار نه په دعا کې دکومګ نه غوښتل.

دهغوې روح دالهي بخشش اودانش څخه،
اودپروردګار ددیدار دافتخار څخه، ترابده بې برخې او بې نصیبه دی.

**والّذين توقّفوا بعد ما جائتهم البينات قد قدّر لهم عذاب غير مردود .۸۵ حضرت بهاءالله**

دهغه چا لپاره چې وروسته له هغه چې ددليل او برهان سره مخامخ شي. او دپروردګار دائين په منلو کې توقف کوي د حتمي مجازاتو سره مخامخ کيږي.

**وروسته دحجت اوبرهان دظهور نه که يوڅوک دپروردګار دموعود څخه مخ اړونه وکړي. دخپل عمل په سزا به ورسيږي.۸۶**

**حضرت بهاءالله**

**قل ان ذلة الدنيا لاحسن من عذاب الاخرة لانّه يبقى و ذلک يفنى .۸۷ حضرت باب**

وايه! ددنيا ذلت داخرت دعذاب څخه بهتر دی . ځکه داذلت فاني اوهغه عذاب باقي دي.

---

دانسان مقام لوی دی . دامقام په دوه ستنو ولاړ
دی:«دعقل دقوت په ستن»او«دازادې اواختيار
دارمغان په ستن»ډير خلک دخپل هميشنې اسمانې
سرنوشت په انتخاب كې عقل نه كارنه اخلي ،په دې
تصور چې دايمان اووجدان په حصه كې پوهې اوفكر
ته لار نشته دی.دامؤمنان دتقليد تياره اووړو كې قفس
دازادې باعظمته اوښكلی قصر برتره او لوړ ګڼي.
اوددې په ځای چې ددې اسمانې جشن په خوښيو كې
شركت وكړي. چې دمخكنيو مؤمينانو كلكه ارزو وه
،خپل قيمتي عمر په يوه تنګه او تياره څنډه كې هسې
له لاسه وركوي . زمونږ روح دازادې مرغه دی ، نه
دخاورو خزنده .مونږ دی جهان ته محكوم او مجبور
نه يو راغلي . كه دفكر او تأمل قوه دخپل هميشنې
سرنوشت په ټاكلو كې ناديده وګڼو. اودايمان اووجدان
دازادې لوی ارمغان يوی خواته واچوو ،خپل انسانيت
مو يوې خواته اچولی دی.
آيا دخدای له ديداره لوی افتخار بل څه شی تصور
كيدلی شي ؟ ايا داافتخار بې له كوښښه اودروح داماده

ګې نه مه واره کيدلی شي په لاس راوړئ؟ پروردګار هرهدف ته درسيدو لپاره يوه وسيله مقرره کړی ده:
**ان الامور معلقة باسبابها و فضل الله يغنيكم بها .۸۸**
**حضرت بهاءالله**

هرامرد«هغه په وسيله» متکي دی .اودپروردګار فضل تاسې دهغې لارې نه غنا ته رسوي ( تاسې سره مقصد ته په رسيدلو کې کمک او ياري کوي).
**غوښتنه وکړئ. چې تاسې ته به درکړل شي . وټې لټوی. چې پيدابه ئې کړی . دروازه وټکوې چې بيرته به شي.                     حضرت مسيح انجيل متی :۷فصل،۷-ايت**

دايمان دارمغان لاسته ته راوړلو لپاره ، بايد هميشه په راز او نياز کې اوسو. دمهربان پروردګارڅخه ياري وغواړو ،اوپه هرسهار کې په ذکر مشغول شو. ترڅو دخپل فضل او رحمت له مخې ددې ورځې په راز مونږ. پوه کړي:

---

**نړۍ نیونکي لمروړانګو،جهان روښانه کړی دی.مړاوي ژوند ته ئې تازه ګي بخښلې ده. نیکمرغه دي هغه سترګې چې ولید او وئې پیژاند. له بې نیازه وغواړه ترڅو دهغه دورځې په رازپوه شئ.اوپه نوي ژوند سره دې تازه کړي. هغه پوه اودقدرت والا دی.۹**

**حضرت بهاءالله**
**فَانّي قَرِيبٌ اجِيبُ دَعْوَةَ الداعِ اذَا دَعَانِ فَلْيَسْتَجِيبُواْ لِي وَلْيُؤْمِنُواْ بِي لَعَلَهُمْ يَرْشُدُونَ .**

**دبقره سورت،۱۸۶-ایت**
زه ستاسې دعا ته نږدې یم. اوستاسې دعا ته ځواب درکوم.پس تاسې هم زما دعوت ومنئ. اوپه ایمان کې په ما کلک اوسئ . ترڅو سمه لاره پیداکړئ.

**ا ن اللهَ لاَ يُغَيِّرُ مَا بِقَوْمٍ حَتى يُغَيِّرُواْ مَا بِانْفُسِهِمْ .**

**درعد سورت، ۱۱-ایت** پروردګار دهیڅ یو قوم برخلیک ته تغیر نه ورکوي. مګر هغه چې خپل ځان ته پخپله تغیر ورکړي.

**مخکښنی مبارک ایت د ټولنې اوفرد دواړوپه هکله صدق کوي .آیا هغه کسان چې په غیر د دنیا دثروت دجمع کولو څخه بل کوم هدف اوارمان نه لري. دایمان دارمغان لایق دي؟**

**هغه چا چې د دنیا په سرواوسپینوزړه تړلی دی.اوپه فاني منصبونو مغروره دي.نه به پوه شي اونه به دغفلت له خوبه بیدارشي.۹۱**

**حضرت بهاءالله**

دوخت اوزمان دموعود پیژندل اوديقین اواطمنان وادي ته داخلیدل اسانه کارنه دی. کله کلونو او دوامداره کوښښ ته اړتیا ده . همیشه داسې ؤ، اووي به . ددې بې مثاله اوبې شانه افتخار ترلاسه کول، بې له دایمي تحقق ، بې له نیک چلند اوبې له دایمي دعا ناشونی اوممکن نه دی.

**وَاعْبُدْ رَبكَ حَتى يَاتِيَكَ الْيَقِينُ .**

**دحجر سورت، ۹۹-ایت**

دخپل پروردګار عبادت وکړه، ترڅو یقین اوډاډ ته ورسې .

دایمان ارمغان دومره قیمت بهادی. چې وروسته
دایمان داقرار څخه ، توانا اودانا خدای مؤمینان په «
سوځوونکې ونه کې، دازمایش» لپاره کښینوي. ترڅو
دهغوې«پټ جنس» ښکاره او معلوم شي .ځکه چې په
راحت او نعمتونو کې په ایمان راوړلو اقرار اسانه
کار دی. اما دبلاګانو اومصیبتونو داورپه ونه کې
دایمان دپاکوالي او اخلاص درجه دعالم څخه پټه
دظهور میدان ته راوځي.

۸۳۵ ۲۷فصل:دپیغمبرانو دعوت ته
دخلکو دبې اعتنائې علتونه

---

**احَسِبَ الناسُ ان یُتْرَکُوا ا ن یَقُولُوا آمَنا وَهُمْ لَا یُفْتَنُونَ .**
**دعنکبوت سورت، ۲-ایت** آیا خلک به داومني. چې
وروسته دایمان داقرار څخه به خلاصون پیداکړي.
اودازمایش لاندې به رانشي؟
دغه ده ایمان اوپوهې ته لار اوطریقه ،اودغه دي
دپروردګار تغیر نه منونکي سنت.

تَجِدَ لِسُنةِ اللهِ تَبْدِيلًا هيڅکله به دپروردګار په سنتو کې تغير اوتبديل پيدانه کړې.

## پروردګاردهغه دکلام څخه

## پيژندلی شی

**قد جاءالوعد و ظهرالموعود طوبی لمن سمع النداء و اجاب مولاه و ويل لکل غافل مرتاب .**

**۹۲**

**حضرت بهاءالله**

دوعدې وخت راورسيد. موعود راښکاره شو . خوښې دهغه چا په برخه ده. چې دااواز ئې واوريد. اودخپل خالق دعوت ئې ومنل .اوواى په حال دهغه چا چې په شک او غفلت کې پاتې شو.

**طوبی لنفس نبذت الأوهامَ و الظّنونَ و أخذت ما امرَتْ به في كتاب الله ربّ ما كان و ما يكون .**

**۹۳**

**حضرت بهاءالله**

**څومره خوشبخته اونيکمرغه دی هغه څوک، چې دخلکو بې اساسه ګمانونه ئې په يوه څنډه کې پريښودل.اوهغه څه چې دپروردګار کتاب په هغه امر ورکړ،اوهغه ئې و منل.**

**اې بنده ګانو! دخپلوغوښتنو څخه تيرشئ. اوهغه څه چې مادرته غوښتي دي،هغه وغواړئ.۹۴**
**حضرت بهاءالله**
**نن ورځ دهيڅ يوعمل قبول نه دی،خوهغه څوک چې دخلکواوله هغه څه چې ورسره دي تيرشو،اودخدای لوري ته ئې توجه وکړه.۹۵**
**حضرت بهاءالله**
**ا ن اللهَ لَذُو فَضْلٍ عَلَ□ الناسِ وَلَكِن اكْثَرَ الناسِ لَا يَشْكُرُونَ**
**. دغافر سورت،۶۱-ايت**
دپروردګار فضل اورحمت په بنده ګانو وي. اما ډير خلک ئې قدرونه پيژني.
**قل انّ القلم ينصحكم لوجه ا لله و يُخبركم بمافات عنكم ف□ ايّام ربّكم الرّحمن الرّحيم و يقصّ لكم القصص الأول□ لإنتباهكم و رجوعكم ال□ ا لله العزير الحميد .۹٦**
**حضرت بهاءالله**

---

---

ووايه!دپروردگار قلم تاسې ته دخدای په خاطر حکايت کوي. او تاسې له هغه څه چې درحيم اومهربانه پروردگار په ورځو کې له لاسه ورکړي دي خبروي . دمخکېني برخليک داستانو نه ستاسې په ياد راوړي ، شايد بيدار او ويښ شی. اودعزيز اوحميد خدای لوري ته بيره وکړئ.

**نن هغه ورځ ده چې لمر دهغې په نور رڼا اوروښانه دی...خو...دعصرعلماو دهغې مخ ته ودريدل اوسترگې دهغې رڼا دليدو څخه منع کړي دي.۹۷**

**حضرت بهاءالله**

**که دحقايقو اواستعدادونو دځمکې هره ټوټه په دې لويه ورځ کې شنه اوخرامانه نشي په دې کې به هيڅ شک اوشبه نه وي. چې هغه به دابد لپاره دپروردگار درحمتونوڅخه محرومه پاتې شي. اوپه غير دپښېمانې اوناامېدې داغزيو څخه بله گياه شنه نه کړي.۹۸**

**حضرت بهاءالله اعلموا بان شرافةالعبد ف□ قربه ال□ ا لله و من دون ذلک لن ينفعه ابداً ولو يحکم عل□ ا**

**لخلایق اجمعین .۹۹**
**حضرت بهاءالله**
په یقین سره پوه شئ، چې دهربنده شرف دهغه څخه خدای ته نږدې دی. اوپه غیر له دې به هیڅکله بل څه شی هغه ته ګټه ونه رسوي ،حتی که دټولې دینا په خلکو حاکم شي .
**دادوه ورځې ددې وړ نه دي، چې یوڅوک دهغو په لیدو له حق څخه غافل شي.اوپه غیر دهغه درضا څخه حرکت وکړي. ۱۰۰**
**حضرت بهاءالله**
**ستاسې مثال دهغه غافل مرغه په شان دی. چې دباغ په یوه څانګه په پوره ډاډسره سندرې وائې.سمدلاسه داجل ښکاري هغه په ځمکه راګذارکړي.اونوردهغه کوم اثرپاتې نه وي.پس عبرت واخلئ اې دهوابنده ګانو!۱۰۱ حضرت بهاءالله**
**نن دژوند کوثراوبه ښکاره دي. حقیقي روح موجود دی. کوښښ وکړئ.ترڅوددې بې پایانه فضل څخه برخمن شی...دامبارکه ورځ بې مثاله وه،او وي به.هغه څه چې دمنځه لاړشي،دهغه راتګ بیرته ممکن نه دی.۱۰۲ حضرت بهاءالله**

# ۸۲



## دقرآن د«لوی معّما»لنډیز

**وَان تَعُدواْ نِعْمَةَ اللهِ لاَ تُحْصُوهَا .**

**دنحل سورت،۱۸-ایت**

دپروردګار نعمتونه بې شماره اوبې حسابه دي .
**ان ا لانسَانَ لَکَفُورٌ .**
**دحج سورت، ۶-ایت**
انسان قدر نه پیژندونکی دی.
ددې کتاب په پای کې ښه ده . چې فکر وکړو اودقران دوعدولنډیز ته دوخت دموعود په باره کې نظر واچوو. ددې تصویر لیدل ، د«لوی خبر» دمعّما حل اسانوي:

۱.د«**خَاتَمَ النَّبِيْنَ**»اصلي او اصطلاحي معنا د«پيغمبرانو مهُر» دی. نه « اخرين پيغمبر».
۲.داسلام نه مخکې اديان هم دهمداسې يو مشکل لکه د«**خَاتَمَ النَّبِيَنَ**»مشکل ته ورته مشکل سره مخامخ ؤ اووي به .
۳.پروردګار مونږ ته پوهاوی راکړی، چې دمخکېنيو اديانو اوامتّونو دبرخليک څخه عبرت واخلو.
۴.دقران ايتونه وښائي چې ټول اديان مهلت اواجل لري ، له دې جملې نه اسلام چې له دی قاعدې څخه «**لِكُلِّ اُمَّةٍ أَجَلٌ**»مستثنی نه دی.
۵.دقران ايتونه وښائي چې داسلام عمر باالاخره پای ته رسي، اونوی عصربه دجهان دخلکو په معنوي ژوند کې پيل شي.
۶.ډير ايتونه داسلام دپيغمبر نه وروسته پيغمبرانو ظهور ته اشاره کوي.
۷. قران مجيد ۶ ځلې په دقيقه توګه داسلام داتمام دتاريخ وړاندوينه کړې ده . هغه ايتونه مونږ ټول ۱۲۶۰ هجري قمري کال ته رسوي.
۸. دقران مجيد او نورو اسماني کتابونو وعده تحقق ته رسي . په هغه تاريخ کې چې وړاندوينه ئې شوې ده . يعنی په ۱۲۶۰ هجري قمري به پروردګار نوی

پیغمبر دحضرت باب په نوم رب اعلی دبشر دهدایت لپاره راولیږي.

**۹.** قران مجید په کراتو زیری ورکوي. چې په اینده کې موعود دخدای په نوم دخدای له لورې راځي .

**۱۰.** درې ایتونه ددې موعود دظهور کال او د۹ عدد (بعدحین) ته اړیکه ورکوي.



---

۱۱. حضرت بهاءالله ،دحضرت باب دظهور څخه «۹»کاله وروسته خپل مقام په همغه عنوان دخدای په نوم دخدای دلورې اظهار وي.

۱۲.قران مجید دبهائي ائین دډیرو تاریخي پیښو خبر ورکوي.
۱۳. زمونږ دعصر ددوه پیغمبرانو دظهور وعده، ترټولو مهمه اوښه وعده ده. چې مهربانه خدای نه یوازې په قران کې، بلکه په نورو اسماني اثارو کې بشر ته بخشش کړې ده .
۱۴. قران مجید څو ځلې ددوه پیغمبرانو دظهور خبرد« ذکر» او «نباء عظیم» په نوم زیری ورکوي.
۱۵.حضرت باب په کراتو خپل ځان «ذکر» اوحضرت بهاءالله په کراتو خپل ځان اوخپل ظهور د«نباءعظیم» دلوی خبر په نوم نوموي.
۱۶. دقران دایتونو په اساس دقائم موعود په ظهور سره قیامت راځي.
۱۷جسماني قیامت په دې جهان کې دپروردګار دنقشې سره سمون نه لري . ځکه په هغه صورت کې خلک دازادې او اختیار لوی ارمغان له لاسه ورکوي.
۱۸.داجهان دازمایش سرای دی. پروردګاردهمیشني جهان اسرار پټ ساتي ترڅو خلک خپل سرشت اوخوی بې له ایرې اوترس څخه ښکاره کړي.
۱۹. دایمان هدیه دخدای په لاس کې ده . ددې همیشنې او بې نظیره هدیه مقناطیس پاک روح ،نیک رفتار ،اودپروردګار په درګاه کې دعا او مناجات دي.

۲۰. دپیغمبرانو دربنتینولی ترټولو مهم او روښانه دلیلونه دهغوې وینا او اثار دي. دبهائي ائين دپيژندنې لپاره ، باید دهغه اسماني اثاروو ايو. اودقران سره ئې وسنجوو.

۲۱.دسختو خطرونو دمخامخ کیدلو سره سره ، په سل هاو لوی علماو او دانشمندانو په ایران کې ،په عربي ژبو ممالکو کې اوپه نورو اسلامې هیوادونو کې دبهائي اسماني اثارو په عظمت اوابهت شاهدي ورکړې ده. او هغه ئې د پروردګار کلام ګڼلی دی.

قران اوبهاءالله



---

۲۲. دپروردګار دائين دپيژندنې لار تحقيق دی ، نه

تقلید . پروردګار دتقلید کوونکو اوهغو پیشوایانو لپاره چې خلک تقلید ته تشویقوي. سخت مجازات ټاکلي دي.
**۲۳**. دزمان اودوخت دموعود منل اویا ردول ترټولو مهم تصمیم دی. چې هر انسان باید په دې جهان کې ورسره مخامخ شي . دبهائې ائین دپیام بې اعتنائې برابره ده ددوموعودو دانکار سره، چې پروردګار زمونږ په خاطر اوزمونږ دهدایت لپاره رالیږلي دي.
**۲۴**. دپروردګار دشهادت په اساس دهرانسان همیشنی اسماني برخلیک دزمان دموعود د رد یا قبول پورې تړلی دی.
**۲۵**. دپروردګار دپیغمبرانو دپیژندني یواځنې لار تحقیق اوڅیړنه ده.په دې کار کې کوښښ اوپلټنه په ابدې لوي پاداش اوتنخا پای ته رسي. اوپه دې کار کې غفلت اوقصور دابدي پښیمانې او محرومیت سبب ګرځي.
دپروردګار دوعدې دتحقق دپوهاوې لپاره د«لوی خبر» دظهور وعده چې په ټول قران کې تکرار شوې ده. داکتاب څو ځلې ووائې، اوپه الهي ایتونو کې چې زمونږ دعصر ددوه لویو پیغمبرانو دراتګ زیری ورکړې دی. تفکر او تأمل وکړئ ، ترڅو دقران وعدې او اسرار لکه دورځې په شان تاسې ته روښانه شي . په هره اندازه چې هغه ایتونه ډیر ووائې اوپه

هره اندازه چې دقران معمّا مهمې برخې ډيرې له نظره تيرې کړی ، دهغې معمّا «لوی تصوير» تاسې ته روښانه کيږي. ددې لپاره چې ستاسې قضاوت دعدالت سره يوځای شي ، دهغو ايتونو په مطالعې سره ددې پوښتنې په باره کې فکر وکړی.

او له خپل ځآن نه وپوښتئ:ماپه کوم دليل داسلام دين منلی دی؟ آيا زما دليلونه دهغه څخه چې په قران اوبهاءالله کتاب کې بيان شوي دي. زيات او محکم دي؟

**که څوک له دې «امر» نه انکار وکړي. اوله دې «لوی ظهور»څخه غافل شي. دبل هيڅ امر په ثبوتولو به نه قادروه اونه به وي.۱**

**حضرت بهاءالله**

ووايه!که تاسې مخ واړوی ، پروردګار زما لپاره کافي دی...

**فَان تَوَلوْاْ فَقُلْ حَسْبِيَ الله ...**

**دتوبه سورت،۱۲۹-ايت** آيا پيغمبران په غير دپروردګار د«امر دابلاغ او اعلان څخه مه واره بله وظيفه لري؟

**فَهَلْ عَلَ الرسُلِ الاالْبَلاغُ الْمُبِينُ ؟**

**دنحل سورت،۳۶-ايت**

بې له شکه په هرامت کې مې پيغمبرپيداکړی دی...دځمکې په مخ سفر وکړئ. او وګورئ. دهغو خلکو سرانجام چې خپل پيغمبر ئې دروغ ګڼلې دی څه ؤ.

حضرت بهاءالله دحقيقت لټوونکو ته ديو ليک پوسيله په خطاب کې دموعود دپيژندنې شرايط بيانوي . دليک

په پیل کې ئې فرمائې(دټولو مقامونولپاره بې نهایته عرفان)ته دلارې پیداکول ، او د(انسان وجود څخه بې منتهاګټه او ثمره)ترلاسه کول. دپروردګار په پیغمبرانو ایمان اودهغوې پیژندنه ده:

**داده ټوله پیروزي اوهغه اصل ،اودحقیقت دربنتینولی پیل اودهغه پای .۲حضرت بهاءالله**

په دې جهان کې ژوند،دپروردګار داخري رالیږل شوي دپیژندنې مه واره ، ترټولو لوی ضرر او تاوان دی. څکه چې کوم مهم شی چې له دې جهان نه له ځان سره وړو ، دپروردګار رضایت دی .ددې رضایت لاسته ته راوړل، بې دهغه درالیږل شوي دمنلو څخه ناشونی دی.

---

آیا دپیغمبرانو پیژندنه مشکل کار دی؟
فرمائي،پروردګار خپل پیغمبران دداسې دلایلو اونښانو سره رالیږلي او رالیږي لکه هغه نور:
**داسې یو څوک به راولیږي. چې دهغه عاجز په شان به وي. چې هیچا ته داعتراض ځای پاتې نشي. ۳ حضرت بهاءالله**
وروسته یادونه کوي. که دپیغمبرانو دحقانیت دلیل روښانه نه وي ، دپروردګار محبت اوبرهان په خلکو «تمام نه و، اونه به وي.»۴دپروردګا دپیغمبرانو پیژندنه په هغه صورت کې اسانه ده. اودپروردګار محبت او دلیل په هغه صورت کې «تمام»دی. چې په قضاوت کې سم میزان وکاروو . آیا ممکنه ده بې له سم میزان ،داکاسو او شیشې توپیر وشي ؟او فرمائي باید«هغه دوحدت لمر او هغه دحقیقت سلطان»دهغه له رڼا څخه پیژندلی شی. ځکه چې دهغه محبت دهغه له نفس څخه ظاهر اوښکاره دی:

**دلمر دظهور دليل همغه دلمر روښنائي ده. چې پخپله دلمر دنفس څخه ښکاره، مُشرق اومُضئی دی.۵**

**حضرت بهاءالله**

اووروسته فرمائي هرفرد پخپله مسئول دی. چې هغه «شمس احديه»وپيژني ، بې له نورو دانکار اوايمان نه :

**انکار اومخ اړونه،اويا منل اوتوجه دهيچا لپاره دليل اوثبوت نه دی اونه به وي.۶**

**حضرت بهاءالله**

يوځل بيامونږ ته يادونه کوي. چې دپروردگار دائين دپيژندلو لپاره بايد« دظهوراصل ته»نظر وکړو،نه دهغه جاموته .که جامو ته نظر واچوو يعنې که يواځې د دين ظاهري نوم او رسوماتو ته نظر وکړو، موعود به ونه پيژنو:

**انسان ته وگوره. که دې هغه پخپله وپيژندل. او هغه په هرډول جامو او کميس کې وگورئ هغه به وپيژنئ.۷**

**حضرت بهاءالله**

---

ددې بیان په پای کې فرمائي:
**هذا خیر النّصح منّ□ علیکم ان أنتم تقبلون .۸**
**حضرت بهاءالله**
دا زمابهترین نصیحت دی تاسې ته، که ئې ومني.

# پروردګار دهغه دکلام څخه

# پیژندلی شی

**اې دانصاف والاو!که له دې امر څخه انکار وشي کوم امر په ځمکه کې دثبوت وړ دی. اویا داقرار لایق ۹؟**
**حضرت بهاءالله**

**تالله الحقّ ما ننطق عن الهوی وما ننزّل حرفًا من ذلك الکتاب الاّ باذن الله . ۱۰ حضرت باب**

په خدای قسم دی!پخپل میل خبرې نه کوم .دهغه کتاب هرحرف دپروردګار په اجازه نازل شوې دي.؟

**وَيَسْتَنبِونَكَ احَق هُوَ قُلْ اي وَرَبِّي انچهُ لَحَق وَمَا انتُمْ بِمُعْجِزِينَ . دیونس سورت،۵۳-ایت**

غواړې پوه شی. چې آیا هغه حق دی؟(آیا هغه دخدای موعود دی؟)ووایه!په خدای قسم دی هغه حق دی. او تاسې دهغه (امر اوائین) دخپریدلومخنیوي کولی نشي.

**حاسب نفسک فی کل یوم من قبل ان تحاسب لأنّ الموت یأتیک بغتة و تقوم علی الحساب فی نفسک . ۱۱ حضرت بهاءالله**

هره ورځ له ځان سره حساب وکړه ، مخکی له دې چې له تاسره حساب وشي . ځکه مرګ ناڅاپه راځي اوته دپروردګار دعدل دمیزان په وړاندې ودرېږې. چې حساب درسره وشي.

دپروردګار بخششونو څخه یو لوی بخشش اوهدیه زمونږ لپاره دایمان اووجدان ازادی ده. که دپروردګار دانتخاب شوې دعوت ونه منو ، مونږه پخپل ځان ظلم کړی دی .ځکه چې زمونږ پروردګار زمونږ ایمان راوړلو ته کومه اړیتا نه لري:

**قُلْ يَا ايهَا الناسُ قَدْ جَاءكُمُ الْحَق مِن ربِّكُمْ فَمَن اهْتَدَى فَان مايَهْتَدِي لِنَفْسِهِ وَمَن ضَل فَانمَا يَضِل عَلَيْهَا وَمَا انَاْ عَلَيْكُم بِوَكِيلٍ .                 دیونس**

**سورت،۱۰۸-ایت**



---

---

ووایه اې خلکو!دپروردګار له لورې حق راغلی دی ، هرڅوک چې دخدای هدایت ومني اویا ګمراهې ته ولاړ شي،درفتار نتیجه ئې هغه ته رسي. زه (دخدای رسول) یم ستاسې وکیل نه یم (چې له تاسې دفاع وکړم).

**قَدْ جَاءكُم بَصَآرُ مِن ربِّكُمْ فَمَنْ ابْصَرَ فَلِنَفْسِهِ وَمَنْ عَمِيَ فَعَلَيْهَا .      دانعام سورت،۱۰۴-ایت**

دپروردګار له لورې تاسې ته روښانه دلایل راغلي
دي. هرڅوک چې سترګې وغړوي. رښتيني دي.
اوهرڅوک چې په ړندو کې راغلل تاوان ئې وکړ.
**قل یا اهل الفرقان لستم عل□ شیئ الا بعد الذکر و هذا
الکتاب ان تتبعوا امرالله نغفر لکم خطیئاتکم و ان
تعرضوا عن حکمنا نحکم عل□ الحق بالکتاب عل□
انفسکم بالنّار الاکبر و انّا لا نظلم عل□ الناس .۱۲
حضرت باب**
ای دقران پیروانو!تاسې ته کوم وجود نشته دی، مګر
دا چې په «ذکر»اوپه دې کتاب ایمان راوړی. که
دخدای د امر او ائین پيروي وکړئ ،ستاسې ګناه
بخښم. اما که زما له حکم څخه سرغړونه وکړئ ،
ستاسي روحونه به پخپل کتاب کې په لوی اورسره
محکوم کړم .البته چې پخپلو بنده ګانو ظلم روانه ګڼم.
**لا تقنع بالموهوم توجّه ال□ ربّک القیّوم الّذی ات□ بقدرة و
سلطان .۱۳ حضرت بهاءالله**
په خیالونومه قانع کیږه،خپل قیوم پروردګار ته توجه
وکړه. چې د قدرت اوسلطنت سره راغلی دی.
**قل یا قوم لاینفعه ما عندکم...انّه یدعوکم لوجه الله و
یشهد بذلک کلّ منصف بصیر .اتأخذون الهوی و
تضعون ربّکم الابه□ انّ هذاالظلم عظیم .سوف یأت□ ایّام
تنوحون عل□ انفسکم بما فرّظتم ف□ جنب الله و لاتجدون**

**لانفسکم من حمیم.١٤ حضرت بهاءالله**

ووایه اې خلکو! هغه څه چې ستاسې په وړاندې دي. هغه [موعود]ته به کومه ګټه ونه رسوي...هغه تاسې دخدای په خاطر رابولي .هرلیدونکی انصاف والا ددې حقیقت دوینا شاهد دی. آیا دخپل پروردګار په ځای خپل نفس اوهوا ته تسلمیږي ؟ ډیر ژر به داسې روزګار راورسي. چې دخدای په امر کې دقصور په سبب به چغې اوژړا وکړي. اوکوم یار اویاور به پیدانه کړي.

---

☆ ذکراودپروردګار ذکر:دحضرت باب دلقبونو څخه دي.

**مالكم وضعتم الهكم و اخذتهم اهوائكم ان افتحوا الابصار لعلّ تعرفون ربّكم المختار كذلك يعظكم لسان الوحی من لدن عليم حکيم .١٥**

**حضرت بهاءالله**

په تاسې څه شوي دي!تاسې خپل خدای پرې ايښی دی. اوخپل هوسونه اوخپلې غوښتنې مو انتخاب کړي دي. په ليدونکو اوغوږولو سترگو وگورئ. ترڅو خپل غوره شوی، پروردگار وپيژنی . دارنگه دپروردگار دلورې دوحې ژبه تاسې ته حکايت کوي.

**هغه څه چې په ټولو الهي کتابونو کې دربّ په ظهور کې پټ ليکل شوې و.په دې ورځ کې ظاهر او مشهور څرگند شو.١۶**

**حضرت بهاءالله**

**ترڅو چې وخت پاتې دی. دزړه له کومې کوښښ وکړئ، اودنعمت قدر وپيژنئ...ترڅو هغه بل عالم وگورئ. اودروح په خوشحاله ډگر کې قدم کښيږدی.١٧ حضرت بهاءالله**

# دولسمه برخه

## درې ضميمې لري:

۱ .ضميمه:دامت اجل يعنی څه؟

۲.ضمیمه:د«۱۹»عدد اړیکه دقران مجید سره
دداکتر رشاد خلیفه دکشفیاتو په اساس
۳.ضمیمه:دمؤلف دنورو اثار څونمونې

# ١ضميمه



## دامت اجل یعنی څه؟

كله دپروردګار په كلام كې يو ناسم تفسيرنه تماميدونكي نتيجې رامنځ ته كوي . له دې كبله زمونږ خالق هميشه له مونږ نه غواړي. چې فكر او دقت وكړو .اويواځې وروسته له ډير كوښښ او څيړنو ويناوې ومنو.

**اعرضوا عن كلّ الايات و اتّخذوا من الكتاب حرفا و استدلوا بها علی ماعندهم.١**

**حضرت بهاءالله**

له ټولو ايتونو ئې مخ واړول. دکتاب څخه ئې يوه کلمه انتخاب کړه. اودهغه څه په اساس چې دخپل ځان سره ئې لرل په هغه ئې استدلال وکړ.

**په يوه نوم اويوه کلمه داسلام دين ضعيفه شو. او له لاسه ولاړ.٢ حضرت بهاءالله**

**ډير له خلکو غافل دي. اوپه ګمانونو اوخيالونو کې مشغول دي . ډير داسې شوي دي چې دامّ الکتاب (دکتابونو دمور)په يوه کلمه محروم شي. اودلوی بحر په يو څاڅکي غافله شي.٣**

**حضرت بهاءالله**

---

ولې دیوې کلمې معنا دومره داهمیت وړ ده ؟ ځکه چې په ځنې کلماتو کې فوق العاده قدرت پټ دی . د«تنها» (یواځې) کلمه دحضرت مسیح په وینا کې په رسول اکرم دمسیحیانو دایمان مانع شوه .د«پادشاه»کلمه په حضرت مسیح دیهودیانو دایمان مانع شوه.دادقدرت نه ډکه کلیمه زمونږ په عصر کې د« خاتم»کلیمه ده . کله یوه کلیمه په دې قادره وي. چې جهان په جنګ واړوي . وائي داتوم بمب ګوزارول په چاپان کې دیوې چاپاني کلیمې دناسمې ژباړې په اساس ؤ. زمونږ په عصر کې د« خاتم» کلمې لکه دیوې پردې په خیر دسلهاو میلونو انسانانو سترګې ړندې کړي دي . لاندې ایتونو ته توجه وکړی:

**ثم ارْسَلْنَا رُسُلَنَا تَتْرَا كُل مَا جَاء امةً رسُولُهَا كَذبُوهُ .**

**د مؤمینون،سورة، ۴۴ـ ایت**

پس پیغمبران مې یوبل پسې لیږلي دي .هرکله چې دیو امت لپاره رسول راغلی ،هغه ئې دروغجن وګڼل.

**كَذَٰلِكَ ارْسَلْنَاكَ فِ ا مةٍ قَدْ خَلَتْ مِن قَبْلِهَا امَمٌ .**

**درعد سورت، ۳۰-ايت**

په دې اساس ته مې دداسې يو امت منځ ته ولېږلې. چې مخکې له هغه امتونه ؤ.

مخکې درسول اکرم دظهور څخه په دې عالم کې ډېرو امتونو ژوند کړی ؤ . دقران دشهادت په اساس ،پروردګار دهريو لپاره يو پيغمبر ورلېږلی دی.ښه به وي. چې پوښتنه وکړو:چې څه رنګه اوپه څه سبب ،ناڅاپه دامتونو اوپيغمبرانو سلسله داسلام دپيغمبر اوامت په ظهور سره پای ته ورسيدل؟

تراوسه دځمکې دعمر څو زره ميلونه کلونه پاتې دي . دجهان تغيرات اوتبديلات حتی سل کاله وروسته زمونږ له تصوره لوړ دي .څنګه ممکنه ده. په ناڅاپه توګه دپروردګار کلي شيوه (هميشنې طريقه) بدله شي. اوددې سلسلی پيغمبرانو ظهور دې په عربستان کې په يو خاص او ځانګړي وخت سره پای او اتمام ته ورسي ؟ په څه دليل داسلام امت بايد اخرين امت شي ؟ په جهان او يا دانسان په خصلت کې کوم تغير رامنځ ته شو. چې دپروردګار دپخوانې وعدې او طريقې دنقص اوعيب دنسخ اولغوه کيدلو سبب شوه؟

دقران ددې سلسلې ايتونو په باره کې فکر وکړئ :

- **لِكُلِّ امةٍ اجَلٌ**: هرامت يو ټاکلی وخت او عمر لري .
- **لِكُلِّ امةٍ رسُولٌ:** هرامت يو رسول لري.
- **لِكُلِّ اجَلٍ كِتَابٌ**: هرعصر او زمان کتاب لري.
- **ان مِّنْ امةٍ الا خلَا فِيهَا نَذِ ير:** پروردګار هيڅکله يو امت بې له يو خبر ورکوونکي نه دی پرې ايښی.
- **لَن تَجِدَ لِسُنةِ اللهِ تَبْدِ يلًا**: دپروردګار په طريقه او روش کې به تغير او تبديل پيدا نه کړی.

ولې دپروردګار دا رسم او طريقه ، ناڅاپه په «۶۱۲»ميلادي کې داسلام دظهور په وخت کې بايد پای ته ورسي؟ دپروردګار دسنتو دارنګه تحول او تغير لپاره څه دليل پيدا کولی شي ؟ په غير دعقل او

خرد له میزان څخه په بل کوم میزان کولای شو دې پوښتنې ته ځواب ورکړو؟ پروردګار همیشه مونږ سره فکر کولو او عقل ته دعوتوي:

**انمَا يتَذَكرُ اوْلُواْ الالْبَابِ.**

**درعد سورت،۱۹-ایت**

دعقل او خرد خاوندان پند اخلي.

داپوښتنې ځواب غواړي: زمونږ دعصر او اینده عصرونو خلک د مخکنیو خلکو سره څه توپیر لري. چې دهغوې روحاني ژوند پای ته ونه رسي ، اویا نوو قوانینو ته اړنه وي ؟ دبشر په طبیعت او تمدن کې څه تغیر راغلی دی، چې دپروردګار مخکښنې طریقه بدله کړي ؟

داعراف سورة داایتونه ،دپروردګار دابدې طریقې ادامه یعنې دنوو پیغمبرانو لیږل په روښانتیا سره تاکید او تائیدوي:

---

- دهجرت نه۱۰کاله پخوا.

**وَلِكُلِّ امةٍ اجَلٌ فَاذَا جَاء اجَلُهُمْ لاَ يسْتَاخِرُونَ سَاعَةً وَلاَ يسْتَقْدِمُونَ يا بَنِ آدَمَ اما ياتِ ينكُمْ رُسُلٌ مِّنكُمْ يقُصونَ عَل يكُمْ آياتِ اتقَ وَاصْلَحَ فَلاَ فَمَن خَوْفٌ عَل يهِمْ وَلاَ هُم ْيحْزَنُو .**

**داعراف سورت، ۳۵-۳۴،ايتونه** دهرامت لپاره خاص وخت اوزمان ټاكل شوې دی . هركله چې دهغه امت وخت سرته ورسي. (يعنی دهغوې اجل راورسي.)نشي كولای حتی يو ساعت هغه مخكې يا وروسته كړي. اې دادم زامنو !هركله چې ستاسې له منځه پيغمبران مبعوث شي. اوزما ايتونه تاسې ته ووائي ،هرڅوک چې له تاسې نيک او پرهيزګاره وي.نه به ايره ولري. اونه به غم ولري.
مخكېني ايتونه مونږ ته كوم درس رازده كوي:
**۱**

**وَلِكُلِّ امةٍ اجَلٌ**

دهرامّت لپاره يو ځانګړې وخت تعين شوې دی (هرامت عمر لري).

**٢**

**فَاذَا جَاء اجَلُهُمْ لاَ يسْتَاخِرُونَ سَاعَةً وَلاَ يسْتَقْدِمُونَ.**

هرکله چې دهغه امتونو اجل راورسي ،يوساعت هم مخکې اووروسته نه ځي.

---

☆ لاندې ايت دهمغه پورتنيو ايتونود مطلب(٣٥-٣٤: ٧)تعليم ورکوي ،په دې توپير سره چې دمخکنيو وختونو پورې اړه لري:

**ارْسَلْنَا فِيكُمْ رَسُولاً مِّنكُمْ يتْلُو عَليكُمْ آياتِنَا وَ يزَكيكُمْ .**

**د بقر،سورة، ١٥١ـ ايت**

ستاسې له منځه مې تاسې ته پيغمبر مبعوث کړ. ترڅو زمونږ ايتونه تاسې ته بيان کړي، اوتاسې ته پاکي اوسپيڅلتيا دروبخښي.

۸۵۳ ۱ضميمه:دامت اجل يعنى څه؟

---

ولې دامتونو اجل په معلوم او ټاکلي«ساعت»کې رارسي؟په همغه ترتيب چې دهرانسان عمر دخاصو قوانينو په اساس پاى ته رسي ، دهرامت عمر هم پاى ته رسي.

**۳**

**يا بَنِ آدَمَ اما ياتِينكُمْ رُسُلٌ مِّنكُمْ يقُصونَ عَلَيكُمْ آياتِ**

اې دجهان خلکو!هرکله چې ستاسې له منځه پيغمبران تاسې ته راشي.(چې البته رابه شي)اوزما ايتونه به تاسې ته ووائي...

ولې وروسته دهرامت له مرګه ،دپروردګار له لوري پیغمبران راځي. اوالهي ایتونه خلکو ته وائي ؟ددې په خاطر چې مهربانه خدای هیڅکله خپل بنده ګان دغفلت اونادانې په غرقاب کې نه پرېږدي .کله چې هغوې په معنوي مرګ مبتلا شي ،هرکله چې دهغوې دائین وخت پای ته ورسي اودهغوې اجل راورسي ، پروردګار نوی پیغمبرراستوي. ترڅو دهغه ایتونه بنده ګانو ته ووائي اوهغوې ته همیشنې ژوند وروبخښي.

وګورئ ددې ایتونو مضمونونه څومره روښانه بیان شوي دي. پروردګارپه شروع کې دټولو امتونو دمرګ خبر ورکوي .اووروسته درالیږونکو دراليږلو خبر ورکوي. ترڅو هغو امتونو ته نوی ژوند وبخښي .مطلب ددې نه روښانه نشي کیدلی بیان شي.

۴

**اتقَ وَاصْلَحَ فَلاَ خَوْفٌ عَلَيهِمْ وَلاَ هُمْ يحْزَنُونَ**

پس هرڅوک چې نیکوکاره اوپرهیز ګاره اوسي نه ایره لري اونه غم لري.

ولې نیک خلک نه باید ایره او غم ولري؟ځکه چې داخلک دپروردګار دنوو پیغمبرانو دظهور په وخت کې په جرئت او شهامت سره په تحقیق اوڅېړنو پیل کوي. اوحقیقت پیداکوي. له دې مه واره پروردګار دښه خلقت والا بنده ګان سمې لارې ته هدایت کوي. او نوی پیغمبر هغوې ته ورپېژني.

مخکېني ایتونه یوبل په روښانتیا کې تائیدوي .هغه ایتونه په ابتداء کې دهرامت دعصر دتمامیدو خبره کوي ،اووروسته دهر عصر په پای کې دپیغمبرانودظهورڅخه . دهر امت دعصر یا عمرتمامیدل یو مستثنا امر دی. اوغیر قابل تغیر حکم دی. «دا امر په هغه اندازه دقیق اومحکم امر دی. چې دپروردګار دکلام په اساس دهغه سرته رسیدل حتی یو «ساعت» مخکې اووروسته نه ځي.»څرنګه چې وبه ئې ګورو. په همدې سبب دځنې اسماني اثارو څخه دهغې دجملې نه قران اوانجیل ،دنوي امت یا دائین دشروع وخت «ساعت» نومولی دی.

دانا پروردګار دقران په ایتونو کې دهیڅ یومسلمان لپاره دشک او شبهې ځای پری ایښی نه دی .

دامبارک ایت "**لِكُلِّ امةٍ اجَلٌ**" په هغه اندازه روښانه اومحکم دی. چې په هیڅ وجه دتأویل اوتفسیر قابل نه دی . د«لِكُلٌ،اُمَّةٍ أَجَلٌ»کلمې روښانه او مشخصې معنا ګانې لري ځکه دمبارکه ایت په اساس ټول امتونه په الهي کلي قانون کې شامل دي .مسلمانان هم امت دی ، پس کلي قانون هغه هم پخپل ځان کې راولي . په انجیل کې هم د«عصر دپای» اصطلاح د«اجل» په معنی راغلې ده . دحواریونو په باره کې دحضرت مسیح نه پوښتنه وکړه:

ستاد راتګ نښه اوستا دامت دعصر دختميدو نښه څه ده. متی انجيل، ۴ فصل:۳ـ ايت

---

The end of the age.



يعنی څه؟

---

---

ددې پوښتنې په ځواب کې ،حضرت مسيح نښانې ورکړې، چې دقران دايتونو سره پوره توافق اوسمون لري.

دډیر تحقیق لپاره مناسبه ده د«اجل»دکلمې معنی بررسي کړو.دلوی خبرو دفرهنګ (فرهنګ بزرګ سخن)په اساس:

- معلوم وخت معینه زمانه
- مهلت
- دهرشي نهایت
- دعمر دزمان انتها ،مرګ، دمرګ وخت

پس د«اجل»دکلیمې مفاهیم دقران په ایت کې عبارت دي له:

- هغه معلوم وخت دهرامت لپاره په هغه جمله کې دمسلمانانو دامت لپاره ورکول شوی دی.
- هغه مهلت چې هر امت ته ورکړل شوې دی.
- انتها یا پایان دامت عمر اوعصر

دریمه معنا د«اجل»کاملاً مطابقه ده، دانجیل داصطلاح یعنی (پایان عصر)سره ،درې واړه کلیمې «کل» «امّت»او«اجل»دهمغه عربي معناوسره ،دفارسي ژبې ته داخل شوي دي.

دمخکښې مبارک ایت اخري نکتې هم دنوو پیغمبرانو دظهور موضوع تائیدوي. ځکه فرمائي:هرڅوک چې نیکوکاره اوپرهیزګاره دی. نه ایره لري اونه غم ښکاره ده،دهغه چاژوند چې دپروردګار دارادې سره موافق دي ، دمذهبي تعصب څخه خلاص او ازاد دی.

اودعادلانه تحقيق سره رعبت لري .داسې خلک
هيڅکله دحقيقت نه مخ نه اړوي. پس نه بايد ايره او
غم ولري .پروردګار هميشه دهغوې کومک کوونکى
دى.
بله نکته داچې مخکنې ايتونه ټول نوع بشرته خطاب
دى .دادم ټول زامن(يَابَنِى اَدَمَ)د وينا مخاطب دي .اودا
د اسلام نه وروسته د اديانو جهاني کيدلو ته اشاره ده .



---

په مخکنيو وختونو کې دعالم دخلکو دهرې ډلې لپاره ،
يعنې دهر امت لپاره يو پيغمبر راته .ولې دپروردګار
نقشه داوه. چې داسلام دعصر داتمام څخه وروسته ،
ټول امتونه متحد شي . څرنګه چې په دې زمان کې

دجهان ملتونه لکه ديو وجود غړي يو له بل سره اړوند شوي دي.

## ددين اوايمان اجل دخلکوپه زړونوکې

د«انسان داجل» اود«امت داجل» ترمنځ ډير شباهت دی .کله چې دانسان داجل وخت راورسي ،روح دجسم څخه جدا شي. دپروردګار لورې ته رجوع وکړي. همدارنګه کله چې ديوامت اجل راورسي،دپروردګار هدايت دهغه امت څخه جداشي پروردګار ته رجوع وکړي . دظاهري رسوم اواداب ددين جسم دی . په پروردګار ايمان دهغه سره مينه اوربنتينولي دهغه روح دی .دپروردګار غوښتنه دارنګه ده. چې ديومعلوم وخت لپاره خلک دهغه جسم په سيورې کې روزنه پيدا کړي. اودروح په رڼا کې روښانه زړه الهام واخلي.

امّا وروسته له څه وخته ،دروزګار په تيرو ،زړښت راورسيداومخکنې ايت ته کوم قوت پاتې نه دی. هغه وخت دپروردګار روح له هغه جسد څخه جداشي. يو نوی جسد يعنی نوی ائين ته منتقل شي .له هغې جملې نه حضرت مسيح خپلو پيروانو ته فرمائي چې «زه هميشه دعصر ترپايه له تاسې سره يم.»(متی انجيل

۲۰: ۲۸)یعنی وروسته د«عصر ترپایه»چې دامت داجل سره یووخت دی .زماړیکه دپیروانو سره نوردوام نه پیداکوي. داسلام ظهوردمسیح دامت داجل سره یووخت کې اودمسیحت دعصر تمامیدل ؤ.دبهائې ائین ظهور داسلام دامت داجل سره یوځای اوهمزمان ؤ. اوداسلام دعصر تمامیدل ؤ.دا تغیر اوتحول دالهي حکمت اوحکم په اساس دی .همیشه دارنګه وه اووي به .

حضرت بهاءالله فرمائي: اسلام دسیدالمرسلین ائین ، ،ضعیف شوې دی. په هغه اندازه چې دهغه نازنین ائین هیکل دخلکو په وړاندې په ځمکه پروت دی .هرنفس دهغه یو غړي غلا کوي. اوهیڅوک قادر نه دي چې دهغوې مانع او خنډ شي،

**اوحتی دهغوې رفتار دپوښتني لاندې راولي .وروسته فرمائي:«سل زره سترګې دي ترڅوپه دې سپين ملت ژړا وکړي .له حق څخه وغواړي. اوله خپل دين سره کومک وکړي.۴**

**قل هل انتم من الاموات بل و رب لو کانت فيکم نفحةالحيوة سمعتم نداء ربکم و اقبلتم ...۵**

**حضرت بهاءالله**

وو ايه! آيا تاسې له مړو څخه ياستې ؟بلې په خدای قسم دی!که په تاسې کې دژوند يو نښه هم وي ،دپروردګار غږ به تاسې اوريدلی وی. خپل رب ته به تاسې رجوع کړې وی...

داسلام دروح نه دمسلمانانو لريوالی په دې مبارک ايت کې اوپه ډيرو احاديثو کې وړاندوينه شوې ده:

**يا رَبِّ ان قَوْمِ اتخَذُوا هَذَا الْقُرْآنَ مَهْجُورًا .**

**د فرقان سورة: ۳۰ ـ ايت**

ای پروردګاره!دازما قوم (مسلمانان) له قران څخه لريوالی غوره کړې دی.

مسلمانانو دڅه شي څخه لريوالی غوره کړې دی ؟داسلام دپيکر(جسد) څخه اويا دهغه دروح څخه ؟زمونږ په عصر کې په ټوله دنيا کې ښکلي جماتونه اباد اوجوړ شوي دي ، قران په سلهاوژبو په عالم کې

چاپ شو. اوحتی فقیر ترینو مسلمانانو ته ورسید. دقران دښوونو دپاره په جهان کې لوی پوهنتونونه جوړشول .دهغو زده کوونکو شمیر چې په دې پوهنتونونو کې څه په اسلامې مملکتونواوڅه په مسیحي مملکتونو کې تحصیل او زده کړه کوي. په سل هاو برابره شوي دي. څومره تفسیرونه اوکتابونه دقران په باره کې لیکل شوي دي. اولیکل کیږي .پس مشکل چیرته دی؟مشکل داسلام په روح کې دی. چې دجهان څخه ئې خپل کالي ټول کړي دي ،په داسې اندازه اوحد سره چې زمونږ په عصر کې په سلهاو زره مسلمانان دیوبل سره لاس اوګریوان دي، اویوبل سره ئې مړه کړي، اومړه کوي . په دې اخرو څوکلونو کې دلس هاو زره مسلمانانو نه زیات دهغې جملې نه ښځې اوماشومان په کورونو کې په کوڅو کې ،په بازارونو ،مدرسو او پوهنتونونو کې دخپلو همکیشانو په لاس .وژل شوي دي!دشل زرو نه زیات بهائیان دوړو ماشومانو څخه نیولی بیا ترزړو پورې دمسلمانانو په لاس په فجیع ترین شکل مړه شوي دي.

---

- دمضمون څخه نقل.

---

آیا بله نښانه دقران دوړاندوینو دتحقق لپاره لازمه ده؟
**وانه سیاتی علیکم زمان لیس فیه شیئی اخفی من الحق...و لا اکثر من الکذب...فلم یبق عندهم الا اسمه ...**
**٦ دمؤمنانو امیر**
**دنهج البلاغه**

ډیر زر به داسې وخت راورسي. چې ستاسې په منځ کې به حقیقت له هرڅه څخه پټ تر...اودروغ به دهرڅه څخه شایع تروي...اودهغوې (مسلمانانو) په وړاندې په غیر دهغه (اسلام) دنوم څخه بل څه پاتې نه دي.

دالاندې حدیث دپیغمبر اکرم څخه ،هم دقران دایت سره مطابق دی. او هم دامیر مؤمینانو دوینا سره په نهج البلاغه کې:

**سیاتی علی امتی زمان لا یبقی من القران الا رسمه ولا من الا سلام الا اسمه یسمون به وهم ابعد الناس منه،**

**مساجدهم عامره وهـ□ خراب من الـهدی فقهاء ذالـک الزمان شر الفقها تحت ظل السماء منـهم خرجت الفتنـة واليـهم تـعو.٧**

زما په امت به داسې وخت راشي. چې دقران څخه به هيڅ پاتې نشي په غيردليکنې څخه. (قران ته به اعتنا نه کيږي) داسلام څخه په څه باقي پاتې نشي. په غير دنوم څخه، او مسلمانان به نومول کيږي. په داسې حال کې چې داسلام څخه به لرې وي. (اوداسلام بوی ورسره پاتې نه دی.) جماتونه به اباد وي. اودخلکو داصلاح اوهدايت له نظره دکندوالې اوخرابې نه زيات څه نه وي . دهغه وخت فقهابه داسمان دچترلاندې بدترين فقها وي. فتنه به دهغوې څخه پورته کيږي. اوبيرته به هغوې ته ورګرځي.

**په هغه ورځ به خلک سرګردانه شي ،لکه پسونه بې له شپانه څخه .زما دغضب اوربه د شپنو په ضد په لمبو وي .زه به پيشوايان او ملايان مجازات کړم. پروردګار خپلې رمې سره مينه لري.**

**دذکريا: ١٢فصل،١٧-ايت**

---

اصل حديث اودهغه ترجمه له دی اسلامې سايټ څخه په دې ځای کې نقل شوې :

**http://www.askquran.ir/showthread.php?p=171401**

حضرت بهاءالله دهمدي حديث يوه برخه په كتاب دايقان كې (۱۹۲)مخ ته نقل كړې ده.



---

**په هغه ورځ ... اې زما قومه ، ستاسې پيشوايان به ستاسې دګمراهې سبب شي...**

**اشعيا:۳ فصل ،۷ ـ ۱۲ ايتونه**

ديهوديانو اومسيحيانو اسماني اثارو زمونږ دعصر دخلكو معنوي سقوط هم دقران په اصطلاح دامتونو مرګ په صراحت سره پيش بيني كړي دي:

**ډير خلک له دين اوايمان څخه مخ اړوي. حضرت مسيح:متي انجيل،۲۴ ، ۱۰ ـ ايت**

دتعجب وړ ده. چې ټول خلک دمخکښني دين چې
فرسوده اوزوړشوې تصوير دى. عبادت كوي
.دپروردګار دنوي ائين اوځوان هيکل اودهغه دنوي ،
قوي، اورښا روح څخه بې ګټې پاتې دى . دلاندې ايت
په معنى کې تأمل او فکر وکړى:
**هُوَ الذِ ى خَلَقَكُم مِّن طِي ثُم قَضَ□ اجَلاً وَاجَلٌمس م□ عِندَهُ**
**ثَم انتُمْ تَمْتَرُونَ.انعام سورت، ۲-ايت**
هغه داسې يو څوک دى. چې تاسې ئې دختو څخه
جوړ کړي او«تاسې لپاره » ئې اجل وټاکل . دهغه
سره يوبل اجل دى. اما تاسې دهغه اجل په باره کې
شک لرى؟
داکوم «اجل» دى. چې خلک دهغه په باره کې شک
لري؟دامّت اجل ، يعنى داحقيقت:
**يوبل اجل شته دى.اماتاسې د هغه اجل په باره کې**
**شک لرى.**
**لَكُلَّ اُمَّتَّ اَجَلٌ** .(دهرامت لپار اجل دى)
**ديونس سورة ،۴۹- ايت**

**همدارنګه داعراف سورة،۳۴-ايت**
هميشه داسې وه. خلکو دنورو څخه دتقليد په سبب ، په
خاصه توګه ملايانو دنوي ائين د قبلولو څخه ډډه کړې
اوويلى دى:

**انا وَجَدْنَا آبَاءنَا عَلَ□ امةٍ وَانا عَلَ□ آثَارِهِم مقْتَدُونَ قَالَ اوَلَوْ جِتُكُم بِاهْدَى مِما وَجَدتمْ عَلَيهِ.**

**دزخرف سورت،۲۴-۲۳،ایتونه**

مونږ ولیدل زمونږ پلرونو له دین څخه پیروي کوله ، اومونږ هم له هغوې پیروي کوو. ووایه چې !که حتی زه یو ائین راوړم له هغه څه چې تاسې لرى. دهغه څخه بنه رهنما وي؟



---

---

د«فرد»دژوند اود«امّت»دژوند ترمنځ ډیر ورته والى اومشابهت دى.دواړه:

- په یوټاکلي اومعین وخت اوزمان کې متولد اومنځ ته راځي.
- په تدریج سره رشد کوي . یعنی غټیږي.
- دماشومتوب ، بلوغ ،ځواني اوزړښت دوران ته رسي.
- دناروغیو ،خطرونه اوبدواستفادو سره مخامخ کیږي.
- تغذي اوتقویت ته اړ دي.
- په ګناه اوخطاسره ککړ اوالوده کیږي.
- زړیږي اومخکښنی قوت دلاسه ورکوي.
- د«حتمي اجل»سره مخامخ کیږي.
- تمایل لري چې انکار وکړي.
- دانکار ، ډیر مشکلات رامنځ ته کوي . له هغې جملې نه داچې خلک دخپل روح د اماده کولو لپاره دنوي ژوند دمنلو څخه ډډه کوي ، په دې ګمان چې دهغوې ژوند په هغه حال کې دایمي دی.
- دخلکو لپاره مشکله ده. چې د«مرګ»یا«اجل»په معنا پوه شي . فکر کوي. چې «مرګ» مطابق دی، دنیستې اونابودې سره ،اوحال داچې «مرګ» دروح انتقال دی دیوحالت څخه بل حالت ته . زمونږدوجود

اصلي برخه روح دی.نه جسم یوازې زمونږ.
جسم له منځه ځي.په همدې ترتیب کله چې ددین
«اجل» راورسي ، د«پروردګار روح»دهغه
دین څخه نوي دین ته انتقال پیداکوي .همغه
الهي نور چې داسلام په دین کې ځلیدل، دبهائي
ائین ته منتقل شو .همغه نور په ټولو ادیانو کې
ؤاو وي به ، هغه کسان چې نوی ائین مني ،نوی
ژوند پیدا کوي .لکه څنګه چې دنور ترلاسه
کول دتیاری ائینې څخه ممکن نه دی.همغه رڼآ
چې په حضرت عیسی کې وه. همغه په حضرت
محمد کې ظاهره شوه .همغه رڼا یوځل بیا
زمونږ دعصر په دوه موعودو کې ، حضرت
باب اوحضرت بهاءالله کې راښکاره شوه.

# ضمیمه۲



## د ۱۹ عدد رابطه دقران مجيد سره

## دداکتررشاد خليفه دکشفياتو په اساس

ډاکتر رشاد خليفه دتوسان دښار دمسجد امام د اريزونا په ايالت کې ، په قران مجيد کې د(۱۹)عدد داهميت په باره کې په انګليسې ژبه يو کتاب ليکلی دی . په هغه کتاب کې خپل کشفيات په تفصيل سره بيان کړي دي. اودکتاب په پاې کې ، (۴۳)ځآيه د(۱۹)عدددرابطه دقران دايتونو سره ښودلې ده. په دې ضميمه کې يواځې په ۱۹شمارو کې دهغو نمونو په ذکر بسنه شوې ده:

**1. The opening statement of Qur'án consists of 19 letters.**

**2. Qur’án consists of 114 chapters, or 6×19.**

**3. The first Quranic revelation (96:15) was 19 words.**

**4. First revelation consisted of 76 letters, or 19×4.**

**5. First chapter revealed (Ch. 96) consists of 19 verses.**

**6. From the end of Qur’án, Ch. 96 is in position 19.**

**7. First chapter revealed consists of 304 letters; 19×16.**

**8. Last chapter revealed (Ch. 110) consists of 19 words.**

**9. First verse of last revelation consists of 19 letters.**

**10. Second revelation (68:1-9) was 38 words; 19×2.**

**11. Third revelation (73:1-10) was 57 words 19×3**

**12. Fourth revelation (74:1-30) brought the No. 19 itself.**
**13. Fifth revelation (Ch. 1) placed the 19-lettered opening statement immediately after the No. 19 of 74:30.**

**14. First word in the opening statement occurs in Qur’án exactly 19 times.**

**15. Second word in the opening statement (Allah) occurs 2,698 times, a multiple of 19 (19×142).**

**16. Third word in the opening statement (Rahman) is mentioned in Qur’án 57 times (19×3).**

**17. Fourth word in the opening statement (Rahim) is mentioned in**

**Qur'án 114 times (19×6).**

**18. Multiplication factors of the opening statement (see points 14-17 above) [1+142+3+6] add up to a total of 152, which is also a multiple of 19 (19×8).**

**19. Each frequency of occurrence connected with the opening statement, i.e., 19, 2698, 57, & 114 corresponds to the numerical value of one of God's names:**

نقل شوی دی له:

**Quran: Visual Presentation of the Miracle**

۲٤٤ ـمخونه.

# ۳ضمیمه

**دمؤلف ځنې نور**

**اثار**

**داسلسله کتابونه په څلور جلده**

**کې لیکل شوي دي.**

**لمړۍ جلد**

**ولې دې جهان ته**

**راغلي یو؟**

دوهم جلد

دخدای سره اوبې له خدایه ژوند

دهغوې په منځ کې توپیر څه شی دی؟

دریم جلد

قران اوبهاءالله

دقران خبر ددوه پیغمبرانو په ظهور سره له ایران څخه

څلورم جلد

پروردګاردهغه دکلام څخه پیژندلای شی

# پروردګار څنګه خبرې کوي؟

دمؤلف دنورو اثارو څونمونې




فارسي

